مظاهر حق
د مشکوة المصابیح پښتو شرحه
تالیف
علامه نواب محمد قطب الدین خان دهلوی رح
مولانا عبدالله جاوید غازی پوری (فاضل دار العلوم دیوبند)
اووم جلد ۷
مباحث
کتاب الصید والذبائح
کتاب الاطعمة
کتاب اللباس
کتاب الطب والرقی
کتاب الرؤیا کتاب الادب
۱. حدیثونه د اعراب سره
۲. تحت لفظي ترجمه
۳. حدیثونو تخریج
۴. د لغاتو حل

بسم الله الرحمن الرحيم

(د مشکوٰة المصابیح پښتو شرحه)

# مظاهر حق

**تالیف:** نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمه الله

**ترتیب او تزئین:** مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دیوبند)

**خپرندوی:** صداقت خپرندویه ټولنه

**پښتو ژباړه:** محمد رسول سعید

**تصحیح کوونکي:** بسم الله رحیمي، مولوي عبدالکریم کریمي، مولوي عبدالجبار

**لومړی چاپ:** ۱۳۹۲ش - ۲۰۱٤ ع.

**پنځم چاپ :** ۱۳۹۹ل. / ۲۰۲۰م.

**د خپرونو لړ:** ۱۸۳

**چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**د تر لاسه کولو ځایونه:**

---

**صداقت خپرندویه ټولنه**-کندهار

اوله ناحیه، نوی سړک- کریم اعتماد مارکېټ

۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷ / Sadaqat.books@gmail.com

**کندهار:** صداقت خپرندویه ټولنه- ارګ بازار- قلم او کتاب مارکېټ **۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴** .

**کابل:** صداقت خپرندویه ټولنه،کوټه سنګي مینه یار مارکېټ او **اکسوس کتاب پلورنځی**. **هلمند** :تاج منور خپرندویه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه ګدام. **جلال آباد:** مومند خپرندویه ټولنه.ننګرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتیکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

## د مظاهر حق اووم جلد فهرست

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيم

# كِتَابُ الصَّيْدِ وَالذَّبَائِحِ

## (د ښکار او ذبیحو بیان)

**د ښکار حکم** : د حرم د حدودو څخه دباندي هر ځای ښکار کول حلال دی په شرط ددې چي ښکار کونکی د احرام په حالت کي نه وي، د ښکار مباح کېدل د کتاب او سنت (یعني قرآن کریم او حدیثو) څخه ثابت دي او د امت اجماع هم پر دې ده، مګر د حضرت امام مالک رحمة الله عليه د مذهب په یوه کتاب (رسالة ابن ابوزید) کي لیکلي دي چي محض د لهو او لعب لپاره ښکار کول مکروه دي، او د لهو او لعب څخه پرته ښکار مباح دی، او کوم چي د رسول الله ﷺ د ذات مبارک تعلق دی نو دا ثابته نه ده چي رسول الله ﷺ په خپله ښکار کړی دی مګر دا ثابته ده چي کله به رسول الله ﷺ ته ښکار راوړل سو نو رسول الله ﷺ به هغه نه منع کوی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د سپي او غشي ښکار

﴿۳۸۸۷﴾: عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عدي بن حاتم رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ فَاذْكُرْ اسْمَ اللهِ فَإِنْ أَمْسَكَ عَلَيْكَ فَأَدْرَكْتَهُ حَيًّا فَاذْبَحْهُ

هر کله چي تاسو د روزل سوو سپیانو (په ښکار پسي) د لېږلو اراده وکړئ نو د الله تعالی نوم اخلئ (یعني بسم الله الله اکبر وایاست) بیا که ستا سپی ښکار ونیسي او ته هغه ژوندی تر لاسه کړې نو ذبح یې کړه

وَإِنْ أَدْرَكْتَهُ قَدْ قَتَلَ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ فَكُلْهُ وَإِنْ أَكَلَ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى

او که ښکار مړ تر لاسه کړې او سپي د هغه غوښه خوړلې نه وي نو د هغه غوښه خوره او که سپي د هغه ښکار څخه څه خوړلي وي نو بیا یې د هغه ښکار څخه مه خوره ځکه چي هغه سپي د خپل

نَفْسِهِ فَإِنْ وَجَدْتَ مَعَ كَلْبِكَ كَلْبًا غَيْرَهُ وَقَدْ قَتَلَ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّكَ لَا تَدْرِي

خوراک لپاره ایښې ده ، که ستا د سپي سره د بل چا سپی هم وي او په دواړو کي یوه سپي ښکار وژلی وي نو د هغه غوښه مه خوره ځکه چي تا ته معلومه نه ده چي

أَيُّهُمَا قَتَلَ وَإِذَا رَمَيْتَ بِسَهْمِكَ فَاذْكُرْ اسْمَ اللّٰهِ فَإِنْ غَابَ عَنْكَ يَوْمًا فَلَمْ

په هغوی کي کوم یوه ښکار وژلی دئ هر کله چي ته پر ښکار غشي ولې نو د الله تعالی نوم اخله بیا که ښکار یوه ورځ تا ته په لاس درنه سي او په دویمه ورځ ته هغه تر لاسه کړې

تَجِدْ فِيهِ إِلَّا أَثَرَ سَهْمِكَ فَكُلْ إِنْ شِئْتَ وَإِنْ وَجَدْتَهُ غَرِيقًا فِي الْمَاءِ فَلَا تَأْكُلْ . متفق علیه .

او په هغه شي کي ستا د غشي نښه موجوده وي نو هغه وخوره که ستا زړه غواړي، او که ته ښکار په اوبو کي پروت او مړ تر لاسه کړې نو مه یې خوره که څه هم په هغه کي د غشي نښه موجوده وي (ځکه چي کیدای سي چي هغه په اوبو سره مړ سوی وي . بخاري او مسلم).

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۲۷۹، رقم: ۱۷۵، ومسلم ۳\ ۱۵۳۱، رقم: ٦ – ۱۹۲۹.

**تشریح**: د الله ﷻ نوم یادوه: ددې مطلب دادی چي د سپي پرېښودل د چاړې تېرولو په درجه کي دی ځکه څرنګه چي د چاړې په ذریعه د ذبح په وخت کي د الله ﷻ نوم اخیستل کیږي همدارنګه په ښکار پسي د تعلیم یافته سپي پرېښودو په وخت کي هم د الله ﷻ نوم اخیستل یعني بسم الله الله اکبر ویل ضروري دي، که یو چا په هېره سره بسم الله الله اکبر ونه وایه نو په دغه صورت کي د هغه ښکار خوړل حلال دي او که دا صورت وي چي د سپي پرېښودو په وخت کي یې په قصد سره بسم الله الله اکبر ونه وایه او هغه سپی یې پرېښودو او چیري چي سپی وو هلته ودرېدی اوس د سپي له درېدو څخه وروسته هغه بسم الله الله اکبر ووایه او سپی ښکار ونیوی او مړ یې کړی نو هغه ښکار به حلال نه وي .

دا ضروري ده چي د سپي پرېښودونکی مسلمان یا اهل کتاب (لکه عیسائي یا یهودي) وي که چیري یو سپی د یو چا د پرېښودو څخه پرته خپله ولاړی او ښکار یې زخمي کړ نو هغه به حلال نه وي همدارنګه که یو سړی د سپي پرېښودو په وخت کي بسم الله الله اکبر ونه وایي مګر هغه ښکار یې ژوندی تر لاسه کړ او هغه یې ذبح کړ نو هغه به د ښکار په حکم کي نه وي .

لکه څرنګه چي د ښکاري ذي ناب (داړونکي) حیوان لکه سپی، شرموښ او دداسي نورو

حیوانان ښکار حلال دی همدارنګه د ښکاري ذي مخلب (پنجه لرونکي) نیول سوی ښکار هم حلال دی لکه باز، شاهین او داسي نور.

د ذي مخلب حیوان د ښکاري کېدو علامه داده چي هغه په دوه درې ځله ښکاره نېولو سره پرېږدي او خپله يې ونه خوري، او د ذي ناب حیوان د ښکاري کېدو نښه داده چي هغه د پرېښودو څخه وروسته راوبلل سي نو سمدستي راسي، که چیري د ذي مخلب حیوان یعني باز وغیره له ښکار څخه څه وخوړل نو هغه ښکار هم حلال دی او د هغه خوړل صحیح دي، که چیري د ذي ناب حیوان څخه یو حیوان د ښکار سوي حیوان څخه څه وخوري نو هغه ښکار به حلال نه وي همدارنګه که چیري د ښکاري سپي وغیره د درې ځله ښکار نیولو سره د پرېښودو څخه وروسته یو ځل هم له ښکار څخه څه وخوړل نو هغه د ښکاري سپي په حکم کي داخل نه دی تر دې چي هغه دوهم وار ښکاري جوړ کړل سي یعني تعلیم یافته سي.

او بیا هغه ښکار تر یوې ورځي پوري ستا څخه ورک وي...الخ: د حنفي علماوو په نزد د غشي په ذریعه د وژل سوي ښکار د حلال کېدو شرط دادی چي د غشي ویشتلو په وخت کي بسم الله الله اکبر ویل سوي وي او بیا هغه ښکار زخمي کړي او دا که چیري هغه ښکار د غشي په ذریعه له زخمي کېدو څخه وروسته د ښکاري څخه ورک سي او د هغه د پلټني څخه دی نه کښېني، ځکه ابن ابي شیبه رحمۃ اللہ علیہ په خپل کتاب مصنف کي او طبراني رحمۃ اللہ علیہ په خپل معجم کي له ابورزین رحمۃ اللہ علیہ څخه دا روایت نقل کړی دی چي هغه د ښکار په اړه چي د ښکاري څخه ورک سوی وو د رسول الله ﷺ دغه ارشاد نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: (لعل هو ام الارض قتله) او عبدالرحمن همدارنګه روایت له بي بي عائشې رضی اللہ عنہا څخه مرفوع نقل کړی دی.

له دغه حدیث څخه ثرګنده سوه که چیري په ښکار پسي سپی، شرموښ، بازیا بل ښکاري حیوان پرېښودل سي او هغه ښکار مړ کړي نو هغه ښکار به حلال وي په شرط ددې چي هغه سپی یا بل حیوان معلم یعني تعلیم یافته وي، د غیر معلم سپي وغیره وژل سوی ښکار به حلال نه وي

﴿۳۸۸۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا نُرْسِلُ الْكِلَابَ الْمُعَلَّمَةَ قَالَ كُلْ مَا

د حضرت عدي بن حاتم رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي ما وویل: اې د الله رسوله! موږ روزل سوي سپي په ښکار پسي استوو (یعني ددې څه حکم دئ) رسول الله ﷺ وفرمایل:

أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ قُلْتُ وَإِنْ قَتَلْنَ قَالَ وَإِنْ قَتَلْنَ قُلْتُ وَإِنَّا نَرْمِي بِالْمِعْرَاضِ

که هغه سپی ستا لپاره ښکار نیولي وي نو د هغه غوښه خوره، ما وویل که سپي زما ښکار مړ کړي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: که څه هم مړیې کړي، ما وویل: موږ د غشي ځو که نه ورته برابروو یعني په پلنوالي یې ولو (نو ایا دا ښکار حلال دئ؟)

قَالَ كُلْ مَا خَزَقَ وَمَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَقَتَلَهُ فَإِنَّهُ وَقِيذٌ فَلَا تَأْكُلْ. متفق عليه

رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم ښکار چې غشي زخمي کړي هغه خوره او کوم غشي چې د څوکې د خوا څخه نه بلکه د عرض (پلنوالي) له لوري ولګیږي او هغه مړ کړي نو هغه وقیذ دئ (یعني هغه ښکار دئ چې هغه په لرګي یا ډبري سره ووژل او مړ سي نو هغه مه خوره). بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\ ۶۰۴، رقم: ۵۴۷۷، ومسلم ۳\ ۱۵۲۹، رقم: ۱- ۱۹۲۹.

**د لغاتو حل**: المعراض: هو السهم الثقيل الذي لا ريش له. (هغه غشی چې تېره څوکه نه لري)

**تشريح** (معراض) هغه غشي ته وايي چې بې وزره وي، داسي غشی په تللو سره د څوکي له خوا څخه نه بلکه د پلنوالي له خوا څخه لګیږي.

(هغه وقیذ دی): وقیذ او موقوذ هغه ښاروي ته وایي چې پټ شي سره ووژل سي که هغه لرګی وي یا ډبره او یا بل شی وی، د علماوو پر دې خبره اتفاق دی چې د معراض په صورت کي که چیري هغه ښکار د خپل تېره شی په ذریعه ووژني نو هغه حلال دی او که معراض هغه د خپل پلنوالي په ذریعه وژلی وي نو هغه حلال نه دی، علماوو دا هم ویلي دي چې له دغه حدیث څخه دا ثابتیږي چې هغه ښکار حلال نه دی چې هغه د مرمی په ذریعه وژل سوی وي.

او هغه ښکار چې د معراض د پلنوالي له خوا څخه په ژوبل کېدو سره مړ سوی وي دا ځکه حلال نه دی چې په ذکر سوي صورت کي د ښکار زخمي کېدل ضروري دي چې د ذبح معنی متحققه سي، حال دا چې د معراض پلنوالی ښکار نه زخمي کوي ځکه هغه ښکار هم حلال نه دی چې د غټ تېره شي د مرمی په ذریعه وژل سوی وي ځکه مرمی هډوکی ماتوي او زخمي کوي یې نه ځکه نو هغه د معراض په حکم کي دی، هو که چیري په مرمی کي سپکه تېره څوکه وي او ښکار د هغه په ذریعه مړ سوی وي نو هغه حرام نه دی بلکه په دغه صورت کي د هغه مرګ په زخم سره متحقق سوی دي.

که یو سړی یو ښکار په چاړه یا توره ویشتلو سره ووژني او هغه ښکار مړ سي نو هغه حلال دی په شرط د دې چې هغه چاړه یا توره د تېره خوا څخه لګېدلې وي کنه نو حلال به نه وي همدا رنګه که چیري ښکار په یو داسي سپکه ډبره ویشتلو سره وژل سوی وي چې په هغه کي

تېره والى وي او هغه ښكار زخمي كړي نو هغه ښكار هم خوړل كېداى سي ځكه په دغه صورت كي د هغه ښكار مرګ د زخم په ذريعه يقيني وي او كه ښكار په درنه ډبره ويشتلو سره وژل سوى وي نو د هغه خوړل به جائز نه وي كه څه هم هغه يې ژوبل كړى وي ځكه په دغه صورت كي دا احتمال كيداى سي چي هغه ښكار د ډبري په وار سره مړ سوى وي.

خلاصه دا كه چيري د ښكار مرګ د هغه د زخمي كېدو په وجه واقع سوى وي او د هغه يقين هم وي نو هغه خوړل كيداى سي او كه د هغه مرګ د وار په اثر سره واقع سوى وي او د هغه يقين وي نو هغه ښكار به قطعا نه خوړل كيږي، او كه د شک صورت وي چي د هغه مړ كېدل د زخمي كېدو په وجه هم محتمل وي او د وار په وجه هم محتمل وي نو احتياط دادى چي هغه ونه خوړل سي.

﴿۳۸۸۹﴾: وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّا بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ

د حضرت ابو ثعلبه خشني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما وويل: اې د الله رسوله ! موږ په اهل كتاب خلكو كي اوسيږو

الْكِتَابِ أَفَنَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ وَبِأَرْضِ صَيْدٍ أَصِيدُ بِقَوْسِي وَبِكَلْبِي الَّذِي لَيْسَ

ايا موږ د هغوى د لوښو څخه خوراک کوو؟ او موږ د اهل كتاب په ځمكه كي اوسيږو چي هلته ښكار زيات دئ او زه په خپله ليندۍ او ناروزل سوو سپيانو او روزل سوو سپيانو سره

بِمُعَلَّمٍ وَبِكَلْبِي الْمُعَلَّمِ فَمَا يَصْلُحُ لِي قَالَ أَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ آنِيَةِ أَهْلِ الْكِتَابِ

ښكار كوم په دې كي كوم شى زما لپاره صحيح دئ؟ رسول الله ﷺ را ته وفرمايل: تا چي د اهل كتابو د لوښو كومه يادونه وكړه (ددې په اړه دا حكم دئ چي)

فَإِنْ وَجَدْتُمْ غَيْرَهَا فَلَا تَأْكُلُوا فِيهَا وَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فَاغْسِلُوهَا وَكُلُوا فِيهَا وَمَا

كه نور لوښي وي نو په هغه كي يې مه خوره او كه نور لوښي نه وي نو هغه ښه پريوله او په هغه كي خوراک كوه او كوم شى چي

صِدْتَ بِقَوْسِكَ فَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ فَكُلْ وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ فَذَكَرْتَ

ته په خپل ليندۍ سره ښكار كړې او پر هغه د الله جل جلاله نوم واخلې هغه خوره او كوم حيوان چي په

روزل سوو سپیانو سره ښکار کړي او پر هغه دي

اسْمَ اللّٰهِ فَكُلْ وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ غَيْرِ مُعَلَّمٍ فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ فَكُلْ . متفق عليه

د الله جل جلاله نوم اخیستی وي نو هغه هم خوره او کوم شی چي په نا روزل سوو سپیانو سره ښکار کړې او هغه ژوندی تر لاسه کړې نو ذبح يې کړه او خوره يې . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۰۴، رقم: ۵۴۷۸، ومسلم ۳\۱۵۳۲، رقم: ۸- ۱۹۳۰.

**تشریح**: د هغوی په لوښو کي خوراک مه کوئ: دغه حکم د احتیاط لپاره دی او دده څو سببونه دي، یو خو دا چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد دی : (دع ما يريبک الی ما يريبک)، دوهم په دې خبره خبرول مقصد دي چي تر خپله وسه پوري د هغوی په مستعملو لوښو کي خوراک او څښاک ونه کړل سي که څه هم هغه پرېولل سوي وي ، دریم د مسلمانانو په ذهن کي دا خبره په ارزښت سره کښېنول دي چي د مسلمانانو په وړاندي د هغوی دا ملي غوښتنه په هر صورت کي باید پاته وي چي هغوی دي له اهل کتاب سره د ناستي ولاړي او تعلق څخه نفرت کوي ، بیا دغه حکم چي د هغوی په لوښو کي خوراک مه کوئ دا په اصل کي د تقوا لپاره دی او په دې باره کي چي کومه فتوا ده نو هغه خپله حدیث بیان کړې ده .

هغه ښه پرېولئ : دا حکم به په هغه صورت کي د وجوب په توګه وي کله چي د هغوی د لوښو د ناپاکه کېدو غالب ګمان وي او په هغه صورت کي به د استحباب په توګه وي کله چي د هغوی د نجاست غالب ګمان نه وي.

ابن مالک رحمة الله عليه وايي: رسول الله ﷺ د کافرانو د لوښو د پرېوللو حکم کړی دی چي د هغه د نجاست او ناپاکۍ یقین وي او که دا یقین نه وي نو بیا د هغه لوښو د پرېوللو پرته استعمال به هم مکروه تنزیهي وي .

برماوي رحمة الله عليه نقل کړي دي چي ددغه حدیث د ظاهري مفهوم څخه دا څرګندیږي که چیري د اهل کتابو د لوښو څخه پرته نور لوښي په لاس راتلای سي نو په هغه صورت کي د هغوی لوښي په پرېوللو سره هم د خپل خوراک او څښاک په استعمال کي باید نه راوستل سي ، فقهاوو دا مسئله لیکلې ده چي ددغه لوښو د پرېوللو څخه وروسته استعمال په هر صورت کي جائز دی که څه هم نور لوښي وي یا نه وي ، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي له دغه حدیث څخه کوم کراهت ثابتیږي نو دا پر هغه لوښو محمول دی چي په هغه کي هغه خلګ د خنزیر غوښه پخوي او خوري ، یا د شرابو څښلو لپاره يې استعمالوي نو داسي لوښي د ایمان له

لحاظه د كركي ورړ وي ځكه نو د هغو استعمال مكروه دى كه څه هم هغه ډېر پرېولل سي ، فقهاوو چي كومه مسئله بيان كړې ده دا په هغه لوښي باندي محمول ده چي د خنزير د غوښو په ډول په ناپاكو شيانو كي زيات نه استعماليږي .

## د بوی ناکه غوښو حکم

﴿۳۸۹۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَمَيْتَ بِسَهْمِكَ فَغَابَ عَنْكَ فَأَدْرَكْتَهُ فَكُلْهُ مَا لَمْ يُنْتِنْ . رواه مسلم .

د حضرت ابو ثعلبة خشني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي ته خپل غشي وچلوئ او ستا ښكار غائب سي او بيا ته هغه تر لاسه كړې (او په هغه كي ستا د غشي نښه موجود وي) نو هغه خوره تر څو پوري چي ښكار بوی نه وي پيدا كړی . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۳\۱۵۳۲، رقم: ۹- ۱۹۳۱.

**تشريح**: حنفي علماء وايي تر څو چي په هغه كي بدلون پيدا نسي نو دغه حكم به د استحباب په توګه وي كنه نو په غوښه كي بوی پيدا كېدل د هغه غوښو حرام كېدل نه واجبوي، په يوه روايت كي راغلي دي چي رسول الله ﷺ داسي غوښه خوړلې ده چي په هغه كي بوی پيدا سوی وو .

امام نووي رحمه الله وايي : د بوی لرونكی غوښو له خوړلو څخه منع پر نهي تنزيهي باندي محمول ده نه پر نهي تحريمي باندي، بلكه دا حكم د هر هغه خوراک دی چي هغه بدبويه سوی وي مګر دا چي د هغه د خوراک په وجه د څه تكليف او تاوان رسېدو بېره وي .

﴿۳۸۹۱﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي الَّذِي يُدْرِكُ صَيْدَهُ بَعْدَ ثَلَاثٍ فَكُلْهُ مَا لَمْ يُنْتِنْ . رواه مسلم .

د حضرت ابو ثعلبة خشني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د هغه په اړه چي د ښكار كولو څخه وروسته يې ښكاري په دويمه ورځ تر لاسه كړي وفرمايل كه هغه بوی نه وي اخيستی نو هغه خورئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۳۲، رقم: ۱۰- ۱۹۳۱.

## د نوو مسلمانانو خوراک

﴿۳۸۹۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ هُنَا أَقْوَامًا حَدِيثٌ عَهْدُهُمْ بِشِرْكٍ يَأْتُونَا بِلُحْمَانٍ لَا نَدْرِي يَذْكُرُونَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا أَمْ لَا قَالَ اذْكُرُوا أَنْتُمْ اسْمَ اللّٰهِ وَكُلُوا. رواه البخاري.

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چي صحابه کرامو وويل: اې د الله رسوله! په دغه ځای کي داسي خلک اوسيږي چي د هغوی د شرک زمانه ډيره نژدې ده (يعني نوي مسلمانان سوي دي) دا خلک موږ ته غوښه راوړي او موږ ته ددې خبر نه وي چي هغوی د ذبح پر وخت د الله جل جلاله نوم اخلي يا نه، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل د خوراک پر وخت تاسو بسم الله پر واياست او خورئ يې. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\۲۹۴، رقم: ۲۰۵۷.

**تشريح**: تاسو د الله جل جلاله نوم پر واياست...الخ: ددې دا مطلب نه دی چي تاسو په بسم الله ويلو سره هغه غوښه خورئ نو هغه وخت به ستاسو بسم الله ويل د ذبح کونکي د بسم الله ويلو قائم مقام سي بلکه ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا بيان کړی دی چي د خوراک خوړلو په وخت کي بسم الله ويل مستحب دي او تر څو چي ددې خبري تعلق دی چي کومه غوښه تاسو ته راوړل سوې ده د هغه په باره کي تاسو ته دا څرګنده نه ده چي ايا دا هغه ذبيح ده چي په بسم الله ويلو سره ذبح سوې ده يا د بسم الله ويلو څخه پرته ذبح سوې ده نو ددې حکم دادی چي د هغه غوښي خوړل جائز دي په شرط ددې چي د هغه ذبح کونکي له هغه خلکو څخه وي چي د هغوی د لاس ذبيحه خوړل شرعا جائز وي او دا جواز د حسن ظن پر بنا وي چي د يو مسلمان حال او کيفيت پر صالح والی او نيکۍ باندي د محمولو کولو متقاضي وي که داسي يو سړی تاسو ته غوښه راوړي نو تاسو دا نېک ګمان کوئ چي هغه په هر حال مسلمان دی ځکه نو هغه به د ذبح کولو په وخت کي د الله جل جلاله نوم خامخا اخيستی وي.

## د غير الله په نامه ذبحه حرامه ده

﴿۳۸۹۳﴾: وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ قَالَ سُئِلَ عَلِيٌّ هَلْ خَصَّكُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابو طفيل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د حضرت علي رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول چي ايا

رسول الله ﷺ تاسو (يعني اهل بيت) په يو خاص شي سره خاص كړي او ممتاز كړي ياست؟

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْءٍ فَقَالَ مَا خَصَّنَا بِشَيْءٍ لَمْ يَعُمَّ بِهِ النَّاسَ إِلَّا مَا فِي قِرَابِ

حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل: موږ په هيڅ يو خاص شي سره خاص كړل سوي نه يو چي خلكو ته په عامه توګه سره نه وي وركړل سوي البته په دې شي سره يې خاص كړي يو چي

سَيْفِي هَذَا فَأَخْرَجَ صَحِيفَةً فِيهَا لَعَنَ اللَّهُ مَنْ ذَبَحَ لِغَيْرِ اللَّهِ وَلَعَنَ اللَّهُ مَنْ

زما د توري په پوښ كي دننه دي (يعني دا شي موږ ته په خاصه توګه سره راكړل سوى دى مګر زه دا نسم ويلاى چي په دې كي كوم احكام دي هغه د عامو مسلمانانو لپاره دي يا خاص زموږ لپاره) په دې ويلو سره حضرت علي رضي الله عنه د توري د پوښ څخه يو كاغذ راوكښى چي په هغه كي ليكلي وه پر هغه چا دي د الله جل جلاله لعنت وي چي د الله جل جلاله د نامه څخه پرته د بل چا پر نامه حيوان ذبح كړي او پر هغه چا دي د الله جل جلاله لعنت وي چي

سَرَقَ مَنَارَ الْأَرْضِ وفي رواية من غير منار الارض وَلَعَنَ اللَّهُ مَنْ لَعَنَ وَالِدَهُ وَلَعَنَ اللَّهُ مَنْ آوَى مُحْدِثًا . رواه مسلم .

د مځكي نښه (د حدودو د نښه ډبري وغيره) پټ كړي، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي پر هغه چا دي د الله جل جلاله لعنت وي چي د مځكي په پېژندلو كي تغير او تبديل وكړي او پر هغه چا چي پر خپل پلار لعنت وكړي او پر هغه چا دي د الله جل جلاله لعنت وي چي بدعتي ته پناه وركړي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۶۷، رقم: ۴۳ - ۱۹۷۸.

**تشريح** د مځكي له نښي څخه مراد ډبري او نور شيان دي چي د مځكي پر حدودو باندي نصب وي او د هغه په ذريعه د يوبل په مځكه كي فرق او بېلوالى كېږي او د هغه نښو پټولو او په هغه كي د تبديل كولو مطلب دادى چي هغه سړى په زور سره د خپل همسايه مځكه لاندي كول وغواړي،

څوک چي پر خپل پلار باندي لعنت وكړي: يعني يا خو پر خپل پلار باندي په صراحت سره لعنت وكړي يا د بل چا پر پلار باندي لعنت وكړي او هغه سړى د غچ اخيستني لپاره د هغه پر پلار لعنت وكړي، په دغه دوهم صورت كي څه هم هغه پر خپل پلار باندي په څرګنده لعنت نه

دی کړی مګر د لعنت سبب هغه ګرځېدلی دی ځکه نو ویل کیږي چي هغه پر خپل پلار باندي لعنت کړی دی.

ځوک چي یو بدعتي ته پناه ورکړي: بدعتي هغه سړي ته وایي چي په دین کي یو داسي خبره پیدا کړي چي د هغې اصل موجود نه وي او هغه خبره د شریعت خلاف او په سنتو کي تبدیلي راوستونکې وي، داسي سړی یعني بدعتي ته پناه ورکول د هغه عزت او تکریم کول او د هغه مرسته کول د شریعت په نظر کي د نیوکي وړ کار دی.

## چي په کوم شي سره وینه بهیږي په هغه سره ذبحه

﴿۳۸۹۴﴾: وَعَنْ رَّافِعِ ابْنِ خَدِيْجٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّا لَاقُو الْعَدُوِّ غَدًا

د حضرت رافع بن خدیج رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما وویل: اې د الله رسوله! سبا موږ د دښمن سره مقابله کونکي یو

وَلَيْسَتْ مَعَنَا مُدًى فَنَذْبَحُ بِالْقَصَبِ قَالَ مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ فَكُلْ

او زموږ سره چړې نسته ایا موږ په بانړس سره ذبح وکړو، رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم شی چي وینه بیوي او پر کومه ذبیحه چي د الله جل جلاله نوم واخیستل سي هغه خوري،

لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ وَسَأُحَدِّثُكَ عَنْهُ أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى

مګر په غاښ او نوک سره ذبح کول صحیح نه دي او ددې دواړو شیانو حال ما تاسو ته بیان کړی دئ، غاښ خو هډوکی دئ او نوک د حبشیانو چړې دي،

الْحَبَشِ فَأَصَبْنَا نَهْبَ إِبِلٍ وَغَنَمٍ فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيرٌ فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ

د راوي بیان دئ موږ ته د لوټ اوښان او پسونه تر لاسه سول په هغو کي یو اوښ وتښتېدئ یو سړي هغه اوښ په غشي وویشتئ

فَحَبَسَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِهٰذِهِ الْإِبِلِ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ فَإِذَا غَلَبَكُمْ مِنْهَا شَيْءٌ فَافْعَلُوا بِهِ هٰكَذَا. متفق علیه

او هغه یې تم کړ، ددې په لیدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل په ساتل سوو او په کورني اوښانو

کي تبنتېدونکي او نفرت کونکي اوښان هم وي لکه څرنګه چي ځنګلي حیوانان تبنتېدونکي او نفرت کونکي وي هر کله چي په کورني حیوانانو کي وحشت پیدا سي او دواک څخه ووځي نو د هغوی سره دا عمل کوئ (یعني د ځنګلي حیوان په ډول ښکار او ذبح یې کړئ). بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۳۱، رقم: ۲۴۸۸، ومسلم ۳\۱۵۵۸، رقم: ۲۰- ۱۹۶۸.

**د لغاتو حل**: فند: ای شرد وفر (وتبنتېدی). الاوابد: هي الابل التي توحشت ونفرت.

**تشریح**: غاښ خو هډوکی دی: یعني غاښ هډوکی دی او په هډوکي سره ذبح کول صحیح نه دي ځکه د غاښ ذبح سوی ښاروی خوړل هم جائز نه دی.

شیخ ابن صلاح رحمة الله علیه ویلي دي: په دغه موضوع کي د ډېر زیات تحقیق، پلټني او فکر سربېره زه په دې پوه نه شوم چي د هډوکي په ذریعه د ذبح کولو د منع څه مطلب دی، او ددې څه وجه ده، له شیخ عبد السلام څخه هم داسي خبره منقول ده، او کوم چي د حدیث تعلق دی په هغه کي هم یوازي دا فرمایل سوي دي چي په غاښ سره ذبح کول ځکه صحیح نه دي چي هغه هډوکی دی، ددې څخه پرته بل یو ظاهري علت او سبب ته اشاره نسته مګر امام نووي رحمة الله علیه په هډوکي سره د ذبح کولو د منع دا علت بیان کړی دی که چیري په هډوکي سره ذبح وکړل سي نو هغه هډوکی به د ذبیحه په وینه سره نجس سي او د هډوکي د نجس او ناپاکولو منع منقول ده ځکه چي دا هډوکی د جناتو خوراک ښودل سوی دی.

هغه د حبشیانو چاړه ده: دا لکه په نوک سره چي د ذبح کولو د منع علت وي یعني که چیري د نوک په ذریعه ذبح وکړل سي نو په دې کي د حبشیانو مشابهت اختیارول لازمېږي ځکه چي د نوک په ذریعه د ښاروي په شکولو سره خوړل له حبشیانو سره خاص دی او هغه حبشي غیر مسلم وي. حال دا چي مسلمانانو ته دا حکم ورکړل سوی دی چي هغوی دي د غیر مسلمانانو طریقې نه اختیاروي بلکه د هغوی خلاف دي کوي.

څرګنده دي وي چي د غاښ او نوک په ذریعه د ذبح کولو منع د دړې سره امامانو په نزد مطلق دي حال دا چي د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه مذهب دا دی چي هغه په غاښونو او نوکانو سره ذبح کول خو جائز نه دي چي په خپل ځای یعني خوله او ګوتو کي وي مګر کوم غاښ او نوک چي د خپل ځای څخه په ایستلو سره د خولې او ګوتو څخه بېل سوی وي د هغه په ذریعه ذبح کول جائز دي مګر دا جواز له کراهت سره دی، بیا هم د هغه ذبیحې په غوښه خوړلو کي څه حرج نسته، د دړې سره امامانو دلیل ذکر سوی حدیث دی چي په هغه کي د غاښ او نوک په ذریعه د ذبح کولو

منع بېله قيد او استثنی نقل ده ، د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه دليل د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي (انهر الدم بما شئت او وافر الاوداج) او کوم چي د حضرت رافع رضي الله عنه د دغه روايت تعلق دی نو په دې باره کي د حضرت امام اعظم رحمة الله عليه له خوا دا ويل کېږي چي دغه حديث بېله کښلي غاښ او نوک په ذريعه پر ذبح کولو باندي محمول دی ځکه چي د حبشيانو دغه طريقه وه .

نو له هغه سره هم داسي معامله کوئ: ددې مطلب دادی که چيري کورنۍ يو څاوری لکه اوښ، غوا ، پسه يا بل څاروی وتښتي نو هغه به د ذبح کولو په معامله کي د وحشي حيوان د ښکار په ډول وي لکه څرنګه چي وحشي حيوان د ښکار په مثل وي چي څرنګه پر وحشي حيوان باندي په بسم الله ويلو غشي يا شی وويشتل سي نو هغه غشی د هغه حيوان د بدن پر يو برخه باندي په لګېدو سره هغه ختم کړي نو هغه به د ذبيحې په حکم کي سي، همدارنګه د هغه تښتېدونکي کورني حيوان ټول بدن او د هغه د بدن ټول اندامونه هم د ذبح په ځای کي دي نو په بسم الله ويلو سره پر هغه ويشتونکی غشی د هغه د بدن پر کومه برخه چي په لګېدو سره هغه ختم کړي نو د هغه غوښه به حلاله وي او دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي اوښ يا بل شی په څاه يا بل يو کنده وغيره کي ولوېږي ، دلته په خاصه توګه يوازي د اوښ يادونه ځکه سوې ده چي په هغه کي وحشت ډېر زيات دی .

دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د ذبح دوه ډولونه دي يو ډول خو اختياري دی او دوهم ډول اضطراري دی ، د اختياري يو صورت خو د حيوان د حلق او سينې په مينځ کي په يو تېره شي سره لکه چاړه يا بل شی سره په جراحت سره د رګونو پرېکول وي او دوهم صورت په نحر سره يعني د اوښ په سينه کي د نيزې يا بل شي په وهلو سره وي او اضطراري حالت دا وي چي د حيوان د بدن يو برخه په زخمي کولو سره هغه ووژل سي .

## په ډبره ذبح سوی حيوان حلال دی

﴿۳۸۹۵﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهُ كَانَ لَهُ غَنَمٌ تَرْعَى بِسَلْعٍ فَأَبْصَرَتْ

د حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د هغه سره د پسو يوه رمه وه چي پر سلع

جَارِيَةٌ لَنَا بِشَاةٍ غَنَمِنَا مَوْتًا فَكَسَرَتْ حَجَرًا فَذَبَحَتْهَا بِهِ فَسَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَهُ بِأَكْلِهَا . رواه البخاري .

غونډۍ باندي به څرېدل ، يوه ورځ زموږ مينزي يو پسه د مرګ په حالت کي وليدئ نو هغې د

ډبري يوه تيره ټوټه راواخيستل او په هغه سره يې ذبح کړ بيا کعب ددې په اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه، رسول الله ﷺ د هغه د خوړلو اجازه ورکړه. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۴۸۲، رقم: ۳۳۰۴.

## په ارامه سره ذبح کوئ

﴿۳۸۹۶﴾: وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ اَوْسٍ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ

د حضرت شداد بن اوس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

اللّٰهَ تَعَالٰى كَتَبَ الْإِحْسَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ فَإِذَا قَتَلْتُمْ فَأَحْسِنُوا الْقِتْلَةَ وَإِذَا

الله تعالی پر هر شي احسان کول واجب ګرځولي دي (يعني د هر شي په ښه طريقه سره د استعمال حکم يې کړی دئ) بيا هر کله چي تاسو (په قصاص وغيره کي) څوک وژنئ نو په ښه طريقه يې وژنئ او هر کله چي تاسو

ذَبَحْتُمْ فَأَحْسِنُوا الذَّبْحَ وَلْيُحِدَّ أَحَدُكُمْ شَفْرَتَهُ فَلْيُرِحْ ذَبِيحَتَهُ. رواه مسلم

ذبح کوئ نو په ښه طريقه ذبح کوئ چي د ذبح کولو لپاره خپله چاړه په ښه ډول تيره کړئ او مذبوح حيوان ته آرام ورکړئ. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۴۸، رقم: ۵۷- ۱۹۵۵.

**تشريح** آرام دي ورکړئ: مطلب دادی چي د ذبح کولو څخه وروسته دي هغه حيوان پرېږدي چي د هغه ساه وخېژي او هغه يخ سي، يعني ذکر سوی عبارت او جمله په اصل کي په ذبح کولو کي د احسان کولو وضاحت دی، په ښه توګه او نرمی سره د ذبح کولو مطلب دادی چي هغه حيوان دي په تېره چاړه سره ذبح کړي او ژر دي يې ذبح کړي او د ذبح کولو څخه وروسته دي هغه يخېدو ته پرېږدي.

حنفي علماء وايي: د ذبح سوي حيوان پوست کښل تر هغه وخته پوري مکروه دي تر څو چي هغه ښه يخ نسي او مستحب دادي چي کوم حيوان ذبح کېدونکی وي نو هغه دي د يو بل مخکي نه ذبح کوي او د ذبح کونکي حيوان په پښه نولو او کشولو سره دي له هغه ځای څخه نه ليري کوي.

﴿۳۸۹۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهٰى أَنْ تُصْبَرَ بَهِيمَةٌ أَوْ غَيْرُهَا لِلْقَتْلِ . متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي ددې څخه یې منع کړې ده چي کوم حیوان په ولاړه قتل یا ذبح کړل سي .بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۴۲،رقم: ۵۵۱۴، ومسلم ۳\۱۵۴۹،رقم: ۵۸- ۱۹۵۶.

**د لغاتو حل**: تصبر: ای تحبس (منعه یې کړې)

**تشريح**: ددغه حدیث معنی یا خو داده چي هغه په تېرو درختو ، ډبرو یا بل شي سره وژل منع دي یا دا معنی ده چي د یو حیوان ښپه او به او دانې بندولو سره وژل منع دي .

﴿۳۸۹۸﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ مَنِ اتَّخَذَ شَيْئًا فِيهِ الرُّوحُ غَرَضًا . متفق عليه .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ پر هغه سړي لعنت ویلي دئ چي یو ساه لرونکي شی په نښنه کړل سي. (د وېشتلو لپاره) .بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۴۲،رقم: ۵۵۱۵، ومسلم ۳\۱۵۴۹،رقم: ۵۹- ۱۹۵۸.

**د لغاتو حل**: غرضا : ای هدفا.

﴿۳۸۹۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَتَّخِذُوا شَيْئًا فِيهِ الرُّوحُ غَرَضًا . رواه مسلم

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په کوم شي کي چي ساه وي هغه نښنه مه جوړوئ . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۴۹،رقم: ۵۸- ۱۹۵۷.

**تشريح**: دغه منع د نهي تحریمي په توګه ده ځکه چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي: کوم څوک چي داسي وکړي پر هغه دي د الله جل جلاله لعنت وي او ددغه منع وجه داده چي ددغه فعل په ذریعه

نه یوازي دا چي یو ذي روح ځاروی په تکلیف کي اخته وي بلکه د مال ضائع کول هم دي.

## پر مخ وهل او داغ لګول

﴿۳۹۰۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الضَّرْبِ فِي الْوَجْهِ وَعَنِ الْوَسْمِ فِي الْوَجْهِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ پر مخ باندي د وهلو څخه یا پر مخ باندي د داغ لګولو څخه منع کړې ده. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۶۷۳، رقم: ۱۰۶- ۲۱۱۶.

**د لغاتو حل**: الوسم: ای الکی. (داغ)

﴿۳۹۰۱﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَيْهِ حِمَارٌ قَدْ وُسِمَ فِي وَجْهِهِ قَالَ لَعَنَ اللَّهُ الَّذِي وَسَمَهُ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ په خوا کي یو خر تیر سو چي پر مخ یې داغ لګول سوی وو، رسول الله ﷺ وفرمایل پر هغه سړي دي د الله لعنت وي چي پر ده یې داغ لګولی دئ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۶۷۳، رقم: ۱۰۷- ۲۱۱۶.

**تشریح**: که چیري دلته دا سوال پیدا سي چي رسول الله ﷺ د هغه خره پر مخ داغ ورکونکي باندي لعنت کړی دی حال دا چي پر مسلمانانو باندي د لعنت کولو څخه یې منع فرمایلې ده نو ددې جواب به دا وي چي کیدای سي داغ ورکونکی مسلمان نه وو یا له منافقانو څخه وو، او دا هم کیدای سي چي رسول الله ﷺ دغه لعنت کول د ښېرا په توګه نه وي کړي بلکه د اخبار بالغیب په توګه وي یعني رسول الله ﷺ د دغه جملې په ذریعه دا خبر ورکړ چي هغه سړی د الله تعالی په نزد د لعنت مستحق ګرځول سوی دی.

په دې پوه سئ چي د هر حیوان پر مخ باندي داغ لګول په اتفاق سره د ټولو علماوو منع دي که څه هم هغه سړی وي یا حیوان وي، د حیوان د مخ څخه پرته د هغه د بدن پر یو بله برخه باندي د داغ ورکولو مسئله داده چي د امتیاز او تعین په مقصد سره د زکوة او محصول د حیوانانو

داغ كولو ته ځينو علماوو مستحب ويلي دي او له دې څخه پرته د نورو حيوانانو داغ كول هم محض جائز دي .

او كوم چي خلكو ته د داغ وركولو مسئله ده نو په دې اړه د رسول الله ﷺ ، صحابه كرامو او نورو مختلف اخبار او آثار قولا او فعلا منقول دي ، ځيني اقوال پر دې دلالت كوي چي دا ښه كار نه دی ، ځيني اقوال پر پرهېښودو باندي دلالت كوي او ځيني اقوال پر صريح منع باندي دلالت كوي ، حال دا چي د رسول الله ﷺ د غه عمل پر جواز باندي دلالت كوي چي رسول الله ﷺ طبيب حضرت ابى بن كعب ﷺ ته واستوی چي د هغه رګ يې ووهی او داغ يې وركړ ، همدارنګه حضرت سعد بن معاذ ﷺ چي ژوبل سو نو رسول الله ﷺ هغه ته د داغ وركولو اجازه وركړه بلكه كوم وخت چي و پړسيدی نو بل داغ يې وركړی او د حضرت جابر او ابو زراره رضي الله عنهما داغ كول هم منقول دي .

علماوو ليكلي دي چي په كومو اقوالو كي د انساني بدن د داغولو منع دي د هغه تعلق د قصد او بېله ضرورته داغولو سره دی هو كه چيري د يو ناروغۍ يا بل څه په وجه وي د داغولو اړتيا وي نو بيا جائز دي .

علماوو دا هم ليكلي دي چي د درملني په نيت سره د انسان د بدن يو برخه داغل له اسباب وهميه څخه دي چي دغه اختيارول د جذبه توكله او اعتماد على الله په اعتبار مناسب نه دي ، حال دا چي دوهم علاج اسباب ظنيه څخه د كېدو په وجه د توكل قطعا خلاف نه دي مګر كه چيري د دې خبري ګمان وي چي داغ وركول د مرض د فعيه لپاره يو ګټور علاج وي نو په دغه صورت كي هغه اختيارول به غير مناسب نه وي ، اهل فتوا دا قول اختيار كړی دی چي داغ وركول بذاته مكروه تحريمي دي مګر د غالب ګمان حاصلېدو په صورت كي په دې توګه چي حاذق ډاكټر دا وايي چي د ناروغۍ د دفع انحصار يوازي پر داغ باندي دی او له دې څخه پرته بل څه علاج نسته نو داغ كول به مكروه تحريمي نه وي .

ځيني حضرات وايي چي د داغ منع پر دې بنياد ده چي د جاهليت په زمانه كي اهل عرب پر دې پخه عقيده درلودل چي داغ وركول د ناروغۍ لپاره يو قطعي او يقيني علاج دی ، څرګنده دي وي چي په اسلامي نظر سره دا يوه باطله عقيده ده ځكه مسلمانان له دې څخه منع كړل سول چي د دې په اختيارولو سره په شرك خفي كي اخته نسي .

## په كوم وخت كي داغ جائز دى

﴿۳۹۰۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ غَدَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ ﷺ بِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ لِيُحَنِّكَهُ فَوَافَيْتُهُ فِي يَدِهِ الْمِيسَمُ يَسِمُ إِبِلَ الصَّدَقَةِ. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د سهار په وخت كي عبدالله بن ابو طلحه رسول الله ﷺ ته بوتلى چي رسول الله ﷺ خرما وژوبي او د هغه پر تالو يې ومږي ما وليدل چي هغه وخت د رسول الله ﷺ په لاس مبارك كي د داغ وركولو آله وه چي په هغه سره يې د زكوة اوښانو ته داغ وركوئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۶٦، رقم: ۱۵۰۲، ومسلم ۳\ ۱٦۷۴، رقم: ۱۰۹– ۲۱۱۹.

**د لغاتو حل**: الميسم: آلة من حديد يكوى بها. (د داغ لگولو آله.)

**تشريح**: عبدالله ابن طلحه رضي الله عنه د مور له خوا د حضرت انس رضي الله عنه ورور وو، يعني د مور له خوا حقيقي ورور وو او د پلار له خوا ميرېزى ورور وو، ابو طلحه رضي الله عنه د حضرت انس رضي الله عنه د مور دوهم خاوند وو چي له هغې څخه عبدالله پيدا سوى وو، د خرما ځوښل او د هغه ناړي د ماشوم په تالو كي لگول سنت دي.

د رسول الله ﷺ هغه اوښان داغ كول د يو اندېښنې باعث جوړېدل پكار نه دي ځكه چي رسول الله ﷺ د مخ څخه پرته د بدن په نورو برخو كي داغ وركړ، او دداغ كومه منع چي نقل سوې ده د هغې تعلق په خاصه توگه له مخ سره دي يا بېله ضرورته داغ وركول منع سوي دي حال دا چي د زكوة اوښان په دغه ضرورت كي دي چي دهغوى او نورو اوښانو په مينځ كي فرق او بېوالى وكړل سي.

﴿۳۹۰۳﴾: وَعَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي مِرْبَدٍ فَرَأَيْتُهُ يَسِمُ شَاةً حَسِبْتُهُ قَالَ فِي آذَانِهَا. متفق عليه.

حضرت هشام بن زيد د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت كوي چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوم، رسول الله ﷺ د حيوانانو د تړلو په ځاى كي وو، ما وليدل چي رسول الله ﷺ د پسو يو اندام ته داغ وركوئ، د هشام بيان دئ چي زما خيال دئ چي انس وويل چي د پسو غوږونو ته يې داغ وركوئ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\ ۶۷۰، رقم: ۵۵۴۲، ومسلم ۳\ ۱۶۷۴، رقم: ۱۱۰- ۲۱۱۹.

**د لغاتو حل**: المربد: موضع يحبس فيه الابل والبقر والغنم. (غوجل)

**تشريح**: له دغه حديث څخه څرګند ه سوه چي په مخ کي غوږ شامل نه دی ځکه چي پر مخ باندي له داغ ورکولو څخه منع فرمايل سوې ده که چيري د غوږ تعلق هم له مخ سره وي نو رسول الله ﷺ به پر غوږ ولي داغ ورکولای.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### چي وينه بهيوي په هغه شي ذبح جائز ده

﴿۳۹۰۴﴾: وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ أَحَدُنَا أَصَابَ صَيْدًا وَلَيْسَ مَعَهُ سِكِّينٌ أَيَذْبَحُ بِالْمَرْوَةِ وَشِقَّةِ الْعَصَا فَقَالَ أَمْرِرِ الدَّمَ بِمَا شِئْتَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د عدي بن حاتم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما وويل: اې د الله رسوله! که په موږ کي چا ته ښکار تر لاسه سي او د هغه سره چاړه نه وي نو ايا په ډبره يا لرګي سره هغه ذبح کولای سي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: ته چي په کوم شي سره غواړي وينه وبيوه او د ذبح په وخت کي د الله جل جلاله نوم واخله. ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داؤد ۳\ ۲۴۹، رقم: ۲۸۲۴، والنسائي ۷\ ۱۹۴، رقم: ۴۳۰۴.

### د تلواري ذبح حکم

﴿۳۹۰۵﴾: وَعَنْ اَبِي الْعَشْرَاءِ عَنْ اَبِيهِ اَنَّهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَمَا تَكُونُ الذَّكَاةُ إِلَّا فِي الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ فَقَالَ لَوْ طَعَنْتَ فِي فَخِذِهَا لَأَجْزَأَ عَنْكَ. رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي وقال ابوداؤد و هذا ذكوة المتردي

ابو عشراء د خپل پلار څخه روايت کوي چي هغه وويل: اې د الله رسوله! ايا ذبح يوازي پر

و قال الترمذي هذا في الضرورة .

غاړه او د سيني په سر كي كيږي . رسول الله ﷺ وفرمايل كه ته د ښكار په ورانه كي زخم وكړې نو هم ستا لپاره بس ده . ترمذي، ابوداؤد، نسائي ، ابن ماجة، دارمي ، ابوداؤد ويلي دي دا حكم د هغه ښكار لپاره دئ چي په څاه كي لويدلى وي يا د لوړي ځخه را لغړيدلى وي او ترمذي ويلي دي دا حكم پر ضرورت موقوف دئ

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۶۲ ، رقم: ۱۴۸۱، وابوداود ۳\ ۲۵۰، رقم: ۲۸۲۵، والنسائي ۷\ ۲۲۸، رقم: ۴۴۰۸، وابن ماجه ۲\ ۱۰۶۳، رقم: ۳۱۸۴، والدارمي ۲\ ۱۱۳، رقم: ۱۹۷۲.

**د لغاتو حل**: اللبة: آخر الحلق (د ستوني پاى)

**تشريح**: امام ترمذي رحمة الله عليه د امام ابوداؤد رحمة الله عليه وضاحت په نور زيات تفصيل سره بيان كړ چي په دغه حكم كي د تښتېدلي اوښ د ذبح كولو صورت هم شامل سي .

## په روزل سوي سپي يا باز سره ښكار كول

﴿۳۹۰۶﴾ : وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا عَلَّمْتَ

د حضرت عدي بن حاتم رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مِنْ كَلْبٍ أَوْ بَازٍ ثُمَّ أَرْسَلْتَهُ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللّٰهِ فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكَ عَلَيْكَ قُلْتُ

كوم سپى يا باز چي تا روزلى وي او بيا هغه پر يو ښكار پرېږدې او د الله نوم واخلې نو كوم حيوان چي هغه ستا لپاره ونيسي او خپله يې ونه خوري نو هغه ته خوره ، ما وويل :

وَإِنْ قَتَلَ قَالَ إِذَا قَتَلَهُ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ شَيْئًا فَإِنَّمَا أَمْسَكَهُ عَلَيْكَ. رواه ابوداؤد .

كه څه هم هغه ښكار مړ كړي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هو كه څه هم سپى يا باز ښكار مړ كړي او خپله د هغه ځخه څه ونه خوري نو هغه ستا لپاره نيولى دئ . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\ ۲۷۱، رقم: ۲۸۵۱.

## په غشي سره د ښكار كولو حكم

﴿۳۹۰۷﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَرْمِي الصَّيْدَ فَأَجِدُ فِيْهِ مِنَ الْغَدِ

سَهْمِيْ قَالَ اِذَا عَلِمْتَ اَنَّ سَهْمَكَ قَتَلَهُ وَلَمْ تَرَ فِيْهِ اَثَرَ سَبُعٍ فَكُلْ . رواه ابوداؤد

د عدي بن حاتم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما وويل: اې دالله رسوله! زه پر ښکار غشي ولم بيا په دويمه ورځ په هغه ښکار کي خپل غشي تر لاسه کړم، رسول الله ﷺ وفرمايل که تا ته ددې يقين وسي چي ستا غشي هغه وژلی دئ او په هغه کي د درنده نښه نه وي نو هغه خوره. ابوداؤد

**تخريج**: الترمذي ۴\۵۵، رقم: ۱۴۶۸.

## د غير مسلم د لاس ذبح حلاله نه ده

﴿۳۹۰۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نُهِيْنَا عَنْ صَيْدِ كَلْبِ الْمَجُوْسِ . رواه الترمذي .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د مجوسي (د اور عبادت کونکو) د سپي ښکار کړل سوي شيانو څخه موږ منع کړل سوي يو . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۴، رقم: ۱۴۶۵.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم ښکار مجوسيان په خپل سپي يا د يو مسلمان د سپي په ذريعه ونيسي نو د هغه خوړل جائز نه دي مګر که چيري هغه ښکار ژوندی په لاس ورسي او ذبح کړل سي نو په دغه صورت کي د هغه خوړل جائز دي او همدارنګه که مسلمان د مجوسي د سپي په ذريعه ښکار ووژني نو د هغه خوړل هم جائز دي او که چيري په سپي پرېښوُدو يا غشي ويشتلو کي مسلمان او مجوسي دواړه ګډ وي او هغوی ښکار ووژني نو هغه ښکار به حلال نه وي.

دغه حديث ددې خبري دليل دی چي د غير مسلم د لاس ذبيحه حلاله نه ده که چيري هغه د سپي يا بل شي په ذريعه ښکار مړ کړي نو د هغه ښکار به هم حلال نه وي.

## د غير مسلم په لوښي کي د خوراک حکم

﴿۳۹۰۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا اَهْلُ سَفَرٍ نَمُرُّ

د حضرت ابو ثعلبة خشني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي وويل اې دالله رسوله! موږ اکثره وخت سفر

بِالْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى وَالْمَجُوْسِ فَلَا نَجِدُ غَيْرَ آنِيَتِهِمْ قَالَ فَاِنْ لَمْ تَجِدُوْا غَيْرَهَا فَاغْسِلُوْهَا بِالْمَاءِ ثُمَّ كُلُوْا فِيْهَا وَاشْرَبُوْا . رواه الترمذي .

کوو او د يهودو، نصاراوو او مجوسيانو په منځ کي تګ راتګ کوو او د هغوی د لوښو څخه

پرته نور لوښي نه وي، رسول الله ﷺ راته وفرمایل که تاسو نور لوښي تر لاسه نه کړئ نو په اوبو سره هغه ښه پریولئ او بیا په هغه کي خوراک کوئ. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۵۳، رقم: ۱۴۶۴.

**تشریح**: د غیر مسلمان په لوښي کي د خوراک او څښاک په اړه په لومړي فصل کي هم حدیث تېر سوی دی او دلته هم دد غه مسئلې وضاحت سوی دی.

## د اهل کتابو خوراک

﴿۳۹۱۰﴾: وَعَنْ قَبِيْصَةَ بْنِ هُلْبٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت قبیصه بن هلب رضي الله عنه د خپل پلار څخه روایت کوي چي ما د نبي کریم ﷺ څخه د نصاراوو

عَنْ طَعَامِ النَّصَارٰى و في رواية ساله رجل فَقَالَ ان من الطعام طعاما

د خوراک په اړه پوښتنه وکړه، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي یو سړي دا پوښتنه وکړه چي په خوراکونو کي یو خوراک داسي وي چي

اتحرج منه فقال لَا يَتَخَلَّجَنَّ فِي صَدْرِكَ شيئ ضَارَعْتَ فِيهِ النَّصْرَانِيَّةَ.

رواه الترمذي و ابوداؤد.

د هغه څخه زه پرهیز کوم، رسول الله ﷺ راته وفرمایل ستا په زړه کي دي اندېښنه پیدا نه وي ځکه چي د شک او شبې پیدا کېدل د نصرانیت مشابه وي یعني ددې خوراکونو په باره کي ته په خپل زړه کي شکونه رانه ولې پر ظاهر امر باندي عمل کوه. ترمذي او ابوداؤد

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۱۱۳، رقم: ۱۵۶۵، وابوداؤد ۴\۱۴۷، رقم: ۳۷۸۴.

**د لغاتو حل**: ضارعت: ای شابهت.

**تشریح**: تا د خپل عمل په ذریعه د عیسائیت مشابهت اختیار کړ: ددغه جملې په ذریعه رسول الله ﷺ پوښتنه کونکي ته دا څرګنده کړه چي ستا د عیسائیانو د خوراک څخه پرهېز کول داسي عمل دی چي هغه ته د عیسایانو مشابه کړلې ځکه چي دغه د عیسایانو طریقه ده چي هغوی د خوراک او څښاک په اړه پر ځان بې ځایه پابندي لګوي او د هغوی پادریانو (دیني لاربنود) په دین کي سختي پیدا کړې ده که د هغوی په زړه کي د ښه او حلال خوراک په اړه دغه اندېښنه پیدا کیږي چي دا حرام یا مکروه دي نو هغوی بې فکره د هغه څخه پرهېز کول پیل کړي نو ته بېله

دلیله په شک کي په لوښو سره د هغوی د خوراک څخه پرهېز مه کوه ، ته مسلمان يې او ستا دین ډېر ساده او اسانه دي په دې کي د سختۍ نوم نسته ، تا ته له خپل عمل څخه د خپل دین نرمي او اسانول ظاهرول پکار دي که ته بېله تحقیقه يو خوراک حرام ګڼې نو دا پر ځان باندي بې ځایه پابندي لګول دي او د خپل دین د سخت ځرګندولو برابر به نه وي بلکه د عیسائیت د مشابهت اختیارولو برابر به وي .

ځیني حضرات د حدیث د آخري برخي ترجمه داسي کړې ده چي ستا په زړه کي څه دا بیره رانسي چي د عیسایانو د خوراک په خوړلو سره ته د هغوی مشابه سوې په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي خوراک محض په دې وجه پر ځان مه حراموه چي هغه غیر مسلمان سړي تیار کړی دی او په دې وجه د هغه غیر مسلمان مشابهت لازمېږي ځکه چي خوراک او څښناک په شیانو کي د یو قوم مشابهت تاوان نه کوي په شرط د دې چي د تشبه نیت نه وي .

په دغه ارشاد کي د عیسائیت خاصوالی یوازي د دې لپاره سوی دی چي پوښتنه کونکی صحابي حضرت عدي بن حاتم رضي الله عنه وو ، چي د اسلام منلو څخه وړاندي عیسائي وو .

په هر حال له حدیث څخه دا ځرګنده سوه چي تر څو پوري د یو خوراک د حرام کېدو یقین نه وي نو محض د شک په وجه له هغه څخه پرهېز کول او په هغه خوراک کي شک کول مناسب نه دي او د غیر مسلم اقوامو په ډول په اسلام کي د خوراک او څښناک پرهېز نسته چي محض د یو چا په لاس لګېدو سره هغه خوراک ناپاکه کیږي بلکه مسلمانانو ته اجازه ده چي هغوی د هر قوم پوخ کړی خوراک خوړلای سي په شرط د دې چي دا یقین وي چي په هغه خوراک کي حرام شی نه دی یو ځای سوی یا هغه په نجس لوښو کي پوخ سوی نه دی ، ددغه حدیث دا مطلب نه دی که چیري یو غیر مسلمان یو شی پوخ کړي د مثال په توګه غیر مذبوحه غوښه یا خنزیر ، یا په خوراک کي شراب ګډ کړي نو هغه دي هم خوړل کیږي .

## د مجثمه د خوړلو منع

﴿۳۹۱۱﴾ : وَعَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَكْلِ الْمُجَثَّمَةِ وَهِيَ الَّتِي تُصْبَرُ بِالنَّبْلِ . رواه الترمذي .

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د مجثمه د خوړلو څخه منع فرمایلې ده او د مجثمه معنا دا ده چي حیوان مخته ودرول سي او په نښه کولو سره په غشي وویشتل سي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۹، رقم: ۱۴۷۳.

**د لغاتو حل**: المجثمة: هي كل حيوان ينصب ويرمى ليقتل.

**تشريح**: په روايت كې د مجثمه د وضاحت لپاره چې كوم الفاظ نقل سوي دي هغه د راوي الفاظ دي، جاهل او بې رحمه خلګ داسي كوي چې مرغان او حيوانان په تړلو سره په نښه كوي، شريعت له داسي كولو څخه منع كړې ده او د داسي حيوانانو غوښه خوړل يې منع كړي دي ځكه چې په داسي وژلو سره د ذبح مقصد او مفهوم نه تر لاسه كيږي او كله چې حيوان په شرعي توګه ذبيحه نه وي نو د هغه خوړل هم حرام دي.

## هغه ځناور چې خوراك يې حرام دی

﴿۳۹۱۲﴾: وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى

د عرباض بن ساريه رضي الله عنه څخه روايت دئ چې د خيبر په ورځ رسول الله ﷺ د دغه شيانو د خوړلو

يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ وَعَنْ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ

څخه منع وفرمايل: (۱) په حيوانانو كې څيرونكي حيوانان (يعني داړونكي لكه زمرى، شرموښ، ګيدړه، پړانګ او داسي نور) (۲) پنجه دار مرغان يعني كوم مرغان چې په پنجه سره ښكار كوي (لكه باز)

وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَعَنِ الْمُجَثَّمَةِ وَعَنِ الْخَلِيسَةِ وَأَنْ تُوطَأَ الْحَبَالَى

(۳) د كورني او ساتل سوي خرونو غوښه (۴) مجثمه (۵) خليسه. او رسول الله ﷺ د هغه مينځي سره هم د كوروالي څخه منع كړې ده د كومي چې اميد (حامله) وي

حَتَّى يَضَعْنَ مَا فِي بُطُونِهِنَّ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى سُئِلَ أَبُو عَاصِمٍ عَنِ

تر څو پوري چې كوچنى يې پيدا نسي، محمد بن يحيى وايي ابو عاصم څخه د مجثمه د معنا

الْمُجَثَّمَةِ فَقَالَ أَنْ يُنْصَبَ الطَّيْرُ أَوِ الشَّيْءُ فَيُرْمَى وَسُئِلَ عَنِ الْخَلِيسَةِ

پوښتنه وسول نو هغه وويل مجثمه داده چې مرغان يا بل حيوان مخته ودرول سي او په غشي وويشتل سي، بيا د خليسه معنا ځيني و پوښتل سوه

فَقَالَ الذِّئْبُ أَوِ السَّبُعُ يُدْرِكُهُ الرَّجُلُ فَيَأْخُذُهُ مِنْهُ فَيَمُوتُ فِي يَدِهِ قَبْلَ أَنْ يُذَكِّيَهَا. رواه الترمذي

نو هغه وويل چي شرمښ يا بل درنده يو حيوان نيولى وي او د هغه څخه يو څوک هغه حيوان په زور واخلي او بيا هغه حيوان د ذبح كولو څخه مخكي د هغه په لاسونو كي مړ سي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵۹\۴، رقم: ۱۴۷۴.

**د لغاتو حل**: الخليسة: الماخوذ من فم السباع.

**تشريح**: د خيبر د ورځي څخه مراد دادى چي رسول الله ﷺ د ذكر سوو شيانو د منع حكم په هغه كال جاري كړ او داهم كېداى سي چي په كومو ورځو كي په خيبر كي جهاد روان وو په هغه ورځو كي يوه ورځ دا حكم جارى كړى وي.

ذي ناب: هغه حيوان ته وايي چي د هغه داړي يعني تېره غاښونه وي او د خپلو داړو په ذريعه حيوانان شكوي لكه زمرى، شرموښ، بېزو، خنزير، ګېدړه او داسي نور، ځيني حضرات وايي چي ګېدړه په درندګانو كي شامل نه ده نو هغه حلال دى

ذي مخلب: هغه مرغه ته وايي چي په خپلو پنجو سره ښكار كوي لكه باز، تپوس، او داسي نور. د كورني خرو څخه مراد هغه خرونه دي چي په ابادۍ كي اوسيږي، د ځنګلي خره غوښه حلاله ده، په حديث كي د ذكر سوي منع څخه مخكي د كورني خره غوښه هم حلاله وه.

هغه له مينځو سره د جماع كولو څخه هم منع وفرمايل...الخ: دا حكم د هغه مينځو دى چي د حامله كېدو په حالت كي د يو چا په واک كي راغلې وي، كه چيري هغه حامله نه وي نو د هغې په باره كي دا حكم دى چي له هغې سره دي تر هغه وخته پوري كوروالي نه كيږي تر څو چي هغې ته يو حيض رانسي (باز: د يو ښكاري مرغه نوم دى چي په عربي كي صقر ورته وايي).

## د ژوندي حيوان پوست ايستل منع دى

﴿۳۹۱۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَأَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس او ابوهريرة (رضي الله عنهم) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د شريطه

نَهٰى عَنْ شَرِيطَةِ الشَّيْطَانِ زَادَ ابْنُ عِيسَى وَهِيَ تُذْبَحُ فَيُقْطَعُ منها الجِلْدُ

وَلَا تُفْرَى الْأَوْدَاجُ ثُمَّ تُتْرَكُ حَتَّى تَمُوتَ . رواه ابوداؤد .

شیطان څخه منع فرمایلې ده ، ابن عیسی راوي وايي شريطه شيطان څخه مراد هغه حیوان دئ چي د هغه پوست و کښل سي او ذبح نه کړل سي تر څو چي په خپله مړ سي. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۲۵۱، رقم: ۲۸۲۶؟

**د لغاتو حل**: شريطة الشيطان: اى الذبيحة التي لاتنقطع اوداجها.

**تشريح**: د جاهليت په زمانه کي مشرکانو داسي کول چي د حيوانانو د حلق سربېره به يې لږ پوست پرې کړ او هغه به يې پرېښودی ، د هغوی رګونه به پوره پرې سوي نه وه ځکه نو هغه به په اسانۍ سره د مړ کېدو پر ځای په ډېره سختي سره مړ کېدی ، دې ته شريطه په دې سبب ويل سوي دي چي شرط له شرط حجام څخه اخيستل سوی دی ددې معنی نشتر وهلو ده يا شرط د علامې په معنی دی او ددې نسبت شيطان ته په دې اعتبار سره سوی دی چي ددغه بد کار باعث شيطان دی او هغه له داسي ذبح کونکي څخه ډېر خوشحاله کيږي .

## د حيوان د نس چيچي خوړلو حکم

﴿۳۹۱۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذَكَاةُ الْجَنِينِ ذَكَاةُ أُمِّهِ . رواه ابوداؤد والدارمي و رواه الترمذي عن ابي سعيد .

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مور ذبح کول، د هغې د نس د چيچي ذبح کول دي (يعني د يو حمل داره حيوان حلالولو سره د هغه د نس چيچی هم حلال سي او د هغه خوړل جائز دي ). ابوداؤد. ترمذي او دارمي .

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۲۵۱، رقم: ۲۸۲۶، والدارمي ۲\۱۱۵، رقم: ۱۹۷۹.

**تشريح**: د حديث ظاهري مطلب دادی چي د مور ذبح کول د هغې د نس د بچي حلال کېدو لپاره کافي دي د مثال په توګه يو سړی او ښه قرباني کړي او د هغې په نس کي مړ بچی راووځي نو د هغه خوراک جائز دی ، امام مالک، امام شافعي او د امام احمد بن حنبل رحمة الله عليهم دا مذهب دی، مګر د امام شافعي رحمه الله په نزد هغه بچي خوړل په هر حال کي صحيح دي که څه هم د هغه پر بدن وېښتان وي يا نه وي او د امام مالک رحمه الله په نزد د هغه بچي خوړل په هغه صورت کي جائز دي چي د هغه ساخت پوره سوی وي او د هغه پر بدن ويښتان راختلي وي .

ددغه درې سره امامانو پر خلاف د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله مذهب دادی چي د هغه بچي خوړل حلال نه دي مګر که چیري هغه بچی د مور د نس څخه ژوندی راووځي او بیا ذبح کړل سي نو په دغه صورت کي د هغه په خوړلو کي څه پروا نسته. په حنیفه کي د امام زفر او امام حسن ابن زیاد رحمة الله علیهما هم دغه قول دی، ددغه حضراتو له خوا د خپل مذهب د دلیل په توګه دا ویل کیږي چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي: که ښکار په څاه کي یا په غشي خوړلو سره په اوبو کي ولویږي او بیا مړ راووځي نو د هغه خوړل جائز نه دي ځکه دا احتمال دی چي هغه ښکار په اوبو کي په ډوبېدو سره مړ سوی وي، حال دا چي رسول الله ﷺ د ساه وتلو په سبب کي د شک واقع کېدو په وجه د هغه ښکار خوړل حرام وګرځول نو د هغه شي یعني ساه وتلو په سبب کي شک واقع کېدل د ذبیحه د نس څخه د راوتونکي مړ بچي په باره کي هم موجود دی ځکه نو هغه به هم حرام وي لکه څرنګه چي پ، اوبو کي ولویږي او د ښکار د مرګ سبب معلومیدای نسي چي ایا هغه د خپل مور د ذبح کېدو په وجه مړ سوی دی یا د ساه بندېدو په وجه مړ سوی دی، او کوم چي ددغه حدیث تعلق دی نو د امام اعظم رحمه الله په نزد ددغه حدیث په صحیح کېدو کي کلام سوی دی.

﴿۳۹۱۵﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي موږ وویل: اې دالله رسوله !

وَسَلَّمَ نَنْحَرُ النَّاقَةَ وَنَذْبَحُ الْبَقَرَةَ وَالشَّاةَ فَنَجِدُ فِي بَطْنِهَا الْجَنِينَ أَنُلْقِيهِ

موږ اوښه، غوا او پسه ذبح کوو او موږ د هغه په نس کي بیا مړ چیچی تر لاسه کړو نو موږ هغه

أَمْ نَأْكُلُهُ قَالَ كُلُوهُ إِنْ شِئْتُمْ فَإِنَّ ذَكَاتَهُ ذَكَاةُ أُمِّهِ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

وغورځوو او که یې وخورو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل که تاسو خوښوئ نو وه یې خورئ ځکه چي د هغه د مور ذبح کول د هغه ذبح کول دي. ابوداؤد او بن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\ ۲۵۲، رقم: ۲۸۲۷، وابن ماجه ۲\ ۱۰۶۷، رقم: ۳۱۹۹.

**تشريح**: د مفهوم په اعتبار دا روایت هم هغه دی کوم چي مخکي نقل سوی دی او په دې اړه د امامانو چي کوم اختلافي اقوال دي هغه هم مخکي ذکر سوي دي.

**د نحر او ذبح تفصيل**: په مخکنیو مخونو کي ښودل سوي دي چي د ذبح دوه ډولونه دي: یو

اختياري او دوهم اضطراري، اختياري هم دوه صورتونه دي يو نحر او دوهم ذبح، نحر دادی چي د اوښ سينه په نېزه ووهل سي يعني په نېزې سره ځيري کړل سي او په اوښ کي مستحب نحر کول دی که څه هم د هغه ذبح کول هم جائز دي مگر په کراهت سره ، او ذبح داده چي د حيوانانو د حلق رګ پرې کړل سي ، د ذبح په صورت کي د حيوان د حلق چي کوم رګونه پرې کيږي هغه څلور دي يو خو هغه رنګ چي د هغه په ذريعه د ساه تګ راتګ کيږي ، دوهم مری يعني هغه رګ چي له هغه څخه خولې ته اوبه ځي او دوه شا رګونه چي کرنکي راسته او چپه خوا ته وي ، ددغه څلورو رګونو پرې کولو ته په شرعي توګه سره ذبح ويل کيږي که په دغه څلورو کي درې رګونه پرې سي نو بيا هم ذبح صحيح ده او د هغه حيوان خوړل حلال دي او که دوه رګونه پرې سي نو هغه حيوان به مردار وي د هغه خوړل به صحيح نه وي .

لکه څرنګه چي په اوښانو کي نحر کول مستحب دی همدارنګه په غوا او پسو کي ذبح کول مستحب دي مګر که چا هغه په نحر سره ذبح کړل نو دا هم جائز دي مګر په کراهت سره .

که يو څوک پسه يا بل حيوان د شټ له خوا څخه ذبح کړي نو که چيري هغه تر دومره وخته پوري ژوندی وي چي هغه سړی د هغه رګونه پرې کړي نو د هغه خوړل جائز دي مګر په کراهت سره ځکه داسي ذبح کول د سنت خلاف دي او که د هغه د رګونو پرې کولو څخه مخکي مړ سي نو د هغه خوړل جائز نه دي .

که يو څوک يو حيوان مثلاً چرګ په ذبح کولو سره چاړه حرام مغز ته ورسوي او د سر په پرې کېدو سره جلا سي نو د هغه خوړل جائز دي او مکروه هم نه دي مګر دومره زيات ذبح کول چي سر ځيني پرې سي مکروه دي .

## حيوان بې ګټې مه وژنئ

﴿۳۹۱۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَتَلَ عُصْفُوْرًا فَمَا فَوْقَهَا بِغَيْرِ حَقِّهَا سَأَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ عَنْهَا

څوک چي په ناحقه يا پرته د ضرورته يو چوغکه يا تر دې لوی مرغه ووژني الله تعالی به د هغه د قتل پوښتنه ځيني کوي

يَوْمَ الْقِيَامَةِ قِيلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَا حَقُّهَا قَالَ حَقُّهَا أَنْ تَذْبَحَهَا فَتَأْكُلَهَا وَلَا

تَقْطَعُ رَأْسَهَا فَيُرْمَى بِهَا . رواه احمد والنسائي والدارمي .

د قیامت په ورځ ، پوښتنه وسول اې دالله رسوله ! د چوغکي وغیره څه حق دئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل د هغه ذبح کول او خوړل، دا نه چي بېله ګټي سر ځیني پرېکړي او وه يې غورځوي. احمد، نسائي او دارمي.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲\۱۶۶، والنسائي ۷\۲۳۹، رقم: ۴۴۴۵، والدارمي ۲\۴، رقم: ۱۹۷۸.

**تشریح**: د اسلامي لارښوونو سره سم د الله ﷻ په دغه وسیع کائناتو کي هر ساه لرونکی شی د خپل ځان د ساتني حق لري که هغه اشرف المخلوقات (انسان) وي یا حیوان ، لکه څرنګه چي د یو انسان ناحقه وژل د شریعت له نظره لویه ګناه ده او ډېر لوی ظلم دی همدارنګه د یو حیوان په ناحقه ختمول هم یو غیر مناسب کار د بې رحمۍ خبره ده .

الله ﷻ انسان ته په طاقت او توان ورکولو سره پر حیوان باندي تسلط او اختیار ورکړی دی نو ددې دا مطلب نه دی چي انسان په خپل دغه طاقت او اختیار سره محض د خپل شوق پوره کولو لپاره یا محض د تفریح لپاره حیوانان وژني او د هغوی په لوبو کولو سره په ناحقه وژني .

د کوم حیوان غوښه چي الله ﷻ د انسان لپاره حلاله ګرځولې ده که هغه حیوان د ښکار په توګه په وژلو سره یا ذبح کولو سره د هغه غوښه وخوري او له هغه څخه ګټه تر لاسه کړي نو هغه د خپل اختیار جائز استعمال کوي او که محض د لهو و لعب او تفریح لپاره هغه حیوان ناحقه او بې ګټي ختموي او د هغه غوښه وغیره څخه د ګټي تر لاسه کولو څخه پرته د هغه په وژلو سره یې غورځوي نو په داسي کولو سره هغه نه یوازي د خپل اختیار ناجائزه استعمال کوي بلکه پر یو ساه لرونکي باندي د ظلم کولو برابر دی ځکه په حدیث کي داسي سړی خبردار سوی دی چي ستا دغه کار یعني حیوان او مرغان په ناحقه وژل به د الله ﷻ په دربار کي د نیوکي وړ وي او سبا به د قیامت په ورځ الله ﷻ ستا څخه په دې باره کي پوښتنه کوي او تا به په عذاب اخته کړي .

ابن مالک رحمة الله علیه وايي : له دغه حدیث څخه ثرګنده سوه چي د یو حیوان د خوړلو له مقصد څخه پرته ذبح کول یا په بله طریقه وژل مکروه دي مګر نور علماء وايي چي دغه کراهت تحریمي دی ځکه رسول الله ﷺ د هغه حیوانانو د وژلو څخه منع فرمایلې ده کوم چي نه خوړل کیږي یا د هغه خوړل حلال نه دي لکه څرنګه چي مخته به راسي .

طیبي رحمة الله علیه وايي : د یو حیوان حق د هغه څخه د ګټي اخیستني څخه عبارت دی لکه څرنګه چي بېله قصده د هغه د سر په پرې کولو سره غورځول د هغه د حق ضائع کولو څخه

عبارت دی، نو ویل کیږي چي ددغه حدیث دغه الفاظ (ولا یقطع راسها فیرمي بها) د مخکني عبارت د تاکید او تائید په توګه دي.

**د ژوندي حیوان د جسم څخه پریکړل سوې غوښه مرداره ده**

﴿۳۹۱۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ وَاقِدِ اللَّيْثِيِّ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ

د حضرت ابو واقد لیثي رضي الله عنه څخه روایت دئ چي کله رسول الله ﷺ مدینې ته تشریف راوړ هغه

وَهُمْ يَجُبُّوْنَ اَسْنِمَةَ الْاِبِلِ وَيَقْطَعُوْنَ اَلْيَاتِ الْغَنَمِ فَقَالَ مَا قُطِعَ مِنَ الْبَهِيْمَةِ وَهِيَ حَيَّةٌ فَهِيَ مَيْتَةٌ لا توكل. رواه الترمذي و ابوداؤد.

وخت په مدینه کي دا رواج وو چي د ژوندو اوښانو قب او د پسو لمان به پریکېدل او خوړل کېدل به، رسول الله ﷺ وفرمایل کوم شی چي د حیوان د بدن څخه پریکړل سي او هغه حیوان ژوندی وي نو هغه شی مردار دئ هغه دي نه خوړل کیږي. ترمذي او ابوداؤد.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۶۲، رقم: ۱۴۸۰، وابوداود ۳\ ۲۷۷، رقم: ۲۸۵۸.

**د لغاتو حل**: یجبون: ای یقطعون (پرې کوي)

**تشریح**: د جاهلیت په زمانه کي انساني عقل او طبائع آفت وهلي وه ځکه د هغه وخت انسانان په داسي طریقو کي اخته سوي وه چي له هغو څخه انسانیت هم پناه غوښتل، په دغه طریقو کي یو رواج په مدینو والاوو کي دا هم وو چي کله به هغوی غوښتل نو د خپلو ژوندي اوښانو قوبونه او د ژوندي پسو لمونه به یې پرېکول او هغه به یې په ایشولو سره خوړل، دا نه یوازي دا چي له ښارویو سره یوه ډېره بې رحمانه طریقه وه بلکه د طبع سلیم خلاف هم وه، رسول الله ﷺ مدینې ته په رسېدو سره د هغه ځای خلک له دغه بد کار څخه منع کړل او هغوی ته یې دا ښرګنده کړه چي د ژوندي حیوانانو د بدن کوم یو اندام پرې کړل سي نو هغه به مردار وي او د هغه خوړل به هم حرام وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

**وینه بیول ضروري دي**

﴿۳۹۱۸﴾: وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِيْ حَارِثَةَ اَنَّهُ كَانَ يَرْعَى لِقْحَةً

عطاء بن یسار رضی اللہ عنہ د بني حارث د یو سړي څخه روایت کوي چي هغه یوه اوښه چي لنګېدو ته

بِشِعْبٍ مِنْ شِعَابِ أُحُدٍ فرای بها الْمَوْت فَلَمْ يَجِدْ ما يَنْحَرُهَا بِهِ فَأَخَذَ

نژدې وه د احد د غره سره نژدې په یوه دره کي څرول، هغه یوه ورځ په هغه اوښه کي د مرګ اثار ولیدل هغه ته یو شی په لاس نه ورغلئ چي په هغه سره اوښه حلاله کړي

وَتِدًا فَوَجَأَ بِهِ فِي لَبَّتِهَا حَتَّى أُهَرِيقَ دَمُهَا ثُمَّ أَخْبَرَ رسول الله فَأَمَرَهُ بِأَكْلِهَا.

رواه ابوداؤد ومالك و في روايته قال فذكها بشظاظ .

آخر هغه میخ پورته کړ او د بوک د لوري یې د هغه په سینه کي چخ کړ تر څو چي د هغه وینه یې په بنه ډول و بیول ، بیا ددې پېښي ذکر رسول الله ﷺ ته وکړل سو ، رسول الله ﷺ د هغه د غوښو خوړلو هغه ته اجازه ورکړه . ابوداؤ، مالک، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي هغه سړي هغه اوښه په تیره لرګي سره ذبح کړل .

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۲۴۹، رقم: ۲۸۲۳، ومالک ۲\۴۸۹، رقم: ۳.

**د لغاتو حل**: لقحة: ای ناقة قريبة العهد بالنتاج. بشظاظ: خشبة محددة الطرف.

**تشریح**: (وتد) د لرګي هغه مېخ یا موږي ته وایي چي په مځکه یا دېوال کي ټک وهل کیږي ، او (شظاظ) هغه لرګي ته وایي چي د هغه دواړي خواوي نوکداره وي ، هغه یې ددواړو نوکانو په مینځ کي په نېولو سره پر اوښ اچوي چي هغه دواړي خواوي په بېلېدو سره ونه غورځیږي .
له دغه حدیث څخه څرګنده سوه چي په شرعي توګه د ذبح یا نحر اصل مفهوم دادی چي په جراحت سره وینه وبېول سي او دا خبره چي په کوم شي سره تر لاسه سي د هغه په ذریعه د څاروي ذبح کول یا نحر کول کېدای سي که هغه د اوسپني چاړه وي یا بل شی وي .

**د اوبو په حیوانانو کي ماهی حلال دی**

﴿۳۹۱۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْبَحْرِ اِلَّا وَ قَدْ ذَكَّاهَا اللهُ لِبَنِيْ آدَمَ . رواه الدار قطني .

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د دریاب هر حیوان (چي خوراک یې حلال وي) الله تعالی د خلکو لپاره ذبح کړی دی (یعني پرته د ذبح کولو څخه جائز

دئ). دار قطني

**تخريج**: سنن الدار قطني ۴\۲٦٧، رقم: ۴.

**تشريح**: د حديث مطلب دادی چي د اوبو د حيوانانو بېله ذبح کولو خوړل حلال دي او د هغه محض ښکار کول او له اوبو څخه ژوندی راکښل د ذبح په حکم کي دی.

له دغه حديث څخه په ښرګنده دا معلومېږي چي ټول د اوبو حيوانان حلال دي که څه هم د هغه ښکار وکړل سي مګر کوم چي د اصل مسئلې تعلق دی نو هغه داسي نه ده بلکه د ماهي پر حلال کېدو باندي د ټولو علماوو اتفاق دی او د ماهي څخه پرته د نورو حيوانانو په باره کي اختلافي قولونه دي، د امام ابوحنيفة رحمه الله مذهب دادی چي د اوبو په حيوانانو کي د ماهي څخه پرته بل هيڅ حيوان حلال نه دی او هغه ماهی هم حلال نه دی چي د يخ يا ګرمۍ د آفت څخه پرته په خپله په مړ کېدو سره د اوبو پر سر راسي او کوم ماهی چي د يخ او ګرمۍ د آفت څخه په مړ کېدو سره د اوبو پر راسي نو هغه حلال دی.

## د ذبيحې اړوند څو مسئلې

کوم حيوانان او مرغان چي په ښکار کولو سره خوراک کوي يا د هغوی خوراک يوازي چټلي وي نو د هغوی خوړل جائز نه دي لکه زمری، شرموښ، ګېدړه، پيشي، باز، او داسي نور، او کوم حيوانان چي داسي نه وي لکه طوطي، کوتره، هوسۍ، هيلۍ، سويګی او داسي نورو حيوانانو خوړل جائز دي.

سمساره، شرموښکی، غاتره، خر او د خره غوښه خوړل او د خره شيدې څښل جائز نه دي، آس که څه هم حلال دی او غوښه يې خوړل کيږي مګر خوړل يې غوره نه دي. د ماهي او ملخ څخه پرته د نورو حيوانانو بېله ذبح کولو خوړل صحيح نه دي، کوم حيوانان چي بېله ذبح کولو په خپله مړه سي نو هغه به مردار وي او خوړل به يې حرام وي.

که په يو شي کي مږی ولوېږي او مړ سي نو د هغه مېږي را ايستلو پرته د هغه شي خوړل صحيح نه دي که چيري په قصد سره يو مېږی نيم حلق ته ننه باسي نو د مردار خوړلو ګناه به وي.

د مسلمان ذبح کول په هر حال کي صحيح ده که څه هم ښځه يې ذبحه کړي يا سړی، همدارنګه که هغه پاک وي يا ناپاک، په هر حال کي د هغه ذبح سوی حيوان خوړل حلال دی، کافر يعني مرتد، د اور عبادت کونکي او د بتانو د عبادت کونکو او داسي نورو ذبح سوي حيوانان خوړل حرام دي.

كه كافر غوښې پلوري او دا وايي چې ما په مسلمان باندې ذبح كړى دي نو دهغه څخه غوښه رانيول او خوړل صحيح نه دي ، مګر كوم مسلمان چې ذبح كړى دى كه هغه وخت يو مسلمان د هغه سره ناست وي او ويني يې يا هغه ځي نو بل دوهم مسلمان د هغه پر ځاى ناست وي نو بيا د هغه غوښه خوړل به صحيح وي.

كه يو داسي حيوان ذبح كړل سي چې د هغه خوړل حلال نه وي نو د هغه پوست او غوښه پاكېداى سي چې د هغه د خوړلو څخه پرته په بل استعمال كي راوستل بېله كراهت صحيح كيږي پرته د انسان او خنزير د پوست څخه چې په دغه دواړو كي د ذبح كولو هيڅ اثر نه كيږي، د انسان پوست ناپاكه كېدل د هغه د نجس كېدو په وجه دي چې هغه په پاكولو سره هم هيڅكله پاكيداى نسي ، كومه چرګه چې مردار او چټل شيان خوري نو د هغې د درو ورځو په بندي كولو سره ذبح كول پكار دي بېله بندي كولو د هغه په ذبح كولو سره غوښه خوړل مكروه دي .

د څاروي په پڅې چاړې سره ذبح كول مكروه او منع دي ځكه چې په دې كي څاروي ته تكليف وي همدارنګه د ذبح كولو څخه وروسته د يخېدو څخه مخكي د هغه پوست كښل ، لاسو او پښې ماتول او په ذبح كي چې د كومو څلورو رګونو پرېكول دي د هغو د پرې كېدو وروسته د هغه غاړه پرېكول دا ټول مكروه دي .

ملخ خوړل جائز دي او د ماهي په ډول د هغه د ذبح كولو ضرورت هم نسته ، د كومو حيواناتو غوښه چې خوړل كيږي او د كومو چې نه خوړل كيږي د دواړو ښكار كول جائز دي مګر دا ضروري ده چې د ښكار مقصد د لهو او لعب او تفريح لپاره نه وي بلكه د هغه د ګټې اخيستلو نيت وي ، كوم حيوانان چې حلال دي د هغو غوښه خوړل د هغه څخه تر ټولو لويه ګټه اخيستل دي مګر كوم حيوانان چې حلال نه دي د هغوى ښكار كه چيري په دغه مقصد سره وكړل سي چې د هغوى د پوست يا بل شي څخه ګټه واخيستل كيږي نو څه پرواه نسته .

خلاصه دا چې د حيوانانو قدر كول پكار دي ، بېله ضرورته او بېله مقصده د هغو ښكار كول ښه خبره نه ده ، د ذبح كولو مسنون طريقه داده چې حيوان مخ پر قبلې باندې په تېره چاړه اخيستلو سره په بسم الله الله اكبر ويلو سره د هغه غاړه پرېكړل سي تر دې چې څلور سره رګونه يې پرې كړل سي .

===========

# بَابُ ذِكْرِ الْكَلْبِ

## (د سپيانو بيان)

په دغه باب کي هغه حديثونه نقل کيږي چي له هغو څخه د سپيانو اړوند احکام معلوميږي چي د کوم مقصد لپاره او کوم سپيان ساتل جائز دي او د کوم ناجائز دي او دا چي د کوم سپي وژل جائز دي او د کوم سپي وژل جائز نه دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## (لومړی فصل)

### د شوق سپيان ساتل په ثواب کي کمي راولي

﴿۳۹۲۰﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اقْتَنٰى كَلْبًا إِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ أَوْ ضَارٍ نُقِصَ مِنْ عَمَلِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطَانِ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: څوک چي د حيوانانو د ساتني او ښکار لپاره نه بلکه يوازي د شوق لپاره سپي ساتي د هغه د عمل څخه هره ورځ دوه قيراطه ثواب کميږي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۰۸، رقم: ۵۴۸۰، ومسلم ۳\۱۳۰۱، رقم: ۵۰- ۱۵۷۴.

**تشريح**: (قيراط) په اصل کي د يو وزن نوم دی چي د ځينو په قول د دينار دوه پرشپږ برخي او د ځينو په قول د دينار د لسمي برخي د نيمي برخي برابر وي مګر په حديث کي د قيراط استعمال د هغه مقدار لپاره سوی دی چي د هغه حقيقي علم الله تعالی ته دی که څه هم په ځينو حديثو کي دغه مقدار د احد د غره برابر ښودل سوی دی، پر دې بنياد ددغه حديث مطلب به دا وي چي شريعت د کومو مقاصدو لپاره د سپيانو ساتلو اجازه ورکړې ده لکه د ښکار، د څارويو، کورو او کښت د ساتني لپاره او د ښکار لپاره ددې څخه پرته محض د تفريح او شوق لپاره که چيري يو سړی سپی وساتي نو هغه چي کوم نيک اعمال کړي دي او الله تعالی د هغه د اعمالو په وجه په خپل فضل او کرم سره د هغه په عمل نامه کي د اجر او ثواب کومي ذخيري ايښي دي نو د هغه څخه هره ورځ په دغه اندازه کمي راځي او که دغه مقدار د بدن تصور کړل سي نو هغه دوه به داحد د غره برابر وي يا دا چي دوه قيراطه څخه مراد د هغه سړي د برخو څخه د دوو برخو کمي او تاوان دی، په هر حال له دوو قيراطو څخه هر مقصد چي واخيستل سي د حديث اصل مقصد خو يوازي دا څرګندول دي چي بيله شرعي ضرورته د سپيانو ساتل د خپلو اعمالو د اجر او ثواب له

يو ډيري لوى برخي څخه لاس پرېولل دي .

او كوم چي ددغه سبب تعلق دى چي د سپي د ساتلو په وجه د اعمالو په ثواب كي د كمى بنياد دى نو په دې اړه د علماوو اختلافي قولونه دي، د ځينو په نزد د كمى او تاوان سبب د رحمت د ملائكو كور ته نه راتلل دي لكه څرنگه چي فرمايل سوي دي چي په كوم كور كي سپى وي هلته د رحمت ملائكي نه راځي .

او ځيني حضرات دا سبب بيانوي چي كوم سړى سپى ساتي نو هغه د نورو لپاره د تكليف رسولو سبب جوړېږي او ځيني حضراتو ويلي دي چي دغه كمي او تاوان په دې وجه دى چي په كوم كور كي سپيان ساتل كيږي نو د هغه كورنى په بې خبري كي سپى د هغه خلكو په خوراك او څښناک كي خوله وهي او څرگنده ده چي د كور خلك ناخبره وي ځكه نو هغوى هغه لوښي د پرېوللو څخه پرته خوراك او څښناك پكښي كوي .

﴿۳۹۲۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اتَّخَذَ كَلْبًا اِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ أَوْ صَيْدٍ أَوْ زَرْعٍ انْتَقَصَ مِنْ أَجْرِهٖ كُلَّ يَوْمٍ قِيْرَاطٌ . متفق عليه

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د حيوانانو د ساتني ، ښكار كولو او د فصل د ساتني لپاره نه بلكه د شوق په توگه سپى ساتي نو د هغه د ثواب څخه هره ورځ د يو قيراط په اندازه ثواب كميږي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۵، رقم: ۲۲۲۲، ومسلم ۳\۱۲۰۳، رقم: ۵۸- ۱۵۷۵.

**تشريح**: د مضمون او مفهوم په اعتبار دغه حديث هم د لومړي حديث په ډول دى مگر په دغه حديث كي د هغه سپي د استثناء ذكر هم دى كوم چي د كښت د ساتني لپاره وي او په دغه حديث كي د يوه قيراط ذكر دى حال دا چي په لومړي حديث كي د دوو قيراطو ذكر سوى دى، دغه فرق د سپيانو د مختلفو اقسامو پر بنياد دى، چي بېله ضرورته په ساتونكو سپيانو كي ځيني سپيان خو خلكو ته تاوان رسوي د داسي سپيانو ساتلو په صورت كي د يوه قيراط برابر په ثواب كي كمي كيږي يا دا فرق د مقام او وجهي په اعتبار دى چي په ځينو ځايو كي خو د بېله ضرورته سپيانو ساتلو په وجه په ثواب كي دوه قيراط برابر كمي كيږي لكه مكه او مدينه چي دواړه مقدس ښارونه دي د خپل عظمت او بزرگي په لحاظ داسي دي كه د هغه په حدودو كي اوسيدونكى يو سړى بېله ضرورته سپيان ساتي نو هغه زيات گناه كار دى ځكه د هغه په ثواب

کي هره ورځ دوه قیراطه کمي کیږي حال دا چي ددغه دوو مقدسو ښارو څخه پرته په بل ښار کي د سپي ساتونکي نسبتا کم ګناه کار وي ځکه د هغه په ثواب کي د یوه قیراط برابر کمي کیږي یا دا هم کیدای سي چي کوم خلګ په ښار یا کلیو کي سپیان ساتي نو د هغوی په ثواب کي دوه قیراطه کمي کیږي او کوم خلګ چي په ځنګل او صحراء کي سپیان ساتي نو د هغوی په ثواب کي یو قیراط کمي کیږي ځکه چي په ابادۍ کي د سپي ساتلو مطلب دا وي چي د هغه په وجه زیات خلګو ته تکلیف ورسول سي حال دا چي په ځنګل او صحراء کي دا صورت نه وي.

یا دا چي دغه فرق د زمانې د اختلاف په سبب دی چي مخکي خو د یوه قیراط برابر کمي کېدو خبرداری ورکړل سوی وو مګر وروسته چي خلګو سپیان زیات پالل او له هغوی سره اوسېدل یې پیل کړل او د هغوی ساتلو ته یې زیات شوق او رغبت سو نو د شریعت له خوا هم په زجر او خبرداری کي زیاتوب او شدت اختیار کړل سو او په ثواب کي هره ورځ دوه قیراطه کمي کېدو وجه بیان کړل سوه.

## د سپیانو دوژلو حکم

﴿۳۹۲۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَمَرَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي موږ ته رسول الله صلی الله علیه وسلم د سپیانو د وژلو حکم راکړ (موږ

حَتَّى إِنَّ الْمَرْأَةَ تَقْدَمُ مِنَ الْبَادِيَةِ بِكَلْبِهَا فَنَقْتُلُهُ ثُمَّ نَهَى رسول الله صَلَّى

سپیان وژل پیل کړل) تر څو چي کومه ښځه به د ځنګل څخه راتلل او سپی به د هغې سره وو موږ به هغه هم وژئ، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم موږ ددغه ډول سپیانو د وژلو څخه منع کړو (یعني د کومو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِهَا وَقَالَ عَلَيْكُمْ بِالْأَسْوَدِ الْبَهِيمِ ذِي النُّقْطَتَيْنِ

فَإِنَّهُ شَيْطَانٌ. رواه مسلم.

سپیانو څخه چي د ساتني او ښکار کار اخیستل کیږي) او دا حکم یې راکړ چي پر تاسو د تورو سپیانو وژل واجب دي چي په سترګو کي یې دوه سپین ټکي وي ځکه چي هغه شیطان دئ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳/۱۲۰۰، رقم: ۴۷- ۱۵۷۲.

**د لغاتو حل**: الاسود البهیم: ای الذي لابیاض فیه (چي سپینوالی پکښې نه وي). ذي النقطین: ای الذي فوق عینیه نقطتان بیضاوان (هغه چي تر سترګو پورته یې دوه سپین ټکي وي). مرقاة.

**تشريح**: علماوو ليكلي دي چي د سپيانو وژلو حكم يوازي د مدينې منورې سره خاص وو ځكه چي هغه مقدس ښار محض يوازي په دغه اعتبار سره د تقديس حامل نه وو چي په هغه كي رسول الله ﷺ اوسيدی بلكه په دې اعتبار سره هم هغه ته پاكي او عظمت حاصل وو چي هغه د وحي نازلېدو او د ملائكو د تګ راتګ ځای وو، نو دا خبره بالكل مناسب وه چي هغه مځكه د سپيانو د وجود څخه پاكه وساتل سي.

د ښځو خاصوالی يا خو په دې وجه دی چي كومي ښځي په ځنګل كي اوسيږي هغوی ته د ځارويو د ساتني لپاره د سپيانو زيات ضرورت وو او كله چي به هغوی ښار ته راتلې نو هغه وخت به هم سپيان ورسره وه.

يا دا ويل كيږي چي دلته د ښځي قيد محض اتفاقي دی او مراد دادی چي هغه سپيان هم ژوندي نه پرېښودل سول كوم چي د صحراء څخه ښار ته راتلل كه څه هم هغه د ښځو سره راتلل يا د خلګو سره راتلل كوم چي دوو ټكو والا وي يعني هغه تور سپی چي د هغه پر سترګو باندي دوه سپين ټكي وي، دا ډول سپيان ډېر شرير او خلكو ته سخت تكليف رسونكي وي ځكه ورته شيطان فرمايل سوي دي.

هغه ته د شيطان ويلو يوه وجه دا هم ده چي داسي سپيان نه د ساتني لپاره پكاريږي او نه د ښكار نيولو لپاره په دې سبب امام احمد او اسحاق رحمة الله عليهما ويلي دي چي د تور سپي نيول سوی ښكار حلال نه دی ځكه چي هغه شيطان دی.

امام نووي رحمة الله عليه ويلي دي چي پر عقور، داړونكي سپي پر وژنه باندي د علماوو اتفاق دی كه څه هم هغه رنګ تور نه وي مګر د هغه سپي په اړه اختلافي قولونه دي كوم چي تاوان رسونكی نه وي.

امام الحرمين وايي: د سپيانو وژني د حكم اصل صورت دادی چي مخكي رسول الله ﷺ د هر ډول سپيانو وژلو حكم كړی وو وروسته د هغه حكم عموميت منسوخ كولو سره يوازي د تور رنګ سپي پوري محدود كړل سو او بيا په آخري توګه د هغه ټولو سپيانو د وژلو منع نافذ سول كوم چي تاوان رسونكي نه وي تر دې چي تور سپی هم په دغه حكم كي شامل كړل سو چي د هغه څخه د تاوان رسيدو ويره نه وي نو هغه دي هم نه ختم كيږي.

﴿۳۹۲۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ أَوْ كَلْبَ غَنَمٍ أَوْ مَاشِيَةٍ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د سپيانو د وژلو حکم وکړ خو د ښکاري سپيانو، د پسو د ساتني لپاره او د حيوانانو د ساتني لپاره د سپيانو د وژلو څخه يې منع وفرمايل. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٦٠، رقم: ۲۳۲۲، وصحيح مسلم ۱۲۰۰\۳، رقم: ۴۶- ۱۵۷۱.

**تشريح**: (او ما شية) او د څارويو ساتونکي سپيان، دغه جمله د تعميم بعد تخصيص په توګه ده يعني د استثنی په اړه مخکي خو په خاصه توګه د پسو د ساتونکو سپيانو ذکر وو بيا وروسته په عمومي توګه سره د ټولو حيوانانو د ساتونکو سپيانو ذکر يې وکړ مګر په دغه صورت کي د (او) حرف به د تنويع لپاره وي لکه څرنګه چي په مخکني عبارت کي دي.

يا دا چي په (او ماشية) کي د (او) حرف د راوي د شک ظاهرولو لپاره دی يعني د دغه په ذريعه د حديث راوي دا ښودل غواړي چي ما ته صحيح په ياد نه دي چي په دغه ځای کي د (الا کلب صيد او کلب....) څخه وروسته د غنم لفظ يې وفرمايه او که د ماشية لفظ.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ټولو سپيانو نه وژل

﴿۳۹۲۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْلَا

د حضرت عبدالله بن مغفل رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که چيري

أَنَّ الْكِلَابَ أُمَّةٌ مِنَ الْأُمَمِ لَأَمَرْتُ بِقَتْلِهَا كلها فَاقْتُلُوا مِنْهَا كُلَّ أَسْوَدَ بَهِيمٍ،

سپيان د قومونو څخه يو قوم نه وای نو ما به د دې ټولو د وژلو حکم کړی وای په هر حال په دې کي يوازي تور سپيان وژنئ.

رواه ابوداؤد و الدارمي و زاد الترمذي والنسائي وَمَا مِنْ أَهْلِ بَيْتٍ

ابوداؤد، دارمي. او ترمذي او نسائي په دې روايت کي دا الفاظ زيات کړي دي چي کوم

يَرْتَبِطُونَ كَلْبًا إِلَّا نَقَصَ مِنْ عَمَلِهِمْ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطٌ إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ أَوْ كَلْبَ حَرْثٍ أَوْ كَلْبَ غَنَمٍ.

کورو الا سپی ساتي د هغه د عمل څخه هره ورځ يو قيراط ثواب کميږي مګر ښکاري سپيان او د فصلونو د ساتني سپي او د رمې سپيان ددې څخه مستثنا دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۶۷، رقم: ۱۴۸۹، وابوداود ۳\ ۲۶۷، رقم: ۲۸۴۵، والدارمي ۲\ ۱۲۵، رقم: ۲۰۰۸، والنسائي ۷\ ۱۸۵، رقم: ۴۲۸۰.

**تشريح**: سپيان هم د ډلو څخه يوه ډله ده: ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ د قرآن کريم دغه آيت کريمه ته اشاره وفرمايل:

وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِي الأَرْضِ وَلاَ طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلاَّ أُمَمٌ أَمْثَالُكُم...

ژباړه: او څومره ساه لرونکي چي پر مځکه ګرځي او څومره مرغان دي چي هغوی په خپلو دواړو وزرو سره الوځي په هغوی کي هيڅ داسي نسته چي ستاسو په ډول يوه ډله يا امت نه وي.

ددغه آيت کريمه مطلب دادی چي څرنګه انسانان يو امت او يو جنس دی همدارنګه حيوانان هم يو امت او يو جنس دی که پر مځکه باندي ګرځېدونکي وي او يا په هواء کي الوتونکي وي، څرنګه چي انسان په خپلو مختلفو نومونو او انواعو په ذريعه د يو بل څخه پېژندل کيږي همدارنګه د حيوانانو هم مختلف نومونه او مختلف اقسام دي چي د هغه په ذريعه د يو بل په مينځ کي فرق او امتياز کيږي، او څرنګه چي انسان د الله تعالی يو مخلوق دی چي هر سړی د خپل خپل مقدر سره سم د الله تعالی له خوا رزق تر لاسه کوي همدارنګه حيوانانو ته هم د الله تعالی له خوا رزق ورکول کيږي او دا چي څرنګه چي الله تعالی، انسان د خپل خاص حکمت په بناء پيدا کړی دی همدارنګه حيوانان يې هم د حکمت سره سم پيدا کړي دي په دې اعتبار سره چي څرنګه د انسان ارزښت دی همدارنګه د حيوانانو هم ارزښت دی چي هغوی بېله ضرورته او بېله مقصده وژل د الله تعالی د تخليق او حکمت خلاف کار دی.

نو رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايه چي ددغه آيت کريمه په موجب دا خو ممکن نه ده چي ټول سپيان دي ووژل سي ځکه چي د الله تعالی په مخلوق کي څومره ډلي دي په هغوی کي يوه ډله د سپيانو هم ده او د يو ډلي فنا کول د الله تعالی د هغه حکمت بالکل خلاف کار دی کوم چي د هر ساه لرونکي په تخليق کي دی البته هغه سپيان چي تور وي نو هغه بايد ووژل سي ځکه چي دا ډول سپيان ډېر شرير او خطرناک وي چي له هغو څخه د تکليف پرته بل څه ګټه نه رسيږي او پاته نور سپيان چي د کښت او حيوانانو د څارني لپاره په کار راځي نو هغوی د انسان خدمت کوي ځکه نو د قرآن کريم د تعليم څخه پرته هسي هم د عامي ګټي سره سم هغوی ژوندي پرېښودل زيات غوره او ګټور دي.

په حديث كي د (فاقتلوا) د لفظ د تركيب نحوي په اعتبار جواب دی د شرط محذوف، يعني رسول الله ﷺ داسي وفرمايل: چي كله مذكوره سبب د آيت كريمه په موجب د ټولو سپيانو د وژلو يوه لاره نه معلوميږي نو كم از كم هغه سپيان ووژنئ چي خاص تور وي.

## د حيوانانو جنګول حرام دي

﴿۳۹۲۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ التَّحْرِيشِ بَيْنَ الْبَهَائِمِ. رواه الترمذي وابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د حيوانانو د جنګولو څخه منع فرمايلې ده (يعني سپيان، چرګان، كركان وغيره). ترمذي، ابوداؤد.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۸۲، رقم: ۱۷۰۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي اوښان، فيلان، غوايان، سپيان، چرګان او داسي نور حيوانان جنګول او ددې څخه پرته د چارپايانو په خپلو كي جنګول بايد ونسي، همدارنګه د مرغانو هم دغه حكم دی، له دې څخه څرګنده سوه چي كله د حيوانانو په خپلو كي د جنګولو منع ده نو د خلكو په خپلو كي جنګول په درجه اولی منع دي.

===========

# بَابُ مَا يَحِلُّ اَكْلُهُ وَمَايُحَرِّمُ

## (د حلالو او حرامو حيوانانو بيان)

څرګنده دي وي چي د كوم شي حرامېدل د كتاب الله څخه ثابت دي هغه اول خو ميته يعني مړ سوی حيوان دی، دوهم دم مسفوح يعني بهېدونكې وينه، دريم د خنزير غوښه او څلورم د هغه حيوان غوښه چي د غير الله په نامه ذبح سوې وي لكه څرنګه چي د دغه آيت څخه ثابت دي:

(قُل لاَّ أَجِدُ فِي مَا أُوْحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَى طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ إِلاَّ أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُ رِجْسٌ أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللهِ بِهِ) سورة الانعام: ۱۴۵.

ژباړه: (اې محمد ﷺ!) دوی ته ووايه چي كوم احكام د وحي په ذريعه ماته راغلي دي په هغو كي خو هيڅ حرام خوراك زه نه وينم د يو خوړونكي لپاره چي هغه وخوري مګر دا چي هغه مړ سوی وي يا بهېدونكې وينه وي يا د خنزير غوښه وي ځكه چي هغه بالكل ناپاك دي يا كوم

حیوان چي د شرک ذریعه وي چي د غیر الله په نامه منسوب سوی وي.
له دې څخه وروسته سنت نبوي ﷺ په هغه حرامو شیانو کي د ځینو نورو حیوانانو زیاتوب وکړ لکه ذي ناب، ذي مخلب، کورني خرونه او داسي نور، د کومو حیوانانو چي د احادیث نبوي په ذریعه حرامېدل ثابت دي په هغو کي ځیني حیوانان په سبب قطعیت احادیث په اتفاق سره د ټولو علماوو حرام دي او د ځینو حیوانانو په باره کي د امامانو اختلاف دي ځکه چي د هغوی په اړه احادیث هم مختلف منقول دي د ځینو حیوانانو په اړه د دغه آیت کریمه په بناء په علماوو کي اختلاف پیدا سوی دي: (و یحل لهم الطیبات و یحرم علیهم الخبائث)، ژباړه: او رسول الله ﷺ پاک شیان د هغوی لپاره حلالوي او چټل شیان پر هغوی حراموي.

حنفي علماوو د دغه آیت په سبب د ماهي څخه پرته د اوبو ټول حیوانان حرام ګرځولي دي ځکه چي د دغه حضراتو په نزد د ماهي څخه پرته د اوبو نور حیوانان هم سته چي هغه خبیث او چټل دي په دغه دلیل چي له خبیث څخه مراد هغه شی دی چي هغه طبیعت سلیم چټل وګڼي او په اوبو کي د ماهي څخه پرته کوم شی چي ساه لرونکی وي هغه طبیعت چټل ګڼي.

په هدایه کي لیکلي دي چي د امام مالک او علماوو د یو ډلي مذهب دادی چي د اوبو ټول حیوانان مطلق حلال دي مګر په هغو کي ځینو علماوو دریابي خنزیر، دریابي سپی او دریابي انسان مستثنی کړی دی، د امام شافعي رحمه الله په نزد مطلق د دریاب حیوانان حلال دي د هغوی دلیل دغه آیت کریمه دی: (احل لکم صید البحر وطعامه) ژباړه: ستاسو لپاره د دریاب ښکار نیول او د هغه خوړل حلال سوي دي.

او هغوی د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد څخه هم استدلال کړی دی چي رسول الله ﷺ د اوبو په باره کي فرمایلي دي چي: (هو الطهور ماوه والحل میتته) ژباړه: د هغه (دریاب) اوبه پاکونکي دي او د هغه مردار حلال دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### ذی ناب درنده حرام دئ

﴿۳۹۲۶﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ فَأَكْلُهُ حَرَامٌ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر څيرونکي درنده (يعني چي هغه په غاښونو سره ښکار کوي) حرام دئ . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\ ۱۵۳۴، رقم: ۱۵- ۱۹۳۳.

## په پنجه ښکار کونکو مرغانو غوښي حرامي دي

﴿۳۹۲۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ وَعَنْ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ .رواه مسلم .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د څيرونکو درندګانو او په پنجه سره د ښکار کونکي مرغانو (د خوراک) څخه منع فرمايلي ده . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\ ۱۵۳۴، رقم: ۱٦- ۱۹۳۴.

## د کورنی خره غوښي حرامي دي

﴿۳۹۲۸﴾: وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ قَالَ حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لُحُومَ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ . متفق عليه.

د حضرت ابو ثعلبه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د کورني خرونو غوښه خوړل حرام ګرځولي ده . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\ ٦۵۳، رقم: ۵۵۲۷، ومسلم ۳\ ۱۵۳۸، رقم: ۲۳- ۱۹۳٦.

**تشريح**: مګر ځنګلي خرونه چي هغوی ته ګورخر وايي په اتفاق د ټولو علماوو حلال دي .

## د آس حکم

﴿۳۹۲۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ وَأَذِنَ فِي لُحُومِ الْخَيْلِ . متفق عليه .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د خيبر په ورځ د کورني خرونو د غوښو خوړلو څخه منع وفرمايل او د اسانو د غوښو اجازه يې ورکړه . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۵۳، رقم: ۵۵۲۴، ومسلم ۳\۱۵۴۱، رقم: ۳۶- ۱۹۴۱.

**تشریح**: د نورو امامانو پر دې اتفاق دی چي د آس غوښه خوړل مباح دي مګر د امام اعظم رحمة الله علیه او امام مالک رحمة الله علیه قول دادی چي د آس غوښه خوړل مکروه دي ، ځیني وايي چي کراهت تحریمي مراد دی او ځیني کراهت تنزیهي مراد اخلي مګر په کفایت المنتهی کي نقل سوي دي چي ځینو علماوو واضحه کړې ده چي امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه د خپل وفات څخه درې ورځي مخکي له خپل دغه قول څخه رجوع کړې وه یعني د نورو امامانو په ډول هغه هم د آس د غوښو د اباحت قائل سوی وو، په حنفي مذهب کي پر دې فتوا ورکول کیږي، همدارنګه د فقه حنفي مشهور او معتبر کتاب درمختار کي هم دا لیکلي دي چي د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه په نزد د آس غوښه حلاله نه ده حال دا چي امام شافعي رحمة الله علیه او په حنفیه کي امام ابویوسف، او امام محمد رحمة الله علیهم په نزد حلاله ده ، او ځینو علماوو صراحت کړی دی چي د امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه له خپل وفات څخه درې ورځي مخکي د حرمت له قول څخه رجوع کړې وه نو پر دې فتوا ده. مولانا شاه محمد اسحاق محدث دهلوي رحمة الله علیه به هم ددغه روایت فتوا ورکول چي امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه له خپل قول څخه رجوع کړې وه او په حنفي مذهب کي د آس غوښه خوړل حلال دي.

## د ځنګلي خره غوښي جائز دي

﴿۳۹۳۰﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّهُ رَأَى حِمَارًا وَحْشِيًّا فَعَقَرَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ مَعَكُمْ مِنْ لَّحْمِهِ شَيْءٌ قَالَ مَعَنَا رِجْلُهُ فَأَخَذَهَا فَأَكَلَهَا. متفق علیه.

د ابو قتاده رضي الله عنه څخه روایت دئ چي هغه یو ځنګلي خر ولیدئ او هغه یې وویشتئ، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه ایا ستاسره ددغه ځنګلي خره د غوښو څخه یو څه سته؟ ابو قتاده وویل: یوه پښه یې زموږ سره سته، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه واخیستل او وه یې خوړل. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۴\۲۲، رقم: ۱۸۲۱، ومسلم ۲\۸۵۵، رقم: ۶۳- ۱۱۹۶.

## سویکی حلال دئ

﴿۳۹۲۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ أَنْفَجْنَا أَرْنَبًا بِمَرِّ الظَّهْرَانِ فاخذتها فاتيت أَبَا طَلْحَةَ فَذَبَحَهَا وبَعَثَ إِلَى رسول الله ﷺ بِوَرِكِهَا أَوْ وفَخِذَيْهَا فَقَبِلَهُ . متفق علیه

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي موږ په مر الظهران نامي ځای کي په یوه سویکی پسي وځغاستو ما هغه ونیوئ او ابو طلحه ته مي یووړ نو هغه ذبح کړ او هغه دواړه ورنونه یې او دُمچې رسول الله ﷺ ته ولیږل ، رسول الله ﷺ هغه قبول کړل . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۰۲، رقم: ۲۵۷۲، ومسلم ۳\۱۵۴۷، رقم: ۵۳- ۱۹۵۳.

**د لغاتو حل**: انفجنا : ای هیجنا واثرنا : (په پسې سوو)

**تشریح**: له دغه حدیث څخه څرګنده سوه چي سوی ګی یو حلال حیوان دی ځکه چي رسول الله ﷺ د هغه غوښه قبوله کړه ، که چیري د هغه د غوښي خوړل حلال نه وای نو رسول الله ﷺ به نه قبلولای ، بلکه نور به یې له هغه څخه منع کولای ، په کتاب الرحمة في اختلاف الائمه کي لیکلي دي چي په اتفاق د ټولو علماوو د سویکی غوښه حلاله ده .

## د سمسارې غوښې

﴿۳۹۲۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الضَّبُّ لَسْتُ آكُلُهُ وَلَا أُحَرِّمُهُ . متفق علیه

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زه نه سمساره خورم او نه یې حراموم . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۶۲، رقم: ۵۵۳۶، ومسلم ۳\۱۵۴۲، رقم: ۴۰- ۱۹۴۳.

**تشریح**: د سمسارې عمر تر اووه سوه کالو پوري وي او عجیب وغریب خصوصیات یې بیانیږي د مثال په توګه اوبه نه څښي بلکه د هواء په ذریعه ژوند کوي ، په څلوښتو کالو کي یو ځاڅکی بولي کوي ، غاښونه یې هیڅکله نه ماتیږي.

ځینو علماوو لیکلي دي چي د رسول الله ﷺ د سمسارې نه خوړل د کراهت طبعي په توګه وو او د هغه د نه حلالولو وجه دا وه چي تر هغه وخته پوري رسول الله ﷺ ته د وحي په ذریعه د سمسارې په اړه حکم نازل سوی نه وو ، مخته هغه حدیث رائحي چي د سمسارې پر حرمت دلالت

كوي، د هغه حديث په وجه د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله په نزد سمساره خوړل حرام دي حال دا چي د امام احمد او امام شافعي رحمة الله عليهما په نزد د سمسارې په خوړلو كي څه پروا نسته د هغوى دليل تېر سوى حديث دى.

﴿۳۹۳۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ رَسُولِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه بيان دئ چي هغه د

اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى مَيْمُونَةَ وَهِيَ خَالَتُهُ وَخَالَةُ ابْنِ عَبَّاسٍ فَوَجَدَ

رسول الله ﷺ سره د بي بي ميموني كره چي د هغه او د ابن عباس خاله وه داخل سوو، او د هغې

عِنْدَهَا ضَبًّا مَحْنُوذًا فَقَدَّمَتْ الضَّبَّ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَفَعَ

سره يوه پخه سوې سمساره وه، بي بي ميمونې هغه سمساره د رسول الله ﷺ په مخكي كښېښودل

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ عَنْ الضَّبِّ فَقَالَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ

رسو ل الله ﷺ خپل لاس مبارک را ايسته كړ (يعني هغه يې ونه خوړل) حضرت خالد رضي الله عنه پوښتنه وكړه

أَحَرَامٌ الضَّبُّ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ لَا وَلَكِنْ لَمْ يَكُنْ بِأَرْضِ قَوْمِي فَأَجِدُنِي

اې دالله رسوله! ايا سمساره حرامه ده؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل يا، دا زما د قوم په مځكه كي نه ده له دې كبله زه ځيني كركه كوم،

أَعَافُهُ قَالَ خَالِدٌ فَاجْتَرَرْتُهُ فَأَكَلْتُهُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ إِلَيَّ. متفق عليه.

د حضرت خالد رضي الله عنه بيان دئ چي هغه سمساره ما خپل په لور را كش كړل او وه مي خوړل او رسول الله ﷺ ما ته كتل. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۶۲، رقم: ۵۵۳۷، ومسلم ۳\۱۵۴۲، رقم: ۴۴-۱۹۴۶.

**د لغاتو حل**: محنوذا: اى مشويا (سور كړى).

**تشريح**: مخته چي کوم حديث راځي او په هغه کي د سمسارې د خوړلو منع نقل سوې ده دا واقعه تر هغه مخکي ده په دې اعتبار سره دغه حديث منسوخ ګرځول کيږي.

## د چرګ غوښي خوړل حلال دي

﴿۳۹۳۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوسٰى قَالَ رَاَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْكُلُ لَحْمَ الدُّجَاجِ. متفق عليه.

د حضرت ابو موسى رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما ليدلي دي چي رسول الله ﷺ د چرګ غوښه خوړل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۴۵، رقم: ۵۵۱۷، ومسلم ۳\۱۲۷۰، رقم: ۹- ۱۶۴۹.

## ملخ حلال دئ

﴿۳۹۳۵﴾: وَعَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ كُنَّا نَأْكُلُ معه الْجَرَادَ. متفق عليه.

د حضرت ابن ابي اوفى رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره په اوو غزاوو کي ګډون کړی دئ موږ به د رسول الله ﷺ سره ملخان خوړل. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۲۰، رقم: ۵۴۹۵، ومسلم ۳\۱۵۴۶، رقم: ۵۲- ۱۹۵۲.

**تشريح**: (كنا ناكل معه الجراد) دلته د معه لفظ (يعني له رسول الله ﷺ سره) نه خو د مسلم په اصل روايت کي دی او نه په ترمذي کي، بلکه دغه حديث چي کومو نورو محدثينو نقل کړی دی په هغوی کي د اکثرو روايت له دغه لفظ څخه خالی دی مګر کومو محدثينو چي په خپل روايت کي دغه لفظ زيات نقل کړی دی هغوی دا معنی مراد اخيستې ده چي موږ به د رسول الله ﷺ په ملګرتيا کي ملخان خوړل، دغه تاويل که څه هم په حديث د نقل سوو الفاظو د ظاهري معنی خلاف دی مګر دا ضروري ځکه دی چي دا ثابته ده چي رسول الله ﷺ ملخ نه دی خوړلی بلکه په دې اړه د رسو ل الله ﷺ ارشاد نقل سوی دی چي زه يې نه خورم او نه يې حرام ګرځوم.

## په درياب کي د مړ سوي ماهي خوراک

﴿۳۹۳۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ غَزَوْتُ جَيْشَ الْخَبَطِ وَأُمِّرَ أَبُو عُبَيْدَةَ فَجُعْنَا جُوعًا

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي موږ د خبط د یو لښکر سره جهاد وکړ ددې لښکر امیر ابو عبیده وو موږ د لوږي څخه ډیر تنګ سوو

شَدِيدًا فَأَلْقَى الْبَحْرُ حُوتًا مَيِّتًا لَمْ نَرَ مِثْلَهُ يُقَالُ لَهُ الْعَنْبَرُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ

په دغه ورځو کي موږ د دریاب پر غاړه یو مړ ماهی تر لاسه کړ دومره لوی ماهی موږ هیڅکله نه وو لیدلی دا ډول ماهي ته عنبر وایي دا ماهی

نِصْفَ شَهْرٍ فَأَخَذَ أَبُو عُبَيْدَةَ عَظْمًا مِنْ عِظَامِهِ فَمَرَّ الرَّاكِبُ تَحْتَهُ فَلَمَّا

موږ پنځلس ورځي وخوړی. ابو عبیده رضی الله عنه د هغه د هډوکو څخه یو هډوکی واخیستی (او هغه یې ودرویٔ) تر هغه لاندي سپور سړی تیر یدای سوای

قَدِمْنَا ذَكَرْنَا لِلنَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ كُلُوا رِزْقًا أَخْرَجَهُ اللَّهُ وَأَطْعِمُونَا إِنْ كَانَ مَعَكُمْ

موږ چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوو نو موږ رسول الله ﷺ ته د هغه یادونه وکړه،

قَالَ فَأَرْسَلْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُ فَأَكَلَهُ. متفق علیه.

رسول الله ﷺ وفرمایل هغه رزق چي الله تعالی تاسو ته رالیږلی دئ په موږ یې هم وخورئ که د هغه څخه ستاسو سره یو څه وي، حضرت جابر رضی الله عنه وایي موږ د هغه ماهی څخه یو څه رسول الله ﷺ ته ولیږل چي رسول الله ﷺ هغه وخوړل. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۸\۷۸، رقم: ۴۳۶۲، ومسلم ۳\۱۵۳۶، رقم: ۱۷- ۱۹۳۵.

**د لغاتو حل**: الخبط: ورق الشجر (د درختي پاڼه)

**تشریح**: خبط په اصل کي د خ او ب په زور سره دی مګر د ب په جزم سره هم منقول دی چي معنی یې د درختي پاڼي ده چي په لرګي وهلو سره راولویږي.

په حدیث کي د ذکر سوې پېښي تعلق چي د کوم اسلامي لښکر سره دی هغه د دومره سخت حالت سره مخامخ سوی وو چي د لاري د خوراک په وجه د لښکر د خلکو د ژوندي پاته کېدو لپاره مجبورا د درختو د پاڼو په څنډلو سره خوړلې تر دې چي ددې په وجه د هغوی خولې او شونډان خوږ سوي وه بلکه د هغوی شونډان د اوښانو د شونډانو مشابه سوي وه ځکه نو ددغه لښکر نوم جیش الخبط یعني پاڼي څنډونکی سره مشهور سو، دغه پېښه په ۶ هجري کال کي د

صلح حدیبیه څخه مخکي ده.
عنبر د يو خوشبويي نوم دی چي د هغه په باره کي په قاموس کي ليکلي دي چي دا په اصل کي د درياب د حيوانانو ګندګي ده يا د يو خاص ډول چينې څخه تر لاسه کيږي چي د درياب په بېخ کي وي، او يو ډول لوی ماهي ته هم عنبر ويل کيږي چي د هغه د پوست څخه سپر جوړيږي.
تر نيمي مياشتي پوري: په ځينو رواياتو کي تر يوې مياشتي پوري ذي، او په ځينو رواياتو کي دا راغلي دي چي لښکر له هغه ماهي څخه تر اتلس ورځو پوري خوراک کوی په دغه ټولو روايتو کي داسي مطابقت پيدا کيږي چي هغه ماهی تر نيمي مياشتي پوري ټول لښکر وخوړی ددې څخه وروسته د لښکر ځينو خلګو تر اتلس ورځو پوري او ځيني خلګو تر پوره مياشت پوري وخوړی.

## د مچ په خوراک کي لويدل

﴿۳۹۳۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْمِسْهُ كُلَّهُ ثُمَّ لِيَطْرَحْهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ شِفَاءً وَفِي الْآخَرِ دَاءً. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي ستاسو په لوښي کي مچ ولويږي نو پکار ده چي مچ ته غوټه ورکړئ او بيا يې راوکاږئ ځکه چي د هغه په يوه وزر کي شفا ده او په بل کي ناروغي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۵۰، رقم: ۵۷۸۲.

**تشريح**: دغه ډول يو بل حديث له حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه هم منقول دی چي په دوهم فصل کي به راسي، په هغه کي دا هم بيان سوی دی چي مچ د ناروغۍ وزر مخکي اچوي نو ټول مچ ته غوټه ورکول چي د هغه شفاء والا وزر هم ډوب سي او همدا رنګه د هغه خوراک او څيښاک له شيانو څخه هغه مضر اثرات هم زائل سي چي د ناروغۍ د وزر په ذريعه رسيدلي دي.

## په غوړو کي د مږي لويدلو حکم

﴿۳۹۳۸﴾: وَعَنْ مَيْمُونَةَ أَنَّ فَأْرَةً وَقَعَتْ فِي سَمْنٍ فَمَاتَتْ فَسُئِلَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهَا فَقَالَ أَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَكُلُوهُ. رواه البخاري.

د حضرت میمونې (رض) څخه روایت دئ چي یوه مږه (موږک) په غوړو کي ولویدل ،د هغه په اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول ، نو رسول الله ﷺ وفرمایل مږه راوکاږئ او وه یې غورځوئ دا شاوخوا غوړي ځیني لیري کړئ او پاته وخورئ. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۶۷، رقم: ۵۵۳۸.

**تشریح**: دا د هغه غوړو حکم دی چي یخی سوي وي او کوم غوړي چي ویلي وي په هغه صورت کي ټول مرداریږي او په اتفاق د ټولو علماوو د هغه خوړل جائز نه دي همدارنګه هغه غوړي پلورل هم د اکثرو امامانو په نزد جائز نه دي مګر امام ابوحنیفة رحمة الله علیه د هغه پلورل جائز ګرځولي دي .

په دې اړه د علماوو اختلاف دی چي ایا هغه غوړو څخه بله ګټه اخیستل کیدای سي که یا؟ د ځینو حضراتو په نزد له هغه څخه هیڅ ګټه اخیستل جائز نه دي مګر ځیني حضرات وایي چي هغه دي په څراغ کي وسوځل سي ، په کښتیو باندي د موږلو یا دا ډول بل کار کي ګټه ور څخه اخیستل کیدای سي ، دغه قول د امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیه دی ، د امام شافعي رحمة الله علیه په دوو قولو کي یو قول چي زیات مشهور دی هغه هم دادی مګر دغه جواز په کراهت سره دی ، د امام مالک او امام احمد رحمة الله علیهما څخه دوه روایتونه نقل سوي دي ، له امام مالک رحمة الله علیه څخه یو روایت دا هم دی چي هغه غوړي په مسجد کي سوځل جائز دي .

## د مارانو دوژلو حکم

﴿۳۹۲۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّه سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اقْتُلُوا

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي ماران وژنئ

الْحَيَّاتِ وَاقْتُلُوا ذَا الطُّفْيَتَيْنِ وَالْأَبْتَرَ فَإِنَّهُمَا يَطْمِسَانِ الْبَصَرَ وَيَسْتَسْقِطَانِ

(په خاصه توګه) هغه مار چي د هغه پر شا دوې کرښې وي او د تور رنګ وي او هغه مار چي د هغه نوم ابتر دئ (یعني هغه مار چي د هغه لکۍ کوچنۍ وي) ځکه چي دا دواړه ماران بنائي زائل کوي (یعني د دوی په لیدو سره سترګېړندیږي) او حمل غورځوي ،

الْحَبَلَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَبَيْنَا أَنَا أُطَارِدُ حَيَّةً أَقْتُلُهَا نَادَانِي أَبُو لُبَابَةَ لَا تَقْتُلْهَا

عبدالله وایي یو وار ما د یو مار د وژلو لپاره حمله وکړه نو ابو لبابه راته آواز وکړ خبردار! دا مه

وژنه، ما ورته وويل رسول الله ﷺ د مارانو د وژلو حکم کړی دئ،

فَقُلْتُ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الْحَيَّاتِ فَقَالَ إِنَّهُ نَهَى بَعْدَ ذٰلِكَ عَنْ ذَوَاتِ الْبُيُوتِ وَهُنَّ الْعَوَامِرُ. متفق عليه.

هغه وویل رسول الله ﷺ د حکم ورکولو څخه وروسته د هغه مارانو د وژلو څخه منع کړې ده کوم چي په کورونو کي اوسیږي او هغه کورونه ابادونکي دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٤٧، رقم: ٣٢٩٧، ومسلم ٤\١٧٥٢، رقم: ١٢٨– ٢٢٣٣.

**د لغاتو حل**: الابتر: هي الحية القصيرة الذنب. (هغه مار چي لنډه لکۍ يې وي)

**تشريح**: هغوی کور ابادونکي دي: په اصل کي د عَمر او عمر معنى د ابادولو ده تر اوږدې مودې پوري د ژوندي پاته کېدو، دغه مارانو ته عوامر ځکه ویل کیږي چي د دوی عمرونه زيات دي او په دې وجه هغوی په کور کي اوسيږي.

تورپشتي رحمة الله عليه ويلي دي: په اصل کي د عوامر اطلاق پر جناتو (پیریانو) باندي کېږي، په دې اعتبار سره چي هغوی کور ابادونکي دي له دې څخه به مراد دا وي چي په کورو کي زيات وختونه کوم ماران چي لېدل کيږي هغه په حقيقت کي جنات وي چي د مار صورت يې اختيار کړی وي نو په کورو کي اوسيدونکو مارانو د وژني په اړه بايد احتياط وسي، داسي نه وي چي يو مار ووژني او هغه په حقيقت کي جن (پيری) وي او د هغه په وژلو سره کوروالا ته تاوان ورسوي.

طبراني رحمة الله عليه له ابن عباس رضي الله عنه څخه مرفوع دا روايت نقل کړی دی چي: (اقتلوا الحية والعقرب وان كنتم في الصلوة)، ژباړه: مار او لړم ووژنئ که څه هم تاسو د لمانځه په حالت کي ياست. همدارنګه ابوداؤد او نسائي له حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه او طبراني له جرير څخه او هغه د حضرت عثمان بن ابوالعاص رضي الله عنه څخه مرفوع دغه روايت نقل کړی دی چي: (اقتلوا الحيات كلهن فمن خاف ثارهن فليس مني) ژباړه: هر ډول ماران وژنئ، څوک چي د مارانو د بدلې څخه بيريږي او په دې وجه هغه مړ نه کړي نو هغه زموږ څخه نه دی.

مګر دغه روايتونه چي له هغو څخه د مارانو د وژنې مطلق حکم ثابتيږي په اصل کي په کورو کي د اوسيدونکو مارانو څخه پرته پر نورو مارانو باندي محمول دی لکه څرنګه چي د ابن عمر رضي الله عنه ذکر سوی روايت يا راتلونکو نورو رواياتو څخه څرګنديږي.

﴿۳۹۴۰﴾: وَعَنْ اَبِي السَّائِبِ قَالَ دَخَلْنَا عَلَى أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ فَبَيْنَا نَحْنُ

د حضرت ابو سائب رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي موږ د ابو سعید خدري رضی اللہ عنہ کره ورغلو موږ د هغه

جُلُوسٌ اِذْ سَمِعْنَا تَحْتَ سَرِيْرِهِ حَرَكَةً فَنَظَرْنَا فَإِذَا فِيْهِ حَيَّةٌ فَوَثَبْتُ لِأَقْتُلَهَا

په کور کي ناست وو چي د هغه تر تخت لاندي حرکت محسوس سو، موږ چي وکتل چي مار دئ
زه د هغه د وژلو لپاره سمدستي ولاړ سوم

وَاَبُوْ سَعِيْدٍ يُّصَلِّيْ فَأَشَارَ إِلَيَّ أَنِ اجْلِسْ فَجَلَسْتُ فَلَمَّا انْصَرَفَ أَشَارَ إِلَى بَيْتٍ

هغه وخت ابو سعید رضی اللہ عنہ لمونځ کوئ هغه په اشاره سره وویل چي کښېنه، کوم وخت چي هغه
لمونځ وکړنو هغه د کور د یوې خوني په لور اشاره وکړه

فِي الدَّارِ فَقَالَ أَتَرَى هَذَا الْبَيْتَ فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ كَانَ فِيهِ فَتًى مِنَّا حَدِيثُ

او وه یې ویل تا دا خونه لیدلې ده؟ ما ورته وویل: هو، حضرت ابو سعید رضی اللہ عنہ وویل په دغه
خونه کي زما د کورنۍ یو زلمی اوسیدئ چي نوی

عَهْدٍ بِعُرْسٍ قَالَ فَخَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْخَنْدَقِ

واده یې سوی وو، بیا زه او هغه زلمی د رسول اللہ ﷺ سره د خندق په غزا کي شریک سوو دا

فَكَانَ ذٰلِكَ الْفَتَى يَسْتَأْذِنُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَنْصَافِ النَّهَارِ

زلمی په غرمه کي د رسول اللہ ﷺ په اجازه سره کور ته تلئ، یوه ورځ هغه د معمول سره سم د

فَيَرْجِعُ إِلَى أَهْلِهِ فَاسْتَأْذَنَهُ يَوْمًا فَقَالَ له رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رسول اللہ ﷺ څخه اجازه واخیستل، رسول اللہ ﷺ ورته وفرمایل: خپل وسله د ځان سره واخله

خُذْ عَلَيْكَ سِلَاحَكَ فَإِنِّي أَخْشَى عَلَيْكَ قُرَيْظَةَ فَأَخَذَ الرَّجُلُ سِلَاحَهُ ثُمَّ رَجَعَ

ځکه چي ما ته د بنو قریظه څخه اندېښنه ده (یعني یهود بني قریظه چي په مدینه منوره کي
اوسیدل او د مسلمانانو سره یې معاهده کړې وه) هغه زلمی وسله واخیستل او روان سو،

فَإِذَا امْرَأَتُهُ بَيْنَ الْبَابَيْنِ قَائِمَةً فَأَهْوَى إِلَيْهَا بِالرُّمْحِ لِيَطْعُنَهَا بِهِ وَأَصَابَتْهُ

کله چي هغه کورته ورسيدئ نو هغه وليدل چي د هغه ښځه (ناوې) د دوو تنبو په منځ کي ولاړه ده هغه د شرم او غيرت څخه متاثره سو (چي د هغه بي بي دباندي ولي ولاړه ده) د هغې په لور يې نيزه پورته کړه چي هغه په ووهي ،

غَيْرَةٌ فَقَالَتْ لَهُ اكْفُفْ عَلَيْكَ رُمْحَكَ وَادْخُلِ الْبَيْتَ حَتَّى تَنْظُرَ مَا الَّذِي

بي بي ورته وويل نيزه سنبال کړه او دومره تيزي مه کوه کورته دننه ورسه او وګوره نو درته معلومه به سي چي زه څه شي

أَخْرَجَنِي فَدَخَلَ فَإِذَا بِحَيَّةٍ عَظِيمَةٍ مُنْطَوِيَةٍ عَلَى الْفِرَاشِ فَأَهْوَى إِلَيْهَا

د کور څخه د باندي را ايستلې يم ، زلمی چي کور ته داخل سو نو يو لوی ماريې وليدئ چي پر بستره باندي يې حلقه جوړه کړې ناست دئ ، زلمي پر هغه په نيزې سره حمله وکړه

بِالرُّمْحِ فَانْتَظَمَهَا بِهِ ثُمَّ خَرَجَ فَرَكَزَهُ فِي الدَّارِ فَاضْطَرَبَتْ عَلَيْهِ فَمَا يُدْرَى

او ماريې په نيزه کي وپيوئ بيا د کور څخه د باندي راووتئ او نيزه يې په غولي کي ښخه کړه ، مار پر هغه زلمي حمله وکړل او بيا دا معلومه نه سوه

أَيُّهُمَا كَانَ أَسْرَعَ مَوْتًا الْحَيَّةُ أَمِ الْفَتَى قَالَ فَجِئْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

چي په هغوی کي کوم يو (زلمي که مار) ژر مړه سو؟ ابو سعيد ﵁ وايي موږ د رسول الله ﷺ په

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذَكَرْنَا ذَلِكَ لَهُ وَقُلْنَا ادْعُ اللَّهَ يُحْيِيهِ لَنَا فَقَالَ اسْتَغْفِرُوا لِصَاحِبِكُمْ

خدمت کي حاضر سو ټوله پېښه مو ورته بيان کړه او رسول الله ﷺ ته مو خواست وکړ چي د الله ﷻ څخه دعاء وغواړي چي دا زلمی زموږ په مخکي ژوندی کړي ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل د خپل دوست لپاره بخښنه وغواړئ

ثُمَّ قَالَ إِنَّ لِهَذِهِ الْبُيُوتِ عَوَامِرَ فَإِذَا رَأَيْتُمْ مِنْهَا شَيْئًا فَحَرِّجُوا عَلَيْهَا ثَلَاثًا

بيا رسول الله ﷺ ورته وفرمايل د دغه کورونو لپاره ابادونکي دي (يعني مؤمن او کافر پيريان

چي دا کورونه آباد ساتي هر کله چي تاسو د هغوی څخه يو څوک ووينئ (يعني د مار په شکل کي) نو ورته ووایاست چي ته په تنگي کي يې که بیا راووتلې نو موږ به دي مړ کړو د آئنده لپاره ستا اختیار دئ، درې واره دا الفاظ ورته ووایاست

فَاِنْ ذَهَبَ وَاِلاَّ فَاقْتُلُوْهُ فَاِنَّهُ كَافِرٌ وَقَالَ لَهُمْ اذْهَبُوا فَادْفِنُوا صَاحِبَكُمْ، وفي

که هغه ولاړ سي نو خیر کنه مړيې کړئ ځکه چي هغه کافر دئ، رسول الله ﷺ انصارو ته وفرمایل ولاړ سئ او خپل دوست ښخ کړئ او په

رواية قَالَ إِنَّ بِالْمَدِينَةِ جِنًّا قَدْ أَسْلَمُوا فَإِذَا رَأَيْتُمْ مِنْهُ شَيْئًا فَآذِنُوهُ ثَلَاثَةَ

یوه روایت کي دا الفاظ دي چي نبي کریم ﷺ وفرمایل په مدینه کي د پیریانو یوه ډله ده چي مسلمانان سوي دي هر کله چي تاسو په هغوی څوک (د مار په شکل کي) ووینئ نو د درو

أَيَّامٍ فَإِنْ بَدَا لَكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ فَاقْتُلُوهُ فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ. رواه مسلم

ورځو اجازه ورکړئ که د درو ورځو څخه وروسته بیا ښکاره سي نو مړیې کړئ ځکه چي هغه شیطان دئ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۱۷۵۶، رقم: ۱۴۰- ۲۲۳۶.

---

**تشریح** تاسو د الله ﷻ څخه دعاء غواړئ: علماوو لیکلي دي چي صحابه کرامو دا رویه نه وه چي رسول الله ﷺ ته داسي خواست وکړي، دلته دغه خلکو دا فکر وو چي زلمی په حقیقت کي مړ سوی نه دی بلکه د زهرو په اثر بې هوشه سوی دی ځکه نو هغوی رسول الله ﷺ ته د دعاء خواست کړی وو.

مغفرت وغواړئ: په دغه ارشاد سره د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي دده د ژوندي کولو دعاء ولي غواړئ ځکه چي هغه پر خپل لار باندي په تللو سره د مرگ غېږي ته رسیدلی دی د هغه لپاره دعاء کول گټوره نه ده اوس خو د هغه په اړه تر ټولو گټوره خبره داده چي الله تعالی ته د هغه د مغفرت او بخښني خواست وکړئ.

پر هغه تنگي اختیار کړئ: یا هغه خبردار کړئ، مطلب دادی چي کله مار ووینئ نو هغه ته ووایاست چي ته راګېر سوی یې اوس مه راوځه که بیا هم راووځې نو موږ به پر تا حمله وکړو او تا به ووژنو، اوس ته پوه سه او کار دي پوه سه.

په يوه روايت کي له رسول الله ﷺ څخه دا نقل سوي دي چي د مار په لېدو سره دا ويل پكار دي:
(انشدكم بالعهد الذي اخذ عليكم سليمان بن داؤد عليهما السلام لا تاذونا ولا تظهروا لنا)
ژباړه: زه تاته د هغه قول قسم درکوم چي حضرت سليمان عليه السلام ستا څخه اخيستى وو چي موږ ته تكليف مه راكوه او زموږ مخته مه راځه.

هغه شيطان دى: يعني كه چيري د خبر وركولو څخه وروسته هم هغه غائب نسي نو ددې مطلب به دا وي چي هغه مسلمان جن (پيرى) نه دى بلكه يا خو كافر جن دى يا په حقيقت كي مار دى يا د ابليس له ذريات څخه دى، په دغه صورت كي هغه سمدستي وژل پكار دي، هغه ته شيطان په دې اعتبار ويل سوي دي چي د خبردارى څخه وروسته هم هغه غائب نسو نو هغه ځان سركش ثابت كړى دى او دا عامه خبره ده چي څوک سركښ سي كه څه هم هغه له پيريانو څخه وي يا له انسانانو او حيوانانو څخه وي نو هغه ته شيطان ويل كيږي.

## د كربوړي وژلو حكم

﴿۳۹۴۱﴾: وَعَنْ أُمِّ شَرِيكٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ وَقَالَ كَانَ يَنْفُخُ عَلَى إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِ السَّلَام. متفق عليه.

د ام شريک (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د وزغ (د كربوړي په ډول يو حيوان) د وژلو حكم وركړ او وه يې فرمايل چي دغه حيوان به د حضرت ابراهيم عليه السلام اور پوكئ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٨٩، رقم: ٣٣٥٩، ومسلم ۴\۱۷۵۷، رقم: ۱۴۲- ۲۲۲۷.

**د لغاتو حل**: الوزغ: هو دويبة مؤذية وسام ابرص.

**تشريح**: اور يې پوه كوى: يعني دا د كربوړي خباثت بيان سوى دى چي كله نمرود، حضرت ابراهيم عليه السلام په اور كي واچوى نو كربوړي به هغه اور د تېزولو لپاره پوكى.

دا خبره هم څرګنده سوې ده چي دغه حيوان ډېر زهرجن او ضرري دى كه چيري د خوراک او څښاک شيانو ته دده زهرجن جراثيم ورسيږي نو په هغه سره خلكو ته ډېر سخت تكليف او تاوان رسيدلاى سي.

﴿۳۹۴۲﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ وَسَمَّاهُ فُوَيْسِقًا. رواه مسلم.

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د كربوړي د وژلو حكم كړی دئ او ددې نوم يې كوچني فاسق ايښی دئ . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۷۵۸، رقم: ۱۴۴ – ۲۲۳۸.

**تشريح** (فويسق) ، د فاسق تصغير دی چي معنی يې د كوچني فاسق ده، كربوړي ته فويسق يعني كوچنی فاسق په دې اعتبار ويل سوي دي چي دی د هغه فواسق خمسه يعني پنځه بدو حيوانانو له ډول څخه دی چي د هغوی په هر حالت كي د وژلو حكم دی كه څه هم هغوی د حل د حدودو څخه وتلي وي يا په حرم كي وي ، په لغت كي د فسق معنی د خروج ده او د شريعت په اصطلاح كي له فسق څخه مراد دادی چي د حق د اطاعت څخه وتل او د صحيح لاري څخه مخ اړول.

﴿۳۹۴۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَتَلَ وَزَغًا فِي أَوَّلِ ضَرْبَةٍ كُتِبَتْ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ وَفِي الثَّانِيَةِ دُونَ ذٰلِكَ وَفِي الثَّالِثَةِ دُونَ ذٰلِكَ . رواه مسلم

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي كربوړی په اول گذار (وهلو) مړ كړي د هغه په حساب كي سل نيكۍ ليكل كيږي او څوک چي يې په دويم گذار مړ كړي د هغه په حساب كي تر سلو كمي او څوک چي يې په دريم گذار مړ كړي نو د هغه په حساب كي تر دې هم كمي نيكۍ ليكل كيږي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۷۵۸، رقم: ۱۴۷ – ۲۲۴۰.

**تشريح** د دغه حديث په ذريعه دې ته رغبت وركړل سوی دی چي كربوړی ژر تر ژره وژنئ .

## د ميږي د وژلو مسئله

﴿۳۹۴۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَصَتْ نَمْلَةٌ نَبِيًّا

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو ميږي يو نبي وچيچئ

مِنَ الْأَنْبِيَاءِ فَأَمَرَ بِقَرْيَةِ النَّمْلِ فَأُحْرِقَتْ فَأَوْحَى اللّٰهُ إِلَيْهِ أَنْ قَرَصَتْكَ نَمْلَةٌ أَحْرَقْتَ أُمَّةً مِنَ الْأُمَمِ تُسَبِّحُ . متفق عليه .

هغه نبي حكم وكړ چي د ميږيانو غار دي وسوځل سي ، الله ﷻ هغه نبي ته وحي راوليږل چي ته خو يوه ميږي وچيچلې نو تا يې ټول قوم وسوزئ چي د الله پاكي يې بيانول . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٥٤، رقم: ٣٠١٩، ومسلم ١٤\١٧٥٩، رقم: ١٤٨- ٢٢٤١.

**تشريح**: غار يې وسوځل سو : په دې اړه ځينو علماوو ويلي دي چي د دې مطلب دادی چي نبي د هغه درختي د سوځلو حكم كړی وو چي په هغه كي د مېږيانو غار وو ، هغه درخته وسوځل سوه ، ددغه پېښي په اړه روايت دی چي يو ځل هغه نبي د الله ﷻ په دربار كي عرض كړی وو چي پروردګاره! ته يوه سيمه د هغه ځای د اوسېدونكو د ګناهو په سبب په عذاب كي اخته كوې او هغه ټوله سيمه خرابه سي حال دا چي په هغه سيمه كي ځيني فرمانبرداره خلك هم وي نو الله ﷺ فيصله وكړه چي د هغه د عبرت لپاره يو مثال وړاندي كړي نو پر هغه نبي يې سخته ګرمي مسلطه كړه تر دې چي هغه د ګرمۍ څخه د خلاصون لپاره د يوې سايه داره درختي لاندي راغلی ، پر هغه خوب غلبه وكړه او هغه بېده وو ، يو ميږي هغه وچيچی نو هغه حكم يې وكړ چي ټول مېږيان دي وسوځل سي ځكه چي د هغه لپاره دا اسانه نه وه چي د هغه خاص مېږي په پېژندلو سره هغه وسوځي كوم چي دی يې چيچلی وو يا دا چي ټول مېږيان د هغه په نزد تكليف وركونكي وه او د تكليف رسونكي ټول جنس وژل جائز دي .

حضرت شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه ليكلي دي چي د قرية النمل څخه مراد د مېږيانو غار دی .

الله ﷻ هغه ته وحي وكړې ...الخ: يعني دا پر هغه نبي باندي د الله ﷻ له خوا عتباب دی ، علماوو ليكلي دي چي دا پر دې محمول دی چي د هغه نبي په شريعت كي د مېږيانو وژل يا سوځل جائز وه او عتاب ځكه پر وسو چي هغه تر يوه ميږي زيات وسوځل مګر واضحه دي وي چي په شريعت محمدي كي د هيڅ حيوان سوځل جائز نه دي كه څه هم سپږي او نور څه وي ، او د تكليف رسونكي حيوان څخه پرته د نورو حيوانانو وژل هم جائز نه دي ، له حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ د هر حيوان د وژلو څخه منع فرمايلې ده كه څه هم هغه تكليف رسونكی وي .

په مطالب المؤمنين كي له محمد ابن مسلم رحمة الله عليه څخه د ميږيانو د وژلو په اړه دا نقل سوي دي كه چيري ميږيانو تا ته تكليف رسولی وي نو هغه ميږی مړ كړه او كه تكليف يې نه وي دركړی نو هغه مه وژنه، فقيه ويلي دي موږ پر دې قول فتوا وركوو چي همدا رنګه د مېږيانو په اوبو كي غورځول هم مكروه دي او د يوه ميږي لپاره چي تا ته يې تكليف دركړی وي د ټولو مېږيانو غار دي نه سوځل كيږي او نه دي تباه كيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په غوړو کي د مږي لويدلو مسئله

﴿۳۹۴۵﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَقَعَتْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي مږه ولويږي

الْفَأْرَةُ فِي السَّمْنِ فَإِنْ كَانَ جَامِدًا فَأَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَإِنْ كَانَ مَائِعًا فَلَا تَقْرَبُوْهُ. رواه احمد وابوداؤد ورواه الدارمي عن ابن عباس.

په غوړو کي نو که غوړي يخي وي نو مږه ځيني وکاږئ وه يې غورځوئ او په څلورو خواوو کي لږ لږ غوړي وکاږئ (او بيا يې وخورئ) او که غوړي ويلي وي نو نژدې مه ورځئ (يعني مه يې استعمالوئ)، احمد، ابوداؤد او دارمي د ابن عباس څخه روايت کړی دئ.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۲۳۲، وابوداود ۴\۱۸۱، رقم: ۳۸۴۲

### د سرخاب غوښه

﴿۳۹۴۶﴾: وَعَنْ سَفِيْنَةَ قَالَ أَكَلْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَحْمَ حُبَارَى. رواه ابوداؤد.

د حضرت سفينه (رض) څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ سره د سرخاب (يو ډول حيوان) غوښه خوړلې ده. ابوداؤد. (سرخاب ته په فارسي کي چرز او تغدري ويل کيږي).

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۵۵، رقم: ۳۷۹۷.

**د لغاتو حل**: لحم حبارى: هو طائر كبير العنق رمادي اللون. (سرخاب)

**تشريح**: (حبارى) يعني سرخاب هغه مرغه دی چي د هغه په باره کي په عربي کي مشهور دي چي هغه تر ټولو بې عقل مرغه دی ځکه د يو سړي د حماقت څرګندولو لپاره د حبارى مثال ورکول کيږي، (سرخاب): د اوبو يو مرغه دی چي د هغه په اړه دا خبره مشهوره ده چي هغوی تل جوړه جوړه اوسيږي که چيري د جوړې څخه يو مړ سي نو بل هم ورپسي مړ کيږي، د سرخاب وزر ډېري ښکلا په وجه په سر کي لګول کيږي او ښکاريان يې په لنګوټه يا خولۍ کي لګوي.

## مرداري خوړونكي حيوانان حرام دي

﴿۳۹۴۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الْجَلَّالَةِ وَأَلْبَانِهَا . رواه الترمذي و في رواية ابي داؤد وقال نهي عن ركوب الجلالة

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ د جلالة (مرداری خوړونكي حيوان) د غوښو خوړلو څخه او د هغه د شېدو چېښلو څخه منع فرمايلې ده . د ابوداؤد په روايت كي دي چي پر جلالة باندي د سپرلی څخه هم منع فرمايلې ده . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۳۸، رقم: ۱۸۲۴، وابوداود ۴\۱۴۸، رقم: ۳۷۸۵.

**د لغاتو حل**: الجلالة: هي الدابة التي تاكل العذرة، اى الاوساخ.

**تشريح**: (جلالة) هغه حيوان ته وايي چي د هغه غوښه خوړل حلال دي مگر هغه ته د نجاست خوړلو عادت وي . په دې اړه تفصيل دادی كه هغه حيوان كله نا كله نجاست خوري نو هغه ته به جلاله نه وايو او د هغه غوښه خوړل به حرام نه وي لكه چرگه، او كه هغه حيوان داسي وي چي د هغه خوراک په عامه توگه نجاست او مرداري وي تر دې چي د هغه په وجه د هغه په غوښه او شېدو كي بدبويي راسي نو د هغه غوښه خوړل به حلال نه وي كه څه هم هغه په تړلو يا بنْدي كولو سره وساتل سي او هغه ته پاک شيان وركړل سي ، تر دې چي د هغه غوښه او شيدې سمي سي نو د هغه غوښه او شيدې څېښل به صحيح وي ، د امام اعظم ابوحنيفة، امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهم دا قول دی ، مگر امام مالک رحمۃ اللہ علیہ فرمايي چي د هغه د بندي كولو او پاكو شيانو خوړلو څخه وروسته هم د هغه غوښه د مبالغې تر حده پرېوللل ضروري دي، په فتاوی كبری كي ليكلي دي چي تر څو پوري مخلات مرغه (چرگ) تر درو ورځو پوري او جلاله تر لسو ورځو پوري بندي نه كړل سي يا ونه تړل سي نو تر هغه وخته پوري د هغه غوښه خوړل به حلال نه وي .

پر جلاله باندي د سپرتيا څخه ځكه منع فرمايل سوې ده چي د هغه خوله د غوښي پېدا كېدو په وجه مرداره وي او د سپاره سړي بدن ته به ورسېږي .

## د سمسارې خوړل حرام دي

﴿۳۹۴۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ شِبْلٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ اَكْلِ لَحْمِ الضَّبِّ . رواه الترمذي .

د حضرت عبدالرحمن بن شبل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د سمسارې د غوښو خوړلو څخه منع فرمايلې ده . ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۵۵، رقم: ۳۷۹۶.

**تشريح**: دغه حديث د سمسارې پر حرام کېدو باندي دلالت کوي لکه څرنګه د امام ابوحنيفة رحمه الله مذهب دی او کيدای سي چي مخکي د سمسارې غوښه خوړل مباح وه مګر وروسته د دغه حکم د منع په ذريعه هغه اباحت منسوخ سوی وي .

## د پيشي خوړل حرام دي

﴿۳۹۴۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ اَكْلِ الْهِرَّةِ وَاَكْلِ ثَمَنِهَا. رواه ابوداؤد والترمذي .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د پشي د خوړلو او د هغې د قيمت خوړلو څخه منع فرمايلې ده . ابوداؤد او ترمذي

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۶۱، رقم: ۳۸۰۷، والترمذي ۳\۵۷۸، رقم: ۱۲۸۰.

**تشريح**: د پيشي غوښه خوړل د ټولو علماوو په اتفاق حرامه ده مګر د پيشي پلورل او د هغه بيه د خوراک او څښناک په شيانو کي مصرفول حرام نه دي بلکه مکروه دي .

## د خرو، غاترو او درندګانو غوښه حرامه ده

﴿۳۹۵۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ حَرَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي يَوْمَ خَيْبَرَ الْحُمُرَ الْإِنْسِيَّةَ وَلُحُومَ الْبِغَالِ وَكُلَّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ وَذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د خيبر په ورځ د کورني خرونو ، غاترو او هر څيرونکي درنده او په پنجو سره د ښکار کونکو مرغانو غوښه حرامه ګرځولې ده . ترمذي ، او ترمذي ويلي دي چي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۶۱، رقم: ۱۴۷۸.

**د لغاتو حل**: الحمر الانسية: ای الحمر الاهلية (کورني خرونه)

## د آس د غوښو خوړل منع دي

﴿۳۹۵۱﴾: وَعَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْخَيْلِ وَالْبِغَالِ وَالْحَمِيرِ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د آس، غاتري او خره د غوښي خوړلو څخه منع فرمايلې ده. ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۵۱، رقم: ۳۷۹۰، والنسائي ۷\۲۰۲، رقم: ۴۳۳۲.

**تشريح**: دغه حديث چي د هغه څخه د آس د غوښو خوړلو منع ثابتيږي، ضعيف دی ځکه دا د حضرت جابر رضی الله عنه د هغه حديث خلاف کيدای نسي کوم چي مخکي تېر سوی دی او له هغه څخه د آس د غوښو اباحت ثابتيږي، بيا هم د آس د غوښو د خوړلو منع د اکثرو علماوو په نزد د هغه حديث په ذريعه منسوخ ګرځول سوې ده کوم چي مخکي تېر سوی دی لکه څرنګه چي د حضرت جابر رضی الله عنه د روايت په تشريح کي دغه مسئله په وضاحت سره بيان سوې ده.

## د معاهد د مال حکم

﴿۳۹۵۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ فَأَتَتْ

د حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه څخه روايت دئ چي د خيبر په ورځ ما د نبي کريم ﷺ په ملګرتيا کي

الْيَهُودُ فَشَكَوْا أَنَّ النَّاسَ قَدْ أَسْرَعُوا إِلَى حَظَائِرِهِمْ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

جهاد وکړ، يهوديان د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول او دا شکايت يې وکړ چي خلکو د هغوی د خرماوو په لور تلوار وکړ (يعني خرماوي يې وشکولې) رسول الله ﷺ مسلمانانو ته

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا لَا تَحِلُّ أَمْوَالُ الْمُعَاهَدِينَ إِلَّا بِحَقِّهَا. رواه ابوداؤد.

وفرمايل: خبردار! د هغه خلکو مال حلال نه دئ د چا سره چي معاهده سوې ده مګر په حق سره. ابوداؤد. يعني که ذمي وي جزيه حق ده او که مستامن وي نو په سوداګرۍ سره يې د مال اخستل روا دي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۶۱، رقم: ۳۸۰۶.

**تشريح** معاهد: هغه سړي ته وايي چي له هغه سره قول او اقرار سوی وي، که هغه معاهد

ذمي وي نو هغه حق چي د هغه له مال سره متعلق دی جزیه دی او که هغه معاهد مستامن وي او د هغه سره د تجارت مال وي نو د هغه مال سره چي کوم حق متعلق دی هغه پر هغه باندي جاري کېدونکی عشر دی.

## ماهی، ملخ، اینه او توری

﴿۳۹۵۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُحِلَّتْ لَنَا مَيْتَتَانِ وَدَمَانِ اَلْمَيْتَتَانِ اَلْحُوتُ وَالْجَرَادُ وَ الدَّمَانِ الْكَبِدُ وَالطِّحَالُ. رواه احمد و ابن ماجة والدار قطني.

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: موږ ته دوه مړه بېله حلالولو او دوې ويني حلالي کړل سوي دي مړه خو ماهیان او ملخان دي او دوې ويني اینه او توری دئ. احمد، ابن ماجه او دار قطني.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۹۷، وابن ماجه ۲\۱۱۰۱، ۱۱۰۲، رقم: ۳۳۱۴، والدار قطني۴\۲۷۱، رقم: ۲۵

## پروچه پاته ماهیان

﴿۳۹۵۴﴾: وَعَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

حضرت ابو زبیر رضی الله عنه د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَلْقَاهُ الْبَحْرُ أَوْ جَزَرَ عَنْهُ فَكُلُوهُ وَمَا مَاتَ فِيهِ وَطَفَا فَلَا

کوم شی چي دریاب وغورځوئ یعني ماهی، یا اوبه وچي سوې یا اوبه په بل لوري ولاړې (او ماهیان پاته سول) نو هغه ماهیان خورئ او کوم ماهیان چي په اوبو کي مړه سي او د اوبو پر سر

تَأْكُلُوهُ. رواه ابوداؤد وابن ماجه و قال محي السنة الاكثرون على انه موقوف على جابر.

راسي هغه مه خورئ، ابوداؤد، ابن ماجه، امام محي السنة ویلي دي چي د اکثرو محدثینو په نزد دا پر حضرت جابر رضی الله عنه موقوف دئ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۶۵، رقم: ۳۸۱۵، وابن ماجه ۲\۱۰۸۱، رقم: ۳۲۴۸.

**تشريح** دغه حديث د امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه د هغه مذهب دليل دی چي هغه ماهيچي په اوبو کي په مړ کېدو سره را پورته سي، حرام دئ، د صحابه کرامو له يو ډلي څخه همدارنګه نقل سوي دي مګر د امام مالک او امام شافعي رحمة الله عليهما په نزد د داسي ماهي په خوړلو کي څه پرواه نسته ځکه چي رسول الله ﷺ مطلق (احل لکم الميتتان) يعني ستاسو لپاره دوه مړه سوي شيان حلال دي، فرمايلي دي نو ميتة بحر يعني د اوبو مړ سوی شی (ماهی) به مطلق حلال وي که څه هم هغه د اوبو څخه د راوتلو وروسته مړ سوی وي يا په اوبو کي په مړ کېدو سره را پورته سوی وي، حنفيه علماء وايي چي د بحر ميتة څخه مراد هغه ماهی دی چي درياب دباندي راغورځولی وي او د هغه وجه مړ سوی وي نه هغه ماهی چي بېله يو آفت په اوبو کي خپله مړ سوی وي.

## د ملخ حکم

﴿۳۹۵۵﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْجَرَادِ فَقَالَ أَكْثَرُ جُنُودِ اللّٰهِ لَا آكُلُهُ وَلَا أُحَرِّمُهُ. رواه ابوداؤد وقال محي السنة ضعيف

د حضرت سلمان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د نبي کريم ﷺ څخه د ملخانو په اړه پوښتنه وسول، رسول الله ﷺ وفرمايل ملخان اکثر د الله جل جلاله لښکر دي نه يې زه خورم (ځکه چي زما زړه يې نه غواړي) او نه يې زه حرام ګرځوم. ابوداؤد، محي السنة ويلي دي چي دا حديث ضعيف دئ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۶۵، رقم: ۳۸۱۳.

**تشريح** ملخان د الله جل جلاله لښکر په دې وجه دي چي کله پر يو ډلي يا قوم باندي الله جل جلاله عذاب راولي نو هغوی ته په ډلو ډلو ملخان ورلېږي چي د هغه قوم فصلونه او درختي وخوري چي په هغه سره وچ کالي رامنځته سي، په تېرو زمانو کي داسي ډېر ځله سوي دي چي کله د يو ځای فصلونه او باغونه د عذاب په وجه ملخانو نيست او نابود کړي دي او په دې وجه هلته وچ کالي راغلې ده نو يوه انسان بل انسان خوړل پيل کړل همدارنګه د هغه ځای ټول او سيدونکي برباد سول، کوم چي د ملخانو مسئله ده نو د هغه خوړل د اکثرو احاديثو په سبب حلال دي د ټلورو امامانو همدغه مذهب دی چي ملخ خوړل حلال دی که څه هم خپله مړ سوی وي يا ذبح کړل سوی وي يا د ښکار په ذريعه مړ سوی وي او ښکار هم که مسلمان کړی وي يا مجوسي، او که څه هم

د هغه څخه څه پرې سوې وي يا نه.

## چرګ ته بد مه وایاست

﴿۳۹۵۶﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ سَبِّ الدِّيكِ وَقَالَ إِنَّهُ يُؤَذِّنُ لِلصَّلَاةِ. رواه في شرح السنة

د حضرت زید بن خالد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ چرګ ته د بد ويلو څخه منع فرمايلې ده او دا يې فرمايلي دي چي چرګ د لمانځه لپاره اذان کوي. شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\۱۹۹، رقم: ۳۲۷۰.

**تشريح**: د لمانځه څخه د تهجد لمونځ مراد دی، په حدیث شریف کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ به د تهجد لپاره هغه وخت را پورته کېدی کله چي به چرګ اذان وکړ او دا هم کیدای سي چي د فجر لمونځ مراد وي په دغه صورت کي به دا مطلب وي چي هغه د خپل آذان په ذريعه خبر ورکوي چي د سهار د لمانځه وخت نژدې سوی دي او بيا دوهم وار د هغه آذان د خبرداري لپاره وي، له دغه حدیث څخه څرګنده سوه چي کله په حيوان کي هم ښه خصلتونه وي نو هغه ته د بد ويلو څخه منع سوې ده نو بيا يو مؤمن ته د بد ويونکي به څه پای وي.

﴿۳۹۵۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسُبُّوا الدِّيكَ فَإِنَّهُ يُوقِظُ لِلصَّلَاةِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت زيد بن خالد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چرګ ته بد مه وایاست ځکه چي هغه د لمانځه لپاره ويښول کوي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۳۱، رقم: ۵۱۰۱.

## په کور کي بايد د مار سره څرنګه چلن وسي

﴿۳۹۵۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ قَالَ أَبُو لَيْلَى قَالَ رَسُولُ اللَّهِ

د حضرت عبدالرحمن بن ابو ليلى رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا ظَهَرَتِ الْحَيَّةُ فِي الْمَسْكَنِ فَقُولُوا لَهَا إِنَّا نَسْأَلُكِ

په کور کي چي کله مار راووځي هغه ته دا ووایاست چي موږ ستا څخه د حضرت نوح علیه

بِعَهْدِ نُوحٍ وَبِعَهْدِ سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ أَنْ لَا تُؤْذِيَنَا فَإِنْ عَادَتْ فَاقْتُلُوهَا . رواه الترمذي و ابوداؤد .

السلام او حضرت سلیمان بن داؤد علیه السلام د عهد په ذریعه دا غواړو چي ته موږ ته تکلیف مه رسوه که ددې څخه وروسته هغه بیا ولیدل سو نو مړ یې کړئ. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۶۴ – ۶۵، رقم: ۱۴۸۵، وابوداود ۵\۴۱۵، رقم: ۵۲۶۰.

**تشريح**: حضرت نوح علیه السلام هغه وخت د مار څخه قول اخیستی وو کله چي یې په خپل کښتۍ کي حیوانان داخلول.

## د مار د انتقام څخه بیرونکي باندي وعید

﴿۳۹۵۹﴾: وَعَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا رَفَعَ الْحَدِيثَ أَنَّهُ كَانَ يَأْمُرُ بِقَتْلِ الْحَيَّاتِ وَقَالَ مَنْ تَرَكَهُنَّ خَشْيَةَ ثَائِرٍ فَلَيْسَ مِنَّا . رواه في شرح السنة .

حضرت عکرمة رضي الله عنه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کوي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به د مارانو د وژلو حکم کوئ او فرمایل یې چي څوک مار ددې اندېښنې څخه مړ نه کړي چي دویم مار به د هغه څخه بدل واخلي نو هغه زموږ څخه نه دئ. شرح السنة

**تخريج**: شرح السنة ۱۲\۱۹۵، رقم: ۳۲۶۵.

**تشريح**: د بدلې د بیري مطلب دادی چي هغه ددغه بیري څخه مار مړ نه کړي چي د هغه جوړه زما څخه انتقام وانخلي، کله داسي هم کیږي چي یو سړی یو مار ووژني او بیا د هغه جوړه هغه سړی وچیچي او بدله یې واخلي، وژلی مار که چیري نر وي نو د هغه ښځه انتقام اخیستو ته راځي او که وژل سوی مار ښځه وي نو د هغه نر مار د بدلې اخیستلو لپاره راځي، د جاهلیت په زمانه کي د عربو په نزد دغه بیره د یوې عقیدې حد ته رسیدلې وه ، هغوی به ویل چي مار باید هیڅکله ونه وژل سي که چیري هغه ووژل سي نو د هغه جوړه به خپل انتقام اخلي، نبي کریم صلی الله علیه وسلم د داسي عقیدې څخه منعه وفرمایل.

﴿۳۹۶۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا سَالَمْنَاهُمْ مُنْذُ حَارَبْنَاهُمْ وَمَنْ تَرَكَ شَيْئًا مِنْهُمْ خِيفَةً فَلَيْسَ مِنَّا. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د كوم وخت څخه چي موږ د مارانو سره جګړه پيل كړې ده د هغه وخت څخه موږ (هيڅكله) د هغوى سره صلح نه ده كړې ځوک چي مار ددې بيري څخه پرېږدي او مړ يې نه كړي چي هغه به بدله ځيني واخلي نو هغه زموږ څخه نه دئ. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۴۰۹، رقم: ۵۲۴۸.

**تشريح**: په يو بل روايت كي د (منذ حاربناهم) پر ځاى (منذ عاديناهم) الفاظ نقل سوي دي يعني كله چي زموږ او مارانو په مينځ كي جګړه او دښمني رامنځته سوه، په هرحال مراد دادى چي د انسان او مار په مينځ كي دښمني او جګړه يو طبعي شى دى چي هر يو دوهم ته تاوان رسوي كه انسان مار ويني نو خامخا د هغه د وژلو هڅه كوي او كه مار انسان ويني نو د هغه د چيچلو څخه پرته نه پاته كيږي بلكه ځينو علماوو دا ويلي دي چي ددغه جنګ او دښمنۍ څخه مراد هغه دښمني ده چي د آدم د اولادې د تخليق څخه مخكي د حضرت آدم عليه السلام او مار په مينځ كي قائمه سوې ده لكه څرنګه چي په يوه روايت كي بيان سوي دي چي كله ابليس لعين د حضرت آدم عليه السلام د دوكې كولو لپاره په جنت كي داخلېدل وغوښتل نو هغه د جنت چوكېدار منع كړ، دغه ماروو چي د ابليس مرسته يې وكړه هغه ابليس په خپله خوله كي په اخيستلو سره جنت ته ورسوى او بيا ابليس لعين حضرت آدم عليه السلام او حواء لپاره د خپل مكر او فريب جال اچولو سره هغوى په وسوسه كي اخته كړل او هغوى دواړو د جنت د هغه درختي څخه خوراک وكړى چي هغه ته د ورتلو څخه منع سوى وه او آخر هغه دواړه له جنت څخه را وايستل سول، او الله جل جلاله، حضرت آدم عليه السلام او حواء عليها السلام، ابليس او مار ته په مخاطب كولو سره وفرمايل: (اهبطوا بعضكم لبعض عدو)، ويل كيږي چي مخكي د مار شكل او صورت ډېر ښكلى او ښائسته وو خو هغه ددغه سخت جرم په عذاب كي چي هغه د ابليس آله كار جوړ سوى د هغه صورت مسخ كړل سو نو مار ددې مستحق دى چي له هغه سره عداوت او نفرت د همېشه لپاره وكړل سي.

څرګنده دي وي چي په: (ما سالمناهم منذ حاربناهم) كي د مارانو لپاره د ذوي العقول ضمير ځكه استعمال سوى دى چي هغوى ته د صلح نسبت سوى دى چي د ذوي العقولو له كارو

څخه دی لکه څرنګه چې په دغه آيت کريمه کې (والشمس والقمر رايتهم لي ساجدين) يعني لمر او سپوږمی لپاره د ذوي العقول ضمير استعمال سوی دی ، کنه نو د قاعدې په اعتبار د هغوی لپاره د غير ذوي العقول ضمير استعمالولو سره دا ويل پکار وه چې : (ما سالمناهم منذ حاربناهن) .

﴿۳۹۶۱﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُقْتُلُوا الْحَيَّاتِ كُلَّهُنَّ فَمَنْ خَافَ ثَأْرَهُنَّ فَلَيْسَ مِنِّي . رواه ابوداؤد والنسائي .

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : ټول ماران وژنئ (يعني هر ډول ماران) څوک چې ددې د بدلې څخه بيرېږي هغه زما څخه نه دئ . ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۴۰۹، رقم: ۵۲۴۹، والنسائي ۶\۵۱، رقم: ۳۱۹۳.

**تشريح**: ددغه حديث د ظاهري مفهوم څخه دا ثابتيږي چې د هر ډول مارانو وژل پکار دي مګر حقيقت دادی چې ددغه عمومي حکم څخه عوامر يعني په کورو کې اوسيدونکي ماران استثناء دي ، يا دا ويل کيږي چې د قتل څخه مراد دادی چې د خبردار کولو څخه وروسته يې وژنئ، لکه څرنګه چې مخکې د حضرت ابو سائب رضي الله عنه په حديث کې بيان سوی دی .

﴿۳۹۶۲﴾: وَعَنِ الْعَبَّاسِ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا نُرِيدُ أَنْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې ما وويل: اې د الله رسوله ! زموږ اراده ده چې د

نَكْنُسَ زَمْزَمَ وَإِنَّ فِيهَا مِنْ هَذِهِ الْجِنَّانِ يَعْنِي الْحَيَّاتِ الصِّغَارَ فَأَمَرَ رسول اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِهِنَّ . رواه ابوداؤد .

زمزم څاه پاک کړو په هغه کې پيريان يعني کوچني ماران دي ، رسول الله ﷺ د هغو د وژلو حکم وکړ. ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۴۱۰، رقم: ۵۲۵۱.

**تشريح**: له دغه حديث څخه څرګنديږي چې رسول الله ﷺ د هر ډول کوچنيو مارانو د وژلو حکم کړی دی مګر مخته چې کوم حديث راځي له هغه څخه دا ثابتيږي چې رسول الله ﷺ په هغه کې د يو ډول مارانو وژلو څخه منع فرمايلې ده د هغه وجه داده چې په دغه وخت کې د زمزم د څاه د

پاکولو لپاره دهغه ټولو مارانو د وژلو څخه پرته پاکوالی ممکن نه وو حال دا چي په نورو صورتو کي په هغوی کي د ځينو مارانو استثناء ممکن ده .

## سپين کوچني ماران مه وژنئ

﴿۳۹۶۳﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ كُلَّهَا إِلَّا الْجَانَّ الْأَبْيَضَ الَّذِي كَأَنَّهُ قَضِيبُ فِضَّةٍ . رواه ابوداؤد .

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ټول ماران وژنئ مګر هغه نري سپين چي د سپينو زرو د لښتی په ډول معلوميږي هغه مه وژنئ . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۴۱۵، رقم: ۵۲۶۱.

**تشريح**: د دغه مار د وژني څخه ځکه منع فرمايل سوې ده چي هغه تاوان نه رسوي .

## کله چي په لوښي کي مچ ولويږي نو هغه ته غوټه ورکړئ او را وه يې کاږئ

﴿۳۹۶۴﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَقَعَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي د چا (د خوراک

الذُّبَابُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَامْقُلُوهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ دَاءً وَفِي الْآخَرِ شِفَاءً وَإِنَّهُ يَتَّقِي بِجَنَاحِهِ الَّذِي فِيهِ الدَّاءُ فَلْيَغْمِسْهُ كُلَّهُ . رواه ابوداؤد.

او څښاک) په لوښي کي مچ ولويږي نو هغه ته دي غوټه ورکړي ځکه چي د دغه په يوه وزر کي ناروغي ده او په دويم کي شفا ، مچ هغه وزر په لوښي کي مخکي اچوي په کوم کي چي ناروغي ده له دې کبله هغه بايد په لوښي کي غوټه سي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۸۲، رقم: ۳۸۴۴.

**د لغاتو حل**: امقلوه : ای اغمسوه في الطعام (غوټه يې کړئ)

﴿۳۹۶۵﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي د چا په

وَقَعَ الذُّبَابُ فِي الطَّعَامِ فَامْقُلُوهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ سَمًّا وَفِي الْآخَرِ شِفَاءً وَإِنَّهُ يُقَدِّمُ السَّمَّ وَيُؤَخِّرُ الشِّفَاءَ. رواه في شرح السنة.

خوراک کي مچ ولويږي نو هغه ته دي غوټه ورکړي ځکه چي د هغه په يوه وزر کي زهر دي او په دويم کي شفاء، او مچ زهر والا وزر مخکي اچوي بيا شفاء والا. شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ١١\٢٦١، رقم: ٢٨١٥.

## د څلورو حيوانانو وژل منع دي

﴿٣٩٦٦﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِ أَرْبَعٍ مِنَ الدَّوَابِّ النَّمْلَةُ وَالنَّحْلَةُ وَالْهُدْهُدُ وَالصُّرَدُ. رواه ابوداؤد.

حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د څلورو ډولو حيوانانو د وژلو څخه منع فرمايلې ده: (۱) ميږی (۲) د شاتو مچ موچۍ (۳) ملا چرګک (هد هد) (۴) او لاټو (يو ډول مرغۍ ده چي توره يا توربخونه وي). ابوداؤد. وژل يې ځکه منع دي چي چوغکي خوري نو په دې خاطر غوښه يې حرامه ده نو چي غوښه يې حرامه سوه نو بې ګټې وژل يې منع دي.

**تخريج**: سنن ابي داود ٥\٤١٨، رقم: ٥٢٦٧، والدارمي ٢\١٢١، رقم: ١٩٩٩.

**د لغاتو حل**: الصرد: طائر ضخم الراس والمنقار له ريش عظيم نصفه ابيض ونصفه اسود. (يو ډول مرغه)

**تشريح**: د مېږيانو د وژني څخه د منع مراد دادی چي هغه دي تر هغه وخته پوري نه وژل کيږي تر څو چي څوک ونه چيچي، که يې وچيچي نو بيا يې وژل جائز دي، ځيني حضرات وايي د کوم مېږي د وژني څخه چي منع فرمايل سوې ده د هغه څخه هغه غټ مېږيان مراد دي چي د هغه پښې اوږدې اوږدې وي او د هغه وژل ځکه منع دي چي د هغه په چيچلو سره تاوان نه رسيږي.

د عسلو موچۍ وژل ځکه منع دي چي له هغه څخه انسان ته ډېري ګټې رسيږي په دې توګه چي عسل او موم د هغه په ذريعه تر لاسه کيږي.

هُدهُد (ملا چرګک) يو مرغه دی، صرد هم يو مرغه ته وايي چي لوی سر، لويه موښوکه او لوی لوی وزرو والا دي چي نيم تور وي او نيم سپين وي، ځيني حضرات وايي چي هغه ښکاري مرغه دی چي د مرغانو ښکار کوي د دغه دواړو مرغانو له وژلو څخه ځکه منع سوې ده چي د

هغه خوړل حرام دي او کوم حيوانان او مرغان چي نه خوړل کيږي د هغو وژل منع ګرځول سوي دي او ځيني حضرات وايي چي په هد هد کي بدبويي وي ځکه هغه د جلالة په حکم کي راځي ، عربو د هُدهُد او صرد آوازونه بدفاله ګڼل په دې وجه هم رسول الله ﷺ د دوی د وژلو څخه منع وفرمايل چي د خلکو زړونه د هغوی د بدوالي د عقيدې څخه راووځي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### حلال او حرام د الله ﷻ کار دئ

﴿۳۹۶۷﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَأْكُلُونَ أَشْيَاءَ وَيَتْرُكُونَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي د جاهليت په زمانه کي خلکو ځيني شيان خوړل او

أَشْيَاءَ تَقَذُّرًا فَبَعَثَ اللّٰهُ تَعَالٰى نَبِيَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنْزَلَ كِتَابَهُ وَأَحَلَّ

ځيني يې نه خوړل ، بيا الله تعالی خپل نبي راوليږئ او خپل کتاب يې نازل کړ او خپل حلال شيان

حَلَالَهُ وَحَرَّمَ حَرَامَهُ فَمَا أَحَلَّ فَهُوَ حَلَالٌ وَمَا حَرَّمَ فَهُوَ حَرَامٌ وَمَا سَكَتَ

يې حلال او حرام شيان يې حرام ګرځولي دي ، اوس کوم شيان چي الله تعالی حلال کړي دي هغه حلال دي او کوم شيان چي الله تعالی حرام کړي دي هغه حرام دي، او په کوم شي کي چي يې سکوت (چپتيا) اختيار کړې ده هغه معاف دي ،

عَنْهُ فَهُوَ عَفْوٌ وَتَلَا { قُلْ لَا أَجِدُ فِيمَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلٰى طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَيْتَةً } الْآيَةَ . رواه ابوداؤد .

بيا يې دا آيت تلاوت کړ (قل لا اجد ....) اې محمد ﷺ ! خلکو ته ووايه کوم شی چي د وحي په ذريعه ما ته راليږل سوی دئ زه په هغه کي هيڅ شی پر خوړونکي حرام بيا نه تر لاسه کوم مګر چي هغه مردار وي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۵۷، رقم: ۳۸۰۰.

**تشريح**: د (حلاله) په لفظ کي مصدر استعمال سوی دی چي د مفعول قائم مقام دی ، معنی يې داده چي الله تعالی د خپل نبي راليږل او د خپل کتاب د نزول په ذريعه يې هغه شی ظاهر او

واضح کړ کوم چي حلال سوی دی .

حضرت ابن عباس رضي الله عنه چي کوم آيت تلاوت کړ هغه آيت دغه دی :

(قُل لاَّ أَجِدُ فِي مَا أُوْحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَى طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ إِلاَّ أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُ رِجْسٌ أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللّهِ بِهِ) سورة الانعام : ۱۴۵.

ژباړه : اې محمد ! (صلی الله علیه وسلم) دوی ته ووايه چي کوم احکام د وحي په ذريعه ما ته راغلي دي په هغه کي زه څه حرام خوراک نه وينم د خوړونکي لپاره چي هغه وخوري مگر دا چي هغه مردار (مړ سوی) وي ، يا بهېدونکې وينه وي يا د خنزير غوښه وي ځکه چي هغه بالکل ناپاک دي يا کوم حيوان چي د شرک ذريعه وي چي د غير الله په نامه سره اېښودل سوی وي .

دغه آيت کريمه حضرت ابن عباس رضي الله عنه د هغه خلکو په رد کي ووايه چي هغوی محض د خپل خواهش په وجه د يو شی د حلالوالي او حراموالي فيصله کول ، چي کوم شي ته به يې شوق کېدی هغه به يې حلال گڼی او خوړی به يې او له کوم شي څخه چي به يې بد کېدل هغه به يې حرام گڼی ، نو حضرت ابن عباس رضي الله عنه پر هغه خلکو باندي د دغه آيت کريمه په ذريعه دا واضحه کړل چي حلال هغه شيان دي کوم چي الله تعالی او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم حلال گرځولي دي او حرام هغه شيان دي چي الله تعالی او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم حرام گرځولي دي نه دا چي د حراموالي او حلالوالي تعلق د نفس د خواهش سره دی .

د حيوانانو او غوښو په اړه چي د کومو شيانو د حرام کېدو حکم په کتاب الله کي بيان سوی دی هغه هم هغه دی کوم چي په دغه آيت کي ذکر سوي دي د دې څخه پرته د نورو شيانو حرمت له سنت نبوي صلی الله علیه وسلم څخه ثابت سوي دي او هغه زيات دي ځکه ابن عباس رضي الله عنه د هغه په اړه نقل سوي حديثونه بيان نه کړل محض د دغه آيت کريمه پر تلاوت يې اکتفاء وکړل .

## د خره د غوښي ممانعت

﴿۳۹۶۸﴾ : وَعَنْ زَاهِرٍ الْأَسْلَمِيِّ قَالَ إِنِّي لَأُوقِدُ تَحْتَ الْقِدْرِ بِلُحُومِ الْحُمُرِ إِذْ

د حضرت زاهر اسلمي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د خره غوښه په خپل کټو کي پخول چي د

نَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَاكُمْ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ . رواه البخاري .

رسول الله ﷺ اعلان كونكي دا اعلان وكړ چي رسول الله ﷺ د خرو د غوښو خوړلو څخه منع فرمايلي ده . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۵۱، رقم: ۴۱۷۳.

## د پيريانو ډولونه

﴿۳۹۶۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ يَرْفَعُهُ اَلْجِنُّ ثَلاَثَةُ أَصْنَافٍ صِنْفٌ لَّهُمْ أَجْنِحَةٌ يَّطِيْرُوْنَ فِي الْهَوَاءِ وَصِنْفٌ حَيَّاتٌ وَّكِلاَبٌ وَّصِنْفٌ يَّحُلُّوْنَ وَيَظْعَنُوْنَ . رواه في شرح السنة .

د حضرت ابو ثعلبه خشني ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي : د پيريانو درې ډوله دي يو خو هغه دي چي د هغوی وزران وي او هغوی الوځي دويم ډول ماران دي او سپيان دي او دريم ډول هغه دي چي په كورو كي ديره كيږي هم او كوچ هم كوي . شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\۱۹۵، رقم: ۳۲۶۴.

=============

## بَابُ الْعَقِيْقَةِ (د عقيقې بيان)

عقيقه د عَقّ څخه مشتق دی ، د عق معنی په لغت كي د څېرلو ده او په اصطلاح كي عقيقه هغه وېښتانو ته وايي چي د پيدا سوي ماشوم په سر كي وي، دغه وېښتانو ته عقيقه ځكه ويل كيږي چي هغه وېښتان په اوومه ورځ خريل كيږي او په دغه مناسبت سره عقيقه هغه پسه ته هم وايي چي د ماشوم د سرخريلو پر وخت ذبح كيږي .

**د عقيقې شرعي حيثيت** : د عقيقې د شرعي حيثيت په اړه اختلافي قولونه دي، ائمه ثلاثه يعني امام احمد ، امام مالک او امام شافعي رحمة الله عليهم په نزد عقيقه سنت ده او د اكثرو حديثو څخه هم سنت كېدل ثابتيږي، د امام احمد ﷫ څخه يو روايت دا هم دی چي عقيقه واجب ده ، د امام اعظم ابو حنيفة ﷫ په اړه ويل كيږي چي د هغه په نزد عقيقه سنت نه ده بلكه مستحب ده چي له سنتو څخه ثابته ده ، مشهور حنفي امام احمد ﷫ په خپل كتاب مؤطا كي

دا ليکلي دي چي موږ ته دا خبره را رسېدلې ده چي عقيقه په اصل کي د جاهليت د زمانې يو رسم وو چي د اسلام په پېل کي رواج نه وو بيا قرباني د هر هغه ذبح وجوب منسوخ کړ چي د قرباني څخه مخکي رواج وو، او د رمضان روژو د هر هغه روژو وجوب منسوخ کړ چي تر دې مخکي رواج وو، د جنابت غسل د هر هغه غسل وجوب منسوخ کړ چي تر دې مخکي رواج وو، زکوة د هري هغه صدقې وجوب منسوخ کړ چي تر دې مخکي رواج وو.

**د عقيقې احکام** : کوم احکام او شرطونه چي د قرباني په اړه نقل سوي او معتبر دي هغه احکام او شرطونه د عقيقې په اړه هم منقول او معتبر دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د عقيقې کولو حکم

﴿۳۹۷۰﴾: عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ الضَّبِّيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ مَعَ الْغُلَامِ عَقِيقَةٌ فَأَهْرِيقُوا عَنْهُ دَمًا وَأَمِيطُوا عَنْهُ الْأَذٰى. رواه البخاري.

د حضرت سلمان بن عامر ضبي رضی الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل چي د هلک د پيدا کېدو سره عقيقه کول سنت ده د هغه د لوري خون (ذبح) ورکړئ او د هغه څخه ضرر من شی ليري کړئ. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\ ۵۹۰، رقم: ۵۴۷۱.

### تحنيک

﴿۳۹۷۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُؤْتَى بِالصِّبْيَانِ فَيُبَرِّكُ عَلَيْهِمْ وَيُحَنِّكُهُمْ. رواه مسلم.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ته به د دعاء لپاره کوچني راوستل سو، رسول الله ﷺ به د هغه لپاره د برکت دعاء کول او د هغه د تالو سره به يې ژول سوې خرما موښلول. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۲۳۷، رقم: ۱۰۱- ۲۸۶.

**تشریح**: (تحنیک) دې ته وايي چې خرما يا بل خوړشی په ژوولو سره د ماشوم پر تالو وموږل سي ، تحنیک یو سنت عمل دی او غوره داده چې تحنیک کونکی یو نېک او صالح سړی وي.

﴿۳۹۷۲﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ أَنَّهَا حَمَلَتْ بِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ بِمَكَّةَ

د حضرت اسماء بنت ابي بکر (رض) څخه روایت دئ چې په مکه کي عبدالله بن زبیر د هغې په

قَالَتْ فَوَلَدْتُ بِقُبَاءٍ ثُمَّ أَتَيْتُ بِهِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعْتُهُ

نس سو بیا هغه په قبا کي پیدا سو ، زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوم او هغه مي د

فِي حَجْرِهِ ثُمَّ دَعَا بِتَمْرَةٍ فَمَضَغَهَا ثُمَّ تَفَلَ فِي فِيهِ ثُمَّ حَنَّكَهُ بِالتَّمْرَةِ ثُمَّ دَعَا وَبَرَّكَ عَلَيْهِ وَكَانَ أَوَّلَ مَوْلُودٍ وُلِدَ فِي الْإِسْلَامِ . متفق علیه .

رسول الله ﷺ په غېږ مبارکه کي کښېښودئ ، رسول الله ﷺ خرما راوغوښتل هغه يې په خپلو غاښونو مبارک پسته کړل بیا يې د خپل خولې مبارکي ناړې د عبدالله په خوله کي واچولې او د خرما لعاب يې د هغه د تالو سره وموښلول بیا يې هغه لپاره دعاء وکړه او (بارک الله علیک) يې ورته وویل، عبدالله لومړی کوچنی وو چې د اسلام په عهد کي پیدا سوی دئ . بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۲۴۸\۱۷، رقم: ۳۹۰۹، ومسلم ۱۳\۱۶۹۱، رقم: ۲۶- ۲۱۴۶.

**تشریح**: قُباء د مدینې منورې څخه جنوب لویدیځ ته تقریبا پر یونیم میل فاصله باندي یوه سیمه ده ، له مکې څخه مدینې منورې د هجرت په سفر کي د رسول الله ﷺ د غه آخري پړاو وو چي رسول الله ﷺ مدینې ته له داخلېدو څخه مخکي تم سوی وو او درې یا څلور ورځي قیام يې کړی وو ، چیري چي رسول الله ﷺ قیام کړی وو هلته د یو مسجد بنیاد کښېښودل سو چي هغه ته مسجد قباء وايي، قباء که څه هم له مدینې څخه وتلی دی مگر تعلق يې یو ډول دی په هغه ځای کي ډېره شنکیا او د مختلفو ګلانو او میوو باغونه دي ، په قباء کي د اریس په نامه یو څاه دی دلته رسول الله ﷺ څو صحابه کرامو ته د جنت زیری ورکړی وو او په هغه ځای کي د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي د رسول الله ﷺ هغه ګوتمۍ لوېدلې وه چي په هغه سره به رسول الله ﷺ او د هغه څخه وروسته خلفاء راشدینو مهر لګوی ، ددغه څاه اوبه ډېري تروې وې ، ویل کیږي چي رسول الله ﷺ خپل ناړې مبارکي په دغه څاه کي واچولې نو د هغه اوبه خوږې

سوې مګر اوس دغه څاه وچ سوی دی.

عبدالله ابن زبیر رضی الله عنه لومړی کس وو ...الخ: مطلب دادی چې د هجرت څخه وروسته په مهاجرینو کې تر ټولو وړاندې ماشوم چې پیدا سو هغه عبدالله بن زبیر رضی الله عنه وو، د مهاجرینو قید ځکه لګول سوی دی چې د هجرت څخه وروسته د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه د زیږیدنې څخه مخکې هم په مدینه کې د مسلمانانو تر ټولو لومړی پیدا کیدونکې ماشوم نعمان ابن بشیر انصاري رضی الله عنه وو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د عقیقې د حیوانانو شمیر

﴿۳۹۷۳﴾: عَنْ أُمِّ كُرْزٍ قَالَتْ سَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَقِرُّوا

د حضرت ام کرز (رض) څخه روایت دئ چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چې مرغان د

الطَّيْرَ عَلَى مَكِنَاتِهَا قَالَتْ وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ عَنِ الْغُلَامِ شَاتَانِ وَعَنِ الْجَارِيَةِ

هغوی په ځالو کې په کراره پریږدئ (یعني د هغوی ځالي مه خرابوئ) او د رسول الله ﷺ څخه مي دا اوریدلي دي چې د هلک په عقیقه کې دوه پسونه او د انجلۍ په عقیقه کې یو پسه او د

شَاةٌ لَا يَضُرُّكُمْ أَذُكْرَانًا كُنَّ أَمْ إِنَاثًا . رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي من قوله يقول عن الغلام الى آخره و قال الترمذي هذا حديث صحيح .

دوی په نر او ښځې کې څه تاوان نه رسیږي یعني د نر او ښځې حیوان تخصیص نسته. ابوداؤد او ترمذي، او د نسائي په روایت کې د يقول عن الغلام څخه تر آخري پوري دئ. او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث صحیح دئ.

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\ ۲۵۷، رقم: ۲۸۳۵، والترمذي ۴\ ۸۲، رقم: ۱۵۱۶، والنسائي ۷\ ۱۶۵، رقم: ۴۲۱۷.

**تشریح**: (مَكِنات) د میم په زور او د کاف په زیر او زور دواړو سره ویل کیږي، د مشکوة په یوه نسخه کې د کاف په پیش سره هم نقل سوی دی او معنی یې د مکان ده.

د دغه ارشاد (مرغان د هغوی په ځالو کې پریږدئ) مطلب دادی چې دغه مرغان د هغوی په

ځالو کي پرېږدئ او په هواء کوئ يې مه، ځيني حضرات وايي چي مکنات په اصل کي د مکنة جمع ده او معنی يې د سمسارې د هګيو ده، مګر دلته دغه لفظ مطلق د هګيو په معنی کي استعمال سوی دی، په دغه صورت کي به د ارشاد مطلب دا وي که چيري مرغان پر هګيو ناست وي نو هغوی ته د الوتلو تکليف مه ورکوئ، يا د دغه ارشاد تعلق د تطير او بدفالي اخيستلو څخه منع ده لکه څرنګه چي په عربو کي دا قاعده وه چي کله به يو چا د يو کار کولو قصد کوی يا د سفر کولو اراده به يې کول نو د مرغانو ځالي ته به ورتلی او هغه به يې په هواء کولې، که چيري هغه مرغه به راسته خوا ته ولاړی نو مبارک به يې ګڼی او د نېک فال په اخيستني سره به يې هغه کار کوی يا به په سفر تلی، او که چيري هغه مرغه به چپه خوا ته ولاړی نو د هغه کار او سفر څخه به منع کېدی، دې ته تطير وايي، رسول الله ﷺ له دې څخه منع وفرمايل چي مرغه چيري وي هم هلته يې پرېږدئ او هغه مه په هواء کوئ او مه په هغه سره بد فالي کوئ.

## د عقيقې اهميت

﴿۳۹۷۴﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت حسن د سمرة (رض) څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

الْغُلَامُ مُرْتَهَنٌ بِعَقِيقَتِهِ تُذْبَحُ يَوْمَ السَّابِعِ وَ يُسَمّٰى وَيُحْلَقُ رَأْسُهُ. رواه

هلک د عقيقې په بدله کي ګرو دئ، په اوومه ورځ دي پسه ذبح کړي عقيقه دي وکړي د هغه نوم دي کښېږدي او د هغه سر دي وخريي.

احمد والترمذي و ابوداؤد والنسائي لكن في روايتهما رهينة بدل مرتهن و في رواية لاحمد و ابي داؤد يدمي مكان و يسمى و قال ابوداؤد يسمى اصح.

احمد، ترمذي او ابوداؤد او نسائي دواړو په روايت کي د مرتهن پر ځای د رهينة لفظ دئ او د احمد او ابوداؤد په روايت کي د يسمى پر ځای و يدعى دئ. ابوداؤد ويلي دي چي يسمى زيات صحيح دئ.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵ \ ۱۲، والترمذي ۴ \ ۸۵، رقم: ۱۵۲۲. وابوداود ۳ \ ۲۶۰، رقم: ۲۸۳۸، والنسائي ۷ \ ۱۶۶، رقم: ۴۲۲۰.

**تشريح**: څرګنده ده چي ماشوم مکلف نه وي که د هغه عقيقه ونه کړل سي نو د هغه د ماخوذ

کېدو سوال هم نه پیدا کیږي په دغه صورت کي دا سوال پیدا کیږي چي بیا د عقیقې په عوض کي د ماشوم د ګرو کېدو څه مطلب دی ، امام احمد رحمة الله علیه د دغه ارشاد مطلب دا بیان کړی دی چي د کوم ماشوم عقیقه ونسي او هغه په کم عمری کي مړ سي نو هغه د خپل مور او پلار د شفاعت څخه منع کیږي تر څو چي مور او پلار د هغه عقیقه ونه کړي او هغه به د هغوی په حق کي د شفاعت کولو اهل نه وي ، ځینو حضراتو دا معنی بیان کړې ده چي تر څو پوري مور او پلار د کوچني عقیقه ونه کړي نو هغه د سلامتۍ ، آفاتو او غوره روزني څخه منع کیږي او بیا چي د هغه کوم خراب نتائج رامنځته کیږي نو په حقیقت کي د مور او پلار د مؤاخذې سبب وي چي عقیقه هغوی پرې ایښې ده او ځیني حضرات وایي چي د ګرو کېدو څخه مراد دادی چي هغه ماشوم د خپلو وېښتانو په چټلۍ او تکلیف کي اخته وي ، لکه څرنګه چي په یو حدیث کي راغلي دي (فامیطوا عنه الاذی) یعني ماشوم د تکلیف څخه وساتئ، یعني د هغه وېښتان ، وینه وغیره پاک کړئ کله چي د ماشوم عقیقه وسي نو د هغه د سر وېښتان وغیره په پاکېدو سره هغه ته د تکلیف څخه خلاصون تر لاسه سي .

(یُدَمّٰی) د یاء په پېښ ، د دال په زور او د میم مفتوحه په شد سره دی، او د تدمیه څخه مشتق دی چي معنی یې په وینه لړلو ده او په یوه روایت کي (و یسمی) یعني د هغه نوم یې کښېښود پر ځای د یدمی دی مګر څرنګه چي ابوداؤد ویلي دي زیات صحیح دادی چي په دغه ځای کی باید و یسمی سي مګر قتاده رضي الله عنه د یدمی شرح دا کړې ده چي کله د عقیقه څاروی ذبح کړل سي نو د هغه لږ وېښتان دي واخلي او د هغه د غاړي مخته دي کښېښودل سي چي هغه وېښتان په وینه ولړل سي کوم چي د ذبح کولو په وخت کي د هغه د غاړي د رګونو څخه راوځي او بیا په وینه لړل سوي ویښتان دي د هغه ماشوم پر جامه باندي داسي کښېښودل سي چي وینه د هغه پر جامې د لیکي په صورت کي وبهیږي او ددې وروسته دي د ماشوم د سر په پرېولو سره هغه وخریل سي ، د سفر السعادت مصنف لیکلي دي چي دغه تدمیه دي نه ورکول کیږي ځکه چي په روایت کي د یدمی لفظ د راوي له خوا تحریف دی چي د رسول الله ﷺ د ارشاد سره هیڅ تعلق نه لري او نه له رسول الله ﷺ څخه تدمیه ثابته ده ، رسول الله ﷺ د امام حسن او امام حسین رضي الله عنهما عقیقه وکړه مګر دغه عمل (تدمیه) یې ونه کړه او دا یې هم لیکلي دي چي دغه عمل په اصل کي د جاهلیت د زمانې یو رواج وو چي منسوخ کړل سو لکه څرنګه چي ددغه باب په دریم فصل کي له راتلونکي حدیث څخه څرګندیږي .

علماو لیکلي دي چي د ابوداؤد په روایت کي د یدمی نقل کېدل د حدیث د راوي همام

وهم دی او قتاده رضي الله عنه د دغه لفظ په تشریح کي چي څه ليکلي دي هغه منسوخ دي ، خطابي رحمة الله عليه ويلي دي: رسول الله ﷺ د ماشوم د بدن څخه د اذيت او مرداری ليري کولو حکم وفرمايه نو د هغه سر په وينه سره په لړلو سره د نجس کولو حکم څرنګه کېدای سي بيا هم ځينو علماوو د ماشوم د سر په وينه سره لړلو پر ځای په خلوق او زعفران په ډول خوشبويي سره لړل نقل کړي دي

**د حضرت حسن رضي الله عنه عقيقه**

﴿۳۹۷۵﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ قَالَ عَقَّ

حضرت محمد بن علي بن حسين رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت کوي چي

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الْحَسَنِ بِشَاةٍ وَقَالَ يَا فَاطِمَةُ احْلِقِي

رسول الله ﷺ د حسن رضي الله عنه عقيقه په يوه پسه سره وکړه او وه يې فرمايل اې فاطمې ! دده سر

رَأْسَهُ وَتَصَدَّقِي بِزِنَةِ شَعْرِهِ فِضَّةً فَوَزَنَاهُ فَكَانَ وَزْنُهُ دِرْهَمًا أَوْ بَعْضَ دِرْهَمٍ .

وخريه او د وريښتانو په وزن سپين زر صدقه کړه ، موږ وريښتان وزن کړل نو هغه يو درهم يا تر درهم کم وه.

روا ه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب و اسناده ليس بمتصل لان محمد بن علي بن حسين يدرك على بن ابي طالب .

ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ. ددې حديث اسناد مسلسل او متصل نه دي ځکه چي محمد بن علي بن حسين حضرت علي ابن طالب نه وو ليدلی

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۸۴، رقم: ۱۵۱۹.

**تشريح**: له دغه حديث څخه څرګنده سوه چي د هلک په عقيقه کي يو پسه هم ذبح کيدای سي ، ابوداؤد هم د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه دا روايت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ د حضرت حسن او حضرت حسين رضي الله عنهما له خوا په عقيقه کي يو پسه ذبح کړ ، دغه حديث مخته را روان دی مګر نسائي د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه د دوو پسو روايت نقل کړی دی او حضرت بريده رضي الله عنه مطلق نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ د حضرت حسن او حضرت حسين رضي الله عنهما له خوا عقيقه وکړل .

د سفر السعادت مصنف ليکلي دي : که څه هم د يوه پسه روايت هم صحيح دی مګر زيات

ښينګ او صحيح هغه روايت دی چي په هغه کي رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي د هلک په عقيقه کي دوه پسونه دي ځکه چي دغه روايت د صحابه کرامو يوې ډلي نقل کړی دی او د هلک په عقيقه کي د دوو پسو ذبح کولو د ترجيح ورکولو يوه بله وجه داهم ده چي يو پسه ذبح کول د رسول الله ﷺ د عمل څخه ثابت دي او دوه پسونه ذبح کول د رسول الله ﷺ د ارشاد څخه ثابت دي او څرګنده ده چي کوم شی په قول سره ثابت وي هغه تر فعل زيات ښينګ او زيات مکمل ګڼل کيږي ځکه چي د فعل په باره کي دا هم کيدای سي چي هغه له يو خاص حالت سره متعلق وي او په قول کي عموميت او اکمليت وي، يوه خبره دا هم وه چي فعل خو محض پر جواز باندي دلالت کوي او د قول د جواز سره استحباب هم ثابتيږي، ترمذي رحمة الله عليه ويلي دي: په دې اړه چي د کومو صحابه کرامو روايتونه نقل سوي دي هغه دادي: حضرت علي، بي بي عائشه، بي بي ام کرز، حضرت بريده، حضرت سمره، حضرت ابوهريره، حضرت عبدالله، حضرت سليمان ابن عامر او حضرت ابن عباس رضي الله عنهم اجمعين.

ملا علي قاري رحمة الله عليه رحمة الله عليه دا ليکلي دي چي کيدای سي د هلک په اړه د استحباب کم از کم درجه يو پسه وي او کمال د استحباب دوه پسونه وي، په کوم حديث کي چي د يوه پسه ذکر دی د هغه په باره کي دا کيدای سي چي دغه حديث پر کمي درجې باندي د اکتفاء کولو د جواز ظاهرولو لپاره وي يا دا چي دغه حديث په اصل کي پر دې دلالت کوي چي دا لازمه او ضروري نه ده چي د هلک په عقيقه کي دي چي دوه پسوه يا دوې مېږي ذبح کېږي هغه دي په اوومه ورځ ذبح سي نو کيدای سي چي رسول الله ﷺ د حسن او حسين رضي الله عنهما له خوا يو يو پسه د هغوی د زېږېدني په ورځ ذبح کړی وي او دوهم پسه يې په اوومه ورځ ذبح کړی وي چي ددغه تاويل او وضاحت په صورت کي ددغه ټولو روايتو په مينځ کي مطابقت پيدا سي او هيڅ سوال پاته نسي، يا دا ويل کيږي چي رسول الله ﷺ د يوه پسه په ذريعه عقيقه کړې وي او بيا يې حضرت علي او بي بي فاطمې رضي الله عنهما ته حکم کړی وي چي دوهم پسه هغوی ذبح کړي.

د هغه سر وخريه: دغه حکم يا خو حقيقتا وو چي اې فاطمې رضي الله عنها! ته په خپل لاس سره د هغه سر وخريه، يا دا مطلب وو چي بل چا ته حکم وکړه چي دده سر وخريي، دغه امر يعني د رسول الله ﷺ له خوا د سر خريلو حکم د استحباب په توګه دی همدارنګه د ويښتانو د وزن کولو حکم هم د استحباب په توګه دی.

## د حسنينو عقيقه

﴿۳۹۷۶﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَقَّ عَنْ الْحَسَنِ وَالْحُسَيْنِ كَبْشًا كَبْشًا. رواه ابوداؤد و عند النسائي كبشين كبشين

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د حضرت حسن او حضرت حسين رضي الله عنهما عقيقه په يوه يوه پسه سره وكړه. ابوداؤد، او نسائي د دوو دوو پسونو روايت كړی دئ

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۲۶۱، رقم: ۲۸۴۱، والنسائي ۷\۱۶۶، رقم: ۴۲۱۹.

## د عقوق معنا

﴿۳۹۷۷﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ

عمرو بن شعيب رضی اللہ عنہ د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت كوي چي د رسول الله ﷺ څخه د عقيقې د مسئلې په اړه وپوښتل سوه،

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الْعَقِيقَةِ فَقَالَ لَا يُحِبُّ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ الْعُقُوقَ

رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالی عقوق نه خوښوي (د عاق معنا ده نافرماني كونكی) مطلب

وَكَأَنَّهُ كَرِهَ الِاسْمَ وَ قَالَ مَنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ فَأَحَبَّ أَنْ يَنْسُكَ عَنْهُ فَلْيَنْسُكْ عَنْ الْغُلَامِ شَاتَانِ وَعَنْ الْجَارِيَةِ شَاةٌ. رواه ابوداؤد والنسائي.

رسول الله ﷺ د عقوق لفظ بد ګڼئ بيا رسول الله ﷺ وفرمايل د چا چي كوچنی پيدا سي نو غوره داده چي د هغه د لوري ذبح وكړي يعني د هلک د لوري دوه پسونه او د انجلۍ د لوري يو پسه. ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۲۶۲، رقم: ۲۸۴۲، والنسائي ۷\۱۶۲، رقم: ۴۲۱۲.

**تشريح**: الله جل جلاله عقوق نه خوښوي: ددې مطلب دادی چي كوم څوک دا غواړي چي د هغه زوی لوی عمر ته په رسېدو سره د مور او پلار په حق كي عاق نه وي يعني د مور او پلار نافرماني كونكی نه وي نو هغوی بايد د هغه په ورکتوب كي د عقيقې څاروی ذبح كړي ځكه

چي د مور او پلار عقوق يعني د مور او پلار د خپل ماشوم عقيقې نه ذبح کولو سره يو ډول نافرماني کوي ، او دا په اصل کي د هلک د عقوق يعني د نافرمانۍ کېدو سبب کيږي او الله ﷻ عقوق په هيڅ حالت کي نه خوښوي، په دغه اعتبار سره د حديث الفاظ (من ولد له) يعني د چا چي زوی پيدا سي ...الخ، د تمهيد په توګه دي .

يعني رسول الله ﷺ دغه فعل د عقيقې په لفظ سره موسوم کول خوښ نه کړل ، د روايت دغه الفاظ دراوي دي ، رسول الله ﷺ عقيقه د عقيقه په لفظ سره خوښ نه کړل چي دا ګمان ونسي چي عقيقه د عقوق څخه مشتق ده چي د هغه معنی د مور او پلار څخه سرکښي او د هغوی نافرماني کول دي، او رسول الله ﷺ دا خوښ کړل چي هغه دي په غوره نامه لکه ذبيحه يا نسيکه سره ونومول سي (نهايه)، مګر توربشتي رحمه الله ويلي دي چي د رسول الله ﷺ له خوا ددې خبري نسبت چي رسول الله ﷺ عقيقه ويل ناخوښ کړل غير موزون دي حال دا چي رسول الله ﷺ په خپل څومره ارشاداتو کي د عقيقې لفظ استعمال کړی دی که چيري د رسول الله ﷺ په نزد دغه لفظ ناخوښ وای نو د هغه ذکر به يې نه فرمايلای مګر په دې اړه که چيري دا وويل سي نو زياته غوره به وي چي دا احتمال دی چي پوښتنه کونکي دا ګمان کړی وي چي په ماده اشتقاق کي د عقيقې او عقوق مشترک کېدل ددې خبري متقاضي دی چي د حکم په اعتبار د عقيقې زيات ارزښت نه وي مګر رسول الله ﷺ د خپل جواب په ذريعه دا څرګنده کړه چي امر واقعې ددې خلاف دی ، شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله د نهايه د ذکر سوي وضاحت له نقل کولو څخه وروسته ليکلي دي چي کوم حديثونه د رسول الله ﷺ څخه د عقيقې په لفظ سره ذکر کول منقول دي نو هغه له دغه څخه کراهت څخه مخکي دي .

## د کوچني په غوږ کي اذان سنت دی

﴿۳۹۷۸﴾: وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَذَّنَ فِي

د حضرت ابو رافع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما وليدل کله چي حسن بن علي رضي الله عنه د بي بي فاطمې رضي الله عنها څخه وزېږېدی

أُذُنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ حِينَ وَلَدَتْهُ فَاطِمَةُ بِالصَّلَاةِ . رواه الترمذي و ابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

نو رسول الله ﷺ د لمانځه په ډول د هغه په غوږ کي آذان وکړ . ترمذي او ابوداؤد .ترمذي ويلي

دي دا حديث حسن صحيح دئ

**تخریج**: سنن الترمذي ۴ \ ۸۲، رقم: ۱۵۱۴، وابوداود ۵ \ ۳۳۳، رقم: ۵۱۰۵.

**تشریح** له دغه حديث څخه څرګنده سوه چي د ماشوم د زېږېدني څخه وروسته د هغه په غوږ کي اذان کول سنت دي ، مسند ابو ليلى په موصلي کي له حضرت حسين رضي الله عنه څخه په مرفوع طريقه نقل کړي دي چي د چا ماشوم پيدا سي او د هغه په راسته غوږ کي اذان وکړي او په چپه غوږ کي يې اقامت وکړي نو هغه ته به د ام الصبيان څخه تاوان نه رسيږي او د امام نووي په کتاب الروضه کي ليکلي دي چي د ماشوم په غوږ کي دغه الفاظ ويل هم مستحب دي : (اني اعيذها بک و ذريتها من الشيطان الرجيم) .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د عقيقې ورځ

﴿۳۹۷۹﴾ : عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ كُنَّا فِي الْجَاهِلِيَّةِ إِذَا وُلِدَ لِأَحَدِنَا غُلَامٌ ذَبَحَ شَاةً

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د جاهليت په ورځو کي کله چي به په موږ کي د يو چا کوچنی پيدا سو نو يو پسه به يې ذبح کوئ

وَلَطَخَ رَأْسَهُ بِدَمِهَا فَلَمَّا جَاءَ اللَّهُ بِالْإِسْلَامِ كُنَّا نَذْبَحُ شَاةً يوم السابع

او د هغه په وينه به يې د کوچني سر لړی ، بيا چي اسلام راغلی نو موږ به اوومه ورځ پسه ذبح کوئ

وَنَحْلِقُ رَأْسَهُ وَنُلَطِّخُهُ بِزَعْفَرَانٍ . رواه ابوداؤد وَ زَادَ رزين و نُسَمِّيهِ .

د کوچنی سر به مو خروئ او سر به مو په ميده زعفران ورلړی . ابو داؤد ، رزين په خپل روايت کي دا الفاظ زيات کړي دي او موږ به د هغه نوم اېښودی .

**تخریج**: سنن ابي داود ۳ \ ۲۶۳، رقم: ۲۸۴۳.

**تشریح** څرګنده دي وي چي د اکثرو احاديثو په وجه د ماشوم عقيقه د هغه د زېږېدني په اوومه ورځ بايد وسي ، حضرت امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما فرمايي که چيري په اوومه ورځ عقيقه کول ممکن نه وي نو بيا په څوارلسمه ورځ دي وکړل سي او که چيري په څوارلسمه ورځ هم ممکن نه وي نو په يوويشتمه ورځ او که په يوويشتمه ورځ هم ممکن نه وي نو بيا په اته ويشتمه ورځ . بيا په پنځه دېرشمه ورځ على هذا القياس .

په يوه روايت کي نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ خپله عقيقه د نبوت څخه وروسته کړې ده ځکه چي رسول الله ﷺ ته دا علم نه وو چي د زېږېدني په ورځ د رسول الله ﷺ عقيقه سوې وه که يا، مګر د دغه روايت اسناد ضعيف دي، دوهم د معنی په توګه هم دغه روايت د ليري والي څخه خالي نه دی.

د امام مالک رحمه الله په نزد د عقيقې د هډوکي ماتول صحيح نه دي بلکه د غوښو په را ايستلو سره دي هډوکي دي ښخ کړل سي، د امام شافعي رحمه الله په نزد د هډوکي ماتول صحيح دي او د شوافع په کتابو کي ليکلي دي که چيري د عقيقې غوښه په پخولو سره صدقه کړل سي نو غوره ده او که د حلاوت يعني د هلک د ښه اخلاقو او کردار لپاره د عقيقې غوښه په يو خواږه شي کي پخه کړل سي او صدقه کړل سي نو زياته غوره ده.

===========

بِسمِ اللہ الرَّحمٰنِ الرَّحِيم

# كِتَابُ الْاَطْعِمَةِ

## (د خوراکونو بیان)

په کتاب الاطعمة کي چي کوم بابونه راځي او په هغو کي چي کوم حديثونه نقل کيږي له هغو څخه دا څرګنديږي چي رسول الله ﷺ کوم شيان خوړلي دي او کوم شيان يې خوړلي نه دي، او د خوراک او څښاک کوم کوم ادبونه او قواعد دي هغه به هم له دغه حديثو څخه څرګند سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د خوراک درې ادبونه

﴿۲۹۸۰﴾: عَنْ عُمَرَ بْنَ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ كُنْتُ غُلَامًا فِي حَجْرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت عمر بن ابي سلمة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه کوچني وم او د رسول الله ﷺ په روزنه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَتْ يَدِي تَطِيشُ فِي الصَّحْفَةِ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِّ اللّٰهَ وَكُلْ بِيَمِينِكَ وَكُلْ مِمَّا يَلِيكَ. متفق عليه

کي وم زما لاس به په کاسه کي آخوا ديخوا کيدئ، رسول الله ﷺ (يوه ورځ) ما ته وفرمايل بسم الله وايه، په راسته لاس سره خوره او د خپل مخ څخه خوراک کوه. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۲۱، رقم: ۵۳۷۶، رقم: ۱۰۸- ۲۰۲۲.

**د لغاتو حل**: تطيش: ای تدور (راڅرخي)

**تشريح**: په دغه حديث کي د خوراک درې بنيادي ادبو ته توجه سوې ده تر ټولو لومړی ادب خو دادی چي د خوراک پيل بايد په بسم الله سره وسي، دوهم ادب دادی چي په راسته لاس بايد خوراک وسي او دريم ادب دادی چي د خوراک په لوښي کي د خپل مخ څخه بايد خوراک وکړل سي، د جمهورو علماوو رجحان دې خوا ته دی او په دغه حديث کي د ذکر سوو دريو شيانو چي کوم حکم سوی دی هغه د استحباب په توګه دي همدارنګه په بل روايت کي د خوراک څخه وروسته د الله ﷻ د حمد او شکر چي کوم حکم ورکړل سوی دی هغه هم د استحباب په توګه دی

مگر ځیني حضرات وایي چي په راسته لاس د خوړلو حکم د وجوب په توګه دی، د جمهورو علماوو په نزد دا مسئله ده که چیري پر یوه دسترخوان باندي ډېر کسان د خوراک لپاره کښیني نو ټول خلک دي بسم الله ووایي حال دا چي د ځینو علماوو په نزد چي په هغوی کي امام شافعي رحمة الله علیه هم شامل دی، دا وایي چي محض د یوه سړي بسم الله ویل د ټولو لپاره کافي دي، د اوبو یا دواء څښلو پر وخت هم د بسم الله ویلو هغه حکم دی کوم چي د خوراک په پیل کي د بسم الله ویلو حکم دی.

## په بسم الله سره دخوراک پیل کولو اهمیت

﴿۳۹۸۱﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ يَسْتَحِلُّ الطَّعَامَ أَنْ لَا يُذْكَرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ. رواه مسلم

د حضرت حذیفة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: که پر خوراک باندي د الله نوم وانه خیستل نو شیطان د ځان لپاره هغه خوراک حلال ګڼي. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۵۹۷. رقم: ۱۰۲- ۲۰۱۷.

**تشریح** حلال ګڼي: مطلب دادی چي شیطان د هغه پر خوړلو باندي قادر کیږي یعني د خوړونکي سره خوراک کوي، دا مطلب په هغه صورت کي دی کله چي حدیث د هغه پر ظاهري معنی محمول کړل سي او ځینو حضراتو دا تاویل کړی دی چي کوم خوراک په بسم الله ویلو سره ونه خوړل سي هغه داسي دی لکه شیطان چي خوړلی وي یا دا مراد دی چي هغه خوراک د الله جل جلاله په نزد د ناخوښۍ په ځایکي مصرف کول دي.

﴿۳۹۸۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الرَّجُلُ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هر کله چي څوک خپل په کور

بَيْتَهُ فَذَكَرَ اللّٰهَ عِنْدَ دُخُولِهِ وَعِنْدَ طَعَامِهِ قَالَ الشَّيْطَانُ لَا مَبِيتَ لَكُمْ وَلَا

کي داخل سي او په کور کي په قدم ایښودولو سره الله جل جلاله یاد کړي او د خوراک پر وخت هم نو په داسي کولو سره شیطان خپلو ملګرو ته وایي ځئ په دې کور کي نه خو تم ځای سته او نه

عَشَاءَ وَإِذَا دَخَلَ فَلَمْ يَذْكُرِ اللّٰهَ عِنْدَ دُخُولِهِ قَالَ الشَّيْطَانُ أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ

خوراک، او څوک چي داسي په کور کي داخل سي چي الله ﷻ یاد نه کړي نو شیطان وایي تم ځای خو مو تر لاسه کړ

وَإِذَا لَمْ يَذْكُرِ اللَّهَ عِنْدَ طَعَامِهِ قَالَ أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ وَالْعَشَاءَ . رواه مسلم

او کله چي د خوراک په وخت کي د الله ﷻ نوم وانخلي نو شیطان وایي تم ځای او خوراک دواړه تر لاسه سول. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۳\۱۵۹۸، رقم: ۱۰۳- ۲۰۱۸.

## په راسته لاس خوراک

﴿۳۹۸۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَأْكُلْ بِيَمِينِهِ وَإِذَا شَرِبَ فَلْيَشْرَبْ بِيَمِينِهِ . رواه مسلم .

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي په تاسو کي یو کس خوراک کوي نو په راسته لاس دي خوراک کوي او هر کله چي څښل کوي نو په راسته لاس دي څښل کوي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۳\۱۵۹۸، رقم: ۱۰۳- ۲۰۱۸.

**تشریح**: په دغه حدیث کي چي کوم حکم ورکړل سوی دی هغه په څرګنده د وجوب لپاره دی لکه څرنګه چي د ځینو علماوو مذهب دی، ددې تائید د صحیح مسلم د هغه روایت څخه هم کیږي چي مسلمه ابن اکوع رضی الله عنه بیان کړی دی چي رسول الله ﷺ یو سړی په چپه لاس خوراک کولو سره ولیدی نو هغه ته یې وفرمایل: په راسته لاس خوراک کوه، هغه سړي وویل زه په راسته لاس د خوړلو توان نه لرم، د راوي بیان دی چي د هغه سړي راسته لاس صحیح وو هغه محض د تکبر په وجه دغه الفاظ ویلي وه، رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل: الله ﷻ دي وکړي چي تا ته په راسته لاس د خوړلو توان په برخه نسي، نو ددې څخه وروسته هغه سړي هیڅکله خپل راسته لاس خولې ته پورته نه کړای سو، همدارنګه طبراني دغه روایت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ یوه ورځ سلبیه اسلمیه په چپه لاس خوراک کولو سره ولیدی نو د هغه لپاره یې ښېرا وکړه چي د هغه نتیجه دا سوه چي هغه په طاعون کي اخته کېدو سره مړ سو، د جمهورو علماوو په نزد په راسته لاس د خوړلو حکم د وجوب په توګه نه دی بلکه د استحباب په توګه دی

هغوی دغه روایتونه پر زجر او توبیخ او پر شرعي مصالحو باندي محمول کړی دی .

## په چپه لاس د خوراک ممانعت

﴿۳۹۸۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَأْكُلَنَّ أَحَدٌ مِنْكُمْ بِشِمَالِهِ وَلَا يَشْرَبَنَّ بِهَا فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَأْكُلُ بِشِمَالِهِ وَيَشْرَبُ بِهَا . رواه مسلم .

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هیڅوک دي په چپه لاس سره یو شی نه خوري او نه څښي ځکه چي شیطان په چپه لاس سره خوري او څښي . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۳ /۱۵۹۸، رقم: ۱۰۶- ۲۰۲۰.

**تشریح**: تور پشتي رحمة الله علیه په چپه لاس سره د خوړلو او څښلو دا مطلب بیان کړی دی چي کوم کسان د شیطان تر اثر لاندي او د هغوی تابعدار وي هغه دغه خلګ په چپه لاس خوړلو او څښلو باندي اماده کوي ، طیبي رحمة الله علیه ویلي دي چي دغه حدیث پر خپل ظاهري معنی باندي محمول دی یعني شیطان په چپه لاس سره خوراک او څښاک کوي .

حسن ابن سفیان رحمة الله علیه په خپل مسند کي د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه په حسن سند دا روایت نقل کړی دی چي کله په تاسو کي یو څوک خوراک کوي نو هغه باید په راسته لاس سره خوراک وکړي او په راسته لاس څښاک وکړي او که یو چا ته یو شی ورکوي یا له یو چا څخه یو شی اخلي نو په راسته لاس دي یې اخلي او په راسته دي یې ورکوي ځکه چي شیطان په چپه لاس سره خوراک او څښاک کوي او په چپه لاس ورکول او اخیستل کوي .

## په درو ګوتو خوراک سنت دی

﴿۳۹۸۵﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ بِثَلٰثَةِ أَصَابِعَ وَيَلْعَقُ يَدَهُ قَبْلَ أَنْ يَمْسَحَهَا . رواه مسلم .

د حضرت کعب بن مالک رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به په درو ګوتو سره خوراک کوئ (یعني بټي ګوتي سره، د شهادت په ګوته سره او په منځنۍ ګوته سره) او د لاس وچولو یا پریوللو څخه تر مخه به یې لاس څټئ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۳\۱۶۰۵، رقم: ۱۳۱- ۲۰۳۲.

**تشریح**: نووي رحمه الله ویلي دي: په درو ګوتو خوراک کول سنت دي، نو ددغه درو ګوتو سره باید څلورمه او پنځمه ګوته یو ځای نه کړل سي که څه هم د څلورمي او پنځمي ګوتي یو ځای کول د ضرورت په وجه صحیح دي، د لاس څټلو څخه مراد دادی چي په کومو ګوتو یې خوراک کړی وي هغه باید و څټي، لومړی به یې د مینځ ګوته څټل بیا له هغه سره نژدې ګوته او بیا به یې بټه ګوته څټل.

طبراني رحمه الله د عامر بن ربیعه څخه داسي نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ به په درو ګوتو سره خوراک کوی او د هغوی د مرستي لپاره به یې څلورمه ګوته هم یو ځای کول، په یوه مرسل حدیث کي داسي بیان سوی دی چي رسول الله ﷺ په پنځو ګوتو سره خوراک کوی، دغه روایت یا خو پر نري شي خوړلو باندي محمول دي او یا دا چي رسول الله ﷺ د بیان جواز لپاره کله کله داسي کول مګر په زیاتو وختونو کي یې په درو ګوتو سره خوراک کوی.

په ځینو روایتو کي د (یمسحها) څخه وروسته د (بشئ) لفظ هم نقل سوی دی او دغه الفاظ هم نقل سوي دي (ثم یغسلها) یعني اوس به یې څټل او بیا به یې پرېولل.

﴿۲۹۸۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِلَعْقِ الْأَصَابِعِ وَالصَّحْفَةِ وَقَالَ إِنَّكُمْ لَا تَدْرُونَ فِي أَيِّهِ الْبَرَكَةُ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ د ګوتو او کاسې څټلو حکم وکړ او وه یې فرمایل تاسو نه پوهیږئ چي په کومي ګوتي یا ګولۍ کي برکت دئ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۶۰۶، رقم: ۱۳۳- ۲۰۳۳.

**تشریح**: په (والصحفة) کي د واو حرف د مطلق جمع لپاره دی نو تر هر څه وړاندي دي لوښي وغیره پاک کړل سي او بیا دي ګوتي وڅټي، لفظ د (اية) په تاء تانیث سره نقل سوی دی ځکه نو ژباړه یې په ګوتو یا ګولۍ سره سوې ده مګر په ځینو نسخو کي دغه لفظ په ه یعني د مذکر په ضمیر سره نقل سوی دی په دغه صورت کي به معنی دا وي چي تاسو ته څرګنده نه ده چي په کوم خوراک کي برکت دی (ایا په هغه خوراک کي چي خوړلی دی یا په هغه خوراک کي چي وڅټل سي)، ددې تائید د راتلونکي حدیث ددغه الفاظو څخه هم کیږي چي (فانه لا یدري في اي طعام تکون البرکة)، له دې څخه څرګنده سوه چي په اصل کي سنت ګوتي څټل دي او هغه شی

پاكول دي چي په ګوتو سره لګېدلي دي نه دا چي محض ګوتي د مبالغې لپاره په خوله كي داخلول.

﴿۳۹۸۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَمْسَحْ يَدَهُ حَتَّى يَلْعَقَهَا أَوْ يُلْعِقَهَا. متفق عليه.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي څوک ډوډۍ خوري نو د لاسونو وچولو يا پريوللو څخه ترمخه دي يې وڅټي يا په بل چا دي يې و څټي، بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۷۷، رقم: ۵۴۵۶، ومسلم ۳\۱۶۰۵، رقم: ۱۲۹-۲۰۳۱.

**تشريح**: په بل چا يې و نه څټي: د دې مطلب دا دی كه چيري ګوتي په خپله نه څټي نو په هغه چا دي يې وڅټي چي له هغه څخه كراهت نه محسوسوي لكه ښځه، ماشوم، مينځه، خادم، غلام او داسي نور، ځكه هغوی ته د خپل طبعي تعلق او ميني په وجه نه يوازي دا چي هغه ته څه كراهت نه محسوس كيږي بلكه يو ډول لذت محسوس كيږي په دغه حكم كي شاګرد او هغه خلک هم شامل دي چي داسي كول د سعادت تر لاسه كېدل ګڼي.

### كه ګوله ايله سي نو بايد پاكه يې كړي او وه خوري

﴿۳۹۸۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ الشَّيْطَانَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي شيطان

يَحْضُرُ أَحَدَكُمْ عِنْدَ كُلِّ شَيْءٍ مِنْ شَأْنِهِ حَتَّى يَحْضُرَهُ عِنْدَ طَعَامِهِ فَإِذَا

ستاسو په هر كار كي ستاسو سره موجود وي تر دې چي د خوراک كولو په وخت كي هم هر كله

سَقَطَتْ مِنْ أَحَدِكُمُ اللُّقْمَةُ فَلْيُمِطْ مَا كَانَ بِهَا مِنْ أَذًى ثُمَّ لِيَأْكُلْهَا وَلَا

چي په تاسو كي د يو چا څخه ګوله ايله سي نو هغه ته پكار ده چي هغه پورته كړي، پاكه يې كړي او وه يې خوري او

يَدَعْهَا لِلشَّيْطَانِ فَإِذَا فَرَغَ فَلْيَلْعَقْ أَصَابِعَهُ فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي فِي أَيِّ طَعَامِهِ تَكُونُ الْبَرَكَةُ. رواه مسلم.

د شيطان لپاره هغه پرې نه ږدي او هر کله چي خوراک کوي نو ګوتي دي و څټي ځکه چي هغه ته نه ده معلومه چي د خوراک په کومه برخه کي برکت دئ. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۰۷، رقم: ۱۳۵- ۲۰۳۳.

**تشريح**: هغه دي په پاکولو سره وخوري، مګر که چيري پر هغه ګوله باندي نجاست او مرداري لګېدلې وي نو هغه دي په پرېوللو سره وخوري، په شرط ددې چي د هغه پرېولل ممکن وي او طبيعت هم هغه ته اماده وي او که چيري دا ممکن نه وي نو بيا دي هغه سپي، پيشي يا بل حيوان ته واچوي او هغه دي د شيطان لپاره نه پرېږدي، دغه حديث يا خو پر خپل حقيقت محمول دی چي هغه يې په حقيقت کي خوري او يا کنايه ده د هغه ګولې د ضائع کېدو او د هغه سپک ګڼلو، په دغه حديث کي دې ته اشاره ده چي داسي کول يعني هغه لوېدلې ګوله سپکه ګڼلو سره نه پورته دا په اصل کي د متکبرو خلکو مشابهت او دهغوی عادت اختيارول دي ځکه چي متکبر خلک لوېدلې ګوله پورته پېغور ګڼي او دا ډول شيان يعني د ګولې ضائع کول او د هغه سپک ګڼل او د متکبرينو خلکو عادت اختيارول د شيطاني کارو څخه دي.

او کله چي خوراک وکړي ... الخ: دا که څه هم يو بېل حکم دی مګر په حقيقت کي د لومړي حکم څخه د حاصلېدونکي مفهوم، تکبر پرېښودولو او تواضع اختيارولو د تاکيد لپاره دی چي د خوراک کولو څخه وروسته د لاس پرېوللو څخه مخکي دي ګوتي وڅټل سي چي د الله ﷻ د رزق په خپل کامل احتياج او تواضع سره اظهار وي او د تکبر هيڅ شبه پکښي پاته نسي.

## په تکيه کولو سره خوراک منع دی

﴿۳۹۸۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا اٰكُلُ مُتَّكِئًا. رواه البخاري.

د حضرت ابو حجيفهٔ رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي زه په تکيه لګولو سره خوراک نه کوم. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\ ۵۴۰، رقم: ۵۳۹۸.

**تشريح**: د سفر السعادت مصنف ليکلي دي چي د خوراک کولو په وخت کي د ټنګ وهلو درې صورتونه دي، يو دا چي اړخ پر مخکه ولګول سي، دوهم دا چي چارزانو کښېني، او دريم دا چي په يوه لاس تکيه کولو سره کښېني او په بل لاس خوراک کوي، دغه درې سره صورتونه بد

دي او ځينو حضراتو څلورم صورت دا بيان کړی دی که چيري دېوال، بالښت يا بل شي ته په تکيه کولو سره کښېني ، سنت طريقه داده چي د خوراک کولو په وخت کي يوازي خوراک ته په کښېنته کېدو او متوجه کېدو سره کښيني، او اکثرو علماوو د څنګ وهلو دا وضاحت کړی دی چي د دواړو اړخونو څخه د يوه په کښېنته کېدو سره او پر هغه تکيه کولو سره کښېني ، د خوړلو په وخت کي د داسي ناستي صورت ځکه غير مسنون دی چي په داسي حالت کي خوړل تاوان رسوي په دې توګه چي په بدن کي خپل ځای ته سم خوراک نه رسيږي او پر طبيعت باندي په بوج کېدو سره د بد هضمی شکايت پيدا کيږي .

سيوطي رحمة الله عليه په عمل اليوم والليلة کي ليکلي دي چي په تکيه کولو سره پړمخي يا په ولاړه دي خوراک نه کوي بلکه په داسي ناسته دي خوراک کوي چي يا دوه زانو وي يا د اقعاء په صورت کي وي يعني دواړه کوناټي دي ولګول سي او دواړه ورنونه دي ودرول سي او پر چپه زنګون دي کښېني .

## د نبوي خوراک طريقه

﴿٣٩٩٠﴾: وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ مَا أَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

حضرت قتادة رضي الله عنه د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ هيڅکله پر

وَسَلَّمَ عَلَى خِوَانٍ وَلَا فِي سُكُرُجَةٍ وَلَا خُبِزَ لَهُ مُرَقَّقٌ قِيلَ لِقَتَادَةَ عَلَامَا يَأْكُلُونَ قَالَ عَلَى السُّفَرِ . رواه البخاري .

خوانچه (مجمه) باندي ډوډی نه ده خوړلې او نه يې په رکيبۍ کي او نه د رسول الله ﷺ لپاره نرمه ډوډۍ پخه سوې ده . د قتاده څخه پوښتنه وسول نو بيا پر څه شي باندي رسول الله ﷺ ډوډۍ خوړل ، هغه وويل پر دسترخوان باندي . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٩\ ٥٣٠، رقم: ٥٣٨٦.

**د لغاتو حل**: سکرجه: اناء صغير (يو کوچنی لوښی)

**تشريح**: د خِوان يا خُوان معنی د دسترخوان ده، مګر دلته له خوان څخه چوکۍ يا مېز دي چي پر هغه باندي د خوراک په اېښودو سره وخوړل سي چي د خوراک په وخت کي د سرکښته کېدل نه وي ، دا د شتمنو ، عيش پسندو ، مستکبرينو او د غير اسلامي تهذيب والا خلکو طريقه ده چي هغوی پر مېز يا چوکۍ باندي د خوراک په اېښودو خوړل کوي ځکه رسول الله ﷺ په دغه

طریقه سره خوراک کول خوښ نه کړل.

سکرُجة یا ځرنګه چي ځینو علماوو سکرِجة ته زیات فصیح ویلي دي، ددې معنی د کوچنۍ کاسې ده چي په هغه کي پر دسترخوان باندي اچار، مربا یا نور شیان اېښودل کېږي ددې لپاره چي د ډوډۍ سره وخوړل سي چي لوږه زیاته سي او خوراک ته زیات شوق پیدا سي او څه چي وخوړل سي هغه هضم سي نو په دغه حدیث کي ښودل سوي دي چي د رسول الله ﷺ پر دسترخوان باندي هیڅکله کوچنۍ کاسه نه وه لکه ځرنګه چي د شتمنو او عیاشو خلکو پر دسترخوانانو باندي د داسي کاسو اېښودل رواج دي.

او نه رسول الله ﷺ ته ځپتي پاخه سوي دي، دد ې مطلب دادی چي نه خو په خاصه توګه رسول الله ﷺ ته ځپتي پاخه سوي دي او نه یې خوړلي دي که څه هم د رسول الله ﷺ لپاره پاخه سوي وي یا د بل چا لپاره پاخه سوي وي لکه ځرنګه چي په بل حدیث کي بیان سوي دي چي رسول الله ﷺ هیڅکله ځپتي خوړلي نه دي.

شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله علیه په خپل کتاب کي چي کوم نقل کړی دی د هغه څخه په ظاهره دا معلومېږي چي په خاصه توګه د رسول الله ﷺ ځپتي پاخه سوي نه دي مګر یو سړي د ځان لپاره پاخه کړه او بیا یې د رسول الله ﷺ مخته راوړل نو رسول الله ﷺ به هغه خوړل او له خوراک څخه به یې انکار نه کوی مګر دغه قول د راتلونکي حدیث خلاف دی چي حضرت انس رضي الله عنه بیان کړی دی، په حدیث کي د ځپتي څخه پرته د دوو شیانو نفي بیان سوې ده یو پر دسترخوان باندي د خوراک کولو او دوهم په کوچنۍ کاسه کي د خوراک کولو څخه، په دغه دواړو شیانو کي د کوچنۍ کاسې د نفي د بیان پر وخت د پوښتنه کولو موقع نه وه چي بیا د خوراک سره د یو شي په اېښودو سره یې خوړی، چي ایا د دسترخوان څخه پرته بل شی وو چي پر هغه یې خوراک اېښودی یا هیڅ شی نه وو، نو دا پوښتنه وکړل سول او قتاده رضي الله عنه جواب ورکړ چي پر دسترخوان باندي، نو سنت طریقه داده چي خوړونکی چیري کښېني هلته دي د دسترخوان په هوارولو سره پر هغه خوراک کښېږدي او وه دي یې خوري.

هغوی پر څه شي خوراک کوئ؟ د پوښتنه کونکي مراد د صحابه کرامو په اړه معلومات کول وو ځکه چي صحابه کرامو په اصل کي د رسول الله ﷺ د سنتو پیروان وه او د رسول الله ﷺ پر طریقه باندي عمل کونکي وه ځکه د صحابه کرمو په اړه پوښتنه کول په حقیقت کي د رسول الله ﷺ په اړه پوښتنه کول وه، یا دا هم صحیح ده چي د یاکلون ضمیر رسول الله ﷺ او صحابه کرامو دواړو ته راجع کړل سي، د روایت د آخري برخي څخه ثابته سوه چي پر دسترخوان ډوډۍ

اېښودل او خوړل سنت دي او اسلامي تهذيب دی او پر خوان يعني مېز او چوکۍ باندي د ډوډۍ اېښودل او خوړل بدعت او محض د تکلفاتو څخه دی او که چيري پر مېز باندي د خوراک په صورت کي د تکبر او لويي نيت نه وي نو بيا د مجبورۍ په حالت کي پر مېز او چوکۍ باندي ډوډۍ خوړل به جائز وي .

## د نبي کريم ﷺ خوراک

﴿۳۹۹۱﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ مَا أَعْلَمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَغِيفًا مُرَقَّقًا حَتَّى لَحِقَ بِاللّٰهِ وَلَا رَأَى شَاةً سَمِيطًا بِعَيْنِهِ قَطُّ . رواه البخاري .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما ته نه ده معلومه چي رسول الله ﷺ د خپل وفات پوري ښپتي (نرمه ډوډۍ) ليدلې وي او نه رسول الله ﷺ دم پخته پسه ليدلی دئ چي د هغه د سترګو په مخکي دم پخته کړل سوی وي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹ ۵۳۰۱، رقم: ۵۳۸۵.

**د لغاتو حل**: سميطا : اى مشويا (سور کړل سوی).

**تشريح**: سميط هغه پسه يا وري ته وايي چي هغه په الويلو سره د پوست سره سور يا پوخ سوی وي، دا په هغه زمانه کي د اهل چين خاص خوراک وو چي په خپل زمانه کي ډېر عياش او پر مخ تللي وه ځکه نو په خاصه توګه ددې يادونه سوې ده ، لفظ د بعينه د تاکېد په توګه استعمال سوی دی لکه څرنګه چي ويل کيږي (كتب بيده) يعني هغه په خپل لاس سره ولېکل يا (مشى برجله) هغه د خپلو پښو په ذريعه روان سو .

## د نبي کريم ﷺ ژوند

﴿۳۹۹۲﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ مَا رَأَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د کله څخه رسول الله ﷺ ته نبوت ورکړل سوی

النَّقِيَّ مِنْ حِينَ ابْتَعَثَهُ اللّٰهُ حَتَّى قَبَضَهُ اللّٰهُ قَالَ مَا رَأَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

دئ د هغه وخت څخه تر آخر عمر پوري رسول الله ﷺ هيڅکله ميده نه ده ليدلي (يعني د ميدې څخه تيار کړل سوی شی يې نه دی خوړلي او نه يې د نبوت څخه تر وفات پوري

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْخُلًا مِنْ حِينَ ابْتَعَثَهُ اللَّهُ حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ قِيل كَيْفَ كُنْتُمْ

غلبيل ليدلى دئ (يعني بې چڼه اوړه يې خوړل) د سهل بن سعد رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول چي تاسو به پرته د چڼ کولو څخه د

تَأْكُلُونَ الشَّعِيرَ غَيْرَ مَنْخُولٍ قَالَ كُنَّا نَطْحَنُهُ وَنَنْفُخُهُ فَيَطِيرُ مَا طَارَ وَمَا بَقِيَ ثَرَّيْنَاهُ فَأَكَلْنَاهُ. رواه البخاري

اوربشو ډوډۍ څنګه خوړل هغه وويل موږ به اوربشي ټکولې او په پوه کولو سره به مو ځيني بوس په هوا کول، بيا به مو اوړه واغږل او د هغه ډوډۍ به مو پخول او خوړل. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۴۹، رقم: ۵۴۱۳.

**د لغاتو حل**: النقي: اى الخبز اخالي من النخالة.

**تشريح**: د څه وخت څخه چي الله جل جلاله هغه رسول کړ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه وخت څخه ...الخ: عسقلاني رحمه الله وايي: زما ګمان دی چي حضرت سهل رحمه الله ددغه الفاظو په ذريعه د هغه زمانې د يادوني څخه پرهېز کړی وي چي کومه مرتبه پر رسالت باندي په فائز کېدو څخه مخکي تېره سوې ده او ددغه پرهېز سبب دادی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم دوه واره د شام تجارتي سفر اختيار کړی وو هغه د پيغمبرۍ څخه مخکي واقعه ده او د هغه سفر په دوران کي بحيره راهب (عيسائي مشر) د رسول الله صلى الله عليه وسلم د کوربه توب شرف تر لاسه کړ او رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه سره خوراک وکړ او د هغه ځای خلک خوشحاله او شتمن وه ځکه په څرګنده دا امکان دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغوی سره دغه شيان ليدلي وي مګر رسول الله صلى الله عليه وسلم د پيغمبرۍ څخه وروسته د خپل ژوندي تر آخري شېبو پوري چي کومه زمانه تېره کړه هغه د تنګۍ، اقتصادي کمزورۍ او بدحالۍ لپاره مشهور او معروف ده، څرګنده ده چي په دغه زمانه کي ددغه شيانو يادونه وه.

دغه حديث په اصل کي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ساده طبيعت او بې تکلفه ژوند څرګند غماز دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د خپل خوراک او څښناک دومره پابندي هم نه وه څومره چي په مالي توګه سره د يو معمولي حيثيت انسان سره وي او دا هغه بنيادي سبق دی چي موږ ته دا ښيي چي د خوراک او څښناک شيانو ته متوجه کېدل د بې عقلو او غافلو خلکو د ژوند طريقه ده.

## نبي ﷺ خوراک ته بد نه دي ویلي

﴿۳۹۹۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ مَا عَابَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا قَطُّ إِنِ اشْتَهَاهُ أَكَلَهُ وَإِنْ كَرِهَهُ تَرَكَهُ. متفق عليه

د حضرت ابو هریرة رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ هيڅکله يو خوراک ته بد نه دي ويلي او نه یې بد ګڼلی دئ که خواهش به یې وو نو خوړل به یې او که رغبت به یې نه وو نو پرېښودل به یې . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵۴۷۹، رقم: ۵۴۰۹، ومسلم ۳\۱۶۳۲، رقم: ۱۸۷- ۲۰۶۴.

**تشريح**: مطلب دا دی چي د خوراک د شیانو په اړه د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي کوم شی به يې خوښ وو هغه به يې په مينه خوری او کوم شی چي به يې خوښ نه وو هغه به يې نه خوړی ، دا نه وو چي کوم شی به يې خوښ نه وو هغه ته به يې بد ویل او نه به يې په هغه کي عيب را ایستی .

## مؤمن په یوه کولمه او کافر په اوو کولمو خوراک کوي

﴿۳۹۹۴﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَأْكُلُ أَكْلًا كَثِيرًا فَأَسْلَمَ وَكَانَ يَأْكُلُ قَلِيلًا فَذُكِرَ

د حضرت ابو هريرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي يو سړي به ډير خوراک کوئ بيا هغه مسلمان سو او کم به يې خوړل ،

ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ الْمُؤْمِنَ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ وَالْكَافِرَ

نبي کريم ﷺ ته د هغه یادونه وسول نو رسول الله ﷺ وفرمايل : مؤمن په يوې کولمې سره خوراک کوي او کافر

يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ. رواه البخاري و روى مسلم عن ابي موسى وابن عمر

په اوو کولمو سره خوراک کوي . بخاري. او مسلم د حضرت موسى او حضرت ابن عمر څخه

المسند منه فقط و في اخرى له عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

يوازي ددې مسند روايت کړی دئ د مسلم په يو بل روايت کي چي د ابو هريرة څخه منقول دئ دا الفاظ دي چي يو کافر د رسول الله ﷺ ميلمه سو ،

وَسَلَّمَ ضَافَهُ ضَيْفٌ وَهُوَ كَافِرٌ فَأَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَاةٍ

رسول الله ﷺ د يوې ميږې د لوښلو حکم وکړ نو هغه ولوښل سوه او هغه ميلمه ټولي شيدې

فَحُلِبَتْ فَشَرِبَ حِلَابَهَا ثُمَّ أُخْرَى فَشَرِبَهُ ثُمَّ أُخْرَى فَشَرِبَهُ حَتَّى شَرِبَ

وچښلې ، بيا د دويمي ميږې شيدې ولوشل سوې د هغه ټولي شيدې هم وچښل سوې داغسي

حِلَابَ سَبْعِ شِيَاهٍ ثُمَّ إِنَّهُ أَصْبَحَ فَأَسْلَمَ فَأَمَرَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

هغه د اوو ميږو شېدې وچښلې، سبا ته هغه کافر مسلمان سو ، رسول الله ﷺ د هغه لپاره د

وَسَلَّمَ بِشَاةٍ فحلبت فشرب ثُمَّ أَمَرَ بِأُخْرَى فَلَمْ يَسْتَتِمَّهَا فَقَالَ رَسُولُ

يوې ميږې د لوښلو حکم وکړ ، شيدې راوړل سوې هغه شيدې وچښلې بيا دويمه ميږه ولوشل
سوه او د هغې ټولي شيدې هغه ونه چښلې ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللهِ ﷺ الْمُؤْمِنُ يَشْرَبُ فِي مِعًى وَاحِدٍ وَالْكَافِرُ يَشْرَبُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ .

مؤمن په يوې کولمې سره چښل کوي او کافر په اوو کولمو سره چښل کوي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵۳۶\۹، رقم: ۵۳۹۵، ومسلم ۳\۱۶۳۱، رقم: ۱۸۲- ۲۰۶۰.

**تشريح**: ويل کېږي چي د انسان په نس کي اووه کولمې دي مګر ددې څخه قطع نظر دلته يوه کولمه او له اوو کلمو څخه مراد د حرص کموالی او زياتوالی دی، ددې مطلب دادی چي مسلمان په خوراک او څښاک کي لږ حرص لري او کافران زيات حرص لري او دا خبره د اکثرو او اغلب په اعتبار ده يا د هغه سړي خاص حالت بيانول مراد دي چي د هغه په روايت کي ذکر سوی دی چي کله هغه مسلمان سو نو کم خوړل يې پېل کړل مګر کله چي کافر وو نو زيات خوراک يې کوی ، او يا کامل الايمان مؤمن مراد دی چي هغه د الهي ذکر په برکت سره او د ايمان د نور په سبب هر وخت موړ وي، چي هغه ته نه د خوراک او څښاک حرص وي او نه يې خوراک ته شوق وي ، ددې برعکس د کافر حال بل وي ، دا په حقيقت کي په دغه حديث کي خبرداری دی چي د مؤمن د شان غوښتنه داده چي هغه صبر او قناعت پر ځان لازم کړي ، زهد او رياضت اختيار کړي د خوراک او څښاک پر هغه حد اکتفاء وکړي کوم چي د ژوند د بقاء لپاره ضروري وي او خپل معده دومره خالي وساتي چي د زړه نورانيت د باطن پاکوالی او د شپې

بيداري وغيره لپاره تيار وي.

نقل سوي دي چي يو وار يو فقير حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته راغلی او د ډېر خوراک وروسته ولاړ سو، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه چي هغه په دومره زيات خوراک کولو باندي ولېدی نو وه يې فرمايل: بيا دی مه را پرېږدئ، علماوو ددې وجه دا ليکلې ده چي کله هغه فقير په دومره غير معمولي توګه خوراک وکړ نو هغه د کفارو مشابه سو او کوم څوک چي د کافرانو مشابهت اختيار کړي نو د هغه سره يو ځای کېدل بايد پرېښودل سي، څرګنده دي وي چي د کم خوړلو عادت اختيارول د اهل حقيقت او عاقلانو په نزد غوره او محمود دي او ددې برعکس مذموم او بد دي، مګر هغه لوږه د افراط حد ته ورسېږي د ضعيف بدن او قوت بدني د اختلال سبب کيږي چي د هغه په وجه د دين او دنيا په چارو کي خنډ پيدا کيږي نو هغه د منع او حکمت خلاف دي.

## د دوو خوراک د درو کسانو بس دئ

﴿۳۹۹۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامُ الِاثْنَيْنِ كَافِي الثَّلَاثَةِ وَطَعَامُ الثَّلَاثَةِ كَافِي الْأَرْبَعَةِ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي د دوو کسانو خوراک د درو کسانو لپاره بس دئ او د درو کسانو خوراک د څلورو لپاره بس دئ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۳۵، رقم: ۵۳۹۲، ومسلم ۳\۱۶۳۰، رقم: ۱۷۹- ۲۰۵۹.

**تشريح**: د دغه حديث هغه تاويل دی کوم چي مخکي بيان سوی دی مګر په مخکني حديث کي د ثلث او ربع په حساب سره فرمايل سوي دي چي د يوه خوراک دوو ته او د دوو خوراک درو ته کافي دی او دا د تضاعف (دوه برابری) په حساب سره فرمايل سوي دي چي د يوه خوراک دوو ته او د دوو خوراک څلورو ته کافي دي، دغه اختلاف د اشخاصو د احوالو د تفاوت په سبب دی چي په کوم صورت کي د دوو کسانو خوراک د درو لپاره کافي کيږي، په ځينو حالاتو او ځينو کسانو کي هغه قناعت نور هم زيات وي چي د دوو کسانو خوراک د څلورو کسانو لپاره هم کافي ګرځي، نقل سوي دي چي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه يو وار د وچ کالی په ورځو کي وفرمايل: زما اراده ده چي د هري کورنۍ لپاره د هغوی د شمېر په اندازه خلک واستوم ځکه چي سړی په نيم نس خوراک سره نه هلاکيږي، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه مطلب دا وو چي د وچ

كالی په زمانه کي خلکو ته د عيش او ارام اسباب ميسر دي او هغوی دواړه وخته په ماړه نس ډوډۍ خوري حال دا چي څومره داسي انسانان دي چي هغوی د ژوندي پاته کېدو په اندازه هم خوراک نه لري ، زه غواړم چي کومو کورو ته الله ﷺ د نس مړولو په اندازه روزي ورکړې ده په هغوی کي د هر کور پر ذمه د ناتوانو خلکو هغومره روزي وتاکم څومره چي خپله د کور والا وي، د مثال په توګه په يوه کور کي پنځه کسان وي نو د هغه کور پر ذمه د پنځو ناتوانو خلکو روزي وتاکم چي هغوی يې په خپل خوراک کي ورګډ کړي ، همدارنګه هغوی د خپل نيم نس په مړولو سره د هغه ناتوانه د ژوند ذريعه وګرځي کوم چي پر خوراک توان نه لري او څرګنده ده چي د نيم نس په مړولو سره د بدن په توان کي بېله شکه کمي رامنځته کيږي مګر ددې په وجه انسان نه هلاکيږي ، په هر حال ددغه حديثو او روايتو اصل مقصد دادی چي د غريبانو خبر ايستل او خپل ځان قناعت او قربانۍ ته هڅول مقصد دي او دې ته اشاره ده چي د نفس اماره تقاضا خو داده چي هر څه په لاس ورسي هغه په خپل نس کي واچوي مګر د انسانيت تقاضا داده چي الله جلاله تا ته څه درکړي وي په هغه کي هغه خلک هم شريک کړه کومو ته چي هيڅ هم تر لاسه نه دي .

﴿۳۹۹۶﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ طَعَامُ الْوَاحِدِ يَكْفِي الِاثْنَيْنِ وَطَعَامُ الِاثْنَيْنِ يَكْفِي الْأَرْبَعَةَ وَطَعَامُ الْأَرْبَعَةِ يَكْفِي الثَّمَانِيَةَ . رواه مسلم .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي د يوه کس خوراک د دوو لپاره بس دئ او د دوو کسانو خوراک د څلورو کسانو لپاره بس دئ او د څلورو کسانو خوراک د اتو کسانو لپاره بس دئ. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\ ۱٦۳۰، رقم: ۱۷۹- ۲۰۵۹.

**تشريح** د حديث مطلب دا نه دی چي کوم خوراک دوه کسان مړوي هغه څلور کسان هم مړوي بلکه مطلب دادی چي کوم خوراک دوه کسان په ماړه نس خوري هغه د څلورو لپاره هم د قناعت په توګه کافي دی چي هغه د څلورو کسانو لږ لږ لوږه ختموي او هغوی ته د عبادت او طاعت قوت ورکوي او د هغوی کمزوري ليرې کوي . پر دغه باندي راتلونکی عبارت چي د درو کسانو خوراک د څلورو لپاره کافي دی ، قياس کيږي ، د حديث مقصد په اصل کي دې ته توجه

کول دي که چیري تاسو ته دومره خوراک په لاس درغلی وي چي ستاسو نس ډکولای سي نو هغه محض د خپل نس په ډکولو کي مه مصرفوئ بلکه د قناعت درجه اختیار کړه او د هغه څخه دومره وخوره چي ستا د خوراکي ضرورت په اندازه وي او کوم چي ستا د ضرورت څخه زیات وي هغه بل یو اړکس ته ورکړه چي و هیې خوري.

## تلبینه د مریض لپاره ښه شی دی

﴿۳۹۹۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ التَّلْبِينَةُ مُجِمَّةٌ لِفُؤَادِ الْمَرِيضِ تَذْهَبُ بِبَعْضِ الْحُزْنِ. متفق عليه

د حضرت عائشي (رض) څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوریدلي دي چي تلبینه (د اوړو او شېدو څخه تیار سوې شیره چي په هغه کي ځیني وخت شات هم ګډیږي) د ناروغ زړه ته سکون او راحت رسوي او غمونه ځیني لیري کوي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\ ۵۵۰، رقم: ۵۴۱۷، ومسلم ۴\ ۱۷۳۶، رقم: ۹۰- ۲۲۱۶.

**د لغاتو حل**: التلبينة: هو حسو رقيق يتخذ من الدقيق واللبن (د شېدو او اوړو څخه تیار سوی خوراک)

**تشریح**: تلبینه هغه حریرې ته وایي چي د اوړو او شېدو څخه جوړیږي، کله عسل هم وراچول کیږي، د حریرې حلوا خاص شیدې وي او د شېدو په ډول سپین وي ځکه نو تلبینه ورته وایي چي د لبن (شېدو) څخه مشتق دی.

## د نبي کریم ﷺ کدو ډېر خوښ وو

﴿۳۹۹۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ خَيَّاطًا دَعَا النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَهُ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي یو خیاط د رسول الله ﷺ مېلمستیا وکړه کوم خوراک

فَذَهَبْتُ مَعَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَّبَ خُبْزَ شَعِيرٍ وَّمَرَقًا فِيهِ دُبَّاءٌ

چي هغه تیار کړی وو چي هغه په رسول الله ﷺ وخوري، زه هم د رسول الله ﷺ سره ولاړم هغه د اوربشو ډوډۍ او ښوروا راوړل چي په هغه کي کدو او

وَقَدِيدٌ فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَتَبَّعُ الدُّبَّاءَ مِنْ حَوَالَيِ الْقَصْعَةِ قَالَ فَلَمْ أَزَلْ أُحِبُّ الدُّبَّاءَ بعد يَوْمِئِذٍ. متفق عليه

وچه غوښه وه ، ما نبي كريم ﷺ وليدئ چي د پيالې په شاوخوا كي يې كدو لټوئ او خوړئ يې د دغه ورځي څخه زه كدو ډير خوښوم . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۳۱۸، رقم: ۲۰۹۲، ومسلم ۳\۱۶۱۵، رقم: ۱۴۴- ۲۰۴۱.

**تشريح**: د حضرت انس رضي الله عنه دغه بلني ته ورتلل په دې وجه وو چي هغه ته به بلنه وركړل سوې ده يا هغه د رسول الله ﷺ خاص خادم وو او په اكثرو بلنو كي د خاص خادم اجازه هم په عامه توګه كيږي ځكه حضرت انس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره په هغه بلنه كي ګډ سو ، له دغه حديث څخه يوه خبره دا ښكاره سوه كه چيري پر يو دسترخوان باندي په كاسي يا بل شي كي د خوراک مختلف شيان يو ځاى وي نو د هغه پيالې يا لوښي نورو كونجانو ته لاس غزول جائز دي ، په دغه صورت كي د خپل لاس محض خپلي خوا ته محدود كول ضروري نه دي، په شرط ددې چي پر دسترخوان باندي ناست خلک داسي كول ناخوښ كړي ، دوهمه خبره دا ښكاره سوه چي د غريبانو بلنه قبلول پكار دي او د هغوى پر دسترخوان باندي د خوراک كوم شى چي كښېښودل سي هغه بايد په شوق وخوړل سي ، دريمه خبره دا ښكاره سوه كه د خوراک په وخت كي خپل خادم ورسره وي نو د هغه سره يو ځاى بايد خوراک وسي، دا يوازي د شتمنو خلكو طريقه ده چي خپله په بېل كښېنستو سره خوراک كوي او خادم په بل ځاى كي كښېنوي، څلورمه خبره دا ښكاره سوه چي كدو خپل خوښ خوراک ګرځول سنت دى او همدارنګه هر هغه شى خوښول سنت دى كوم چي رسول الله ﷺ ته خوښ وو .

## د خوراک وروسته اودس نه كول

﴿۳۹۹۹﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْتَزُّ

د حضرت عمرو بن اميه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ وليدئ چي د پسه د ولي

مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فَدُعِيَ إِلَى الصَّلَاةِ فَأَلْقَاهَا السِّكِّينَ الَّتِي يَحْتَزُّ بِهَا ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ . متفق عليه .

(اوږې) څخه يې غوښه پريكول ، كله چي رسول الله ﷺ دلمانځه لپاره وبلل سو نو غوښه او چاړه يې پرېښودل او لمانځه ته يې تشريف يووړ او اودس يې ونه كړ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۳۱۱، رقم: ۲۰۸، ومسلم ۱\۲۷۴، رقم: ۹۳- ۳۵۵.

**تشريح** له دغه حديث څخه څرګنده سوه چي د خوړلو په وخت کي د غوښو يا بل شي په پرېکولو سره خوړل جائز دي په شرطددې چي د هغه ضرورت وي که چيري غوښه يا بل شی خوړين سوی وي او نرم وي چي په چاړه سره د پرېکولو اړتيا يې نه وي نو بيا په چاړې سره پرېکول او خوړل مکروه دي ځکه چي بېله ضرورته داسي کول د عجميانو (يعني کافرانو) سره مشابهت دی لکه چي په دوهم فصل کي به راسي.

له دغه حديث څخه دا هم څرګنده سوه چي د آذان په اورېدو سره بايد ولاړ سي او لمانځه ته ولاړ سي که څه هم خوراک تيار پروت وي مګر دا د هغه صورت حکم دی کله چي د خوراک د ضائع کېدو انديښنه نه وي او هغه خوراک ته سخت ضرورت هم نه وي يعني دومره وږی نه وي چي د هغه خوراک خوړلو څخه پرته لمانځه ته ولاړ سي نو په لمانځه کي يې توجه نه وي او ددې خبري بېره نه وي چي د لمانځه څخه د راتلو وروسته به خوراک تر لاسه نسي.

له دغه حديث څخه داهم څرګنده سوه چي پر اور باندي د پاخه سوي شي په خوراک سره اودس کول ضروري نه دی لکه څرنګه چي د ځينو علماوو مذهب دی د هغوی په نزد پر اور باندي د پاخه سوي شي په خوراک سره اودس ماتيږي.

## د نبي کريم ﷺ خوږ شی ډېر خوښ وو

﴿۴۰۰۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ الْحَلْوَاءَ وَالْعَسَلَ. رواه البخاري.

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به حلوا او شات خوښول. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۵۷، رقم: ۵۴۳۱.

**تشريح** په عربي ژبه کي د حلوآء (يعني په مد سره) او حلواء (يعني په قصر) سره د دواړو اطلاق پر هغه خواږه شي کيږي چي د خوږوالي او غوړوالي ذريعه سي چي په پښتو کي حلوا ورته وايي، ځيني حضرات وايي چي مطلق يعني هر خواږه شي ته حلوا وايي، په دغه صورت کي د الحلواء څخه وروسته د والعسل لفظ به د تخصيص بعد تعميم په توګه وي يعني مخکي يې د حلوا ذکر وکړ چي يو عام لفظ دی او د هغه په حکم کي عسل هم داخل دي مګر وروسته يې په خاصه توګه سره د عسل ذکر هم وکړ.

خطابي رحمة الله عليه ويلي دي: د رسول الله ﷺ خوږ شی ډېر خوښ وو، دا د طبعي خواهش د

زیاتوب په وجه نه وو چي زیات وختونه به یې خوړ شی خوړل خوښول بلکه د ډېرو خوښولو مطلب دادی چي کله به پر دسترخوان باندي خوړ شی وړاندي سو نو په دومره شوق به یې خوړی چي معلومېدل به چي دا د رسول الله ﷺ ډېر خوښ دی.

**سورکه غوره کتغ دئ**

﴿۴۰۰۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَ أَهْلَهُ الْأُدُمَ فَقَالُوا

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ د خپلي کورنۍ څخه کتغ وغوښتئ، هغوی ورته وویل:

مَا عِنْدَنَا إِلَّا خَلٌّ فَدَعَا بِهِ فَجَعَلَ يَأْكُلُ بِهِ وَيَقُولُ نِعْمَ الْأُدُمُ الْخَلُّ نِعْمَ الْأُدُمُ الْخَلُّ. رواه مسلم.

پرته د سرکې څخه بل شی نسته، رسول الله ﷺ سورکه وغوښتل او د هغې سره یې ډوډۍ خوړل او وه یې فرمایل سورکه غوره کتغ دئ، سورکه غوره کتغ دئ. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\ ۱۶۶۲، رقم: ۱۶۶– ۲۰۵۲.

**تشریح**: سورکه غوره کتغ دی: دا یې په وار وار ځکه وفرمایل چي د سورکې زیات تعریف وسي، له دغه حدیث څخه څرګنده سوه چي په خوراک او څښاک کي اعتدال او میانه روي اختیارول او خپل نفس د خوندورو شیانو څخه ساتل ښه خبره ده، د حدیث مفهوم دادی که چیري یو سړی دا قسم وکړي چي زه به د کتغ سره ډوډۍ نه خورم او بیا د سورکې سره ډوډۍ وخوري نو هغه حانث (قسم ماتونکی) دی ځکه چي د سورکې کتغ کېدل له حدیث څخه ثابت دي. په حدیث کي راغلي دي چي سورکه د انبیاء علیهم السلام کتغ دی او په طبي توګه چي د سورکې ګومي ګټې دي هغه ډېري زیاتي دي چي د هغه تصدیق د طب په کتابو کي د طبیبانو په ذریعه هم کیدای سي.

**د پوڅکۍ خاصیت**

﴿۴۰۰۲﴾: وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت سعید بن زید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ . متفق عليه و في رواية لمسلم من المن الذي انزل الله تعالى على موسى عليه السلام

پوڅکۍ د من څخه دئ يعني د نعمت الهي څخه دئ ددې اوبه د سترګو لپاره شفاء ده . بخاري او مسلم. او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي پوڅکۍ د من څخه دئ چي الله تعالی پر حضرت موسی عليه السلام نازل کړی وو چي د هغه يادونه د قرآن کريم په دې آيت کي ده : (و انزلنا عليکم المن والسلوی ).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۱۶۳، رقم: ۵۷۰۸، ومسلم ۳\ ۱۶۱۹، رقم: ۱۵۷- ۲۰۴۹.

**د لغاتو حل**: الکماة: نبت بالبرية تنشق عنه الارض (پوڅکۍ)

**تشريح**: (کماءة) د کاف په زبر، د ميم په جزم او د همزه په زور سره ، د رحمت پر وزن دی ، کماة پوڅکۍ ته وايي چي د نباتاتو له ډول څخه د وازګي په ډول يو شی دی او زيات وختونه د باران په وخت کي خپله پيدا کيږي، په عربي ژبه کي شحم الارض هم ورته وايي ، زموږ په نزد په عامه توګه پوڅکۍ وايي ، پوڅکۍ حلال شی دی او ډېر خلک يې خوري که څه هم په ځينو ځايو کي د هغه خوړل په طبعي توګه مکروه ګڼل کيږي ځکه چي هلته يې د خوړلو عادت نه وي .

پوڅکۍ د من يو ډول دی: ددې مطلب دادی چي پوڅکۍ په اصل کي هغه من دی چي ددغه آيت کريمه (وانزلنا عليکم المن والسلوی ) ژباړه: او موږ پر بني اسرائيلو من او سلوا نازل کړل، مطابق د حضرت موسی عليه السلام پر قوم بني اسرائيلو باندي به نازلېدی ځکه چي من خو د ترنجبين په ډول يو شی وو چي له آسمان څخه نازلېدی او دغه پوڅکۍ له مځکي څخه را پورته کيږي ، بلکه پوڅکۍ د من يو ډول دی ددې مطلب دادی چي څرنګه من د الله جل جلاله يو نعمت وو چي بېله مشقته به له اسمان څخه نازلېدی همدارنګه پوڅکۍ هم د الله جل جلاله يو نعمت دی چي بېله محنته د مځکي څخه پيدا کيږي، يا دا مراد دی چي پوڅکۍ د ګټو په اعتبار د من مشابه دي.

د پوڅکۍ اوبه د سترګو لپاره شفاء ده: ځينو علماوو ويلي دي چي د پوڅکۍ اوبه هغه وخت د سترګو لپاره د شفاء حکم لري کله چي د نورو دواوو لکه رانجه يا نورو شيانو سره په يو ځای کېدو سره په سترګو کي واچول سي ، ځيني حضرات وايي چي يوازي د پوڅکۍ اوبه هم د سترګو لپاره ګټوري دي او د حديث د مطلق مفهوم په وجه دغه خبره زياته صحيح ده ، ځينو علماوو خپل ذاتي مشاهده بيان کړې ده چي هغوی يو داسي سړی ولېدی چي د هغه نظر

ختمېدونکی وو ، هغه د پو ځکی او به سترګو ته اچولې نو د هغه نظر سم سو .

د حضرت ابوهريره ﷺ دا قول هم نقل کیږي چي حضرت ابوهريره رضي الله عنه وويل: ما درې يا پنځه يو ځکی و نستېږلې او د هغو اوبه مي په يو بوتل کي واچولې ، يوې انجلۍ هغه په سترګو کي واچولې نو هغه ښه سوه ، په هر حال په دې اړه تفصيل به په باب الطب والرقی کي بيان سي .

## بادرنګ او خرما

﴿۴۰۰۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ . متفق عليه .

د حضرت عبدالله بن جعفر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ وليدی چي تازه خرما يې د بادرنګو سره خوړل . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۶۴، رقم: ۵۴۴۰، ومسلم ۳\۱۶۱۶، رقم: ۱۴۷- ۲۰۴۳.

**تشريح**: د بادرنګ او خرما يو ځای خوړلو صورت به يا خو دا وو چي د دواړو په يو ځای کېدو سره به يې په خوله کي اېښودل او خوړل، يا دا چي مخکي به يې خرما په خوله کي اچول او بيا به يې يوه ټوټه د بادرنګ اېښودل او دواړه به يې يو ځای خوړل، رسول الله ﷺ دواړه ځکه يو ځای خوړل چي د دواړو په يو ځای کېدو سره معتدل سي ځکه چي په خرماوو کي حرارت وي او په بادرنګ کي يخوالی او د مرکباتو تر ټولو لوی اصل اعتدال دی چي معتدل شی د تعديل مزاج باعث هم وي او ډېر ګټور هم وي .

دغه حديث پر دې دلالت کوي چي په يوه وخت کي د خوراک دوه شيان غذا ګرځول يا خوړل او څښل جائز دي، ددغه جواز په اړه د علماوو هيڅ اختلاف نسته البته کومو علماوو چي مکروه ورته ويلي دي هغه پر دغه صورت محمول دی چي کله د خوراکونو زيات اندازه او ډولونه تيارول او خوړل د عادت په توګه اختيار کړل سي او د خوړلو دغه تنوع او کثرت د يو ديني ګټي پر ځای محض د لذت او خوند لپاره وي .

## هر نبي پسونه پيولي دي

﴿۴۰۰۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَرِّ الظَّهْرَانِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ په الظهران نامي ځای کي د رسول الله ﷺ سره وو

نَجْنِي الْكَبَاثَ فَقَالَ عَلَيْكُمْ بِالْأَسْوَدِ مِنْهُ فَإِنَّهُ أَيْطَبُ فَقَالَ أَكُنْتَ تَرْعَى الْغَنَمَ قَالَ نَعَمْ وَهَلْ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا رَعَاهَا . متفق عليه .

هلته مونږ د پليو د درختو ميوه جمع کړه رسول الله ﷺ وفرمايل توره توره ميوه واخلئ دا مزه داره وي ، د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول ايا تاسو پسونه پيولي دي (ځکه چي شپانه خلک دا خوري او ددې ښه او بد پيژني) رسول الله ﷺ وفرمايل کوم نبي دئ چي هغه پسونه نه وي پيولي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۷۵، رقم: ۵۴۵۳، ومسلم ۳\۱۶۲۱، رقم: ۱۶۳– ۲۰۵۰.

**تشريح**: ايا تاسو پسونه پيولي دي : رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، ددغه سوال مطلب دا وو چي د پليو مېوه د هغه خلکو خاص خوراک او غذا وه چي په صحراء کي او سېدل يا پسونه پيايي، او په دې اعتبار سره هغه خلک ددغه مېوې د ښه او بد بيلوالی کولای سي، له دې څخه ثرګندېږي چي رسول الله ﷺ هم پسونه پېولي دي . او داسي کوم نبي دي چي هغه پسونه پېولي نه وي، ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ دغه حقيقت ته اشاره وفرمايل چي الله تعالی دنبوت منصب هيڅکله هم شتمنو ، پاچاهانو او متکبرينو ته نه ورکوي بلکه د دين او دنيا دغه لوی منصب تل هغه خلکو ته حواله کړی دی چي پسونه يې پېولي دي ، مفلس او نادار وه او په ډېره تواضع او انکساري سره يې په خپل لاس سره کسب اختيار کړی وو ، نقل سوي دي چي حضرت موسی عليه السلام په مزدورۍ سره د حضرت شعيب عليه السلام پسونه پېول ، حضرت زکريا عليه السلام به د نجارۍ کار کوی او حضرت ايوب عليه السلام د خياطۍ کار کوی او په دې کي د الله تعالی حکمت دا وو چي د انساني طبقې ددغه غوره خلکو روزنه او پالنه د حلال رزق په ذريعه وي چي په عامه توګه سره د سخت محنت او مشقت په نتيجه کي تر لاسه کيږي، د عمل صالح زياتي موقع تر لاسه وي او هغوی زيات نېک کارونه وکړي او په خاصه توګه په پسونو پېولو کي يوه لويه ګټه دا وه چي د خلکو څخه يوازيوالي او د الله تعالی سره د خلوت موقع تر لاسه سي چي د رعايت طريقې او د کمزورو خلکو سره د شفقت او نرمۍ چلن کولو سبق تر لاسه کيږي .

په يوه روايت کي بيان کيږي چي يوه ورځ الله جل جلاله پر موسی عليه السلام باندي وحي نازلي کړې چي اې موسی عليه السلام! پوهېږې چي مونږ تا ته د نبوت منصب ولي درکړ، حضرت موسی عليه السلام وويل: اې پروردګاره! ته ښه پوهېږې، الله جل جلاله ورته وفرمايل: هغه ورځ در په ياد کړه چي تا په

وادي الايمن كي پسونه څرول او يو پسه تښتېدلي وو نو ته په هغه پسي وځغاستې چي د هغه په وجه تا ته ډېر زيات تكليف پېښ سو بيا چي تا هغه پسه لاندي كړ نو تا هغه پسه ونه وهی او نه دي د غيظ او غضب اظهار وكړ بلكه د هغه سره دي د شفقت او نرمۍ چلن وكړ او د هغه په مخاطب كولو سره دي ورته وويل: اې بې چارې! تا خپل ځان هم په تكليف كي كړ او زه دي هم په تكليف كړم، موږ د حيوان سره ستا دغه شفقت او نرمي ولېدل نو پر تا باندي زموږ رحمت متوجه سو او ته مو په نبوت سره ونازولې او خپل غوره بنده مو جوړ كړلې .

## نبي كريم ﷺ څه ډول كښېنستی

﴿۴۰۰۵﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُقْعِيًا يَأْكُلُ تَمْرًا . وفي رواية يأكل منه اكلا ذريعا. رواه مسلم .

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ ورون پر مځكه لګولی او زنګون پورته كړی پر خرما خوړلو باندي ليدلی دئ ، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ خرماوي ژر ژر خوړلې . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۱۶، رقم: ۱۴۸- ۲۰۴۴.

**تشريح**: د اقعاء په هيئت: ددې څخه د ناستي هغه صورت مراد دی چي په هغه دواړه كوناټي پر مځكه لګېدلي وي او دواړه زنګنونه درول سوي وي ، د خرماوو ژر ژر خوړلو وجه دا وو چي كيدای سي رسول الله ﷺ ته يو كار پېښ وو ځكه نو خرماوي يې ژر ژر وخوړلې چي د هغه په فارغه كېدو سره په هغه كار كي بوخت سي .

## دوې خرماوي په يو وار خوړل

﴿۴۰۰۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقْرُنَ الرَّجُلُ بَيْنَ التَّمْرَتَيْنِ حَتَّى يَسْتَأْذِنَ أَصْحَابَهُ . متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د دوو خرماوو په يو وار خوړلو څخه منع فرمايلې ده البته كه ورته ملګری اجازه وركړي نو جائز دي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۳۱، رقم: ۲۴۸۹، ومسلم ۳\۱۶۱۷، رقم: ۱۵۱- ۲۰۴۵.

**تشريح**: سيوطي رحمۃ اللہ علیہ وايي : ددغه منع تعلق د هغه وخت سره وو كله چي مسلمانان په فقر او

مفلسی کي اخته وه مګر کله چي الله تعالی پراخي راوستل نو د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه منع منسوخ سول چي ما تاسو د خرماوو جمع کولو څخه منع کولاست مګر اوس الله ﷻ تاسو ته د رزق پراخي درکړل نو جمع کوئ يې يعني اوس تاسو د يوې څخه زياتي خرماوي يو ځاى کولو سره خورئ او دا حرام يا مکروه نه دي.

## د خرما تعريف

﴿۲۰۰۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَجُوعُ أَهْلُ بَيْتٍ عِنْدَهُمُ التَّمْرُ، و في رواية قال يَا عَائِشَةُ بَيْتٌ لَا تَمْرَ فِيهِ جِيَاعٌ أَهْلُهُ قَالَهَا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا. رواه مسلم.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغه کور خلک وږي نه وي چي په هغه کي خرماوي وي او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي اې عائشې! په کوم کور کي چي خرماوي نه وي د هغه خلک وږي وي، د االفاظ رسول الله ﷺ دوه واره يا درې واره وفرمايل. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۱۸، رقم: ۱۵۲- ۲۰۴۱.

**تشريح**: ځينو علماوو وضاحت کړی دی چي د هغه کور او سيدونکو څخه مراد اهل مدينه او هغه خلک دي چي دهغوی خوراک خرماوي وې، نووي رحمة الله عليه ويلي دي: په دغه حديث کي دا حقيقت د خرماوو د فضيلت او ارزښت بيان دی او ددې په ذريعه د خپلو کورونو د غذائي اړتياوو لپاره د خرماوو د ذخيره کولو د جواز اظهار او ترغيب مقصد دی.

## د عجوه خرماوو ګټه

﴿۲۰۰۸﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ تَصَبَّحَ بِسَبْعِ تَمَرَاتٍ عَجْوَةً لَمْ يَضُرَّهُ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ سُمٌّ وَلَا سِحْرٌ. متفق عليه

د حضرت سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل چي څوک د سهار په وخت کي اووه عجوه خرماوي وخوري نو په هغه ورځ به هغه ته زهر تاوان نه سي رسولای او نه يو جادو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۶۹، رقم: ۵۴۴۵، ومسلم ۱۳\۱۶۱۸، رقم: ۱۵۵- ۲۰۴۷.

**تشريح**: عجوه د مدينې منورې په خرماوو كي يو ډول دی چي تور رنګ يې دی، دا ډول خرماوي د مدينې په ټولو خرماوو كي ښه او غوره خرماوي دي، ويل كيږي چي د دغه خرماوو درختي رسول الله ﷺ په خپله لګولي دي.

له زهر څخه مراد هغه زهر دي كوم چي مشهور دي يعني هغه شی چي د هغه په خوړلو سره انسان مړ كيږي، د مار، لړم او دا ډول نورو زهرجنو حيوانانو زهر هم مراد كيدای سي، مذكوره خاصيت په دغه خرماوو كي د الله تعالی له خوا پيدا كيږي لكه څرنګه چي قدرت دا ډول نباتات نورو شيانو كي د مختلف اقسامو خاصيتونه ايښي دي او دا خبره رسول الله ﷺ ته د وحي په ذريعه معلومه سوې ده چي په خرما كي دا خاصيت دی يا دا چي د رسول الله ﷺ د دعاء په بركت په دغه خرما كي دا خاصيت اچول سوی دی، او كوم چي د اوو د تخصيص سوال دی نو ددې وجه د شارع څخه پرته بل چا ته معلومه نه ده بلكه ددې علم توصيفي دی، يعني د رسول الله ﷺ څخه پر سماع باندي موقوف دی، چي رسول الله ﷺ د اوو شمېر وفرمايه او اورېدونكو هغه نقل كړ، نه خو رسول الله ﷺ د دغه تخصيص وجه بيان كړه او نه اورېدونكو پوښتنه وكړه لكه څرنګه چي د ركعتو او نورو شيانو د شمېر مسئله ده.

﴿۴۰۰۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ فِي عَجْوَةِ الْعَالِيَةِ شِفَاءً أَوْ إِنَّهَا تِرْيَاقٌ أَوَّلَ الْبُكْرَةِ. رواه مسلم.

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د عاليه نامي ځای په عجوه خرماوو كي شفاء ده او ددې په سهار وخت كي خوړل د زهرو لپاره ترياق دي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۳\۱۶۱۹، رقم: ۱۵۶- ۲۰۴۸.

**تشريح**: د مدينې منورې په شاوخوا كي د قباء خوا ته چي كومه سيمه پر لوړې خوا واقع ده هغې ته عاليه يا عوالي ويل كيږي، په دغه مناسبت سره په دغه خوا كي چي څومره كلي او سيمي دي هغو ته عاليه يا عالي وايي، په دغه خوا كي د نجد سيمه هم ده او د هغه په مقابل كي چي څومره سيمي دي هغه لاندي دي او هغو ته سافله ويل كيږي.

په هغه زمانه كي عاليه يا عوالي تر ټولو نژدې كلی مدينې ته درې يا څلور ميله او تر ټولو لېري كلی پر اووه ميله يا اته ميله فاصله باندي واقع وو.

د عاليه په عجوه كي شفاء ده : ددې مطلب يا خو دادی چي د نورو ځايو په نسبت د عاليه په عجوه خرماوو كي شفاء زياته ده يا ددغه حديث څخه د مخكني مطلب تقليد مراد دی يعني په تېر سوي حديث كي د مطلق عجوه خرماوو چي كوم تاثير او خاصيت بيان سوی دی هغه ددغه حديث په ذريعه واضح سوی دی چي ذكر سوی تاثير او خاصيت د عاليه په عجوه خرماوو كي دی . ترياق : د تاء په پيښ او زېر دواړو سره هغه مشهوره دوايي ده چي د زهر لپاره دافع دي .

## د نبي كريم ﷺ په لوږه وخت تېرول

﴿۴۰۱۰﴾ : وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ يَأْتِي عَلَيْنَا الشَّهْرُ مَا نُوقِدُ فِيهِ نَارًا إِنَّمَا هُوَ التَّمْرُ وَالْمَاءُ إِلَّا أَنْ نُؤْتَى بِاللُّحَيْمِ . متفق عليه .

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي ځيني مياشتي به پر موږ داسي تيريدلې چي موږ به اور نه بلوی او يوازي خرماوي او اوبه مو خوراک وو ، مګر دا چي كله به لږ غوښه راغلل نو اور به مو بل كړی . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۲۸۲، رقم: ۶۴۵۸، ومسلم ۴\ ۲۲۸۲، رقم: ۲۶- ۲۹۷۲.

**تشريح** : مګر دا چي كله به لږ غوښه راوړل سول : ددې مطلب دادی چي د تنګۍ په وخت كي به موږ يوازي خرماوي خوړلې او اوبه به مو څښلې ، يا كله چي به يو سړي لږ غوښه راواستول نو هغه به مو خوړل ، يا دا مطلب دی چي په كور كي د هيڅ سامان نه موجود كېدو په وجه زموږ په نغري كي اور نه بلېدی مګر كله چي به يو څه غوښه راوړل سول نو د هغو د پخولو لپاره به موږ اور بلوی .

﴿۴۰۱۱﴾ : وَعَنْهَا قَالَتْ مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَيْنِ مِنْ خُبْزِ بُرٍّ إِلَّا وَأَحَدُهُمَا تَمْرٌ . متفق عليه .

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ د كورنۍ خلكو هيڅكله تر دوو ورځو پوري غنم نه دي خوړلي په دغه دواړو كي به د يوې ورځي غذا خرماوي وې . بخاري او مسلم.

**تشريح** د حديث مطلب دادی چي رسول الله ﷺ او د هغوی كورنۍ هيڅكله هم پرله پسې دوې ورځي د غنمو ډوډۍ نه ده خوړلې. د غنمو د ډوډۍ قيد ځكه دی چي كيدای سي د اوربشو ډوډۍ ورته تر لاسه كېدل .

﴿۴۰۱۲﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَا شَبِعْنَا مِنَ الْأَسْوَدَيْنِ. متفق عليه.

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفات سو او موږ هيڅکله په دوو تورو شيانو نس ډک نه کړ (يعني په خرماوو ماړه نه سوو). بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۲۸۲، رقم: ۶۴۵۵، ومسلم۴\ ۲۲۸۲، رقم: ۲۵- ۲۹۷۱.

**تشريح**: دا حديث هم څرګندوي چي رسول الله ﷺ او د هغه کورنۍ په څومره سختۍ او تنګۍ سره خپل ژوند تېروی، او سره ددې چي رسول الله ﷺ غوښتي وای نو ددنيا ټول خوندونه او وسائل به د رسول الله ﷺ په قدمو کي وای مګر رسول الله ﷺ پر کمال ايثار او استغناء باندي عامل وو.

د اسودين (دوه تور شيان) څخه خرما او اوبه مراد دي، د اوبو په تور شي سره تعبير کول د مجاورت او تفاوت په وجه دي او داسي کلام د اهل عرب په نزد مستعمل دی لکه څرنګه چي مور او پلار ته ابوين يا سپوږمۍ او لمر ته قمرين وايي، دې ته په عربي کي تغليب وايي، څرګنده دي وي چي په دغه ارشاد کي د اوبو ذکر د خرماوو په ضمن کي دی اصل مقصد د خرما ذکر کول دی ځکه اوبه د نس مړولو لپاره نه استعماليږي او نه د هغه کمي وي.

ددغه حديث څخه دا خبره هم څرګنده سوه چي رسول الله ﷺ او د هغه کورنۍ ته خرماوي ته هم په دومره اندازه نه تر لاسه کېدې چي د نس مړولو لپاره کافي سي بلکه دومره به تر لاسه کېدې چي په هغه سره نس ته توان تر لاسه سي.

﴿۴۰۱۳﴾: وَعَنِ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ قَالَ أَلَسْتُمْ فِي طَعَامٍ وَشَرَابٍ مَا شِئْتُمْ لَقَدْ رَأَيْتُ نَبِيَّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا يَجِدُ مِنَ الدَّقَلِ مَا يَمْلَأُ بِهِ بَطْنَهُ. رواه مسلم.

د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه (د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته خلکو ته وويل) ايا تاسو د خوراک او څښاک په شيانو کي په عيش او آرام سره وخت نه تيروئ او څه چي مو زړه غواړي هغه نه خورئ او څښئ؟ ما رسول الله ﷺ ليدلی دئ چي وچي

خرماوي به يې هم نه درلودلې چې په هغه سره رسول الله ﷺ موړ سوی وای . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\ ۲۲۸۴، رقم: ۳۴- ۲۹۷۷.

**د لغاتو حل**: الدقل: التمر الرديء (خرابي خرماوي)

**تشریح**: ایا تاسو ... الخ : حضرت نعمان بن بشیر رضی الله عنه دا خبره یا خو د تابعین په مخاطب کولو سره وکړه یا د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته د صحابه کرامو په مخاطب کولو سره یې وکړه ستاسو د نبي ﷺ سره ...الخ: مخاطبینو ته د نبي ﷺ اضافت او نسبت هغوی ته د الزام ورکولو یا داسي به ووایو چې د غیرت ورکولو لپاره یې داسي وکړه چې تاسو د کوم نبي امت یاست او د هغه په نامه فخر کوئ د هغه نبي خو دا حال وو چې هغه ته د خپل نس مړولو لپاره معمولي خرماوي هم نه تر لاسه کېدې او یو تاسو یاست چې ډول ډول خوراکونه خورئ او د عیش او عشرت ژوند مو اختیار کړی دی ، او همدارنګه تاسو د دنیا او د دنیا د لذتونو څخه په پرهېز کولو کې د خپل نبي ﷺ طریقې اختیارولو څخه مخ ګرځولی دی ، څرګنده دي وي چې په لومړي حدیث کې دا بیان سوی دی چې پر رسول الله ﷺ باندي داسي ورځې تیري سوي دي چې په هغو کې د رسول الله ﷺ خوراک محض خرماوي وې، په دوهم حدیث کې بیان سوی دی چې هغه خرماوي به هم په دومره اندازه نه تر لاسه کېدی چې په هغه نس موړ سي ، او دلته دا بیان وسو چې هغه لږ اندازه خرماوي به هم نه وې بلکه هغه به معمولي خرماوي وې چې د محتاج او مفلس سړي څخه پرته بل چا یې خوړل نه خوښول، او دا ټولي خبري ددې حقیقت شاهدي ورکوي چې د رسول الله ﷺ په نزد د دنیا د خوندونو هیڅ ارزښت نه وو او رسول الله ﷺ د معمولي درجې په ژوند تېرولو کې هم زړه نه لګوی بلکه رسول الله ﷺ په بنیادي توګه فقر او ترک لذات اختیار کړی وو او دا د رسول الله ﷺ معمول جوړ سوی وو چې پر هغه باندي الله جل جلاله قائم وساتی ، کله چې پر اسلام او مسلمانانو باندي د سختۍ او تنګۍ زمانه وه نو هغه وخت رسول الله ﷺ په دې عامل وو او کله چې د اسلام او مسلمانانو شوکت په برخه سو او د دنیا خزانې د رسول الله ﷺ په قدمو کې راغلې نو په هغه حالت کې هم رسول الله ﷺ پر فقر او عسرت باندي په ژوند تېرولو قناعت وکړ ، داسي ولي وو؟ محض ددې لپاره نه وو چې رسول الله ﷺ په حقیقت کې مفلس او اړ وو او رسول الله ﷺ د خواهش سربېره پر یو ښه او خوشحال ژوند مهیا کولو باندي قادر نه وو ځکه چې دا ښودل سوي دي چې وروسته مسلمانانو ته ډېر اسباب او پراخي په برخه سوه بلکه داهم پر ځای ویل کېدای سي چې د عسرت او تنګۍ په

زمانه کي هم که رسول الله ﷺ غوښتي وای نو د عیش او تنعم هغه کوم وسائل وه چي رسول الله ﷺ ته تر لاسه کېدای نسوه، حقیقت دادی چي د رسول الله ﷺ دومره سخت او تنګ ژوند تېرول د هغه د سخاوت په وجه وو. کور ته چي به څه راتلل هغه به یې هم په نورو خوړل، ددغه ایثار وجه وه چي ځان به یې په سخت تکلیف کي اخته کوی مګر نورو ته به یې راحت رسوی، ددغه زهد، تقوا، قناعت او توکل وجه وه چي د آخرت د لوړتیا او د الله ﷻ د رضا لپاره یې د دنیا هر خواهش او خوند تر شا غورځولی وو.

یو لوی سبب دا هم وو چي رسول الله ﷺ د خپل عملي ژوند په ذریعه خپل امت د عیش او تنعم د ژوند څخه پرهېز کولو د قناعت او توکل د صفت پیدا کولو او خپل حقیقي مقصد په لاره کي د سختۍ او تکلیف زغملو تعلیم او تربیه ورکول وو.

## دوړي خوراک ښه نه دی

﴿۴۰۱۴﴾: وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ كَانَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت ابو ایوب انصاري رضی الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ ته به څومره خوراک راوړل

أُتِيَ بِطَعَامٍ أَكَلَ مِنْهُ وَبَعَثَ بِفَضْلِهِ إِلَيَّ وَإِنَّهُ بَعَثَ إِلَيَّ يَوْمًا بِقصعة لَمْ يَأْكُلْ

سو څومره چي به یې خواهش وو د هغه څخه به یې وخوړل او پاته به یې ما ته رالیږل، یوه ورځ رسول الله ﷺ ما ته یوه پیاله راولیږل چي د هغې څخه یې خوراک نه وو کړی

مِنْهَا لِأَنَّ فِيهَا ثُومًا فَسَأَلْتُهُ أَحَرَامٌ هُوَ قَالَ لَا وَلَكِنِّي أَكْرَهُهُ مِنْ أَجْلِ رِيحِهِ

قَالَ فَإِنِّي أَكْرَهُ مَا كَرِهْتَ. رواه مسلم.

ځکه چي په هغه کي وږه وه، ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ایا وږه حرامه ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل یا، مګر زما ددې بوی خوښ نه دئ، ابو ایوب وایي ما وویل کوم شی چي تاسو نه خوښوی هغه زه هم نه خوښوم. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۶۲۳، رقم: ۱۷۰- ۲۰۵۳.

**تشریح** حضرت ابو ایوب انصاري رضی الله عنه یو لوی جلیل القدر صحابي دی، نوموړي ته یوه امتیازي درجه دا تر لاسه ده چي کله چي رسول الله ﷺ د خپل کور په پرېښودو سره د مکې څخه هجرت وکړ او مدینې منورې ته ولاړی نو تر ټولو وړاندي د ابو ایوب انصاري رضی الله عنه سره تم سو او

هغه ته د مېلمستيا شرف په برخه سو . او كيداى سي چي حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه د كوم معمول ذكر كړى وي (يعني دا چي د رسول الله ﷺ پاته سوى خوراک به يې هغه ته استوى) دا د هغه ورځو پېښه وي چي كله رسول الله ﷺ د حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه سره اوسېدى.

زه دا نه خوښوم : په دغه ارشاد كي پر خوراک باندي عيب لګول مقصد نه دى بلكه په اصل كي ددې خبري اظهار مقصد دى چي ددغه شي بوى مسجد ته د تلو څخه او د ملائكو مخته راتللو څخه منع كوي .

نووي رحمة الله عليه ويلي دي: په دغه حديث كي ددې خبري وضاحت دى چي د وږي خوړل مباح دي، مګر د هغه چا لپاره مكروه دي كوم چي په جماعت كي د ګډون كولو اراده ولري (يعني د وږي په خوړلو سره مسجد ته تلل مكروه دي) ، او دغه حكم د هر هغه شي دى چي د هغه څخه بدبويي پيدا كيږئ ، كوم چي د رسول الله ﷺ د ذات تعلق دى نو رسول الله ﷺ به هر وخت د وحي نازلېدو متوقع وو ځكه نو رسول الله ﷺ هيڅ وخت وږه نه خوړل او ځان يې ځيني ساتى .

په دې اړه د علماوو مختلف قولونه دي چي د پياز، وږي، ګندنې حكم د رسول الله ﷺ لپاره څه وو؟ ايا دغه شيان د رسول الله ﷺ لپاره حرام وه كه يا؟ ځيني حنفي علماء وايي چي دغه شيان د رسول الله ﷺ د ذات لپاره حرام نه وه ، د هغوى په نزد صحيح خبره داده چي مكروه تنزيهي وو.

ددغه حديث څخه څرګنده سوه چي د خوړونكي او څښونكي لپاره دا مستحب دي چي هغه كوم شى خوري يا څښي نو په هغه كي دي لږ څه شى پرېږدي او بيا دي هغه پر خپلو اړو همسايګانو باندي ويشي .

كوم شى چي تاسو ناخوښه كړى دى ...الخ: په دې خبره كي يا خو د رسول الله ﷺ پوره پيروي ته اشاره ده چي رسول الله ﷺ وږه نه خوښول ځكه زه يې هم نه خوښوم يا دا چي حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه د خپل دغه ارادې اظهار وكړ چي په جماعت د ګډون كولو لپاره مسجد د تلو په وخت كي وږه نه خورم .

## دوږي تر خوړلو وروسته مسجد ته مه ځئ

﴿۴۰۱۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَكَلَ ثُومًا أَوْ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي كريم ﷺ وفرمايل : څوک چي (اوم) پياز يا اوږه

بَصَلًا فَلْيَعْتَزِلْنَا أَوْ قَالَ فَلْيَعْتَزِلْ مَسْجِدَنَا وَلْيَقْعُدْ فِي بَيْتِهِ وَأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى

وخوري هغه دي زموږ څخه بېل سي (يعني زموږ په مجلس كي دي ګډون نه كوي)، يا رسول الله ﷺ داسي وفرمايل چي هغه دي خپل په كور كي كښيني، او نبي كريم ﷺ ته

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِقِدْرٍ فِيهِ خَضِرَاتٌ مِنْ بُقُولٍ فَوَجَدَ لَهَا رِيحًا فَقَالَ قَرِّبُوهَا إِلَى بَعْضِ أَصْحَابِهِ وقَالَ كُلْ فَإِنِّي أُنَاجِي مَنْ لَا تُنَاجِي. متفق عليه.

يوه ورځ كټو راوړل سوه چي په هغه كي سبزي (تركاري) وه رسول الله ﷺ ته د هغه بوی ورغلئ نو وه يې فرمايل، دا فلاني صحابي ته نژدې كړئ او وه يې فرمايل چي ته يې خوره ځكه چي زه د هغه چا سره مناجات كوم چي تاسو يې ورسره نه كوئ، يعني په هغه تركاۍ كي پياز يا اوږه ګډه وه. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۳۹، رقم: ۸۵۵، ومسلم ۱\۳۹۴، رقم: ۷۳- ۵۶۴.

**تشريح**: زموږ په مسجد كي: ددغه مفرد لفظ څخه دا معلومېږي چي دغه حكم يوازي د مسجد نبوي لپاره دی او په صيغه متكلم كي د مع الغير استعمال (يعني زما د مسجد پر ځای زموږ مسجد ويل) د مسجد نبوي د تعظيم او اكرام لپاره دی مګر ددغه حكم په علت او سبب كي ټول مسجدونه بلكه د خير ټول مجلسونه، د درس او تدريس ځايونه، د اولياء الله او عالمانو مجلسونه هم شامل دي ځكه كوم حكم چي د مسجد نبوي دی چي د وږي وغيره په خوړلو سره مسجد ته مه ځئ نو دا حكم د نورو مسجدو او د خير د مجلسو هم دی او كه دا احتمال هم مدنظر وساتل سي چي په دغه ارشاد كي د مفرد لفظ څخه مراد جنس دی (چي رسول الله ﷺ د مسجد لفظ په ويلو سره ټول مسجدونه مراد اخيستي دي نو بيا دغه تاويل ته هم ضرورت نسته، د دې څخه پرته په ځينو روايتو كي د مسجدنا يعني زموږ د مسجدو لفظ نقل سوی دی، په دغه صورت كي به د ټولو مسجدو لپاره دغه حكم بالكل واضح وي.

په (او ليقعد في بيته) كي د او حرف كه چيري د راوي د شک د اظهار لپاره وي نو مراد به دا وي چي رسول الله ﷺ يا خو فليعتزلنا، يعني هغه بايد زموږ څخه بېل سي، ويلي دي يا يې دا فرمايلي دي چي فليعتزل مسجدنا، يعني هغه بايد زموږ د مسجد څخه ليري سي، يا يې دا فرمايلي دي چي: من اكل ثوما او بصلا فليقعد في بيته، يعني ثوک چي وږه يا پياز وخوري نو هغه بايد په خپل كور كي كښېني بل چا ته دي نه ورځي، كه څه هم هغه په مسجد كي وي يا د مسجد څخه پرته په بل ځای كي وي، مګر دا احتمال هم دی چي په (او ليقعد في بيته) كي د او

حرف د راوي د شک د اظهار لپاره نه وي بلکه د تنويع او تقسيم لپاره وي.
ددې تعلق د مخکنۍ جملې يعني (فليعتزل مسجدنا) سره دى، په دغه صورت کي به معنى دا وي چي د وږي او پياز په خوړلو سره مسجد ته راتلل مکروه دي چي هلته ملائکي، رسول الله ﷺ او صحابه کرام موجود دي، او د دغه شيانو په خوړلو سره په عامه توګه د خلکو سره اختلاط او مجلس کول مباح دي، يا دا چي بايد له دې څخه هم پرهېز وکړل او په خپل کور کي کښېني، او د مطلق اختلاط او مجلس څخه دې منع سي ځکه چي دا زياته غوره ده.
د هغه ذات څخه مراد حضرت جبرائيل عليه السلام او ملائکي دي، مطلب دا وو چي دغه ملائکي ما ته راځي او زه د هغوی سره خبري کوم حال دا چي تاسو ته هغوی نه راځي ځکه کوم شی چي زما لپاره جائز نه دی نو هغه ستاسو لپاره جائز دی يعني د وږي او پيازو خوړل، په دغه ارشاد کي دې ته اشاره ده چي انسان بايد د خپل ناستو خلکو او ملګرو د عاداتو او طبيعت او د هغه د حال لحاظ هم وساتي او د هغه جائز خوښي او مرضي پوره کړي.

## د خوراک د شيانو تلل

﴿۴۰۱۶﴾: وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كِيلُوا طَعَامَكُمْ يُبَارَكْ لَكُمْ فيه. رواه البخاري.

د حضرت مقدام بن معديکرب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم ﷺ وفرمايل: د خپل خوراک د شيانو تول کوئ (يعني په اندازه کولو سره يې رانيسي او خرڅوي) ځکه ستاسو لپاره به په دې کي برکت واچول سي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۳۴۵، رقم: ۲۱۲۸.

**تشريح** مطلب دا دی چي کوم شی په پېمانه او وزن سره تلل کېږي هغه د پور ورکړي او راکړي، خرڅولو او رانيولو او پخولو لپاره د ورکولو په وخت کي وتلل سي، چي د هغه صحيح اندازه قائمه پاته سي او د کمي او زياتوب اندېښنه پاته نسي نو دغه شی يعني تلل او غله او نور شيان وزن کول د شارع عليه السلام د دوو حکمو په وجه په خير او برکت کي د زياتوب خاصيت او تاثير لري. په خاصه توګه کله چي د سنت خيال وساتل سي. او د رسول الله ﷺ د حکم پر ځای راوړلو مقصد وي (شيخ عبد الحق محدث دهلوي رحمة الله عليه).
ملا علي قاري رحمة الله عليه هم د مظهر څخه دا سي خبره نقل کولو سره ليکلي دي که دا اشکال

پيدا سي چي په دغه حديث او هغه حديث كي به مطابقت څرنګه وي كوم چي د بي بي عائشې ﵂ څخه روايت سوى دى چي هغې بيان وكړ كله چي رسول الله ﷺ له دې دنيا څخه رخصت سو نو هغه وخت زما سره هيڅ نه وه چي ساه لرونكي خوړلي واى پرته د هغه لږ اوربشو څخه ، الله ﷻ په هغه لږ اوربشو كي دومره بركت اچولى وو چي ما تر يو وخت پوري په راايستلو سره د خپل خوراك بندوبست كوى ، بيا يوه ورځ ما هغه وتللې نو د هغه وخت څخه بركت ولاړى، ددې جواب دادى چي په اصل كي د رانيولو او پلورلو په وخت كي د تللو او ناپ حكم سوى دى چي برابري او توازن برابر قائم سي او د مصرفولو په وخت كي تلل او ناپول احصار او ضبط دى چي يو ډول بخل او د زړه د تنګۍ مظهر دى، او ددې څخه منع فرمايل سوې ده .

نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ حضرت بلال ﵁ ته وفرمايل : اې بلال ! ته مصرف كوه د صاحب عرش (الله ﷻ) له خوا او د كمۍ بېره مه كوه .

نو د شيخ عبدالحق محدث دهلوي ﵀ په حوالې سره چي كوم مطلب نقل سوى دى د هغه مطابق د ناپ او تول حكم پر ټولو باندي محمول دى چي د راكړي وركړي او رانيولو او پلورلو كي ناپ تول بايد وسي او د مصرف په وخت كي هم د ناپ او تول خيال ساتل پكار دي ، د ملا علي قاري ﵀ څخه نقل ذكر سوى اشكال او د هغه جواب دا څرګندوي چي د ناپ او تول حكم محض د راكړي او وركړي ، رانيولو او پلورلو پر صورت باندي محمول دى . والله اعلم.

### د خوراك وروسته د الله ﷻ حمد او ثناء

﴿۴۰۱۷﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَفَعَ مَائِدَتَهُ قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ غَيْرَ مَكْفِيٍّ وَلَا مُوَدَّعٍ وَلَا مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا . رواه البخاري.

د حضرت ابو امامه ﵁ څخه روايت دئ چي كله به د رسول الله ﷺ څخه دسترخوان پورته كړل سو نو رسول الله ﷺ به فرمايل : (الحمد لله ....) د الله لپاره تعريف دئ ډېر تعريف او بركت ناك تعريف د همېشه لپاره نه كفايت كړل سو او نه ترك كړل سو او نه د هغه څخه اې زموږ ربه بې پرواهي وكړل سوه . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۸۰، رقم: ۵۴۵۸.

**تشريح** (غير مكفي) ته علماوو په څو طريقو سره صحيح ويلي دي او ددې معنى يې بيان

کړي ده که د هغه پوره تفصيل دلته نقل سي نو بحث به ډېر اوږد سي ، د هغه خلاصه داده چي لفظ د غير او ربنا مرفوع هم کرځول سوی دی او منصوب هم يا په دغه دواړو کي يو منصوب او دوهم مرفوع دی، همدارنګه علماوو چي کوم مطلب بيان کړی دی د هغه خلاصه داده چي دغه الفاظ ، د هغه څخه کفايت سوی دی او نه متروک او نه د هغه څخه بې پرواهي وي، دغه الفاظ يا خو د حمد او تعريف د احوال او صفاتو د اظهار لپاره دي چي انسان بايد د خپل پروردګار داسي تعريف او ثناء بيان کړي چي هغه په هيڅ درجه کافي ونه ګڼل سي ، نه حمد او ثناء بيانول پرېښودل سي او نه له هغه څخه بې نيازي وکړل سي بلکه څرنګه چي الله تعالی هر وخت پر انسان باندي په خپل رحمت سره متوجه وي ، هر وخت په تسلسل او دوام سره هغه ته خپل نعمتونه ورکوي همدارنګه انسان دي هم هر وخت په تسلسل او دوام سره د الله تعالی حمد او ثناء بيانوي، چي دا د خپل منعم حقيقي په حضور کي د شکر ادا کول هم دي او د خپل پروردګار تعريف هم دی، يا دا چي دغه الفاظ په اصل کي د خوراک کولو په اړه د صفت درجه لري چي خوراک د الله تعالی ډېر لوی نعمت دی چي دا په هيڅ درجه کي هم د ځان لپاره کافي ونه ګڼل سي بلکه هر وخت خپل ځان د رزق الهي محتاج تصور کړل سي چي د هغه خواهش او طلب ترکيدای نسي ، او نه له هغه څخه بې نيازه کېدای سي ، يا دا چي دغه الفاظ د الله تعالی د اوصاف جليله د اظهار لپاره دي چي داسي هيڅ ذات يا داسي هيڅ شی نسته چي هغه ذات ته کافي وي بلکه هغه خپل ټول جهان او ټولو شيانو لپاره کافي دی د هغه د قربت طلب او خواهش پرېښودل کيدای نسي او نه د هغه د فضل او کرم څخه مستغني او بې نيازه کېدای سي .

﴿۴۰۱۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ لَيَرْضَى

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی د خپل بنده په دې

عَنْ الْعَبْدِ أَنْ يَأْكُلَ الْأَكْلَةَ فَيَحْمَدَهُ عَلَيْهَا أَوْ يَشْرَبَ الشَّرْبَةَ فَيَحْمَدَهُ عَلَيْهَا

حال ليدو سره خوشحاله کېږي چي هغه يوه ګوله وخوري او پر هغه د الله تعالی تعريف وکړي يا يو غړپ وڅښي او پر هغه د الله تعالی تعريف وکړي .

رواه مسلم ، و سنذكر حديثي عائشة و ابي هريرة ما شبع آل محمد وخرج النبي ﷺ من الدنيا في باب فضل الفقراء ان شاء الله تعالى .

مسلم. او ډير ژر به موږ انشاء الله د فضل الفقراء په باب کي د بي بي عائشې او حضرت ابو هريرة رضی الله عنه دوه حديثونه بيان کړو چي آل محمد ﷺ هيڅکله په ماړه نس دوه ورځې نه ده خوړلې تر څو چي نبي کريم ﷺ د دنيا څخه تشريف يووړ.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۲۰۹۵، رقم: ۸۹- ۲۷۳۴.

**تشريح**: (اکله) د الف په زور سره دی او معنی يې په يو وار مړېدو سره خوړل دي، دغه الفاظ د الف په پېښ سره هم نقل سوي دي چي معنی يې د ګولې ده.

د حديث خلاصه داده چي کله يو څوک د خوراک څخه فارغ سي يا يو شی وڅښي او د هغه وروسته د الله جل جلاله شکر ادا کړي، د هغه حمد او ثناء ووايي نو الله جل جلاله د هغه ددغه عمل څخه ډېر خوشحاله کيږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د خوراک په شروع کي بسم الله ويل

﴿۴۰۱۹﴾: عَنْ أَبِي أَيُّوبٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُرِّبَ طَعَامٌ

د حضرت ابو ايوب انصاري رضی الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ په خدمت کي ناست وو چي رسول الله ﷺ ته خوراک نژدې راوړل سو.

فَلَمْ أَرَ طَعَامًا كَانَ أَعْظَمَ بَرَكَةً مِنْهُ أَوَّلَ مَا أَكَلْنَا وَلاَ أَقَلَّ بَرَكَةً فِي آخِرِهِ قُلْنَا

ما تر او سه پوري دومره د برکت خوراک نه وو ليدلی چي د هغه په شروع کي برکت وو او په آخر کي برکت بېخي ولاړی،، موږ وويل:

يَا رَسُوْلَ اللهِ كَيْفَ هٰذَا؟ قَالَ إِنَّا ذَكَرْنَا اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ حِيْنَ أَكَلْنَا ثُمَّ قَعَدَ مَنْ أَكَلَ وَلَمْ يُسَمِّ اللهَ فَأَكَلَ مَعَهُ الشَّيْطَانَ. رواه في شرح السنة.

اې د الله رسوله! دا څنګه وسول؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: موږ د خوراک د شروع کولو په وخت کي د الله جل جلاله نوم اخيستئ وو بيا په هغه کي هغه سړی د خوراک خوړلو لپاره شريک سو چي هغه د الله جل جلاله نوم نه واخيستئ او د هغه سره شيطان خوراک وکړ. شرح السنة

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۱\ ۲۷۵، رقم: ۲۸۲۴.

**تشريح** مور د الله جل جلاله نوم اخيستی وو : په دغه جمله كي دې ته اشاره ده چي د بسم الله ويلو سنت په محض بسم الله ويلو سره تر لاسه كيږئ مگر غوره داده چي پوره بسم الله يعني بسم الله الرحمن الرحيم وويل سي، د خوراک پېل كولو په وخت كي بسم الله ويل مستحب دي تر دې كه چيري يو څوک جنب (ناپاكه) وي يا يوه ښځه د حيض يا نفاس په حالت كي وي نو دغه استحباب د هغو لپاره هم دی په شرط ددې چي د بسم الله ويلو په وخت كي د تلاوت نيت ونه كړي بلكه د ذكر په نيت سره يې ووايي كنه نو حرام به وي ځكه چي د ناپاكی، حيض او نفاس په حالت كي د قرآن كريم تلاوت كول حرام دی او بسم الله هم د قرآن كريم يوه جمله ده .

د كومو شيانو خوراک يا څښناک چي د شريعت له نظره مكروه يا حرام دی د هغو د خوړلو يا څښنلو په وخت كي بسم الله ويل مستحب نه دي، كه چيري يو څوک د شراب څښنلو په وخت كي بسم الله ووايي نو هغه كافر كيږي ، ځينو علماوو د مطلق حرام شي خوړلو په وخت كي د بسم الله ويلو ته كفر ويلي دي .

د شيطان په خوراک كي گډون كول د اكثرو علماوو سلفو او خلفو په نزد پر حقيقت باندي محمول دی چي هغه د بسم الله په نه ويلو سره د خوړونكي سره په خوراک كي حقيقتا گډيږي چي د هغه په وجه په خوراک كي بې بركتي رامنځته كيږي .

مخكي دا ذكر سوي دي چي د ځينو علماوو په نزد د اجتماعي خوراک په صورت كي د يوه سړي بسم الله ويل د ټولو لپاره كافي دي او د هر سړي بسم الله ويل ضروري نه دي نو دغه حديث د هغه علماوو د مذهب خلاف يو دليل دی .

## د خوراک په مينځ كي دعاء

﴿۴۰۲۰﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَنَسِيَ اَنْ يَّذْكُرَ اللّٰهِ تَعَالَى على طعامه فَلْيَقُلْ بِسْمِ اللّٰهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ . رواه الترمذي و ابوداؤد.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي په تاسو كي يو څوک خوراک شروع كړي او د الله جل جلاله نوم اخيستل ځيني هېر سي نو هغه ته پكار ده چي دا الفاظ ووايي بسم الله اوله واخره . ترمذي او ابوداؤد .

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\ ۲۵۳، رقم: ۱۸۵۸، وابوداود ۴\ ۱۳۹، رقم: ۳۷۶۷.

**تشريح** د الله جلاله نوم اخيستل هېر سي ...الخ: له دې څخه ځرګند سوه چي د خوراک پېل کولو په وخت کي محض د الله جلاله د نامه ذکر کول کافي دی يعني بسم الله ويل افضل دي.

په محيط کي ليکلي دي که چيري يو سړی د اوداسه کولو په وخت کي د بسم الله پر ځای لااله الاالله يا الحمدلله يا اشهد ان لااله الاالله ووايي نو هغه ته به سنت ادا کونکی ويل کيږي همدارنګه د خوړلو په صورت کي هم دا مسئله ده مګر که چيري يو سړی د اوداسه په پېل کي بسم الله ويل هېر کړي بيا د اوداسه په مينځ کي ور په ياد سي او بسم الله ووايي نو هغه ته په سنت باندې د عمل کولو درجه نه تر لاسه کيږي پر خلاف د خوراک که چيري د خوراک په مينځ کي بسم الله ور په ياد سي او وه يې وايي نو د سنت د ادا کولو لپاره کافي کيږي.

﴿۴۰۲۱﴾: وَعَنْ أُمَيَّةَ بْنِ مَخْشِيٍّ قَالَ كَانَ رَجُلٌ يَأْكُلُ فَلَمْ يُسَمِّ حَتَّى لَمْ يَبْقَ

د حضرت اميه بن مخشي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي ډوډۍ خوړل او بسم الله يې نه ويل

مِنْ طَعَامِهِ إِلَّا لُقْمَةٌ فَلَمَّا رَفَعَهَا إِلَى فِيهِ قَالَ بِسْمِ اللَّهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ فَضَحِكَ

هر کله چي يې يوه ګوله پاته سوه هغه چي خولې ته پورته کول نو ويل يې بسم الله اوله وآخره،

النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ مَا زَالَ الشَّيْطَانُ يَأْكُلُ مَعَهُ فَلَمَّا ذَكَرَ

اسْمَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ اسْتَقَاءَ مَا فِي بَطْنِهِ. رواه ابوداؤد.

رسول الله ﷺ وخندل او بيا يې وفرمايل: شيطان دده سره خوراک کوئ کله چي ده بسم الله وويل نو هغه د خپل نس ټول خوراک د باندي وغورځوئ. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۱۴۰، رقم: ۳۷۶۸.

**تشريح** شيطان د خپل نس هر څه قې کړل: دا پر حقيقت باندي محمول دی يا دا مراد دی چي د خوړلو په وخت کي د بسم الله نه ويلو په وجه چي کوم برکت تللی وو هغه يې بېرته راوګرځوی، يعني هغه برکت د هغه شيطان په نس کي امانت وو کله چي هغه سړي بسم الله وويل نو هغه برکت هم په خوراک کي بېرته راغلی.

### د خوراک وروسته شکر او حمد

﴿۴۰۲۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

إِذَا فَرَغَ مِنْ طَعَامِهِ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ. رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت ابو سعيد خدري رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به کله د خوارک څخه فارغ سو نو (الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ) به يې ويل. ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجة.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۴۷۳، رقم: ۳۴۵٦، وابوداود ۴\ ۱۸۷، رقم: ۳۸۵۰، وابن ماجه ۲\ ۱۰۹۲، رقم: ۳۲۸۳.

﴿۴۰۲۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطَّاعِمُ الشَّاكِرُ الصَّائِمِ الصَّابِرِ. رواه الترمذي و رواه ابن ماجه والدارمي عن سنان بن سنة عن ابيه.

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د خوراک وروسته شکر کونکی د صبرناک روژه دار په ډول دئ، ترمذي، او ابن ماجه او دارمي د سنان بن سنة څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کړی دئ

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵٦۳، رقم: ۲۴۸٦.

**تشريح** د شکر ادا کولو ادنا درجه داده چي د خوراک پېل کولو په وخت کي بسم الله ووايي او د خوراک فارغه کېدو وروسته د الله تعالی حمد او ثناء ووايي، د صابر روژاتي ادنا درجه داده چي خپل ځان د روژې د مفسداتو څخه وژغوري.

صابر د روژاتي په ډول دی: دغه تشبيه په اصل کي په ثواب کي ګډون دی نه دا چي په مقدار کي تشبيه ورکول مراد دي، د مثال په توګه به داسي ووايو لکه چي ويل کيږي زيد کعمرو، يعني زيد د عمرو په ډول دی، ددې معنی داده چي زيد په ځينو عادتو کي د عمرو مشابه دی نه دا چي هغه په ټولو عادتو کي د عمرو هم مثل دی، په دې کي دې ته اشاره ده چي صابر فقير د شاکر شتمن څخه غوره دی ځکه چي مشبه به د مشبه څخه اقوی وي.

﴿۴۰۲۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ اَيُّوْبٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا أَكَلَ أَوْ شَرِبَ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَطْعَمَ وَسَقَى وَسَوَّغَهُ وَجَعَلَ لَهُ مَخْرَجًا . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو ايوب رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به کله خوراک يا چيښاک وکړ نو (الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَ وَسَقَى وَسَوَّغَهُ وَجَعَلَ لَهُ مَخْرَجًا) به يې ويل . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۸۷، رقم: ۳۸۵۱.

## د خوراک تر مخه او وروسته اودس

﴿۴۰۲۵﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ قَرَأْتُ فِي التَّوْرَاةِ أَنَّ بَرَكَةَ الطَّعَامِ الْوُضُوءُ بعده

د حضرت سلمان رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي ما په تورات کي ولوستل چي د خوراک د برکت سبب د خوراک څخه وروسته اودس کول دي ،

فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رسول الله صلى الله عليه

ما رسول الله ﷺ ته ددې يادونه وکړه ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

وسلم بَرَكَةُ الطَّعَامِ الْوُضُوءُ قَبْلَهُ وَالْوُضُوءُ بَعْدَهُ . رواه الترمذي و ابوداؤد.

د خوراک برکت د خوراک څخه تر مخه اودس او د خوراک څخه وروسته اودس کول دي .
ترمذي، ابوداؤد

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۴۸، رقم: ۱۸۴۷.

**تشريح**: د اوداسه څخه مراد د خوراک څخه مخکي د لاسونو او د خوړلو څخه وروسته د دواړو لاسو او خولې پرېولل دي، د خوراک څخه مخکي اودس يعني د لاسو پرېولل په هغه خوراک کي د برکت ذريعه په دې توګه وي چي د هغه لاس پرېوللو په وجه الله تعالى په خوراک کي زياتوب ورکوي او د خوراک څخه وروسته اودس په هغه خوراک کي د برکت ذريعه کېدل دادي چي د هغه په وجه طبيعت ته سکون تر لاسه کيږي او د خوراک څخه وروسته لاسونه او خوله پرېولل يا د لاسونو او خولې په پرېوللو سره طبيعت ته سکون تر لاسه کېدل په عباداتو ، اخلاق حسنه او اعمال صالحه کي د تقويت او زړه لګېدو سبب وي .

﴿۴۰۲۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ فَقُدِّمَ إِلَيْهِ طَعَامٌ فَقَالُوا أَلَا نَأْتِيكَ بِوَضُوءٍ قَالَ إِنَّمَا أُمِرْتُ بِالْوُضُوءِ إِذَا قُمْتُ إِلَى الصَّلَاةِ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي و رواه ابن ماجه عن ابي هريرة

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د بیت الخلاء څخه راووتی نو رسول الله ﷺ ته خوراک راوړل سو، صحابه کرامو وویل: موږ د اوداسه لپاره اوبه راوړو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل ما ته دا حکم سوی دئ چي کله د لمانځه لپاره ودریږم نو اودس وکړم. ترمذي، ابوداؤد. نسائي او ابن ماجه د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت کړی دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۴۸، رقم: ۱۸۴۷، وابوداود ۴\۱۳۶، رقم: ۳۷۶۰، والنسائي ۱\۸۵.

**تشريح** دغه جمله رسول الله ﷺ د اکثر او اغلب په اعتبار وفرمایل، چي د وجوب په توګه د اوداسه کولو حکم یوازي د لمانځه لپاره دی، کنه نو د سجده تلاوت، قرآن کریم مس کولو او طواف کولو لپاره هم اودس واجب دی، په دغه وخت کي رسول الله ﷺ دا وګڼل چي صحابه کرام دا عقیده لري چي د خوراک څخه مخکي اودس کول واجب دی نو رسول الله ﷺ د دغه عقیدې د نفي په ښه ډول څرګندولو لپاره په خپل ارشاد کي د حصر طرز اختیار کړ او دا ددې خبري خلاف نه دی چي د خوراک څخه مخکي اودس کول جائز بلکه مستحب دی دلته د اوداسه څخه مراد هغه اودس دی کوم چي د لمانځه لپاره کیږي نه د خوراک کولو اودس یعني د لاسو او خولې پرېولل. د حدیث سیاق هم پر دې دلالت کوي، بیا هم که چیري په دغه جمله کي (الا ناتیک بوضوء): ایا موږ ستاسو لپاره د اوداسه اوبه راوړ، که چیري دلته د اوداسه څخه مراد خوراک اودس وي او ددغه جملې (انما امرت بالوضوء) کي د اوداسه څخه مراد د لمانځه اودس واخیستل سي نو داهم کېدای سي او د خوراک څخه مخکي لاسونه پرېولل د سنتو او ادابو څخه دی نه د واجباتو څخه. ځکه رسول الله ﷺ په دغه وخت کي د جواز ښوونې لپاره هغه پرېښود، او په دغه صورت کي به د حدیث خلاصه دا وي چي دغه اودس یعني د خوراک څخه مخکي لاسونه پرېولل چي د هغه لپاره تاسو ما ته خواست کوئ، واجب او مامور نه دی که چیري زه دا پرېږدم یعني د خوړلو څخه مخکي خپل لاسونه نه پرېولم نو څه تاوان نسته مګر دلته یو بل اودس دی او هغه د لمانځه اودس دی چي واجب دی.

## د خپل مخ څخه خوراک

﴿۴۰۲۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ اُتِيَ بِقَصْعَةٍ

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ته د ښوروا پياله راوړل سوه،

مِنْ ثُرِيْدٍ فَقَالَ كُلُوا مِنْ جَوَانِبِهَا وَ لَا تَاْكُلُوا مِنْ وَسَطِهَا فَاِنَّ الْبَرَكَةَ تَنْزِلُ فِيْ

رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمايل د غاړو څخه خورئ د منځ څخه مه خورئ ځکه برکت په

وَسْطِهَا. رواه الترمذي و ابن ماجة والدارمي و قال الترمذي هذا حديث

منځ کي نازليږي، ترمذي، ابن ماجه او دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ.

حسن صحيح و في رواية ابوداؤد قال اِذَا اَكَلَ اَحَدُكُمْ طَعَامًا فَلَا يَاْكُلْ مِنْ

او د ابوداؤد په يوه روايت کي دا الفاظ دي څوک چي خوراک کوي نو د خپل مخ د خوا دي يې

اَعْلَى الصَّحْفَةِ وَلٰكِنْ لِيَاْكُلْ مِنْ اَسْفَلِهَا فَاِنَّ الْبَرَكَةَ تَنْزِلُ مِنْ اَعْلَاهَا.

خوري د منځ يا د بلي خوا دي يې نه خوري ځکه چي برکت پر سربېره برخه نازليږي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۲۹، رقم: ۱۸۰۵، وابن ماجه ۲\ ۱۰۹۰، رقم: ۳۲۷۷، والدارمي ۲\ ۱۳۷، رقم: ۲۰۴۶، وابوداود ۴\ ۱۴۲، رقم: ۳۷۷۲.

**تشريح**: ثريد هغه خوراک ته وايي چي ډوډۍ په ښوروا کي خشته کړل سي، د جمع لفظ د جمع د صيغې په مقابله کي راوړل سوی دی، مطلب يې دادی چي هر سړی دي د خپل مخ څخه خوراک کوي د مينځ په برخه کي د برکت نازلېدل په دې سبب دي چي د يو شي په منځنۍ برخه د نورو برخو په نسبت افضل وي نو د خوراک د لوښي منځنۍ برخه ددې وړ ده چي د خير او برکت نزول پر هغه وي او کله چي د خوراک درمياني برخه د خير او برکت نازلېدو ځای وګرځول سو نو نر دې غوره خبره بله څه کېدای سي چي هغه برخه د خوراک تر پايه پاته وي چي د خوراک برکت هم تر پايه پوري وي نو دخپل مخ په پرېښودو سره لومړی د درمياني برخي څخه خوراک او د هغه ختمول به مناسب نه وي.

د کاسې د سربېره څخه مراد د هغه منځنۍ برخه ده او د هغه د لاندي څخه مراد د هغه غونډې دي، ددې مطلب هم دادی چي د خپل مخ څخه بايد خوراک وکړل سي.

## په تکیه کولو سره یې خوراک نه دی کړی

﴿۴۰۲۸﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ مَا رُئِيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ مُتَّكِئًا قَطُّ وَلَا يَطَأُ عَقِبَهُ رَجُلَانِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ هیڅکله خوراک په داسي حالت کي نه دی کړی چي تکیه دي یې لګولې وي او په رسول الله ﷺ پسي به دوه کسان هم نه تلل. حاصل دا چي د کمال تواضع څخه به رسول الله ﷺ د صحابه کرامو څخه مخکي نه تلی ځکه چي دا د متکبرانو عادت دی. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۱۴۱، رقم: ۳۷۷۰.

**تشریح** په څنګ وهلو سره د خوراک په اړه په تېرو مخونو کي تفصیلي خبره سوې ده، د وروستنیو الفاظ مطلب دادی چي کله به رسول الله ﷺ یو ځای تلی نو په رسول الله ﷺ پسي به زیات خلک نه بلکه دوه یا درې کسان به هم نه ورپسي تلل بلکه رسول الله ﷺ به د تواضع او عاجزۍ په وجه د خپلو صحابه کرامو سره داسي تلی چي یا خو به رسول الله ﷺ د ټولو په مینځ کي وو یا به تر ټولو وروسته وو، لکه څرنګه چي په بل حدیث کي دغه الفاظ نقل سوي دي چي (و یسوق اصحابه) یعني رسول الله ﷺ به د خپلو صحابهٔ کرامو څخه وروسته تلی، رسول الله ﷺ به د خپلو اصحابو او ملګرو څخه مخکي نه تلی لکه څرنګه چي د امیرانو، پاچاهانو، متکبرینو او شتمنو خلکو طریقه ده او تر هغوی مخکي تلل د خپل لويي سبب ګڼي، بلکه دا دې هغه کوي چي زیات خلک پسي روان وي، د دوو د قید څخه څرګنده سوه چي کله ناکله به لږ خلک لکه حضرت انس رضی الله عنه یا بل څوک ورپسي وو او هغه هم د ضرورت په وجه نو دا د تواضع او انکسارۍ خلاف نه دی.

## په مسجد کي د خوراک مسئله

﴿۴۰۲۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ قَالَ أُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبدالله بن حارث بن جزء رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ ته ډوډۍ او غوښه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخُبْزٍ وَّلَحْمٍ وَّهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَاَكَلَ وَ اَكَلْنَا مَعَهُ ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى وَ

صَلَّيْنَا مَعَهُ وَلَمْ نَزِدْ عَلٰى اَنْ مَسَحْنَا اَيْدِيَنَا بِالْحَصْبَاءِ . رواه ابن ماجه.

راوړل سوه ، رسول الله ﷺ دغه وخت په مسجد کي وو ، رسول الله ﷺ او موږ يو ځای ډوډۍ وخوړل بيا رسول الله ﷺ ولاړ سو او لمونځ يې وکړ او موږ هم د رسول الله ﷺ سره لمونځ وکړ موږ يوازي دومره وکړل چي خپل لاسونه مو د مسجد په کوچنيو ډبرو وچ کړل . ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۰۹۷، رقم: ۳۳۰۰.

**تشريح**: مطلب دادي چي د خوراک کولو څخه وروسته موږ خپل لاسونه په اوبو سره نه پرېولل او د هغه وجه دا وه چي په هغه خوراک کي به غوړوالی نه وو يا دا چي د لمانځه لپاره به زموږ تلوار وو يا دا سبب وو چي موږ د تکلف په پرېښودو سره پر اسانۍ باندي عمل کړی وو ځکه چي پر غير واجب کارو باندي کله نا کله پر اجازې باندي عمل کول هم د الله تعالی په نزد داسي خوښ دي لکه څرنګه چي هغه په زياتو وختو کي پر عزيمت باندي عمل کول خوښوي.

په احياء العلوم کي له ځينو صحابه کرامو څخه نقل سوي دي چي هغوی ويلي دي: د خوراک څخه وروسته زموږد پښو پندو به زموږ لپاره د دسمال کار کوی يعني موږ به د خوراک کولو څخه وروسته خپل لاسونه پر خپل پوندو موږل لکه څرنګه چي په دسمال سره وچول کيږي.

په څرګنده دا معلوميږي چي د حديث الفاظ : (لم نزد او مسحنا) کي د متکلم مع الغير صيغه رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ټولو ته شامله ده يعني رسول الله ﷺ او هلته موجود ټولو صحابه کرامو خپل لاسونه په ډبرو سره وچول.

د دغه حديث څخه څرګنده سوه چي په مسجد کي خورک او څښاک جائز دی او دا خبره په حديثو کي نقل سوې ده په خاصه توګه د خرما او داسي نورو شيانو په باره کي زيات نقل سوي دي مګر علماوو ليکلي دي چي دغه جواز په دې سره مقيد دی چي د هغه په وجه په مسجد کي چټلي وغيره پيدا نسي ، کنه نو د چټلۍ پيدا کېدو په صورت کي په مسجد کي خوراک او څښاک به حرام يا مکروه وي، او د فقهي په کتابو کي ليکلي دي چي کوم څوک د اعتکاف په حالت کي نه وي نو هغه دي په مسجد کي خوراک نه کوي، نه دي هلته څېښل کوي او نه دي بېديږي ، نه دي پلورل او رانيول کوي چي دا مکروه دي ، مګر د هغه مسافر لپاره اجازه ده چي د هغه د مسجد څخه پرته بل ځای نه وي .

علماوو ليکلي دي چي کله يو څوک مسجد ته ننوزي نو د اعتکاف نيت دي وکړي چي په مسجد کي خوراک، څښاک او نور کارونه ورته مباح سي او د اعتکاف ثواب يې هم په برخه سي .

## دلاس غوښه

﴿۴۰۳۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أُتِيَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ فَنَهَسَ مِنْهَا. رواه الترمذي و ابن ماجة.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ته پخه غوښه راوړل سوه او په هغه كي رسول الله ﷺ ته د ورانه (لاس) غوښه وركړل سوه چي د رسول الله ﷺ ډېره خوښه وه، رسول الله ﷺ غوښي په خوله څني شكولې او خوړلې. ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۴۴، رقم: ۱۸۳۷، وابن ماجه ۲\ ۱۰۹۹، رقم: ۳۳۰۷.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د بې تكلفي، سادګۍ او تواضع په سبب د ورانه د هډوكو غوښه د غاښو په ذريعه په شكولو سره وخوړل، داسي غوښه خوړل مستحب دي، طيبي رحمه الله وايي: د رسول الله ﷺ د ورانه غوښه خوښول په دې وجه وو چي هغه ښه خوږينه كيږي، ژر هضم كيږي او زياته خوندوره وي، ددغه خوښې وجه داده چي د ورانه غوښه د چټلۍ د ځايو څخه لكه كلمې وغيره څخه ليري وي، په شمائل ترمذي كي د بې بي عائشې رضي الله عنها دا روايت نقل سوی دی چي د ورانه غوښه د رسول الله ﷺ زياته خوښه نه وه مګر رسول الله ﷺ ته به كله نا كله غوښه تر لاسه كېدل او د ورانه غوښه ژر خوږينه كيږي ځكه نو د ورانه غوښه به يې خوښول، او په يوه روايت كي داسي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زياته خوندوره او زياته خوښه غوښه د ملا غوښه ده.

## غوښه په چاړې پرېكولو سره مه خورئ

﴿۴۰۳۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقْطَعُوا

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مه پرې كوئ

اللَّحْمَ بِالسِّكِّينِ فَإِنَّهُ مِنْ صَنِيعِ الْأَعَاجِمِ وَانْهَسُوهُ فَإِنَّهُ أَهْنَأُ وَأَمْرَأُ. رواه ابوداؤد والبيهقي في شعب الايمان و قالا ليس هو بالقوي

غوښه په چاړه سره ځكه چي دا د عجمي خلكو طريقه ده (بلكه) په غاښونو پرېكولو سره يې خورئ ځكه چي په غاښونو سره خوړل يې خوندور او هاضم وي. ابوداؤد او بيهقي په شعب الايمان كي او دواړو ويلي دي چي دا قوي نه دئ

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۴۵، رقم: ۳۷۷۸. والبيهقي في شعب الايمان ۵\۹۱، رقم: ۵۸۹۹.

**تشريح** د عربو خلكو د خپل ځان څخه پرته د دنيا ټولو خلكو ته عجميان ويل، مګر دلته اهل فارس (ايرانيان) مراد دي چي هغو خلكو د تكبر او غرور له مخي غوښه او نور شيان په چاړه سره پرېكولو سره خوړل، مګر په ځينو وختو كي د رسول الله ﷺ څخه هم دا ثابت دي چي رسول الله ﷺ په چاړه پرېكولو سره غوښه خوړلې ده، نو په دغه دواړو روايتو كي داسي مطابقت پيدا كيږي كه چيري غوښه نرمه او خوړينه نو دچاړې پر ځاى په غاښو سره پرېكول او خوړل پكار دي او كه غوښه كلكه وي نو بيا په چاړه سره پرېكول به جائز وي. څرګنده دي وي چي ذكر سوې منع د نهي تنزيهي په توګه ده.

## د مريض لپاره پرهيز ضروري دی

﴿۴۰۳۲﴾: وَعَنْ أُمِّ الْمُنْذِرِ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ام منذر (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زموږ كره تشريف راوړ

وَمَعَهُ عَلِيٌّ وَلَنَا دَوَالٍ مُعَلَّقَةٌ فَجَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ

او د رسول الله ﷺ سره حضرت علي رضي الله عنه هم وو، زموږ په كور كي د خرماوو غونچه زړېدل، ددغه غونچې څخه رسول الله ﷺ

وَعَلِيٌّ مَعَهُ يَأْكُلُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ مَهْ يَا عَلِيُّ

او حضرت علي رضي الله عنه خوړل، رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايل اې علي! ته يې مه خوره

فَإِنَّكَ نَاقِهٌ قَالَتْ فَجَعَلْتُ لَهُمْ سِلْقًا وَشَعِيرًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ځكه چي ته اوس جوړ سوی يې (ناروغ وو او ستړكي يې خوږېدلې) بي بي ام منذر. وايي ما د رسول الله ﷺ او د هغوی د ملګرو لپاره چغندر او اوربشي تياري كړې وې رسول الله ﷺ وفرمايل:

يَا عَلِيُّ مِنْ هٰذَا فَأَصِبْ فَإِنَّهُ أَوْفَقُ لَكَ. رواه احمد والترمذي وابن ماجة.

اې علي! دا خوره ځكه چي دا ستا لپاره ډېر ګټور دي. احمد، ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: مسند الامام احمد ۶\۳۶۴، والترمذي ۴\۳۳۵، رقم: ۲۰۳۷، وابن ماجه ۲\۱۱۳۹.

**تشريح**: د دغه حديث څخه څرګنده سوه چي د ناروغ سړي لپاره پرهېز ډېر ضروري دي بلکه ځينو طبيبانو ويلي دي څوک چي د ناروغی څخه را پورته سي او پر هغه د کمزوری غلبه وي نو د هغه لپاره پرهېز ډېر کټور دی حال دا چي د روغ سړي لپاره پرهېز تاواني دی.

## د نبي کريم ﷺ خوښ کټغ

﴿۴۰۲۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْجِبُهُ الثُّفْلُ. رواه الترمذي والبيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ سفل (کوينی يعني د دېګ پای) ډېر خوښ وو. ترمذي او بيهقي په شعب الايمان کي.

**تخريج**: رواه الترمذي في الشمائل المحمدية ص ۸۷، رقم: ۱۸۶، والبيقهي في شعب الايمان ۹۶۱۵، رقم: ۵۹۲۴.

**د لغاتو حل**: الثفل: هو ما يبقى بعد العصر او ما يلتصق بالقدر (کوينی)

**تشريح**: د رسول الله ﷺ عادت دا وو چي د نورو اړتياوي به يې پر خپل اړتيا مخکي کولې، رسول الله ﷺ به تر ټولو وروستۍ خوراک پر خپل کورنۍ، مېلمنو او اړو کسانو باندي ويشی او کوم خوراک چي به پاته سو هغه به يې د ځان لپاره ايښودی، دا د رسول الله ﷺ د قربانۍ او سخاوت دليل هم وو او د رسول الله ﷺ د تواضع او انکسارۍ، صبر او قناعت مظهر هم وو، دا خبره د شتمنو خلکو لپاره يو څرګند دليل هم دی چي په عامه توګه سره د تکبر له موخي پاته سوی خوراک پرېغور کښي او هغه ضائع کوي.

## د پيالې څټل د مغفرت ذريعه ده

﴿۴۰۲۴﴾: وَعَنْ نُبَيْشَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَكَلَ فِيْ قَصْعَةٍ فَلَحَسَهَا اسْتَغْفَرَتْ لَهُ الْقَصْعَةُ. رواه احمد والترمذي وابن ماجة والدارمي و قال الترمذي هذا حديث غريب.

: حضرت نبيشه رضي الله عنه څخه روايت دي چي رسو ل الله ﷺ وفرمايل: څوک چي دپيالې څخه وراک وکړي او بيا هغه وڅټي نو پياله د هغه لپاره استغفار کوي (بخښنه غواړي). احمد،

ترمذي ، ابن ماجه او دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\ ۷۶، والترمذي ۴\ ۲۲۸، رقم: ۱۸۰۴، وابن ماجه ۳\ ۱۰۹۸، رقم: ۳۲۷۱، والدارمي ۲\ ۱۳۱، رقم: ۲۰۲۷.

**تشريح**: څرګنده خبره داده چې کاسه په حقیقت کې استغفار کوي، علماوو دا هم لیکلي دي چې کاسه څټل په اصل کې د تواضع اختیارول دي او د تکبر څخه ځان ساتل دي او دغه شیان د مغفرت او بخښني سبب دي او کاسې ته د استغفار نسبت په دې اعتبار سوی دی چې په ظاهره د دغه مغفرت او بخښني سبب کاسه وي.

## د خوراک وروسته لاسونه پریولل

﴿۴۰۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ بَاتَ وَفِي يَدِهِ غَمَرٌ لَمْ يَغْسِلْهُ فَأَصَابَهُ شَيْءٌ فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ. رواه الترمذي وابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چې بیده سي او د هغه پر لاس (د خوراک) غوړ والی وي چې د خوړلو څخه وروسته یې پریولی نه وي او په دغه حالت کې هغه ته تاوان ورسیږي نو هغه دي خپل ځان ملامت کړي. ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۵۵، رقم: ۱۸۶۰، وابوداود ۴\ ۱۸۸، رقم: ۳۸۵۲، وابن ماجه ۲\ ۱۰۹۶، رقم: ۳۲۹۷.

## ثرید د نبي ﷺ خوښ خوراک وو

﴿۴۰۳۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ أَحَبَّ الطَّعَامِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الثَّرِيدُ مِنَ الْخُبْزِ وَالثَّرِيدُ مِنَ الْحَيْسِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چې په ټولو خوراکونو کې د رسول الله ﷺ ښوروا ډېره خوښه وه یعني د ډوډۍ ښوروا او د حیس ښوروا. ابوداؤد. (حیس: خرما، غوړي، اوړه او د پنیر یو ځای کولو څخه جوړیږي).

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۱۴۷، رقم: ۳۷۸۳.

**تشريح** د ډوډۍ ثريد هغه خوراک ته وايي چي ډوډۍ په ښوروا کي خشته کړل سي او د حيس ثريد هغه خوراک ته وايي چي د غوړو او کُرتو يعني مستو په يو ځای کولو سره د مالېدې په ډول سي (چي په پښتو کي ناتار ورته وايي).

## د زيتون د تيلو فضيلت

﴿۴۰۳۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ اُسَيْدٍ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُوا الزَّيْتَ وَادَّهِنُوا بِهٖ فَإِنَّهُ مِنْ شَجَرَةٍ مُبَارَكَةٍ. رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي.

د حضرت ابو اسيد انصاري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د زيتون تيل خورئ او بدن په غوړوئ ځکه چي دا د يو برکتناکي درختي تيل دي. ترمذي، ابن ماجه او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۵۱، رقم: ۱۸۵۲، وابن ماجه ۲\ ۱۱۰۳، رقم: ۳۳۱۹، والدارمي ۲\ ۱۳۹، رقم: ۲۰۵۳.

**تشريح**: زيتون ځکه د برکت درخته ده چي په دې کي زيات خير، برکت او ګټي دي، د قرآن کريم په آيت (الله نور السماوات والارض ...الخ) کي چي کومي درختي ته شجره مباركه ويل سوي دي له هغه څخه د زيتون درخته مراد ده چي غوره درختي يې په شام کي پيدا کيږي. په سورة والتين والزيتون کي الله تعالى ددغه درختي قسم اخيستى دى، عرب خلک په خاصه توګه د شام او سيدونکي ددغه درختي خواږه تېل خوري او ترخه تيل يې په څراغ وغيره کي مصرفوي، په طبي توګه سره دا ثابته ده چي د بدن د زيتون په تېلو غوړولو سره ډيري ګټي تر لاسه کيږي.

## د سورکې فضيلت

﴿۴۰۳۸﴾: وَعَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

د ام هانئ (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زموږ کره تشريف راوړ او وه يې فرمايل:

اَعِنْدَكِ شَيْءٌ فَقُلْتُ لَا إِلَّا خُبْزٌ يَابِسٌ وَخَلٌّ فَقَالَ هَاتِيْ مَا أَقْفَرَ بَيْتٌ مِنْ أُدْمٍ فِيهِ خَلٌّ. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب.

د خوراک یو شی سته ؟ ما وویل: هیڅ نسته مګر وچه ډوډۍ او سورکه سته، رسول الله ﷺ وفرمایل هغه راوړه ، هغه کور د کتغ څخه خالي نه دئ چي په هغه کي سورکه وي . ترمذي، ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب دئ .

**تخریج**: سنن الترمذي ۲۴٦\۴، رقم: ۱۸۴۱.

**تشریح**: رسول الله ﷺ په ډېره بې تکلفۍ سره ذکر سوی خوراک وغوښتی، ددې سبب دا وو چي د بي بي ام هانئ رضي الله عنها زړه هم خوشحاله سي او هغې ته دا هم څرګنده سي چي په کور کي څه موجود وي په هغه سره قناعت باید وکړل سي .

## خرما کتغ دی

﴿۴۰۳۹﴾: وَعَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ كِسْرَةً مِنْ خُبْزِ شَعِيرٍ فَوَضَعَ عَلَيْهَا تَمْرَةً وَقَالَ هٰذِهِ إِدَامُ هٰذِهِ وَأَكَلَ. رواه ابوداؤد.

د حضرت یوسف بن عبد الله بن سلام رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما رسول الله ﷺ ولیدئ چي د اوربشو د ډوډۍ یوه ټوټه یې واخیستل د هغه سربیره یې یوه خرما کښېښودل او وه یې فرمایل دا ددې کتغ دئ او هغه یې وخوړل . ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵۷۵\۳، رقم: ۳۲۵۹.

## غیر مسلم ته د علاج لپاره ورتګ

﴿۴۰۴۰﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ مَرِضْتُ مَرَضًا أَتَانِي النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سعد رضي الله عنه څخه روایت دئ چي زه ناروغ سوم او رسول الله ﷺ زما پوښتني ته راغلئ

يَعُودُنِي فَوَضَعَ يَدَهُ بَيْنَ ثَدْيَيَّ حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَهَا عَلَى فُؤَادِي فَقَالَ إِنَّكَ

او خپل لاس مبارک یې زما پر سینه کښېښودئ چي د هغه یخ والی زما زړه ته ورسیدئ بیا یې

رَجُلٌ مَفْئُودٌ ائْتِ الْحَارِثَ بْنَ كَلَدَةَ أَخَا ثَقِيفٍ فَإِنَّهُ رَجُلٌ يَتَطَبَّبُ فَلْيَأْخُذْ

وفرمایل : ته د زړه په درد اخته یې ته حارث بن کلده ته ورسه چي د قبیله ثقیف څخه دئ هغه په

طب پو هيږي ، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل :

سَبْعَ تَمَرَاتٍ مِنْ عَجْوَةِ الْمَدِينَةِ فَلْيَجَأْهُنَّ بِنَوَاهُنَّ ثُمَّ لِيَلُدَّكَ بِهِنَّ . رواه ابوداؤد.

هغه دي د مدينې د عجوه خرماوو څخه اووه دانې واخلي او هغه دي په هډوكي سره وكوټي بيا دي يې ستا په خوله كي واچوي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۲۰۷، رقم: ۳۸۷۵.

**د لغاتو حل**: يلد : اى يصب الدواء في الفم (په خوله كي دوا اچول.)

**تشريح**: كه چيري دا سوال پيدا سي چي ددې څه سبب وو چي رسول الله ﷺ مخكي سعد رضي الله عنه ته و طبيب ته د تلو حكم وكړ او بيا يې خپل علاج هم تجويز كړ مګر د دواء جوړولو كار يې طبيب ته وسپارى ، ددې جواب دادى چي مخكي خو يې سعد رضي الله عنه ته و طبيب ته د تلو مشوره وركړه چي په لېدو سره د هغه علاج وكړي بيا چي رسول الله ﷺ ته د هغه ناروغۍ يو آسانه علاج ورپه ياد سو چي ژر ګټه كونكى وو نو د شفقت او تعلق له موخي يې هغه ته تجويز وركړ، يعني د دواء ښودل او استعمال د طبيب لپاره زيات اسان وو ځكه نو دغه كار يې هغه ته وسپارى .
علماوو ليكلي دي چي دغه حديث پر دې دلالت كوي چي غير مسلم طبيب ته ورتلل او مشوره كول جائز دي ځكه چي حارث بن كلده د اسلام په لومړنۍ زمانه كي مړ سوى دى او د هغه اسلام منل ثابت نه دي .

## غذا معتدله كړئ

﴿۴۰۴۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْكُلُ الْبِطِّيخَ بِالرُّطَبِ .رواه الترمذي و زاد ابوداؤد يقول يكسر حر هذا ببرد هذا و برد هذا بحر هذا وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

د عائشې (رض) څخه روايت دئ چي نبي كريم ﷺ به تازه هندوانه (خټكى) د خرماوو سره خوړل . ترمذي، ابوداؤد دا الفاظ زيات ليكلي دي چي رسول الله ﷺ به فرمايل ددې يخوالى ددې ګرمي ماتوي او ددې ګرمي ددې يخوالي ماتوي . ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۲۴۶، رقم: ۱۸۴۳، وابوداود ۴\۱۷۶، رقم: ۳۸۳۶.

**تشریح** د ذکر سوو دواړو شیانو په یو ځای کولو سره خوړلو کي لوی حکمت دادی چي یو شی یخ او بل شی ګرم دی، د دواړو په یو ځای کولو سره معتدل خوراک جوړیږي، طیبي رحمة الله علیه ویلي دي: د ختکي څخه مراد کیدای سي اوم ختکی وي ځکه چي هغه یخ وي او پوخ ختکی ګرم دی مګر د خرما په نسبت هغه هم یخ وي، اکثرو علماوو لیکلي دي چي د بطیخ څخه مراد ختکی نه دی بلکه هندوانه مراد ده چي هغه یخه وي.

## چینجني خرماوي

﴿۴۰۴۲﴾: وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرٍ عَتِيقٍ فَجَعَلَ يُفَتِّشُهُ يُخْرِجُ السُّوسَ مِنْهُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ ته زړي خرماوي راوړل سوې (چي چینجي یې کړي وه) رسول الله ﷺ به هغه څیرلې چینجي به یې د هغه څخه ایستل او غورځول به یې. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۱۷۴، رقم: ۳۸۳۲.

**تشریح** طبراني په حسن سند سره د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه مرفوع نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ د خرما د پرېکولو څخه منع فرمایلې ده، په دغه صورت کي په ظاهره د رسول الله ﷺ په فعل او قول کي تضاد معلومیږي ځکه نوویل کیږي چي د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه کومه منع نقل سوې ده د هغې تعلق د نوو خرماوو سره دی او د هغه مقصد د وهم او وسوسې څخه ساتل دي یا دا چي د حضرت انس رضي الله عنه څخه کوم فعل منقول دی هغه پر بیان جواز باندي محمول دی او ذکر سوې منع د نهي تنزیهي په توګه ده.

طیبي رحمة الله علیه ویلي دي: دغه حدیث پر دې دلالت کوي که چیري په خوراک کي چینجیان وي نو هغه خوراک نه مرداریږي او په مطالب المؤمنین کي لیکلي دي که چیري چنجیان په پنیر یا سیب کي ولویږي او د خوړلو په وخت کي نس ته ولاړ سي نو هغه به حلال وي ځکه چي د هغه څخه ځان ساتل ممکن نه دي.

مګر که چیري د دغه شیانو څخه ایستل سوي وي نو بیا د هغه حکم به د مچ موچی، مچ او هر هغه حیوان وي کوم چي دم مسفوح (روانه وینه) نه لري چي د هغه خوړل حرام دي مګر که چیري

هغه په اوبو یا خوراک کي ولویږي نو هغه به ناپاک نه وي.

## د پنیرو خوراک

﴿۴۰۴۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجُبْنَةٍ فِي تَبُوكَ فَدَعَا بِسِكِّينٍ فَسَمَّى وَقَطَعَ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ ته د تبوک په غزا کي د پنیر یوه ټوټه راوړل سوه، رسول الله ﷺ چاړه را وغوښتل بسم الله یې وویل او هغه یې پریکړل. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۱۶۹. رقم: ۳۸۱۹.

**تشریح**: دغه بسم الله ویل د خوراک پېل کولو په وخت کي د بسم الله ویلو پر ځای وه نه دا چي هغه بسم الله کوم چي د ذبح پر وخت ویل کیږي لکه څرنګه چي ځیني جاهل خلک د کدو پرېکولو په وخت کي د ذبح په نیت سره بسم الله وایي، مظهر رحمة الله علیه لیکلي دي دغه حدیث پر دې دلالت کوي چي د اوبنو یا پسه د بچي لرى او کولمې پاکي دي که چیري هغه ناپاکه وای نو باید پنیر هم ناپاک سي ځکه پنیر د هغه څخه پرته نه جوړیږي.

## حلال او حرام د الله جل جلاله له لوري دي

﴿۴۰۴۴﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ السَّمْنِ

د حضرت سلمان رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسوه د غوړو،

وَالْجُبْنِ وَالْفِرَاءِ فَقَالَ الْحَلَالُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ فِي كِتَابِهِ وَالْحَرَامُ مَا حَرَّمَ اللَّهُ

پنیر او ځنګلي خره په اړه، رسول الله ﷺ وفرمایل: حلال هغه دي چي الله تعالى خپل په کتاب کي حلال کړي دي او حرام هغه دي چي الله تعالى حرام کړي دي

فِي كِتَابِهِ وَمَا سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ مِمَّا عَفَا عَنْهُ. رواه ابن ماجة والترمذي وقال هذا حديث غريب موقوف على الاصح.

په خپل کتاب کي او د کوم شي څخه چي الله تعالى خاموشي اختیار کړې ده هغه معاف دي. ابن ماجه او دارمي. ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ او د صحیح قول سره سم موقوف هم دئ.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۱۹۲. رقم: ۱۷۲۶.

**تشریح** د غوړو په اړه ځکه پوښتنه وسول چې په ظاهره د اسلام په پیل کې ځینو خلکو ته د هغه په حلال کېدو کې شک سوی وو ، د پنیر معامله بذات خود محل اشتباه او سوال وو ځکه چې په هغه زمانه کې هغه د اوښ یا پسه د لرې او کولمو څخه جوړېدی ، دریم شی چې د هغه په اړه پوښتنه وسول هغه فراء وو ، د فراء په اړه اکثرو شارحینو ویلي دي چې د فرئي جمع ده چې معنی یې د ځنګلي خره ده ، او ځینو د فرو جمع ورته ویلي دي چې معنی یې د پوست ده ځکه ترمذي دغه روایت په باب اللباس کې نقل کړی دی په دغه صورت کې به ویل کیږي چې د فراء په اړه سوال د کفارو د عمل څخه د پرهیز کولو په جذبه سوی وو ځکه چې کفارو به د فراء پوست د دباغت څخه پرته استعمالوی .

په خپل کتاب کې حرام ګرځولي دي: ددې مطلب دادی چې یا خو هغه شیان حرام دي چې د هغو حرام کېدل په وضاحت سره بیان سوي دي یا ددغه آیت (وما اتاکم الرسول فخذوه وما نهاکم عنه فانتهوا ) په ذریعه اجمال بیان سوی دی او دا وضاحت ځکه ضروري دی چې د هغه اکثرو شیانو په اړه سوال پیدا نسي کوم چې حرام دي مګر د هغو حرام کېدل په کتاب الله کې په وضاحت سره بیان سوي نه دي بلکه د هغو حرام کېدل د حدیثو په ذریعه ثابت دي ، د حدیث آخري جمله ددې خبرې دلیل دی چې ټول شیان د خپل اصل په اعتبار مباح دي نو کوم شیان چې شریعت حرام کړي نه دي هغه مباح دي .

دغه حدیث موقوف دی: ددې مطلب دادی چې دا د حضرت سلمان رضی الله عنه خپل قـــول دی نه د رسول الله ﷺ ارشاد . د فن حدیث په اصطلاح کې د صحابه کرامو قول او فعل ته موقوف ویل کیږي لکه څرنګه چې د رسول الله ﷺ قول او فعل ته مرفوع ویل کیږي .

**د نبي کریم ﷺ د طرفه د ښه خوراک خواهش**

﴿۴۰۴۳﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدِدْتُ أَنَّ

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : زړه مي غواړي چې

عِنْدِي خُبْزَةً بَيْضَاءَ مِنْ بُرَّةٍ سَمْرَاءَ مُلَبَّقَةً بِسَمْنٍ وَلَبَنٍ فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ

زما سره د سپینو ښه غنمو ډوډۍ وي او هغه په غوړو او شیدو کې خشته سوې وي ، د مسجد

الْقَوْمِ فَاتَّخَذَهُ فَجَاءَ بِهِ فَقَالَ فِي أَيِّ شَيْءٍ كَانَ هَذَا قَالَ فِي عُكَّةِ ضَبٍّ قَالَ

اَرْفَعْهُ . رواه ابوداؤد وابن ماجة و قال ابوداؤد و هذا حديث منكر .

ځخه يو سړی ولاړ سو او دغه ډول ډوډۍ يې تياره کړې راوړل ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه په کومو غوړو سره دا ډوډۍ خشته سوې ده هغه په کوم لوښي کي وه ، هغه وويل: د سمسارې د پوست په کپۍ کي ، رسول الله ﷺ وفرمايل دا پورته کړه . (يعني يوسه) . ابوداؤد ، ابن ماجه او ابوداؤد ، ترمذي ويلي دي دا حديث منکر دئ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۶۸، رقم: ۳۸۱۸، وابن ماجه ۲\۱۱۰۹، رقم: ۳۳۴۱.

**د لغاتو حل**: ملبقة: اى مبلولة مخلوطة.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د خپل مخ ځخه د هغه ډوډۍ د پورته کولو حکم ځکه وکړ چي رسول الله ﷺ د سمسارې ځخه طبعي نفرت درلودی ځکه چي هغه د رسول الله ﷺ د قوم په سيمه کي نه ترلاسه کېدلې ، لکه ځرنګه چي په تېرو مخونو کي د حضرت خالد رضي الله عنه روايت په دې اړه تېر سوی دی ، که د سمسارې پوست نجس وای نو رسو ل الله ﷺ به د سمسارې په پوست کي د ايښي غوړو د غورځولو حکم کړی وای او نور به يې د هغه ځخه منع کړي وای .

د رسول الله ﷺ د ډوډۍ غوښتل او د نفس د خواهش سره سم د هغه اظهار کول يوه داسي پېښه وه چي د رسول الله ﷺ د عادت او مزاج بالکل خلاف معلومېږي ځکه ابوداؤد دغه روايت ته منکر ويلي دي او که چيري دغه روايت صحيح ومنل سي نو په هغه صورت کي به دا توجيه کيږي چي رسول الله ﷺ د داسي خواهش اظهار د بيان جواز لپاره کړی دی .

### او مه وږه مه خورئ

﴿۴۰۴۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ نُهِيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الثُّومِ إِلَّا مَطْبُوخًا . رواه الترمذي و ابوداؤد.

: حضرت علي رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د اومي وږي د خوړلو ځخه منع کړې ده خو کله چي پخه سي نو د هغه خوړل صحيح دي . ترمذي او ابوداؤد .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۳۰، رقم: ۱۸۰۸، وابوداود ۴\۱۷۳، رقم: ۳۸۲۸.

**تشريح**: د پخې وږي خوړلو ځخه يې ځکه منع نه ده فرمايلې چي په پخولو سره د هغه بوی له منځه ځي ، دغه حکم د پياز او داسي نورو بدبويو شيان هم دی مګر ځرګنده دي وي چي ذکر

سوې منع د نهي تنزيهي په توګه ده .

## پاخه پياز خوړل

﴿۴۰۴۷﴾: وَعَنْ أَبِي زِيَادٍ قَالَ سُئِلَتْ عَائِشَةُ عَنِ الْبَصَلِ فَقَالَتْ إِنَّ آخِرَ طَعَامٍ أَكَلَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامٌ فِيهِ بَصَلٌ . رواه ابوداؤد

د حضرت ابو زياد رضي الله عنه څخه روايت دئ چې د بي بي عائشې (رض) څخه د پيازو په اړه پوښتنه وسول، هغې وويل : رسول الله ﷺ چې په خپل ژوند کي کوم آخري خوراک په آخري وار خوړلی وو په هغه کي پيازوو . (يعني پاخه پياز) . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۱۷۴، رقم: ۳۸۲۹.

**تشريح** په دغه مسئله کي تفصيل دادی چې په روايتو کي راغلي دي چې رسول الله ﷺ پياز او وږه نه ده خوړلې بلکه په ځينو روايتو کي دادي چې امت يې هم له دې څخه منع کړی دی مګر د بي بي عائشې رضي الله عنها د روايت څخه ثابتيږي چې رسول الله ﷺ پياز خوړلی دی، ځيني حضرات وايي چې د پياز او وږي د خوړلو منع چې نقل سوې ده ددې تعلق د اومه پياز او وږي سره دی نه د پاخه وږي او پياز سره ، بلکه صحيح خبره داده چې د اومه پياز او وږي په اړه منع د نهي تنزيهي په توګه ده د نهي تحريمي په توګه نه ده ، دغه شيان نه خو پر رسول الله ﷺ حرام وو او نه پر امت باندي حرام دي بلکه طحاوي په شرح اثار کي داسي حديثونه نقل کړي دي چې پر دې خبره دلالت کوي چې پياز ، وږه ، ګندنه او داسي نور شيان خوړل مباح دي که څه هم هغه اومه وي يا په خوراک کي پخ سوي وي ، مګر دغه اباحت د هغه چا لپاره دی چې د هغه د خوړلو څخه وروسته په کور کي وي او د هغه بوی سره مسجد ته ولاړ نسي ځکه چې ددغه شيانو په خوړلو سره مسجد ته تلل مکروه دي ، د امام ابوحنيفة، امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليهم قول هم دادی ، ابن مالک رحمة الله عليه وايي تر څو چې د رسول الله ﷺ د ذات تعلق دی نو رسول الله ﷺ د خپل ژوند په پای کي داسي شيان خوړل چې په هغو کي پياز وه د بيان جواز لپاره او دا څرګندول يې مقصد وو چې ددغه شيانو خوړل د نهي تنزيهي په توګه دي نه د تحريمي په توګه .

## کوچي د نبي کريم ﷺ خوښ وه

﴿۴۰۴۸﴾: وَعَنِ ابْنَيْ بُسْرٍ السُّلَمِيَّيْنِ قَالَا دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدَّمْنَا زُبْدًا وَتَمْرًا وَكَانَ يُحِبُّ الزُّبْدَ وَالتَّمْرَ . رواه ابوداؤد.

د حضرت بسر سلمي رضی الله عنه د ددو زامنو څخه روايت دئ چي هغوی وويل : رسول الله ﷺ زموږ کره تشريف راوړ موږ کوچي او خرماوي په مخ کي ورته کښېښودلې ، رسول الله ﷺ به کوچي او خرماوي ډير خوښول . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۷۶\۱۴، رقم: ۳۸۳۷.

## د خوراک ادبونه

﴿۴۰۴۹﴾ : وَعَنْ عِكْرَاشِ بْنِ ذُؤَيْبٍ قَالَ أُوتِينَا بِجَفْنَةٍ كَثِيرَةِ الثَّرِيدِ وَالْوَذْرِ

د حضرت عکراش بن ذؤيب رضی الله عنه څخه روايت دئ چي موږ ته يو تالۍ راوړل سول چي په هغه کي ښوروا او غوښه وه

فَخَبَطْتُ بِيَدِي فِي نَوَاحِيهَا وَأَكَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَيْنِ

ما خپل لاس د تالۍ په شا وخوا کي په تيزي سره وګرځوئ او رسول الله ﷺ د خپل مخ څخه خوړل

يَدَيْهِ فَقَبَضَ بِيَدِهِ الْيُسْرَى عَلَى يَدِي الْيُمْنَى ثُمَّ قَالَ يَا عِكْرَاشُ كُلْ مِنْ

رسول الله ﷺ په خپل چپه لاس سره زما راسته لاس ونيوئ او وه يې فرمايل اې عکراش ! د يو

مَوْضِعٍ وَاحِدٍ فَإِنَّهُ طَعَامٌ وَاحِدٌ ثُمَّ أُتِينَا بِطَبَقٍ فِيهِ أَلْوَانُ التمر فَجَعَلْتُ آكُلُ

ځای څخه خوراک کوه ځکه چي دا يو خوراک دئ ، بيا زموږ په مخکي غاب کښېښودل سو چي په هغه کي ډول ډول خرماوي وې ما

مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ وَجَالَتْ يَدُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الطَّبَقِ وَقَالَ يَا

د خپل مخ څخه خوراک پيل کړ او د رسول الله ﷺ مبارک لاس په غاب کي ګرځيدئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل اې

عِكْرَاشُ كُلْ مِنْ حَيْثُ شِئْتَ فَإِنَّهُ غَيْرُ لَوْنٍ وَاحِدٍ ثُمَّ أُتِينَا بِمَاءٍ فَغَسَلَ

عکراش ! د کوم ځای څخه چي دي زړه غواړي خوره يې په دغه غاب کي يو ډول شی نه دئ ، بيا

موړ ته او به راوړل سوې

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ وَمَسَحَ بِبَلَلِ كَفَّيْهِ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ وَرَأْسَهُ وَقَالَ يَا عِكْرَاشُ هٰذَا الْوُضُوءُ مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ. رواه الترمذي.

رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه مبارک پریولل او د خپلو لاسونو لوندوالی یې پر خپل مخ، څنگلو او سر باندي ومو ښل او وه یې فرمایل اې عکراش! دا دهغه خوراک اودس دئ چي هغه اور متغیر کړی وي (یعني پخ کړي یې وي). ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۲۴۹، رقم: ۱۸۴۸.

**د لغاتو حل**: الجفنة: ای القصعة (کاسه)

**تشریح**: یو ډول خوراک دی: ددې مطلب دادی چي کله په کاسه کي یو ډول خوراک وي او هري خوا ته یو ډول وي نو بیا د کاسې په شاوخوا کي لاس وهل د طمع او حرص څخه پرته بل هیڅ نه دي، یعني که خوراک څو ډوله وي یا یو ډول وي مگر د کاسې په هره برخه کي بېل بېل رنګ وي نو د خپل طبیعت د میلان په وجه د هري خوا څخه خوړل مناسب دي مگر کله چي خوراک یو ډول وي او یو رنګ وي نو بیا هري خوا ته لاس غزول مکروه دي، د کومي خوا څخه چي غواړي، مگر په دې کي د مینځ ځای مستثنی دی ځکه چي هغه د برکت نازلېدو ځای دی او دا کیدای سي چي د مینځ څخه نه خوړل د هغه خوراک سره مخصوص دی چي یو رنګ وي او دلته د خرماوو خوړلو په صورت کي یو رنګ نه وو ځکه د مینځ څخه هم د خرما په پورته کولو کي څه پرواه نسته، ابن مالک رحمة الله علیه وایي ددغه ارشاد څخه دا مفهوم اخیستل کیږي که د خوراک شی د میوې له قسم څخه وي او هغه یو ډول وي نو په دغه صورت کي د لوښي هري خوا ته لاس غزول نه دي پکار لکه څرنګه چي د خوراک حکم دی او دا هم څرګند سوه چي په یوه لوښي کي خوراک مختلف وي نو یوازي د خپل مخ څخه د خوړلو قید به نه وي بلکه د کومي خوا څخه چي ئې زړه غواړي خوړلای ئې سي.

## د حریرې کټي

﴿۴۰۵۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَخَذَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ په کورنۍ کي به یو څوک

أَهْلَهُ الْوَعَكُ أَمَرَ بِالْحِسَاءِ فَصُنِعَ ثُمَّ أَمَرَهُمْ فَحَسَوْا مِنْهُ وَكَانَ يَقُولُ إِنَّهُ

ناروغ سو نو رسول الله ﷺ به د حریره (نرمي شیرې) تیارولو حکم کوئ. نو حریره به تیاره سوه

لَيَرْتُقُ فُؤَادَ الْحَزِينِ وَيَسْرُو عَنْ فُؤَادِ السَّقِيمِ كَمَا تَسْرُو إِحْدَاكُنَّ الْوَسَخَ

بِالْمَاءِ عَنْ وَجْهِهَا. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح.

بیا به رسول الله ﷺ دَ حریره د څښلو حکم کوئ او هغوی به حریره څښل. او رسول الله ﷺ به دا فرمایل چي حریره غمجن زړه ته قوت ورکوي او د ناروغ د زړه څخه ناروغي لیري کوي لکه څرنګه چي تاسو په اوبو سره د مخ څخه خیري لیري کوي. ترمذي. او ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن صحیح دئ.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۳۳٦، رقم: ۲۰۳۹.

**د لغاتو حل**: الوعک: ای الحمي او شدتها (تبه)

**تشریح** حساء د خوراک یو نرم ډول دی چي د اوړو، اوبو او غوړو په یو ځای کولو سره پخیږي. د مکې خلک حریره هم ورته وایي او تلبینه هم، چي یادونه یې د لومړي فصل په حدیث کي تېره سوې ده، رسول الله ﷺ په دغه ارشاد کي د حریرې د ګټو څرګندولو لپاره خپله خبره ښځو ته ځکه وکړځول چي په اصل کي ښځي د خپل بدن او خېرو پرېوللو او د مخ پاکولو زیاته هڅه کوي یا دا چي کله رسول الله ﷺ دغه ارشاد وفرمایه نو هغه وخت ښځي موجود وې ځکه هغوی یې مخاطب کړل.

## عجوه د جنت خرما ده

﴿۱۵۰۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَجْوَةُ مِنَ الْجَنَّةِ وَفِيهَا شِفَاءٌ مِنَ السُّمِّ وَالْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: عجوه د جنت څخه ده او په دې کي د زهرو څخه شفاء ده او پوڅکی د من څخه دی او د دې اوبه د سترګو لپاره شفاء ده. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۵۰، رقم: ۲۰۶۶.

**تشريح**: عجوه د جنت خرما ده: دديٍ مطلب دادی چي د عجوه اصل د جنت څخه راغلی دی يا دا چي په جنت کي کومي خرماوي دي هغه عجوه دي، يا دا چي عجوه داسي گټوره او خوندوره خرماده لکه د جنت مېوه. زيات صحيح مطلب لومړنی دی، د حديث د پاته برخي وضاحت په اول فصل کي تېر سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث　(دريم فصل)

### په چاړه پرېکولو سره خوراک

《۴۰۵۲》: عَنِ الْمُغِيْرَةَ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ ضِفْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د مغيره بن شعبة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يوه شپه (د يو چا کره) رسول الله ﷺ ميمله سو (هغه

ذَاتَ لَيْلَةٍ فَأَمَرَ بِجَنْبٍ فَشُوِيَ ثُمَّ أَخَذَ الشَّفْرَةَ فَجَعَلَ يَحُزُّ لِيْ بِهَا مِنْهُ فَجَاءَ

سړي پسه حلال کړ) رسول الله ﷺ هغه ته د ورانه کبابولو امر وکړ ورون کباب سو، رسول الله ﷺ چاړه واخيستل او غوښه يې زما لپاره پرېکول، په دغه وخت کي

بِلَالٌ يُؤْذِنُهُ بِالصَّلَاةِ فَأَلْقَى الشَّفْرَةَ فَقَالَ مَا لَهُ تَرِبَتْ يَدَاهُ قَالَ وَكَانَ شَارِبُهُ

بلال رضي الله عنه راغلئ او د لمانځه خبر يې ورکړ، رسول الله ﷺ چاړه هلته کښېښودل او وه يې فرمايل: بلال ته څه وسول د هغه دي لاس په خاورو ولړل سي، مغيره وايي چي د هغه (يعني

وَفَاءً فَقَالَ لِيْ أَقُصُّهُ لك عَلَى سِوَاكٍ؟ أَوْ قُصَّهُ عَلَى سِوَاكٍ. رواه الترمذي.

مغيره) بريتونه لوي سوي وه، رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل چي زه ستا بريت په مسواک (يعني مسواک سربيره ايښودو سره) غوڅ کړم يا دا يې وفرمايل چي خپل بريت په مسواک غوڅ کړه. ترمذي.

**تخريج**: الشمائل للترمذي ص۸۶، رقم: ۱۶۷.

**تشريح**: د هغه لاسونه دي په خاورو سي: دا په اصل کي د ذلت خوارۍ او مفلسۍ څخه کنايه ده او يو ډول ښېرا ده مګر ددغه جملې استعمال په عامه توګه د عربو په نزد د هغه سړي لپاره ويل کيږي چي د هغه ملامتول مقصد وي او په حقيقت کي د ښېرا واقع کېدو مطلب او خواهش

نه وي بلکه د ورځنی محاورې په توګه دغه جمله وایي او ددې څخه مراد محض ملامتیا وي ، دلته هم پر رسول الله ﷺ باندي دا ناخوښه سول چي اوس د لمانځه وخت پاته دی نو بلال رضي الله عنه د خوراک د بوختیا په وخت کي د لمانځه لپاره پورته کول وغوښتل او دا هم کیدای سي چي رسول الله ﷺ ددغه جملې استعمال د کوربه د کیفیاتو او حالاتو په لېدو سره فرمایلې وي چي هغه وخت به کوربه ته لوی ذهني اذیت رسیدلی وي ځکه رسول الله ﷺ د هغه لپاره پر حضرت بلال رضي الله عنه باندي ددغه جملې په ذریعه د ناخوښی اظهار وفرمایه .

د هغه شونډي (برېتونه) اوږده سوي وه، شارحینو ددغه جملې وضاحت په څو ډوله کړی دی یو خو دا چي د شارب ضمیر د حدیث راوي حضرت مغیره رضي الله عنه ته راجع دی ، په دغه صورت کي که څه هم د ظاهري طرز تقاضا دا وه چي داسي ویل سوي وای (وکان شاربي) یعني ضمیر د متکلم استعمال سوی وای مګر ددې پر ځای و شاربه ویلو سره د غائب ضمیر استعمال سوی دی ددې وجه محض تفنن کلام دی چي د اهل معاني په اصطلاح کي تجرید والتفات ورته ویل کیږي نو ددغه جملې مطلب دادی چي زما برېتونه لوی سوي وه او په مسواک یې پرې کوئ ، مطلب دا وو چي د شونډو لاندي د مسواک په ایښودو سره برېتونه یې په چاړه یا غچي سره پرې کول .

یا دا یې وفرمایل : دا په اصل کي د راوي خپل شک ظاهرول دي چي یا خو رسول الله ﷺ لومړنی جمله وفرمایل یا دا یې وفرمایل چي زه ستا برېت پرې کړم، بلکه حضرت مغیره رضي الله عنه ته یې حکم وکړ چي هغه دي خپل برېتونه پرې کړي ، شارحینو دوهم صورت دا بیان کړی دی که د شاربه ضمیر رسول الله ﷺ ته راجع کړل سي یعني د حضرت مغیره رضي الله عنه مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ برېتونه اوږده سوي وه نو رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل : زه خپل برېتونه ستا لپاره پرې کوم چي د هغه وښتان ستا سره پاته سي او ته د هغه څخه برکت ترلاسه کړې یا دا چي رسول الله ﷺ حضرت مغیره رضي الله عنه ته حکم وکړ چي ته زما د شونډو وښتان پرې کړه .

## د خوراک شروع په بسم الله

﴿۴۰۵۳﴾ : وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كُنَّا إِذَا حَضَرْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حذیفه رضي الله عنه څخه روایت دئ چي کله موږ د رسول الله ﷺ سره په یو خوراک کي ګډ سوي یو نو

طَعَامًا لَمْ نَضَعْ أَيْدِيَنَا حَتَّى يَبْدَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَضَعَ

موږ به تر هغه وخته پوري خوراک ته لاس نه وروړئ تر څو پوري چي رسول الله ﷺ پیل نه وای

يَدَهُ وَإِنَّا حَضَرْنَا مَعَهُ مَرَّةً طَعَامًا فَجَاءَتْ جَارِيَةٌ كَأَنَّهَا تُدْفَعُ فَذَهَبَتْ لِتَضَعَ

کړي. يو وار موږ د رسول الله ﷺ سره په يو خوراک کي حاضر سوو يوه انجلۍ د خوراک لپاره راغله يعني د لوږي څخه بې اختياره پر خوراک را پريوتل هغې غوښتل چي خوراک ته لاس

يَدَهَا فِي الطَّعَامِ فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهَا ثُمَّ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ

کړي چي رسول الله ﷺ د هغې لاس ونيوئ بيا يو صحرائي راغلئ هغه هم پر خوراک

كَأَنَّمَا يُدْفَعُ فَأَخَذَ بِيَدِهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ

راوغورځيدئ رسول الله ﷺ د هغه لاس هم ونيوئ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل شيطان هغه

يَسْتَحِلُّ الطَّعَامَ أَنْ لَا يُذْكَرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ جَاءَ بِهَذِهِ الْجَارِيَةِ

خوراک د ځان لپاره حلال ګڼي چي پر هغه د الله نوم نه واخيستل سي، شيطان هغه انجلۍ

لِيَسْتَحِلَّ بِهَا فَأَخَذْتُ بِيَدِهَا فَجَاءَ بِهَذَا الْأَعْرَابِيِّ لِيَسْتَحِلَّ بِهِ فَأَخَذْتُ

راوستل چي د ځان لپاره (يعني شيطان) خوراک حلال کړي (ځکه چي هغه پر ته د بسم الله ويلو څخه خوراک پيل کونکې وه) نو ما د هغې لاس ونيوئ، بيا شيطان دغه صحرائي راوستئ چي دده په ذريعه د ځان لپاره خوراک حلال کړي ما دده لاس هم ونيوئ،

بِيَدِهِ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّ يَدَهُ فِي يَدِي مَعَ يَدِهَا. و زاد في رواية ثم ذكر اسم الله واكل. رواه مسلم.

په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په واک کي زما ساه ده د شيطان لاس د دغه انجلۍ د لاس سره زما په لاس کي دئ، حذيفه وايي ددې څخه وروسته په بسم الله ويلو سره خوراک پيل سو. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۹۷، رقم: ۱۰۲- ۲۰۱۷.

**تشريح** په يوه روايت کي (مع يدها) يعني د هغه انجلۍ په لاس سره، پر ځای د (مع يديهما) يعني د هغه انجلۍ او همسايه په لاس سره، الفاظ نقل سوي دي، او دا زيات صحيح معلوميږي بيا هم په کوم روايت کي چي د يدها لفظ دی هغه د انجلۍ سره مخصوص دی او دا

ددې خلاف نه دی چي د هغه صحرائي لاس هم د رسول الله ﷺ په لاس کي وي ځکه چي رسول الله ﷺ دا فرمايلي وه چي ما د هغه صحرائي لاس هم ونيوی مگر مخکي يې د هغه انجلۍ لاس نيولی وو ځکه په خاصه توگه يې د هغې ذکر وکړ.

## زيات خوراک د بې برکتۍ علامه ده

﴿۴۰۵۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَادَ أَنْ يَّشْتَرِيَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يو غلام رانيولو اراده وکړه،

غُلَامًا فَأَلْقٰى بَيْنَ يَدَيْهِ تَمْرًا فَأَكَلَ الْغُلَامُ فَأَكْثَر فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ كَثْرَةَ الْأَكْلِ شُؤْمٌ وَأَمَرَ بِرَدِّهِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

رسول الله ﷺ د هغه غلام مخ ته خرماوي وغورځولې غلام ډيري خرماوي وخوړلې، ددې په ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل: زيات خوراک د بې برکتۍ سبب دئ بيا د هغه غلام د بيرته ورکولو حکم يې وکړ. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\۳۱- ۳۲، رقم: ۵۶۶۱.

## د مالگي تعريف

﴿۴۰۵۵﴾: وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيِّدُ إِدَامِكُمُ الْمِلْحُ. رواه ابن ماجة.

د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مالگه ستاسو د کتغونو سرداره ده. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۱۰۲، رقم: ۳۳۱۵.

**تشريح** مالگي ته غوره کتغ په دې اعتبار ويل سوي دي چي هغه په ډېره اساني سره تر لاسه کيږي او د قناعت تر ټولو نژدې ذريعه ده. په دې وجه اکثرو عارفينو او اهل الله به په مالگه باندي قناعت کوی. په دې اعتبار سره د رسول الله ﷺ دغه ارشاد د هغه خلاف نه دی چي (سيد الادم في الدنيا والاخرة اللحم) يعني په دنيا او آخرت کي د ټولو کتغونو سردار غوښه ده.

## د خوراک لپاره چمپل کښل

﴿۴۰۵۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وُضِعَ الطَّعَامُ فَاخْلَعُوْا نِعَالَكُمْ فَإِنَّهُ أَرْوَحُ لِأَقْدَامِكُمْ.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي خوراک کښېښنودل سي نو چمپل وکاږئ ځکه چي د چمپلو په کښلو سره پښنو ته ډېر آرام رسيږي. دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۱۴۸، رقم: ۲۰۸۰.

## د خوراک يخول ښه دي

﴿۴۰۵۷﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِيْ بَكْرٍ أَنَّهَا كَانَتْ إِذَا أُتِيَتْ بِثَرِيْدٍ أَمَرَتْ بِهِ فَغُطِّيَ حَتّٰى تَذْهَبَ فَوْرَةُ دُخَانِهِ وَتَقُوْلُ إِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ هُوَ أَعْظَمُ لِلْبَرَكَةِ. رواهما الدارمي.

د حضرت اسماء بنت ابوبکر (رض) څخه روايت دئ چي کله به هغې ته ښوروا راوړل سوه نو د هغې د پټولو حکم به يې ورکړ هغه به پټه کړل سوه تر څو چي د هغې تونښ به ووتئ (يعني يخه به سول) او دا به يې فرمايل: ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي د خوراک څخه د ګرمۍ وتل د لوی برکت سبب دئ. دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۱۳۷، رقم: ۲۰۴۷.

**تشريح**: د ثريد ذکر محض اتفاقي دی چي د هغه وخت عام خوراک ثريد (ښوروا) وو ځکه نو هغه يې ذکر کړ، کنه د نورو خوراکونو هم دغه حکم دی، په جامع الصغير کي نقل سوي دي چي (ابردوا بالطعام فان الحار لا برکة فيه) يعني خوراک په يخولو سره خورئ ځکه چي په تاوده کي برکت نه وي، همدارنګه بيهقي مرسلا دا روايت نقل کړی دی چي: (نهى عن الطعام الحار حتى يبرد) يعني د تاوده خوراک خوړلو څخه منع سوې ده تر څو چي هغه يخ سي.

## د پيالې څټل

﴿۴۰۵۸﴾: وَعَنْ نُبَيْشَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَكَلَ فِيْ

قَصْعَةٍ ثُمَّ لَحِسَهَا تَقُوْلُ لَهُ الْقَصْعَةُ أَعْتَقَكَ اللّٰهُ مِنَ النَّارِ كَمَا أَعْتَقْتَنِيْ مِنَ الشَّيْطَانِ. رواه رزين.

د حضرت نبيشة رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي په كاسه كي خوراک وكړي او بيا هغه وڅټي نو كاسه هغه مخاطب كړي ورته وايي الله تعالى دي. تا د دوږخ څخه داسي وساتي لكه څرنگه چي تا زه د شيطان څخه وساتلم. رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د ترمذي، احمد، ابن ماجه او دارمي په روايت كي دغه الفاظ دي : (استغفرت له القصعة) يعني هغه كاسه د سړي لپاره بخښنه غواړي، او طبراني د حضرت عرباض څخه نقل كړي دي : (من لعق الصحفه ولعق اصابعه اشبعه الله في الدنيا والاخرة) يعني څوک چي كاسه او خپل گوتي وڅټي نو الله تعالى به هغه په دنيا او آخرت كي موړ كړي.

============

## بَابُ الضِّيَافَةِ (د مېلمستيا بيان)

د ضاف معنى د مېلمه كولو ده، او د اضاف معنى د مېلمستيا كولو ده، د ضيف معنى د مېله او د مضيف معنى د كوربه ده، په دغه باب كي چي كوم حديثونه نقل كيږي له هغو څخه څرگنديږي چي د مېلمستيا څومره فضيلت دى، د شريعت له نظره د مېلمستيا څه طريقې او ادبونه دي او دا چي د مېلمه او كوربه په مينځ كي د مراتبو او تعلق څه حدود دي.

### د ضيافت (مېلمستيا) حكم :

د اكثرو علماوو په نزد مسئله داده چي د مېلمستيا د حقوقو او ادبونو رعايت كول د ښه اخلاقو او تهذيب نښه ده او مستحب هم دي، زيات حديثونه پر دې دلالت كوي، ځيني حضرات وايي چي د يوې ورځي مېلمستيا كول واجب دي او د يوې ورځي څخه وروسته مستحب دي، د مېلمستيا اته ډولونه دي چي علماوو بيان كړي دي چي تفصيل يې په باب الوليمه كي تېر سوى دى.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مېلمه عزت کول

﴿۴۰۵۹﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ

پر الله جل جلاله او د آخرت پر ورځ ايمان لري هغه دي د خپل ميلمه عزت کوي او څوک چي پر الله جل جلاله

الْآخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ

او د آخرت پر ورځ ايمان لري هغه دي خپل همسايه ته تکليف نه ورکوي او څوک چي پر الله جل جلاله
او د آخرت پر ورځ ايمان لري دي هغه دي ښه خبره کوي يا دي

لِيَصْمُتْ ، و في رواية بدل الجار وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَصِلْ
رَحِمَهُ . متفق عليه

پټه خوله اوسي ، او په يوه روايت کي دهمسايه پر ځای دا الفاظ دي چي څوک پر الله جل جلاله او د
آخرت پر ورځ ايمان لري هغه دي صله رحمي کوي (يعني د خپلوانو سره دي ښه چلن کوي) .
بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۴۴۵، رقم: ۶۰۱۸، ومسلم ۱\ ۶۸.

**تشريح**: څوک چي پر الله جل جلاله او د قيامت په ورځ ايمان لري ...الخ: ددې مطلب دا نه دی چي د ايمان درلودل پر ذکر سوو دوو خبرو باندي موقوف دی ، د مثال په توګه که يو څوک د خپل مېلمه خاطر نه کوي ، خپل همسايه ته تکليف رسوي نو هغه به مؤمن نه ګڼل کيږي ، بلکه اصل مقصد ددغه شيانو ارزښت بيانول دي او د عمل کولو زيات تاکيد کول دي ، ددې مثال داسي دي لکه يو سړی چي د خپل زوی د اطاعت او فرمانبرداره کولو لپاره داسي ووايي که ته زما زوی يې نو اطاعت او فرمانبرداري کوه ، ښکاره ده که هغه اطاعت او فرمانبرداري ونه کړي نو له دې څخه دا نه ثابتيږي چي هغه دده زوی نه دی .

يا دا مراد دی چي د چا ايمان د كمال درجې وي (يعني كوم مسلمان چي كامل الايمان وي) نو د هغه شان به دا وي چي هغه به په دغه خبرو عمل كوي، يعني د دغه شيانو اختيارول د ايمان نښه ده، اكرام ضيف يعني د مېلمه اكرام كول په شرعي توګه دا دی چي كله يو مېلمه راسي نو له هغه سره په پراخ تندي او ښه اخلاقو وويني او له هغه سره په نرمه خبري اتري وكړي، او هغه ته تر درو ورځو پوري داسي خوراك او څښاك وركړي چي لومړۍ ورځ د خپل حيثيت او توان سره سم د هغه مېلمستيا وكړي په شرط ددې چي د هغه په وجه د خپلو متعلقينو او لواحقينو حق ضائع نسي، او وروسته په دوو ورځو كي ببله تكليف څه چي حاضر وي هغه ته وركړل سي، چي پر دواړو مېلمه او كور به باندي بوج نه وي، او بيا د درو ورځو څخه وروسته كه مېلمه پاته سي نو هغه ته خوراك او څښاك وركول به د صدقې په حكم كي وي، كه چيري كوربه وغواړي نو خوراك او څښاك دي وركوي او كه نه نو انكار دي وكړي.

خپل همسايه ته دي تكليف نه وركوي: يعني دا د همسايه تر ټولو كمه درجه ده چي هغه ته ي تكليف نه رسوي، او كوم چي د همسايه د حقوقو تعلق دی نو هغه ډېر زيات دي، د بخاري او مسلم په يوه روايت كي دغه الفاظ راغلي دي چي (فليكرم جاره) يعني هغه بايد د خپل همسايه سره د تكريم معامله كوي، د بخاري او مسلم په يو بل روايت كي داسي نقل سوي دي چي (فليحسن الى جاره) يعني هغه بايد د خپل همسايه په هغه شي كي مرسته وكړي چي د هغه ورته اړتيا وي، او د هغه مصيبت ليري كړي، همدارنګه امام غزالي رحمه الله په اربعين كي دا روايت نقل كړی دی چي رسول الله ﷺ صحابه كرامو ته په مخاطب كولو سره وفرمايل: تاسو ته معلومه ده چي د همسايه څه حق دی، كه هغه ستاسو څخه مرسته وغواړي نو د هغه مرسته كوئ كه ستاسو څخه پور وغواړي نو پور وركوئ كه هغه اړ او مفلس وي نو هغه ته يو څه وركړئ، كه هغه ناروغ وي نو د هغه پوښتنه وكړئ، كه هغه مړ سي نو د هغه د جنازې سره ولاړ سئ، كه هغه ته خوشحالي تر لاسه سي نو مباركي وركړئ كه مصيبت ورته ورسيږي نو ډاډ وركړئ د مثال په توګه د هغه په كور كي مرګ واقع سي نو د هغه كور ته ورسئ او تعزيت يې وكړئ، د هغه د سرای څخه لوړ سرای مه جوړوئ چي د هغه هوا منع سي،

كه تاسو مېوه يا بل شی رانيسئ نو د تحفې په توګه يې هغه ته هم واستوئ او كه دا ممكن نه وي نو بيا هغه مېوه يا بل شی كور ته په پټه وړئ او خپلو ماشومانو ته هم ټينګار كوئ چي هغه مېوه يا بل شی دكور څخه دباندي نه يوسي چي ستاسو د همسايه ماشوم هغه ووينې او د محرومۍ په وجه غم او افسوس وكړي، د خپل نغري په دود سره هغه ته تكليف مه وركوئ او دا

چي د هغه كتغ څخه هغه ته هم يو څه واستوئ او تاسو ته څرګنده ده چي د همسايه حق څه شی دی ؟ قسم دي وي په هغه ذات چي د هغه په لاس كي زما ساه ده د خپل همسايه حق هغه څوک پېژني چي پر هغه د الله ﷻ رحمت وي.

نېكه خبره دي كوي يا دي پټه خوله سي : ددې مطلب دادی چي كله د ژبي څخه د يوې خبري را ايستلو اراده وكړي او دا معلومه وي چي هغه خبره د نيكۍ ده چي پر هغه باندي ثواب وركول كيږي كه څه هم هغه واجب وي يا مستحب وي نو هغه دي د ژبي څخه راوباسي او كه د هغه خبري خير معلوم نه وي يا ورته معلوم وي چي دا خبره حرامه يا مكروه ده نو هغه دي د ژبي څخه نه راباسي ، خلاصه دا چي تر خپله وسه دي پټه خوله اوسي او كه خبره كول ضروري وي نو د ژبي څخه دي د خير خبره راباسي چي د خېر او ښېګڼي وي نه يوازي دا چي په حرام او مكروه خبرو كي پټه خوله كېدل پكار دي بلكه د مباح خبرو څخه هم ځان ساتل د هوښياری غوښتنه ده.

## مېلمه دي تر درو ورځو زيات نه پاته كيږي

﴿۴۰۶۰﴾: وَعَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْكَعْبِيِّ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابو شريح كعبي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ جَائِزَتُهُ يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ

څوک چي پر الله ﷻ او د آخرت پر ورځ ايمان لري هغه ته پكار ده چي د خپل ميلمه عزت كوي، د خاطر او دار مدار وخت يوه ورځ او شپه ده (يعني دتكلفاتو او احسان كولو)

وَالضِّيَافَةُ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ فَمَا بَعْدَ ذٰلِكَ فَهُوَ صَدَقَةٌ وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَثْوِيَ عِنْدَهُ حَتّٰى يُحْرِجَهُ . متفق عليه

او د ميلمه د مېلمستيا وخت درې ورځي او درې شپې دي او ددې څخه وروسته ميلمستيا صدقه او خيرات ده او ميلمه ته پكار ده چي هغه دي د خپل كوربه سره دومره نه پاته كيږي چي هغه تنګ سي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۴۵، رقم: ۶۰۱۹، ومسلم ۳\۱۳۵۳، رقم: ۱۴-۴۸.

**د لغاتو حل**: يحرجه: اى يضيق صدره يوقعه في الحرج (تنګوي يې).

**تشریح** په نهایه جزري کي د دغه حدیث وضاحت لیکل سوی دی چي د مېلمه دي درې ورځي داسي مېلمستیا وکړل سي چي په اوله ورځ کي د هغه په خوراک او څښاک کي تکلف او اهتمام وکړل سي بیا په دوهمه ورځ دي بېله تکلفه او اهتمامه څه چي حاضر وي هغه دي ورکړي ، ددې څخه وروسته دي هغه ته د خوراک او څښاک دومره شیان ورکړل سي چي د هغه په مرسته یوه ورځ او یوه شپه سفر وکړل سي ، په حدیث کي د جائزه لفظ راغلی دی چي مفهوم یې دادی ، د لغت په اعتبار د جائزه معنی د بخښني او تحفې ده مګر دلته هغه شی مراد دی چي د یوې ورځي د خوراک او اړتیا په اندازه وي او د هغه په مرسته منزل ته ورسیږي . مېلمه ته د جائزې څخه وروسته چي څه ورکړل سي نو هغه به زیات یو شی وي او د صدقې په حکم کي به وي ، ددغه وضاحت سره سم جائزه یعني مېلمه ته د یوې ورځي په اندازه د لاري توښه ورکول به د مېلمستیا څخه وروسته وي ، حال دا چي په حدیث کي ددې یادونه مخکي سوې ده او دا جائزه به د مېلمستیا کولو څخه یو زیات شی وي .

دا هم کیدای سي چي دغه جائزه د درو ورځو مېلمستیا کولو څخه زیات یو شی نه وي بلکه په حدیث کي ددې ذکر د هغه تکلف او اهتمام د وضاحت په توګه وي چي کوربه د مېلمستیا درو ورځو څخه مخکي د خپل مېلمه لپاره کوي، د ابوداؤد د روایت څخه هم دا معلومیږي چي جائزه د مېلمه هغه تواضع او احسان ته ویل کیږي کوم چي په لومړۍ ورځ کیږي همدارنګه مولانا شاه عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله علیه هم وایي چي زموږ علم هم دادی چي د جائزې دغه معنی ده .

د مېلمه لپاره دا جائز نه ده ...الخ: ددې څخه څرګنده سوه چي کوم څوک د چا سره مېلمه سي نو د هغه لپاره دا مطلق مناسب نه دي چي هغه د خپل کوربه سره تر درو ورځو زیات پاته سي مګر که چیري د کوربه خواهش وي او هغه خواست ورته وکړي نو د هغه پر غوښتنه باندي تر درو ورځو زیات پاته کېدو کې پروا نسته ، ځکه علماوو ویلي دي که چیري یو مسافر (مېلمه) د یو چا سره پاته سي او هغه د یو عذر په وجه تر درو ورځو زیات پاته سي نو هغه دي تر درو ورځو وروسته کوربه د خوراک او څښاک په اړه نه تنګوي .

## مېلمستیا کول واجب نه ده

﴿۴۰۶۱﴾: وَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكَ

د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما وویل: اې دالله رسوله ! تاسو

تَبْعَثُنَا فَنَنْزِلُ بِقَوْمٍ لَا يَقْرُونَا فَمَا تَرَى فِيهِ فَقَالَ لَنَا إِنْ نَزَلْتُمْ بِقَوْمٍ فَأُمِرَ

موږ (د جهاد يا بل كار لپاره) ليږئ او موږ د يو قوم سره تم سو مگر هغوى زموږ ميلمستيا نه كوي ددې په اړه تاسو څه حكم كوئ.؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هر كله چي تاسو د يو قوم ميلمانه

لَكُمْ بِمَا يَنْبَغِي لِلضَّيْفِ فَاقْبَلُوا فَإِنْ لَمْ يَفْعَلُوا فَخُذُوا مِنْهُمْ حَقَّ الضَّيْفِ الَّذِي يَنْبَغِي لَهُمْ . متفق عليه

سئ او هغوى ستاسو لپاره د ميلمستيا مناسب بندوبست وكړي نو هغه قبول كړئ او كه داسي ونه كړي نو تاسو د هغوى څخه د ميلمستيا حق واخلي يعني دومره څومره چي د ميلمنو لپاره مناسب وي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۰۸، رقم: ۲۴۶۱، ومسلم ۳\۱۳۵۳، رقم: ۱۷- ۱۷۲۷.

**تشريح**: ددغه حديث ظاهري مفهوم پر دې خبره دلالت كوي كه چيري كوربه د مېلمه حق ادا نه كړي نو مېلمه د هغه څخه خپل حق په زور اخيستلاى سي ، په دې اعتبار سره دا حديث د هغه حضراتو د مذهب دليل هم دى چي هغوى مېلمه د خوراك او څښاك وركول واجب گرځوي، مگر د جمهورو علماوو دا مذهب نه دى ځكه د هغوى له خوا ددغه حديث څو تاويلونه كيږي يو خو دا چي دغه حديث په اصل كي مخمصه (د نس تش كېدو) او اضطراري حالت پر صورت باندي محمول دى او په داسي صورت كي چي مېلمه سخت وږى وي نو د هغه مېلمستيا كول بېله شكه پر كور به باندي واجب ده ، او كه هغه كوربه دا حق ادا نه كړي نو دا حق د هغه څخه په زور اخيستلاى سي ، دوهم دا حكم د اسلام په پېل كي وو هغه وخت د اړتيا او فقر خبر اخيستل واجب وو وروسته چي الله تعالى په مسلمانانو كي په عامه توگه د فقر او مفلسى پر ځاى وسعت او پراخي راوستل نو دغه حكم منسوخ سو ، دريم دا چي ددغه ارشاد تعلق د اهل ذمه (يعني هغه كافران چي د هغوى د مسلمانانو سره د ځان او مال د مصالحت معاهده سوې وي) سره د قيام كولو وو . چي د هغوى سره معاهده كي يو شرط دا هم وو كه مسلمانانو د هغوى سره قيام وكړي نو د مسلمانانو مېلمستيا به پر اهل ذمه ضروري وي، ددغه شرط په وجه د مسلمانانو مېلمستيا كول پر هغوى واجب وه او كوم حق چي واجب وي نو هغه په زور اخيستل كيداى سي او څلورم دا چي دغه حديث د معاوضې او بدلې پر صورت باندي محمول دى يعني

د مثال په توګه که چيري مسافر يو ځای قيام وکړي او د هغه ځای خلک نه يوازي دا چي د هغوی مېلمستيا ونه کړي بلکه پر هغوی باندي دداسي شي پلورلو څخه هم انکار وکړي کوم چي د هغه مېلمه مسافر سره نه وي او هغوی د لوږي او ېې تابې په حالت کي وي نو د هغوی لپاره دا جائز ده چي د هغه خلکو څخه هغه شی په زور رانيسي .

## د نبي ﷺ او يارانو د لوږي څخه د شپې وتل

﴿۴۰۶۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د کور څخه ووتئ

يَوْمٍ أَوْ لَيْلَةٍ فَإِذَا هُوَ بِأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ فَقَالَ مَا أَخْرَجَكُمَا مِنْ بُيُوتِكُمَا هَذِهِ السَّاعَةَ

د ورځي يا د شپې په وخت کي ، ناڅاپه د حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر رضي الله عنهما سره يو ځای سو ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه تاسو کوم شي د خپلو کورونو څخه په دغه وخت

قَالَا الْجُوعُ قَالَ وَأَنَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَأَخْرَجَنِي الَّذِي أَخْرَجَكُمَا قُومُوا

کي را ايستلي ياست ؟ هغوی وويل د لوږي له کبله ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : قسم په هغه ذات چي د هغه په واک کي زما ساه ده، زه هم دغه شي د کور څخه را ايستلی يم کوم چي تاسو را ايستلي ياست، راځئ !

فَقَامُوا مَعَهُ فَأَتَى رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ فَإِذَا هُوَ لَيْسَ فِي بَيْتِهِ فَلَمَّا رَأَتْهُ الْمَرْأَةُ

نو دواړه د رسول الله ﷺ سره سوه او د يو انصاري کور ته ورسيدل هغه وخت هغه په کور کي موجود نه وو د هغه ښځي چي رسول الله ﷺ وليدئ

قَالَتْ مَرْحَبًا وَأَهْلًا فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْنَ فُلَانٌ

نو وه يې ويل مرحبا واهلا، رسول الله ﷺ د هغې څخه پوښتنه وکړه فلانی چيري دئ ؟

قَالَتْ ذَهَبَ يَسْتَعْذِبُ لَنَا مِنَ الْمَاءِ إِذْ جَاءَ الْأَنْصَارِيُّ فَنَظَرَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ

هغې وويل زموږ لپاره د خوږو اوبو راوړلو لپاره تللی دئ، په دغه وخت کي هغه انصاري هم راغلئ ، رسول الله ﷺ او د هغوی دواړه ملګري چي يې وليدل

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَاحِبَيْهِ ثُمَّ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ مَا أَحَدٌ الْيَوْمَ أَكْرَمَ أَضْيَافًا

نو هغه وویل د الله جل جلاله شکر دئ نن ورځ د بزرګو میلمنو د اعتبار څخه زما څخه زیات خوش

مِنِّي قَالَ فَانْطَلَقَ فَجَاءَهُمْ بِعِذْقٍ فِيهِ بُسْرٌ وَتَمْرٌ وَرُطَبٌ فَقَالَ كُلُوا مِنْ هَذِهِ

بخته څوک نسته ، د راوي بیان دئ بیا هغه سړي روان سو او د خرماوو یو وانبکی یې ورته راوړ چي په هغه کي نیم پخته او پخې او وچي خرماوي وې او عرض یې وکړ دا وخورئ ،

وَأَخَذَ الْمُدْيَةَ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاكَ وَالْحَلُوبَ فَذَبَحَ

بیا یې چاړه راواخیستل او د پسه ذبح کولو اراده یې وکړه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل د شیدو پسونه مه ذبح کوه نو هغه د میلمنو لپاره پسه ذبح کړه ،

لَهُمْ فَأَكَلُوا مِنَ الشَّاةِ وَمِنْ ذَلِكَ الْعِذْقِ وَشَرِبُوا فَلَمَّا أَنْ شَبِعُوا وَرَوُوا قَالَ

لنډه دا چي رسول الله ﷺ ، ابوبکر صدیق رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه د پسه غوښه او د خرماوو وانبکي وخوړئ او اوبه یې وچښلې ، هر کله چي ماړه سول نو رسول الله ﷺ

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتُسْأَلُنَّ

ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه ته وفرمایل : په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په واک کي زما ساه ده! پوښتنه به کیږي

عَنْ هَذَا النَّعِيمِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَخْرَجَكُمْ مِنْ بُيُوتِكُمُ الْجُوعُ ثُمَّ لَمْ تَرْجِعُوا

د قیامت په ورځ به ستاسو څخه د دغه نعمتونو په اړه لوږي تاسو د کور څخه را ایستلي واست او کور ته لا تللي نه واست

حَتَّى أَصَابَكُمْ هَذَا النَّعِيمُ. رواه مسلم و ذكر حديث ابي مسعود كان رجل من الانصار في باب الوليمة.

چي الله تعالی دا نعمتونه درکړل . مسلم، او د ولیمې په باب کي د حضرت ابو مسعود رضی الله عنه حدیث : کان رجل من الانصار ، بیان سوي دئ .

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۶۰۹، رقم: ۱۴۰ – ۲۰۳۸.

**د لغاتو حل**: العذق: الغصن من النخل (د خرما د ونې ښاخ).

**تشریح**: د دغه حدیث څخه څو مسئلې ثابتېږي: یو خو دا که چیرې پر کور به باندې باور ولري نو د ځان سره د نورو ملګرو بېول صحیح دي. دوهم دا چې خپلو ملګرو ته د خپل غم او تکلیف څرګندول جائز دي، په شرط ددې چې د دغه څرګندول د شکوه او شکایت، بې صبر او ناراضګۍ په توګه نه وي، په خاصه توګه کله چې په کور کې د خوراک او څښاک شی نه وي او د لوږې سختوالی نه یوازې دا چې په بدني توګه ورته تکلیف رسوي بلکه په عبادت کې هم خنډ جوړېږي. نقل سوي دي چې کله به مفلسو صحابه کرامو ته د خوراک او څښاک شیان ترلاسه نه سول او د لوږې سختوالي به پرېشانه کړل نو هغوی به د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سول او د رسول الله ﷺ د مخ مبارک زیارت به یې کوی نو د هغوی لوږه او ټول تکلیف به دفع سو او د جلوه حق نورانیت به هغوی د خوراک او څښاک څخه بې پروا کړل. دریم دا چې د اړتیا په وجه د پردي ښځي سره خبرې کول او د هغې خبرې اورېدل جائز دي همدارنګه د ښځي لپاره دا جائز دي که د هغې خاوند په کور کې موجود نه وي، نو هغه راتلونکې مېلمه ته د راتلو اجازه ورکولای سي په شرط ددې چې د هغه مېلمه کور ته د راتلو څخه بېره نه وي او دوهم دا چې د خپل خاوند په خوښۍ یې یقین وي یعني ددې خبرې شبه نه وي چې خاوند به د هغه مېلمه کور ته په راتلو باندې ناراضه سي.

څلورم دا چې هغه انصاري رضی الله عنه په خپل کور کې د معزز او غوره مېلمنو په لېدو سره په خپل اړه یو عظیم نعمت تصور کړ او د هغه الحمدلله ویل ددې خبرې ښنبه ده چې د یو نعمت پر ظاهرېدو باندې د الله تعالی شکر ادا کول مستحب دي او دا هم مستحب دي چې کله مېلمه راسي نو باید د هغه په مخکې د خوښۍ اظهار وسي.

پنځم دا چې کله یو مېلمه راسي نو د خوراک څخه مخکې د هغه لپاره مېوه راوړل یا په کور کې چې خوږ شی یا بل شی موجود وي د هغه مخته ژر راوړل مستحب دي.

کله چې په خوراک او څښاک یې نس موړ سو: په دې باره کې نووي رحمه الله وایي چې ددې څخه دا خبره ثابته سوه چې په ماړه نس خوړل به د رسول الله ﷺ په زمانه کې هم کېدل او د نس موړول جائز دي یعني په ماړه نس خوراک او څښاک جائز دي، او کوم چې د هغه قولو تعلق دی چې د نس ډکولو د کراهت په اړه نقل سوي دي نو هغه پر عادت او همېشتوب باندې محمول دي

چي د عادت او همېشتوب په توګه په ماړه نس خوراک د غريبانو او اړو کسانو د هېرېدو او د زړه د سختوالي مظهر دی.

د قيامت په ورځ به ستاسو څخه ددغه نعمتو په اړه پوښتنه کيږي : ددې مطلب دادی چي الله تعالی خپلو بندګانو ته په دغه دنيا کي کوم نعمتونه ورکړي دي د هغو په باره کي به د قيامت په ورځ پوښتنه ور څخه کېږي او دغه پوښتنه به د ځينو په حق کي د توبيخ او سختوالي په توګه وي، يعني په هر صورت کي الله تعالی پر خپل نعمت باندي د بندګانو څخه پوښتنه کوي چي موږ تاسو ته په دنيا کي فلانی او فلانی نعمت درکړی وو نو تاسو د هغه شکر ادا کړ که يا. د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دغه روايت (كان رجل من الانصار) د كتاب النكاح په باب الوليمه کي تېر سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مېلمه پالني اهميت

﴿۴۰۶۳﴾: عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيْ كَرِبَ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت مقدام بن معديكرب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

يَقُوْلُ اَيُّمَا مسلم ضَافَ قَوْمًا فَأَصْبَحَ الضَّيْفُ مَحْرُوْمًا كَانَ حَقًّا عَلَى كُلِّ

چي کوم مسلمان د يو قوم ميلمه سي او په داسي حال کي سبا کړي چي د هغه ميلمستيا ونه سي يعني د شپې د هغه ميلمستيا يې ونه کړه نو بيا پر هر

مُسْلِمٍ نَصْرُهُ حَتّٰى يَأْخُذَ لَهُ بِقِرَاهُ مِنْ وَمَالِهِ وَ زَرْعِهِ. رواه الدارمي و ابوداؤد . و في رواية له و ايما رجل ضاف قوما فلم يقروه كان له ان يعقبهم بمثل قراه .

مسلمان د هغه مرسته فرض سي يعني دهر مسلمان دا فرض دي چي د هغوی څخه د هغه د ميلمستيا حق واخلي تر څو چي هغه خپل حق د هغوی د مال او زراعت څخه تر لاسه کړي . دارمي او ابوداؤد، او دده په يوه روايت کي داسي دي چي که څوک د يو قوم ميلمه سي او

هغوی يې میلمستیا ونه کړه نو حق يې سته چي د هغوی د مال څخه پرته د پوښتني د خپلي میلمستیا حق واخلي.

**تخريج**: سنن الدارمي: ۲\۱۳۴، رقم: ۲۰۲۷، وابوداود ۴\۱۲۹، رقم: ۳۷۵۱.

**د لغاتو حل**: بقراه: اى بضيافته (مېلمستيا).

**تشريح**: د دغه حديث د ظاهري مفهوم څخه د مېلمستيا مطلق واجبېدل ثابتېږي مګر په حقيقت کي داسي نه ده بلکه د دغه حديث هغه تاويل او توجيه کيږي کوم چي مخکي د حضرت عقبه ابن عامر رضي الله عنه په روايت کي تېر سوي دي.

## د مېلمستيا بدله مېلمستيا نه ده

﴿۴۰۶۴﴾: وَعَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ الجشمي عَنْ أَبِيهِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ اَرَاَيْتَ

حضرت ابو الاحوص رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي هغه وويل: اې د الله رسوله! که زه د

اِنْ مَرَرْتُ بِرَجُلٍ فَلَم يَقْرِنِي وَلَمْ يُضَيِّفْنِي ثُمَّ مَرَّ بِيْ بَعْدَ ذَالِكَ اَقْرِيْهِ اَمْ اَجْزِيْهِ قَالَ بَلْ اَقْرِهِ. رواه الترمذي.

يو چا مېلمه سم او هغه زما د مېلمستيا حق ادا نه کړي نو بيا هغه سړي راسي زما سره مېلمه سي نو ايا زه د هغه مېلمستيا وکړم يا د هغه څخه بدله واخلم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د هغه مېلمستيا وکړه. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۲۰، رقم: ۲۰۰۶.

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چي د بدۍ بدله دا نه ده چي ته به بدي ورسره کوې بلکه څوک چي بد چلن درسره وکړي نو ته ښه چلن ورسره وکړه او دا تر ټولو غوره بدله ده لکه څرنګه چي يو چا ويلي دي:

بدي را بدي سهل باشد جزا — اگر مردي احسن الى من اساء

## بېله اجازې د بل کور ته مه داخلېږه

﴿۴۰۶۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَوْ غَيْرِهِ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَأْذَنَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه او يا د يو بل چا څخه دا روايت دئ چي رسول الله ﷺ اجازه وغوښتل

عَلٰى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فَقَالَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ فَقَالَ سَعْدٌ وَعَلَيْكُمُ

د سعد بن عبادة رضي الله عنه څخه د دننه ورتلو ، رسول الله ﷺ وفرمايل السلام عليكم ورحمة الله ، سعد رضي الله عنه وويل : وعليكم

السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَلَمْ يُسْمِعِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى سَلَّمَ ثَلَاثًا

السلام ورحمة الله، سعد رضي الله عنه دا الفاظ په كراره وويل چي رسول الله ﷺ يې نه واوري ، تر څو چي رسول الله ﷺ درې واره سلام ادا كړ

وَرَدَّ عَلَيْهِ سَعْدٌ ثَلَاثًا وَلَمْ يُسْمِعْهُ فَرَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاتَّبَعَهُ

او سعد رضي الله عنه درې واره همداسي په كراره جواب وركړ ، مګر په رسول الله ﷺ يې نه واوريدل (د خاموشۍ د دې حالت په ليدو سره) رسول الله ﷺ ولاړی ،

سَعْدٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ بِأَبِيْ أَنْتَ وَأُمِّيْ مَا سَلَّمْتَ تَسْلِيْمَةً إِلَّا هِيَ بِأُذُنَيَّ

سعد ورپسي ورغلئ او عرض يې وكړ اې د الله رسوله ! زما مور او پلار دي پر تاسو قربان وي هر څو واره چي تاسو سلام وواېه زما دواړو غوږونو واوريدل

وَلَقَدْ رَدَدْتُ عَلَيْكَ وَلَمْ أُسْمِعْكَ أَحْبَبْتُ أَنْ أَسْتَكْثِرَ مِنْ سَلَامِكَ وَمِنَ الْبَرَكَةِ

او ما د هغه جواب هم دركړی مګر خپل جواب مي ستاسو غوږونو ته ونه رسوئ ځكه چي زه ستاسو د سلام او بركت زيات خواهشمند وم ،

ثُمَّ دَخَلُوا الْبَيْتَ فَقَرَّبَ لَهُ زَبِيْبًا فَأَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا فَرَغَ

بيا رسول الله ﷺ او هغه د هغه كور ته دننه راغلل ، سعد رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت كي وچ انګور راوړل او نبي كريم ﷺ هغه وخوړل

قَالَ أَكَلَ طَعَامَكُمُ الْأَبْرَارُ وَصَلَّتْ عَلَيْكُمُ الْمَلَائِكَةُ وَأَفْطَرَ عِنْدَكُمُ الصَّائِمُوْنَ . رواه في شرح السنة.

رسول الله ﷺ وفرمايل : نيكانو ستاسو خوراک وخوړئ او ملائكو ورته دعاء وكړه او روژه

.ارانو ورسره روژه ماته كړه . شرح السنه .

**تخريج**: شرح السنة ۱۲\ ۲۸۲، رقم: ۳۲۲۰.

## د پرهېزګاره خلکو مېلمستيا ښه ده

﴿۴۰۶۶﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ

د حضرت ابو سعيد ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايماندار سړی

وَمَثَلُ الْإِيْمَانِ كَمَثَلِ الْفَرَسِ فِيْ آخِيَّتِهِ يَجُوْلُ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلٰى آخِيَّتِهِ وَإِنَّ

او ايمان د هغه آس په ډول دئ چي په رسۍ سره تړلی وي چي هغه په هغه رسۍ سره هر لوري ته ګرځي او بيا خپل ځای ته راځي،

الْمُؤْمِنَ يَسْهُوْ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى الْإِيْمَانِ فَأَطْعِمُوْا طَعَامَكُمُ الْأَتْقِيَاءَ وَأُوْلُوْا مَعْرُوْفَكُمُ الْمُؤْمِنِيْنَ . رواه البيهقي وابونعيم في الحلية.

همدا ډول مؤمن سهو او غفلت کوي او بيا د ايمان په لور راګرځي نو ته خپل خوراک په پرهيزګارانو خلکو وخوره او خپل بخښنښ ټولو مسلمانانو ته ورکړئ . بيهقي

**تخريج**: ابونعيم في حلية الاولياء ۸\ ۱۷۹، رقم: ۳۹۷، والبيهقي ۷\ ۴۵۲، رقم: ۱۰۹۶۴.

**تشريح**: (اخية) هغه لرګي ته وايي چي د هغه دواړه سرونه د کلفک په ډول په دېوال کي ټينګوي او بيا په هغه لرګي کي په تناو سره آس يا بل حيوان تړي او هغه ته وابنه وغيره اچوي، نو وفرمايل سول څرنګه چي يو آس په خپل رسۍ سره تړلی آخوا دېخوا ګرځي او بيا خپلي رسۍ ته په راتلو سره دړېږي چي هغه خپلي رسۍ ته کله نژدې کيږي او کله ځيني ليري کيږي مګر د هغه څخه بېلېدای نسي، همدارنګه حال د ايمان او مؤمن په مينځ کي د تعلق دی چي کله خو د اعمال صالحه په ذريعه هغه ته قرب الهي تر لاسه کيږي او کله د ګناهو په وجه ليري کيږئ مګر د اصل ايمان څخه نه بېلېږي که چيري هغه په ګناهو کي اخته سي نو آخر پر هغه ګناه پښېمانه کيږي او استغفار کوي او د خپل قضا سوو عباداتو په تدارک کولو سره د ايمان د کمال درجه تر لاسه کوي .

نو تاسو خپل خوراک په پرهېزګارانو وخورئ : دغه جمله په اصل کي جزاء ده د شرط محذوف، په دې اعتبار به مفهوم داوي چي د دغه مثال سره سم کله چي د ايمان د غه حيثيت سي

کوم چي د رسی دی نو ددغه شیانو د تهنگوالي او قوي کولو طریقې اختیار کړئ چي ستاسو او ایمان په مینځ کي د وسائلو درجه لري او ددې یوه غوره او اسانه طریقه مېلمستیا کول یعني خوراک ورکول دي ، پاتې سوه دا خبره چي د خوراک ورکولو په اړه د پرهېزګاری تخصیص ولي سوی دی ؟ نو ددې سبب دا څرګندول دي چي که څه هم هر وړې ته خوراک ورکول جائز او نېک عمل دی که څه هم هغه پرهېزګار وي یا غیر پرهیزګار وي مګر غوره داده چي که چیري یو وږي ته خوراک ورکول غواړي نو داسي وږي ته دي یې ورکړي چي هغه پرهېزګار او د خدای ﷻ څخه بېرېدونکی وي . دوهم دا چي پرهېزګارانو ته خوراک ورکول نه یوازي دا چي تاسو ته پر دغه نېک عمل ثواب درکول کیږي بلکه هغه چي په خوراک کولو سره کوم عبادت کوي د هغه ثواب به هم تاسو ته تر لاسه کیږي او هغوی به ستاسو په اړه دعاء کوي او هغه به قبلیږي ، نو د پرهېزګارانو تخصیص په مذکوره سبب سره دی او کوم چي د مطلق احسان او اعانت تعلق دی نو هغه باید د ټولو مسلمانانو سره وسي لکه څرنګه چي فرمایل سوي دي چي په خپلو صدقو سره ټول مسلمانان نازوئ .

## د خوراک په وخت کي پر زنګنو کښېنستل

| |
|---|
| ﴿۴۰۶۷﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنُ بُسْرٍ قَالَ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَصْعَةٌ |
| د حضرت عبدالله بن بسر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ سره یوه پیاله وه |
| يَحْمِلُهَا أَرْبَعَةُ رِجَالٍ يُقَالُ لَهَا الْغَرَّاءُ فَلَمَّا أَضْحَوْا وَسَجَدُوا الضُّحَى أُتِيَ بِتِلْكَ |
| چي څلورو کسانو به پورته کول او د هغې نوم غراء وو ، کله چي به د څابنت وخت سو او خلکو به د څابنت لمونځ وکړ نو هغه پیاله به راوړل سوه |
| الْقَصْعَةِ وَقَدْ ثُرِدَ فِيهَا فَالْتَفُّوا عَلَيْهَا فَلَمَّا كَثُرُوا جَثَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ |
| او په هغې کي به ښوروا تیاره سوه او خلک به شاوخوا کښېنستل او د خلکو شمیر چي به زیات سو نو رسول الله ﷺ به پر ګونډو کښېنستئ ، |
| عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ مَا هٰذِهِ الْجِلْسَةُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| یوه ورځ یو صحرائي وویل ستاسو دا ناسته څنګه ده ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل زه الله ﷻ |

إِنَّ اللَّهَ جَعَلَنِي عَبْدًا كَرِيمًا وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا عَنِيدًا ثُمَّ قَالَ كُلُوا مِنْ جوانبها وَدَعُوا ذِرْوَتَهَا يُبَارَكْ فِيهَا . رواه ابوداؤد.

يو متواضع (عاجزه) انسان جوړ کړی یم سرکش ا و ضدي یې نه یم جوړ کړي، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : د خپل خپل لوري څخه خوراک کوئ ، په منځ کي او د سربیره څخه لاسونه مه وهئ ستاسو لپاره به په دې کي برکت واچول سي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۴۲، رقم: ۳۷۷۳.

**تشريح**: (غرا) ددې لغوي معنی د روښانه او ځلانده ده ، دغه لوی لوښي ته به يې غرا په دې مناسبت سره ويلو چي هغه به د لوی کېدو په وجه خلاص او پراخ وو .

په دې کي برکت لويږي : ددې مطلب دادی چي همداسي خوراک کوئ نو ددغه لوښي خوراک به د برکت باعث وي ، ددې پر خلاف کله چي د منځنۍ برخي څخه وخوړل سي نو د لاندي برخي برکت ختمیږي .

## په يو ځای خوراک کولو کي برکت وي

﴿۴۰۶۸﴾: وَعَنْ وَحْشِيِّ بْنِ حَرْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى

وحشي بن حرب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي د رسول الله ﷺ

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا نَأْكُلُ وَلَا نَشْبَعُ قَالَ فَلَعَلَّكُمْ تَفْتَرِقُونَ

اصحابو يوه ورځ وويل: اې دالله رسوله ! موږ خوراک کوو او زموږ نس نه مړيږي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل کیدای سي تاسو بیل بیل خوراک کوئ،

قَالُوا نَعَمْ قَالَ فَاجْتَمِعُوا عَلَى طَعَامِكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ يُبَارَكْ لَكُمْ فِيهِ . رواه ابوداؤد

هغوي وويل: هو، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل خپل خوراک پر يو ځای خورئ او پر هغه د الله ﷻ نوم اخلئ ستاسو لپاره به په دې کي برکت وي . ابوداؤد.

**تشريح**: د حديث د راوي وحشي ابن حرب د نيکه نوم هم وحشي ابن حرب وو ، دغه (وحشي

ابن حرب چي د راوي د وحشي نيکه دی هغه وحشي دی چي د احد د غزا په ورځ ئې د رسول الله ﷺ اکا سيد الشهداء حضرت حمزه ابن عبد المطلب شهيد کړی وو ، هغه وخت وحشي کافر وو او د کفارو له خوا له مسلمانانو سره جنګېدی مګر وروسته الله تعالی هدايت ورته وکړ او په اسلام مشرف سو ، د اسلام راوړلو څخه وروسته د هغه لويه کارنامه داده چي هغه مشهور د نبوت دعوه کونکی مسيلمه کذاب په وژلو سره جهنم ته رسولی وو ، ددغه حديث څخه ثرګنده سوه چي بېل بېل خوراک کول د بې برکتۍ سبب دی او يو ځای خوراک کول د برکت ذريعه ده او خوراک ته يو ځای کښېنستل او د خوړلو په وخت کي د الله ﷻ نوم اخيستل يعني بسم الله ويلو سره خوراک پېل کول په دغه دواړو کي هر يو د برکت باعث دی او که دواړه يو ځای سي چي خوراک ته يو ځای کښېني او د خوړلو په وخت کي بسم الله هم ووايي نو دا په برکت کي د زياتوب سبب کيږي او د الله ﷻ د ذکر د زياتوب ذريعه هم کيږي ، پاته سوه دا خبره چي الله ﷻ په قرآن کريم کي فرمايلي دي چي : (ليس عليکم جناح ان تاکلوا جميعا او اشتاتا) يعني په دې اړه پر تاسو ګناه نسته که تاسو يو ځای خوراک کوئ يا بېل بېل ، نو په اصل کي دغه آيت پر رخصت باندي محمول دی يا ددې تعلق د هغه خلکو د تنګۍ څخه د ساتني لپاره دي کوم چي يوازي او سيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### ډوډۍ، کالي او کور د انسان اساسي ضرورت

﴿۴۰۶۹﴾: عَنْ أَبِي عَسِيبٍ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلًا

د ابو عسيب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يوه شپه رسول الله ﷺ د کور څخه دباندي راووتی ،

فَمَرَّ بِي فَدَعَانِي فَخَرَجْتُ اليه ثُمَّ مَرَّ بِأَبِي بَكْرٍ فَدَعَاهُ فَخَرَجَ إِلَيْهِ ثُمَّ مَرَّ

زما سره تيريدئ زه يې وغوښتلم ، زه د رسول الله ﷺ سره ملګری سوم ، بيا يې حضرت ابوبکر رضي الله عنه راوغوښتئ هغه راغلئ

بِعُمَرَ فَدَعَاهُ فَخَرَجَ إِلَيْهِ فَانْطَلَقَ حَتَّى دَخَلَ حَائِطًا لِبَعْضِ الْأَنْصَارِ فَقَالَ

بيا يې حضرت عمر رضي الله عنه راوغوښتئ هغه هم راغلئ ، بيا موږ ټول د رسول الله ﷺ سره يو ځای

روان سوو او د يو انصاري باغ ته ورسيدو ، رسول الله ﷺ د باغ خاوند ته وفرمايل :

لِصَاحِبِ الْحَائِطِ أَطْعِمْنَا بُسْرًا فَجَاءَ بِعِذْقٍ فَوَضَعَهُ فَأَكَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

په موړ خرماوي وخوره، هغه د خرماوو يو وابنکی راوړ ، رسول الله ﷺ د ملگرو سره خرماوي

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ بَارِدٍ فَشَرِبَ فَقَالَ لَتُسْأَلُنَّ عَنْ هَذَا

وخوړلې، بيا يې يخې اوبه وغوښتلې او وه يې څښلې د هغه څخه وروسته يې وفرمايل : د قيامت په ورځ به ستاسو څخه د دغه

النعيم يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ فَأَخَذَ عُمَرُ الْعِذْقَ فَضَرَبَ بِهِ الْأَرْضَ حَتَّى تَنَاثَرَ

نعمت په باره کي پوښتنه کيږي ، د راوي بيان دئ چي ددې په اوريدو سره حضرت عمر ﷺ د خرماوو وابنکی راواخيست او پر مځکه يې وغورځوئ چي د هغه ټولي خرماوي د رسول الله

الْبُسْرُ قِبَلَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا

ﷺ مخ ته دانه دانه سوې او عرض يې وکړ ايا د قيامت په ورځ به زموږ څخه ددې په اړه هم.

لَمَسْئُولُونَ عَنْ هَذَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ نَعَمْ إِلَّا مِنْ ثَلَاثٍ خِرْقَةٍ كَفَّ بِهَا

پوښتنه کيږي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :هو، مگر د درو شيانو پوښتنه به نه کيږي يو هغه جامه چي په هغه سره سړی خپل ستر پټوي ،

الرَّجُلُ عَوْرَتَهُ أَوْ كِسْرَةٍ سَدَّ بِهَا جَوْعَتَهُ أَوْ حَجَرٍ يَتَدَخَّلُ فِيهِ مِنَ الْحَرِّ وَالْقُرِّ . رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان مرسلا .

دويم د ډوډۍ ټوټه چي په هغې سره انسان خپل لوږه دفع کوي، او دريم کوچنۍ خونه چي په هغې کي انسان خپل ځان د گرمۍ او يخ څخه ساتي . احمد او بيهقي

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۸۱،والبيهقي في شعب الايمان ۴\۱۴۳، رقم: ۴۶۰۱.

---

**تشريح**: د يوه انصاري په اړه احتمال دی چي هغه ابوالهيثم وي چي د هغه باغ ته د تلو ذکر د لومړي فصل په يو حديث کي هم تېر سوی دی او دا پېښه د دوهم ځل ده ، يعني يوه پېښه هغه وه

چي د هغې ذکر د لومړي فصل په دريم نمبر حديث کي تېر سو او دوهمه پښتنه داده چي دلته په حديث کي بيان سوې ده او دا کيداى سي چي د يو انصاري څخه مراد ابوالهيثم نه وي بلکه بل انصاري صحابي مراد وي.

او هغه يې پر مځکه وويشتي: د حضرت عمر رضي الله عنه دغه عمل د هغه د جذبې مظهر وو چي د قيامت په ورځ به هر کوچنى او لوى شى او هر ډول جزئي او کلي امور د پوښتنه کولو په اړه د الله تعالى د خوف او مؤاخذې په وجه پر هغه هيبت خپور سوى وي.

حجر د حاء په پيښ او د جيم په سکون سره هم صحيح دى چي د هغه معنى د حجرې (خونې) ده مګر د مشکوة په يوه صحيحه نسخه کي دغه لفظ په حُجر يعني د جيم په پيښ او د حاء په سکون سره هم نقل سوى دى چي د هغه معنى د سوري ده، په دغه صورت کي به دا مراد وي چي يو داسي کوچنى سراى چي د هغه د ډېر کوچني او حقير کېدو په وجه د مږې په سوري سره تعبير کيږي او په هغه کي د ګرمۍ او يخ په وجه په تکليف سره اوسيږي.

## د څو کسانو يو ځاى خوراک

﴿۴۰۷۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وُضِعَتْ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي وغوړول سي

الْمَائِدَةُ فَلَا يَقُومُ رَجُلٌ حَتَّى تُرْفَعَ الْمَائِدَةُ وَلَا يَرْفَعُ يَدَهُ وَإِنْ شَبِعَ حَتَّى

دسترخوان نو هيڅوک دي تر هغه وخته پوري د هغه څخه نه ولاړيږي تر څو پوري چي دسترخوان پورته نه سي او نه دي تر هغه وخته پوري د خوراک څخه لاس نيسي تر څو پوري چي

يَفْرُغَ الْقَوْمُ وَلْيُعْذِرْ فَإِنَّ ذالك يُخْجِلُ جَلِيسَهُ فَيَقْبِضُ يَدَهُ وَعَسَى أَنْ يَكُونَ لَهُ فِي الطَّعَامِ حَاجَةٌ. رواه ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان.

ټول خلک فارغ نه سي که څه هم چي دده نس موړ سوى وي، مګر که د يو وجي څخه زياته ملګرتيا نسي کولاى نو په معذرت کولو سره دي بيل سي ځکه چي د خوراک څخه په لاس نيولو سره ناست کسان شرمنده کيږي او خپله هم د خوراک څخه لاس نيسي او ډير ممکنه ده چي هغه تر اوسه لا وږى وي. ابن ماجه او بيهقي

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۰۹۶، رقم: ۳۲۹۵ والبيهقي في شعب الايمان ۵\۸۳، رقم: ۵۸۶۴.

**تشريح**: د دغه حديث څخه علماوو دا مسئله اخذ کړې ده که چيري پر دسترخوان باندي تر يوه زيات خلک ناست وي نو هغه يو سړی بايد تر نورو مخکي خپل لاس د خوراک څخه منع نه کړي په شرط د دې چي د هغه د لاس په غزولو سره د هغه ملګري هم د شرم په وجه خوراک پرېږدي، او که چيري خوراک کم وي چي د کم خوړلو په وجه د دسترخوان د نورو ملګرو سره تر آخره پوري پاته کېدل مشکل وي نو په دغه صورت کي د هغه لپاره غوره طريقه داده چي هغه په کراره کراره خوراک کوي او تر پايه پوري د نورو سره ملګرتيا وکړي.

﴿۴۰۷۱﴾: وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَكَلَ مَعَ قَوْمٍ كَانَ آخِرَهُمْ أَكْلاً. رواه البيهقي في شعب الإيمان مرسلا

حضرت جعفر بن محمد رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ به د خلکو سره خوراک کوئ نو تر آخر وخته پوري به يې خوراک کوئ. دا حديث بيهقي په شعب الايمان کي مرسلا روايت کړی دئ.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\۱۲۲، رقم: ۶۰۳۷.

**تشريح**: امام محمد باقر رحمة الله عليه تابعي دی او هغه ته د خپل پلار امام زين العابدين رضي الله عنه او حضرت جابر بن عبد الله څخه د حديث د اورېدو شرف حاصل دی، په دې اعتبار سره دغه حديث مرسل دی، د حديث مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به پر دسترخوان باندي د موجودو نورو خلکو څخه مخکي خپل لاس نه نيوی بلکه تر پايه به يې خوراک کوی، يا دا چي رسول الله ﷺ به پېل کي خوراک نه کوی يا دېر کرار کرار به يې خوراک کوی او همدا رنګه په خوړلو سره به يې د ټولو ملګرتيا کول چي نور خلک هم شرم ونه کړي او خوراک پرېږدي.

## لوږه او درواغ مه يو ځای کوئ

﴿۴۰۷۲﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِطَعَامٍ فَعَرَضَ عَلَيْنَا فَقُلْنَا لَا نَشْتَهِيهِ قَالَ لَا تَجْمَعْنَ جُوعًا وَكَذِبًا. رواه ابن ماجة

د حضرت اسماء بنت يزيد (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ته خوراک راوړل سو بيا هغه خوراک موږ ته کښېښودل سو موږ وويل زموږ خوا ته نه کيږي (يعني خوراک ته مو زړه نه کيږئ) رسول الله ﷺ وفرمايل لوږه او درواغ مه يو ځای کوئ. ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۰۹۷، رقم: ۳۲۹۸.

**تشريح**: مطلب دادی که يو سړی د لوږي او خواهش سربېره د تکلف په توګه د خوراک څخه انکار وکړي او دا ووايي چي زما خواهش نسته چي په حقيقت کي هغه دروغ وايي نو د هغه څخه زيات ناپوه څوک دی چي د دوو تاوانو زغملو ته تيار سو يو خو ددنيا تاوان چي د لوږي تکليف يې پورته کړ او دوهم د دين تاوان چي دروغ يې وويل.

## يو ځای خوراک کول د برکت باعث دی

﴿۴۰۷۳﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُوا جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا فَإِنَّ الْبَرَكَةَ مَعَ الْجَمَاعَةِ. رواه ابن ماجة.

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ټول يو ځای خوراک کوئ، بيل بيل يې مه خورئ ځکه چي په يو ځای خورک کي برکت وي. ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۰۹۳، رقم: ۳۲۸۷.

## د مېلمه استقبال او رخصتول

﴿۴۰۷۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ السُّنَّةِ أَنْ يَخْرُجَ الرَّجُلُ مَعَ ضَيْفِهِ إِلَى بَابِ الدَّارِ. رواه ابن ماجة و رواه البيهقي في شعب الايمان عنه و عن ابن عباس و قال في اسناده ضعف.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: سنت دادئ چي سړی د خپل ميلمه د رخصت په وخت کي د کور تر دروازې پوري ووځي، ابن ماجه او بيهقي، او بيهقي په شعب الايمان کي د ابوهريره او ابن عباس (رض) څخه روايت کړ او ويلي يې دي چي ددې په اسناد کي ضعف دئ

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۱۱۴، رقم: ۳۳۵۸.

**تشريح**: دا هم د مېلمه اکرام او درناوی دی چي کله هغه راسي نو د کور تر دروازې پوري د هغه استقبال وکړل سي او کله چي ځي نو تر دروازې پوري د هغه سره ووځي، په دې کي يو لوی حکمت دا هم دی چي د هغه په وجه نور خلک په کور کي د يو پردي سړي په راتلو سره څه وهم او

وسوسه ونه کړي.

دا سنت دي : ددې مطلب دادی چي دغه عمل يعني د مېلمه د استقبال او رخصتولو لپاره د کور تر دروازې پوري تلل يو پخوانی عادت دی چي د ټل ځخه د تهذيب مظهر هم ګڼل کيږي او د انسان د سليم فطرت غماز هم دی، يا دا مطلب دی چي دغه عمل زما سنت او زما طريقه ده،

په دغه سند کي کمزوري ده : په دې سره د نفس حديث پر صحت باندي اثر نه لويږي ځکه چي دغه روايت په ډېرو سندو سره نقل سوی دی که يو روايت په ډېرو سندو سره نقل سوي وي او د هغه په سند کي کمزوري هم وي نو د سندو د ډېروالي په وجه هغه ته تقويت تر لاسه کيږي، دا خبره هم بايد په فکر کي وي چي د اعمالو د فضائلو په اړه ضعيف روايت هم د منلو وړ دی.

## د مېلمه لرونکي روزي

﴿۴۰۷۵﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَيْرُ أَسْرَعُ إِلَى الْبَيْتِ الَّذِي يُؤْكَلُ فِيهِ مِنَ الشَّفْرَةِ إِلَى سَنَامِ الْبَعِيرِ . رواه ابن ماجة

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نيکي، روزي او برکت د هغه کور په لوري په تيزي سره ځي په کوم کور کي چي (په ميلمنو) خوراک خوړل کيږي، دا ډول لکه څرنګه چي د اوښ د بوک په غوښه پريکولو کي چاړه په تيزي سره ننوزي .ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۱۱۴، رقم: ۳۳۵۷.

**تشريح**: کله چي د اوښ غوښه پرېکيږي، نو تر ټولو وړاندي د هغه قُوب (بوک) پرېکوئ او د بوک غوښه زياته خوندوره وي ځکه هغه په شوق سره خوړل کيږي، بيا يې وفرمايل : لکه څرنګه چي بوک ته چاړه ژر رسيږي تر دې زيات هغه کور ته خير رسيږي کوم چي پر مېلمنو باندي خوراک خوري.

==========

# بَابُ فِيْ اَكْلِ الْمُضْطَرِ

## (د مجبورتيا د خوراک بيان)

دغه باب په يو عنوان سره مقيد سوی نه دی، ددې مطلب دادی چي په تېر باب کي کومه موضوع را روانه ده په دغه باب کي هم له هغه سره اړوند حديثونه نقل کيږي، بيا هم د

مشکوة په ځينو نسخو کي دلته دا عنوان ورکړل سوی دی : (باب في اكل المضطر ) يعني د مضطر (اضطراري حالت) د خوراک بيان.

په دغه باب کي لومړی فصل نسته : يعني په دغه باب کي صاحب د مصابيح د بخاري او مسلم هيڅ روايت نقل کړی نه دی ځکه هغه دغه باب د فصل اول څخه خالی کړی دی ، څرګنده دي وي چي په ځينو نسخو کي د لفظ الاول څخه وروسته د الثالث لفظ هم سته ځکه چي په دغه باب کي دريم فصل هم نسته مګر صحيح خبره داده چي بايد د الثالث لفظ نه وي ځکه چي د مشکوة مصنف اصل مقصد د صاحب مصابيح په باره کي بيانول دي چي هغه دغه باب د اول فصل څخه خالي کړی دی او د دريم فصل شاملول د مشکوة د مصنف سره تعلق لري که هغهِ يو باب د دريم فصل څخه خالي کړي نو د هغه بيانول به يوه غير ضروري خبره وي او دا خبره هم ده چي صاحب مشکوة د هغه بيانول معمولي کړي نه دي لکه څرنګه چي راتلونکی يو باب (باب تغطية الاواني) څخه څرګنديږي چي په دغه باب کي د مشکوة مصنف دريم فصل شامل کړی نه دی او دا ئې هم نه دي ويلي چي په دغه باب کي دريم فصل نسته.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د سخت حالت مسئله

﴿۴۰۷۶﴾: عَنِ الْفُجَيْعِ الْعَامِرِيِّ أَنَّهُ أَتَى النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا

د حضرت فجيع عامري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه رسول الله ﷺ ته راغلی او وه يې ويل چي

يَحِلُّ لَنَا مِنْ الْمَيْتَةِ قَالَ مَا طَعَامُكُمْ قُلْنَا نَغْتَبِقُ وَنَصْطَبِحُ قَالَ أَبُو نُعَيْمٍ

د مردار په باره کي تاسو څه حکم کوئ ؟ رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه تاسو ثومره خوراک کوئ ؟ موږ وويل چي هم يې ماښام څښو او هم يې سهار څښو ، ابونعيم ويلي دي چي

فَسَّرَهُ لِي عُقْبَةُ قَدَحٌ غُدْوَةً وَقَدَحٌ عَشِيَّةً قَالَ ذَاكَ وَأَبِي الْجُوعُ فَأَحَلَّ لَهُمُ الْمَيْتَةَ عَلَى هَذِهِ الْحَالِ. رواه ابوداؤد.

ددې تفسير ما ته عقبه داسي وکړی چي يوه پياله د شېدو ماښام او يوه پياله د شيدو سهار ، رسول الله ﷺ وفرمايل دومره خوراک !، په خپل پلار دي مي قسم وي د لوږي موجب دئ

(رسول الله ﷺ د غير الله قسم منع کېدو څخه مخکي دا قسم خوړلی وو) رسول الله ﷺ د هغوی لپاره مردار حلال کړل . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۶۷، رقم: ۳۸۱۷.

**د لغاتو حل**: نغتبق ونصطبح: ای نشرب مرة في العشاء ومرة في الغداء

**شريح**: خوراک د انسان د ژوند پاته ساتلو لپاره يو ضروري شی دی، انسان ته د خوراک نه ترلاسه کېدل يا په دومره اندازه کي تر لاسه کېدل چي په هغه سره نه يوازي دا چي لوږه ختمېدای نسي بلکه د ژوند وجود په خطره کي وي نو داسي حالت ته د شريعت په اصطلاح کي (حالت اضطرار) وايي، د اضطرار په حالت کي شريعت دا اجازه ورکوي که انسان د يو حرام شي په خوړلو سره خپل ځان ساتلای سي نو هغه بايد وخوري ، د پوښتنه کونکي په دغه پوښتنه کولو سره چي زموږ لپاره د مرداری څخه څه شي حلال دي، دا په اصل کي معلومول يې غوښتل چي هغه کوم صورت دی چي پر هغه د اضطرار اطلاق کيږي چي په هغه صورت کي د مردار يا حرام شي خوړل جائز سي يعني د اضطرار حد څه شي دی، او د لوږي نوعيت به د کومي درجې وي چي د هغه په وجه د حرام شي خوړل مباح کيږي ، که څه هم سائل د سوال لپاره کوم طرز او الفاظ اختيار کړي دي د هغو ظاهري مفهوم څخه دا څرګنديږي چي هغه د مردار خوړلو په باره کي پوښتنه کړې وه چي د مردارو شيانو څخه کوم شيان يا د هغه کوم مقدار داسي دی چي د هغه خوړل زموږ لپاره حلال دي مګر په حقيقت کي د سائل مقصد دا نه وو او نه د هغه جواب ورکړل سوی دی بلکه مقصد دادی کوم چي مخکي ذکر سو، يعني د حالت اضطرار په باره کي سوال کول ، نو رسول الله ﷺ جواب هم د هغه په اړه ورکړ ، له دې څخه پرته دا عبارت : (ما يحل لنا من الميتة) چي د هغه څخه د مردارو شيانو په اړه سوال کول معلوميږي ، د ابوداؤد دی مګر طبراني وغيره چي دا روايت څرنګه نقل کړی دی په هغه کي دغه عبارت (يحل) يا په پيش سره داسي دی : (ما يحل لنا الميتة) يعني هغه کوم حالت دی چي زموږ لپاره مردار خوړل حلال ګرځوي ، دغه عبارت د سائل اصل مقصد په څرګنده طرز کي څرګندوي .

تاسو خلکو ته خوراک په کومه اندازه تر لاسه کيږي : ددغه سوال مقصد دا وو چي دوه صورتونه کيدای سي يو خو دا چي تاسو ته د خوراک په نامه چي څه شی تر لاسه نه وي نو په دغه صورت کي څه مشکل نسته کله چي په نس کي د اچولو لپاره يو شی هم په يوه اندازه کي تر لاسه نسي نو حالت اضطرار بالکل په څرګنده توګه متحقق کيږي ، دوهم صورت دادی چي د

خوراک په نامه څه نا څه شی او په کوم مقدار کي تا سو ته تر لاسه سي نو په هغه صورت کي دا کتل کیږي چي د هغه مقدار نوعیت څه شي دی چي د هغه مطابق د حالت اضطرار په اړه فیصله وسي نو ته وښیه که تاسو ته د خوراک د ډول څخه یو شی تر لاسه کیږي نو د هغه مقدار څه شي دی، چي د هغه مقدار په معلوموللو سره دا اندازه وکړل سي چي د هغه په ذریعه ستاسو نسو نو ته څومره مرسته تر لاسه کیدای سي او ستاسو لوږه د اضطرار حد ته رسیږي که یا، رسول الله ﷺ ددغه سوال کولو په وخت کي د مخاطب لپاره د جمع د صیغې په استعمال سره جماعت مخاطب کړ، حال دا چي سوال کونکی یو سړی (یعني فجیع عامري) وو، ددې وجه داوه چي رسول الله ﷺ کوم حکم بیانول غوښتل هغه که څه هم د یوه سړي د سوال مقصد وو مگر په حقیقت کي د هغه تعلق د ټولو خلکو سره وو ځکه رسول الله ﷺ ددغه حکم عمومي حیثیت واضح کړ، دا وجه ده چي فجیع رحمه الله هم په خپل جواب کي د جمع صیغه راوړل یعني داسي یې وویل: موږ ویل..الخ

د نصطبح ماده اشتقاق صبوح ده چي معنی یې د سهار د خوراک او څښاک ده، همدارنگه د نغتبق ماده اشتقاق د غبوق ده او معنی یې د ماښام د خوراک او څښباک ده، دلته په روایت کي د دواړو الفاظو څخه مراد د سهار او ماښام یوه یوه کاسه شیدې څیښل مراد اخیستل سوي دي لکه څرنگه چي د حدیث یو راوي ابونعیم رحمه الله د حضرت عقبه رحمه الله څخه دا وضاحت نقل کړی دی او کیدای سي چي د ابونعیم رحمه الله نقل سوی وضاحت د حضرت عقبه رحمه الله پر اورېدو مبني وي یا په نورو روایتو کي هم دا وضاحت نقل سوی وي، په هر حال د راوي دغه وضاحت مستند هم دی او د باور وړ هم دی.

د رسول الله ﷺ د خپل پلار قسم کول په ظاهره یو تعجب امر دی چي د هغه تاویل دا کیږي چي د رسول الله ﷺ دغه قسم کول په اصل کي د هغه وخت پېښه ده کله چي د غیر الله د قسم کولو منع نوه نازل سوې یا دا چي مخکي به عربو دا ډول قسمونه کول او دا سي قسم کول د هغوی پر ژبه عادت سوي وو ځکه نو د عادت سره سم د رسول الله ﷺ د ژبي څخه هم دا قسم بېله قصده او ارادې ووتی.

رسول الله ﷺ په دغه صورت کي د هغوی لپاره مردار حلال وگرځول: دلته ددغه صورت څخه مراد د سهار او ماښام د یوې یوې پیالې شېدو څښبلو صورت دی یعني رسول الله ﷺ داسي وفرمایل چي د خوراک دومره لږ اندازه تاسو ته یقینا کافي نه دي او تاسو ټول به وږي یاست ځکه دغه صورت د اضطرار دی چي په هغه کي مردار خوړل حلال دي نو تاسو د مجبورۍ

په صورت کي د مردار په خوړلو سره هم خپل ځان ساتلای سئ.

﴿۴۰۷۷﴾: وَعَنْ أَبِيْ وَاقِدٍ اللَّيْثِيِّ أَنَّ رَجُلاً قَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّا نَكُوْنُ بِأَرْضٍ

د حضرت ابو واقد ليثي ﷺ څخه روايت دئ چي يو سړي وويل: اې د الله رسوله ! کله موږ داسي ځمکي ته ورسيږو چي

فَتُصِيْبُنَا بِهَا الْمَخْمَصَةُ فَمَتٰى يَحِلُّ لَنَا الْمَيْتَةُ ؟ قَالَ مَا لَمْ تَصْطَبِحُوْا

موږ ته لوږه تکليف راکوي (يعني هلته د خوراک شی نه وي) زموږ لپاره مردار کله حلال کيږي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هر کله چي تاسو تر سهاره پوري خوراک تر لاسه نه کړئ

اَوْتَغْتَبِقُوْا أَوْ تَحْتَفِئُوْا بِهَا بَقْلاً فَشَأْنُكُمْ بِهَا مَعْنَاهُ إِذَا لَمْ تَجِدُوْا صَبُوْحًا أَوْ غَبُوْقًا وَلَمْ تَجِدُوْا بَقْلَةً تَأْكُلُوْنَهَا حَلَّتْ لَكُمُ الْمَيْتَةُ. رواه الدارمي.

او په هغه ځمکه کي تاسو ته د سبزيو د ډول څخه هيڅ شی په لاس رانسي نو ستاسي کار له مرداري سره دی معنی يې داده چي تاسو د ماښام يا سهار خوراک پيدا نه کړئ او سبزي هم پيدا نه کړئ چي وه يې خورئ نو مرداره درته حلاله ده، دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۱۲۰، رقم: ۱۹۹۶.

**تشريح** په دواړو حديثو کي په ښکاره ټکر معلوميږي ځکه چي په اول حديث کي د سهار او ماښام د شېدو تر لاسه کېدو صورت هم د لوږي او مخمصه يعني پر اضطرار باندي محمول کړ او مردار خوړل يې مباح وګرځول، او په دوهم حديث کي د حالت اضطرار تر لاسه کېدل په دې سره مشروط کړل چي تر سهار يا ماښام پوري د خوراک او څښناک هيڅ شی هم تر لاسه نسي بلکه تر دې هم زيات د غه دائره يې دومره تنګه کړل که سبزيجات او شنګياوي او داسي نور شيان لکه وابنه، د درختي پاڼي او داسي نور شيان هم تر لاسه سي او هغه په نس کي اچول کيدای سي نو په دغه صورت کي به د اضطرار حالت نه وي او مردار خوړل به مباح نه وي، د دغه حديثو د اختلاف په وجه د علماوو په مذهب او اقوالو کي هم اختلاف پيدا سوی دی، د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه مذهب دادی چي د ځان ساتني لپاره د مردارو شيانو خوړل په هغه صورت کي حلال دي کله چي د لوږي په وجه د ځان هلاکېدو بېره پيدا سي، او دومره خوراک به حلال

وي چي په هغه سره ځان وساتل سي ، د امام شافعي رحمه الله یو قول هم دادی ، دغه مذهب او قول په ظاهره پر سختۍ او تنګۍ باندي محمول دی مګر په حقیقت کي احتیاط او تقوا ده .

د دې پر خلاف د امام مالک ، امام احمد او د یوه قول مطابق د امام شافعي رحمة الله علیهم مذهب دادی که چیري یو سړی په دومره اندازه خوراک تر لاسه نه کړي چي په هغه سره موړ سي او د هغه طبعي خواهش اړ او متقاضي وي نو د هغه لپاره مردار خوړل حلال دي تر دې چي هغه خپل حاجت طبعي پوره کړي یعني هغه موړ سي او هغه ته هغه قوت تر لاسه سي کوم چي په ماړه نس خوړلو سره تر لاسه کیږي ، د دغه قول د عمل دائره زیاته وسیع او په دغه مذهب کي زیاته نرمي او اساني ده ، خلاصه دا چي په حالت اضطرار کي د مردار له ډولو څخه د یو شي خوړلو په اړه د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله په نزد سد رمق اعتبار دی چي مضطر دومره مردار خوړلای سي چي په هغه سره ځان وساتي ، حال دا چي د نورو امامانو په نزد د قوت تر لاسه کېدل یعني په ماړه نس خوراک اعتبار دی ، د دغه امامانو دلیل اول حدیث دی چي رسول الله ﷺ په هغه حالت کي د مردار خوړل حلال وګرځول کله چي سائل ته یوه کاسه شیدې په ورځ کي او یوه پیاله شیدې په شپه کي تر لاسه کېدل ، او په ورځ او شپه کي تر لاسه کېدونکي یوه یوه کاسه شیدې بېله شکه سد رمق یعني د ځان ساتني تر حد پوري کافي کیدای سي که څه هم د دې په ذریعه نس مړېدای نسي نو د دې څخه معلومه سوه چي د اضطرار د حد په وجه مردار خوړل مباح کیږي، په اصل کي د نس مړېدل نه تر لاسه کېدل دي او په اندازه د قوت مردار خوړل حلال دي ،

د دغه امامانو پر خلاف امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله خپل مذهب د دوهم حدیث څخه ثابتوي چي د هغه وضاحت مخکي بیان سوی دی ، د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله په نزد کوم چي د اول حدیث تعلق دی چي د هغه څخه نور امامان استدلال کوي د هغه په باره کي د هغه له خوا داویل کیږي چي په دغه حدیث کي د سهار او ماښام د یوې یوې کاسې شېدو څښلو چي کوم ذکر سوی دی هغه په اصل کي برسبیل اشتراک وو یعني سهار او ماښام به یوه یوه پیاله شېدې پوره قوم ته تر لاسه کېدلې نه یوه یوه سړي ته ، نو په لفظ د طعامکم کي د جمع صیغه د دې خبري څرګند دلیل دی .

همدارنګه د حضرت فجیع عامري رضي الله عنه سوال کول محض د خپل ذات لپاره نه وو بلکه په حقیقت کي د خپل پوره قوم له خوا سوال وو ځکه هغه دغه الفاظ وویل: (ما یحل لنا) یعني زموږ لپاره د مردارو شیانو څخه څه شي حلال دي، او په دې کي څه شک نسته چي د یو ډلي لپاره محض یوه کاسه شېدې سد رمق یعني ځان ساتني لپاره هم هیڅ کافي کیدای نسي او نه

ـغه د يو سړي لوږه ختمولو کي مرسته کولای سي، هو که هر يوه ته يوه يوه پياله شيدې تر لاسه
ـي نو هغه بېله شکه د ځان ساتني لپاره د خوراک په اندازه کافي دي .

===========

# بَابُ الْاَشْرِبَةِ

## (د څښاک د شيانو بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په درو ساه سره اوبه څښل

﴿۴۰۷۸﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَنَفَّسُ فِي الشَّرَابِ ثَلَاثًا، متفق عليه و زاد مسلم في رواية وَيَقُولُ إِنَّهُ أَرْوَى وَأَبْرَأُ وَأَمْرَأُ .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به داوبو څښلو په منځ کي درې واره ساه کښل . بخاري او مسلم.او د مسلم په يوه روايت کي دي چي رسول الله ﷺ به دا فرمايل چي داسي اوبه څښل سړی ښه مړوي، صحت مند وي او ژر هضم کيږي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۹۲، رقم: ۵۶۳۱، ومسلم ۳\۱۶۰۲، رقم: ۱۲۳- ۲۰۲۸.

**تشريح**: درې واره به يې ساه اخيستل: يعني رسول الله ﷺ به په درو ساوو اوبه څښلې، حضرت انس رضي الله عنه دغه خبره د اکثر په اعتبار بيان کړې ده چي رسول الله ﷺ به زيات وختونه داسي اوبه څښلې او په ځينو روايتو کي د رسول الله ﷺ په اړه په دوو ساوو هم د څښلو ذکر راغلی دی، په هر حال په دوو يا درو ساوو د څښلو طريقه دا وه چي رسول الله ﷺ به هر وار لوښی د خولې څخه بېلوی .

### د ژي د خولې څخه اوبه مه څښئ

﴿۴۰۷۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ نَهَى رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشُّرْبِ مِنْ فِي السِّقَاءِ . متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د ژي د خولې څخه اوبه چښل منع

فرمايلي دي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\٩٠، رقم: ٥٦٢٩، لم نجده عند مسلم.

**تشريح**: د ژی يا داسي نورو شيانو (لكه منگى وغيره) د خولې څخه د اوبو څښلو منع په دې وجه ده چي په دغه طريقه سره اول خو د ضرورت څخه زياتي اوبه مصرف كيږي دوهم دا چي هغه اوبه پر جامو وغيره باندي په غورځېدو سره هغه خرابوي، دريم دا چي داسي اوبه څښل په زياته اندازه په نس كي د معدې د ځای لپاره تاواني دي او څلورم دا چي د اوبو څښلو كومه سنت طريقه ده دا د هغې خلاف كيږي.

﴿۴۰۸۰﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اخْتِنَاثِ الْأَسْقِيَةِ و زاد في رواية وَاخْتِنَاثُهَا أَنْ يُقْلَبَ رَأْسُهَا ثُمَّ يُشْرَبَ مِنْهُ. متفق عليه.

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د دې څخه منع فرمايلې ده چي په ژي پورته كولو سره دي اوبه وڅښل سي او په يوه روايت كي داسي دي چي ژی پورته كول دا دي چي هغه خوله لاندي كړل سي او بيا د هغه څخه اوبه وڅښل سي (مطلب دا چي د ژي څخه اول بل لوښي ته اوبه واچوئ او بيا يې وڅښئ). بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\٨٩، رقم: ٥٦٢٥، ومسلم ٣\١٦٠٠، رقم: ١١١- ٢٠٢٣.

**تشريح**: د دغه منع وجه هم هغه ده كوم چي مخكي ذكر سوې ده، د ژي د خولې په تاوولو سره د اوبو څښلو په صورت كي يوه انديښنه دا هم وي چي په هغه ژي كي چنيجی يا بل شی وي يا يو زهرجن حيوان پكښې وي او هغه سمدستي خولې ته ولاړ سي او تاوان ورسوي،

په يوه روايت كي دا راغلي دي چي رسول الله ﷺ د ژي د خولې څخه اوبه څښلي دي دغه روايت به په دوهم فصل كي راسي، په دې سره د ژي د خولې څخه د اوبو څښلو جواز ثابتيږي، ځينو علماوو ويلي دي له كومو روايتو څخه چي منع ثابتيږي د هغو تعلق د لوی ژي سره دي چي د هغه خوله زياته پراخه وي او كوم چي د رسول الله ﷺ د عمل تعلق دی نو هغه پر كوچني ژي باندي محمول دی چي رسول الله ﷺ به د داسي ژي د خولې څخه اوبه څښلي وي چي هغه به كوچني وو او د هغه خوله به تنگه وه، ځيني علماء وايي چي د منع تعلق د دوام او عادت سره

دی یعنې د ژي د خولې څخه د اوبو څښلو عادت باید جوړ نسي ځکه چې د دې په وجه د مشک په خوله کي بدبويي پيدا کيږي او که کله نا کله د ژي د خولې څخه اوبه وڅښل سي نو دا به منع نه وي. یا دا هم ویل کیږي چې د اباحت تعلق د ضرورت او احتیاج په وجه دی، فرض کړه د اوبو څښلو ضرورت وي او هلته داسي لوښی موجود نه وي چې په هغه کي اوبه راوړل سي او وڅښل سي نو بیا په دغه صورت کي به څه پروا نه وي چې د مشک یا منګي د خولې څخه اوبه وڅښل سي هو بېله اړتیا او احتیاجه داسي اوبه څښل منع دي ځکه چې په دغه طریقه سره په اوبو څښلو کي د ذکر سوو تاوانو بېره کېدای سي.

په خاصه توګه په هغه ژي کي دننه د یو زهرجن حیوان د موجودتیا خطره نظر انداز کیدای نسي ، په یوه روایت کي راغلي دي چې یو سړي د ژي د خولې څخه اوبه وڅښلې نو په هغه کي دننه مار وو ، او په پای کي یوه خبره دا هم کیدای سي چې داسي اوبه څښل مخکي مباح وو مګر وروسته د دغه منع په وجه د دغه اباحت منسوخ کړل سو.

## په ولاړه اوبه مه څښئ

﴿۴۰۸۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ نَهَى أَنْ يَشْرَبَ الرَّجُلُ قَائِمًا. رواه مسلم.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ په ولاړه د اوبو څښلو څخه منع فرمایلې ده. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۰۰، رقم: ۱۱۳- ۲۰۲۴.

﴿۴۰۸۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَشْرَبَنَّ أَحَدٌ مِنْكُمْ قَائِمًا فَمَنْ نَسِيَ فَلْيَسْتَقِئْ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: هیڅوک دي په ولاړه اوبه نه څښي او څوک چې یې په هیره وڅښي هغه ته پکار ده چې هغه قی کړي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۰۱، رقم: ۱۱۶- ۲۰۲۶.

**تشريح**: په حدیث کي چې د قي کولو کوم حکم بیان سوی دی هغه د وجوب په توګه نه دی بلکه د استحباب په توګه دی، د دغه حدیث د وضاحت سره سم که یو سړی په هېره په ولاړه اوبه

وڅښښي نو د هغه لپاره دا مستحب دي چي هغه قی کړي.
قاضي رحمة الله عليه ويلي دي: په ولاړه د اوبو څښښلو دغه منع په اصل کي غوره او ښه طريقه يعني په ناسته د اوبو څښښلو تلقين او د هغه پر خلاف باندي د تاديب او خبرداري په توګه دي، نه دا چي دغه منع د نهي تحريمي په توګه ده، خلاصه دا چي ددغه ارشاد څخه دا ګڼل نه دي پکار چي په ولاړه اوبه څښښل حرام دي په دې اعتبار سره دغه حديث به د هغه روايت خلاف نه وي چي په هغه کي دا نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ يو يا دوه واره ددې خلاف عمل کړی دی.

## د زمزم اوبه په ولاړه څښښل

﴿۴۰۸۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِدَلْوٍ مِنْ زَمْزَمَ فَشَرِبَ وَهُوَ قَائِمٌ. متفق عليه.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي ما دزمزم د اوبو يو سلواغه رسول الله ﷺ ته راوړل رسول الله ﷺ هغه په ولاړه وڅښښلې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۴۹۲، رقم: ۱۶۳۷، ومسلم ۳\۱۶۰۲، رقم: ۱۲۰- ۲۰۲۷.

**تشريح**: رسول الله ﷺ په ولاړه د زمزم اوبه څښښلې: دا يا خو د تبرک په وجه وو يا دا وجه وه چي هلته ازدحام (رش) زيات وو نو کښښستل ممکن نه وه يا دا وجه ده چي خلکو د زمزم اوبه څښښلي وې او هلته ختې جوړې سوي وې ځکه نو د ناستي امکان نه وو، يا دا چي د رسول الله ﷺ په ولاړه د زمزم اوبه څښښل محض د جواز لپاره وو.

## د اوداسه او زمزم اوبه په ولاړه څښښل

﴿۴۰۸۴﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ قَعَدَ فِي حَوَائِجِ النَّاسِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د ماپښين لمونځ وکړ بيا د کوفې په يو پراخ ځای

فِي رَحَبَةِ الْكُوفَةِ حَتَّى حَضَرَتْ صَلَاةُ الْعَصْرِ ثُمَّ أُتِيَ بِمَاءٍ فَشَرِبَ وَغَسَلَ

کي د خلکو د معاملاتو د فيصله کولو لپاره کښښستئ تر څو چي د مازديګر وخت سو بيا د هغه لپاره اوبه راوړل سوې چي د هغه څخه يې لومړی وڅښښلې او بيا يې

وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ وَذَكَرَ رَأْسَهُ وَرِجْلَيْهِ ثُمَّ قَامَ فَشَرِبَ فَضْلَهُ وَهُوَ قَائِمٌ ثُمَّ قَالَ

مخ پريولئ او لاسونه يې پريولل راوي وايي او د سر مسح يې وكړل او پښې يې پريولې بيا (د او داسه څخه) چې كومې اوبه پاته سوې هغه يې په ولاړه وڅښلې ، بيا يې وفرمايل :

إِنَّ نَاسًا يَكْرَهُونَ الشُّرْبَ قِيَامًا وَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُ . رواه البخاري .

خلك په ولاړه اوبه څښل بد ګڼي او رسول الله ﷺ داسي كړي دي څنګه چي ما وكړل . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\٨١، رقم: ٥٦١٦.

**تشريح**: او راوي دا يادونه وكړه ... الخ : ددې مقصد دا څرګندول دي چي ذكر سوى يعني اول راوي چي د لاس او مخ پرېوللو يادونه يې كړې وه نو هلته يې د سر او پښو په باره كي هم ذكر كړى وو مګر كله چي وروستني راوي حديث نقل كړ نو هغه د مخكني راوي د قول تفصيل هېر كړ او هغه ته دا په ياد نه سوه چي اول راوي دا ويلي وه چي حضرت علي ﷺ د خپل سر مسح وكړه او خپل پښې يې پرېولې لكه څرنګه چي په ظاهره دا څرګنديږي يا دا چي اول راوي دا بيان كړى وو چي هغوى د خپل سر مسح هم وكړه او د پښو مسح يې هم وكړه لكه څرنګه چي ددغه پېښي په اړه د حضرت علي ﷺ څخه په نقل سوي بل روايت دا ذكر سوي دي په دغه صورت كي به ويل كيږي چي پر پښو باندي د مسح څخه مراد په مختصره توګه د پښو پرېولل دي يا دا چي حضرت علي ﷺ به هغه وخت موزې په پښو وې ځكه هغه پر موزو باندي مسح وكړه،

په داسي حالت كي وڅښلې چي هغه ولاړ وو : دغه جمله د تاكيد په توګه ده چي دا ګمان ونسي چي د درېدو څخه وروسته بيا په ناسته هغه اوبه څښلي وې دا خبره تكراري څرګنده سوه چي هغه همدارنګه په ولاړه د اوداسه څخه پاته سوي اوبه وڅښلې .

څرګنده دي وي چي په حديثو كي په درېدو سره د اوبو څښلو منع بيان سوې ده حال دا چي د رسول الله ﷺ او اكابرو صحابه كرامو عمل ددې پر خلاف هم ثابت دى ، د رسول الله ﷺ په اړه مخكي تېر سوي دي او په مواهب لدنيه كي د حضرت جبير بن مطعم ﷺ څخه منقول دي چي هغه وويل: ما حضرت ابوبكر صديق ﷺ وليدى چي هغه په ولاړه اوبه وڅښلې، همدارنګه امام مالك رحمه الله بيان كړى دى چي ما ته دغه روايت را رسيدلى دى چي حضرت عمر، حضرت علي او حضرت عثمان رضي الله عنهم په ولاړه اوبه څښلي دي ، نو په دغه مسئله كي چي دغه تضاد واقع سوى دى ددغه تضاد ليري كولو لپاره علماوو دا ويلي دي چي په دې باره كي كومه منع

نقل سوې ده هغه په اصل کي د نهي تنزيهي په توګه ده يا داويل کيږي چي د منع تعين په هغه صورت کي دى کله چي خلک په ولاړه د اوبو څښنل عادت وګرځوي او کله نا کله يا د يو عذر په وجه په ولاړه اوبو څښنلو کي څه پروا نسته.

ځکه نو رسول الله ﷺ چي په ولاړه اوبه وڅښنلې نو د هغه مقصد جواز بيانول وو ، ددې څخه پرته د زمزم اوبه او د اوداسه څخه پاته سوي اوبه ولاړه څښنل ددغه منع څخه مستثنى دى بلکه هغه خو په ولاړه څښنل مستحب دي ، په ځينو فقهي رواياتو کي بيان سوى دى چي د زمزم اوبه او د اوداسه څخه پاته سوي اوبه دي په ولاړه څيښي مګر نوري اوبه دي په ولاړه نه څښي.

## د اوبو څيښلو طريقه

﴿۴۰۸۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يو انصاري کره تشريف يووړ ،

وَمَعَهُ صَاحِبٌ لَهُ فَسَلَّمَ فَرَدَّ الرَّجُلُ وَهُوَ يُحَوِّلُ الْمَاءَ فِيْ حَائِطٍ فَقَالَ النَّبِيُّ

د رسول الله ﷺ سره يو صحابي هم وو ، رسول الله ﷺ هغه انصاري ته سلام وکړ هغه د سلام جواب ورکړ ، انصاري هغه وخت باغ اوبه کوئ ، نبي کريم ﷺ هغه ته وفرمايل :

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ كَانَ عِنْدَكَ مَاءٌ بَاتَ فِي شَنَّةٍ وَإِلَّا كَرَعْنَا فَقَالَ

که ستا سره په ژي کي اوبه وي چي په دغه ژي کي يې شپه تيره کړې وي نو موږ ته يې راکړه کنه نو موږ به پر يو ويالـه يا تالاب باندي په خوله لګولو سره اوبه وڅښنو ، انصاري وويل:

عِنْدِي مَاءٌ بَاتَ فِي شن فَانْطَلَقَ إِلَى الْعَرِيشِ فَسَكَبَ فِي قَدَحٍ مَاءً ثُمَّ حَلَبَ

زما سره په ژي کي اوبه سته چي شپه يې په ژي کي تيره کړې ده ، د دې په ويلو سره هغه خپل خيمې ته ولاړى په يوه پيالـه کي يې اوبه راواخيستلې او په هغه کي يې د کور د ميږو څخه

عَلَيْهِ مِنْ دَاجِنٍ فَشَرِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَعَادَ فَشَرِبَ الرَّجُلُ الَّذِي جَاءَ مَعَهُ . رواه البخاري.

شيدې ولويشلې ، نبي کريم ﷺ هغه وڅښنلې او بيا يې بله پيالـه راوړل هغه يې هغه صحابي ته ورکړه چي د رسول الله ﷺ سره راغلى وو . بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۷۵، رقم: ۵۶۱۳.

**د لغاتو حل**: شنة: ای قربة عتیقة. العریش: هو السقف في البستان. داجن: ای شاة تعلف في المنزل.

**تشریح**: د کرعنا معنی ده چي موږ به د کرع څخه اوبه څښلې ، کرع هغه ځای ته وایي چیري چي د باران اوبه جمع کیږي ، همدارنګه کوچنی ویالې او تالاب ته هم کرع وایي، په دې اعتبار سره د کرع مفهوم دا سو چي موږ بېله لوښي او بېله لاس لګولو د ویالې او تالاب څخه په خوله لګولو سره اوبه څښو، او ځیني حضرات وایي چي کرع دې ته وایي چي بېله لوښي او لاس اچولو سره اوبه وڅښي لکه څرنګه چي حیوانان د تالاب وغیره څخه د خپل پښو په اچولو سره اوبه څښي.

سیوطي رحمة الله علیه وایي: د دغه حدیث څخه دا مفهوم اخیستل کیږي چي کرع یعني د خولې په لګولو سره اوبه څښل جائز دي ، حال دا چي د ابن ماجه په یوه روایت کي د کرع منع نقل سوې ده په دغه صورت کي به ویل کیږي چي د ابن ماجه د روایت تعلق د نهي تنزیهي سره دی او دلته چي کوم بیان سوی دی هغه د جواز څرګندولو لپاره وو، مطلب دا چي په عامو حالاتو کي خو داسي د حیوان په ډول اوبه څښل مکروه دي مګر په خاصو حالاتو کي داسي اوبه څښل پروا نه لري.

## د سرو او سپینو زرو په لوښي کي خورک حرام دی

﴿۴۰۸۶﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الَّذِي يَشْرَبُ فِي آنِيَةِ الْفِضَّةِ إِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِي بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ . متفق علیه و في روایة لمسلم ان الذي یاکل و یشرب في آنیة الفضة والذهب.

د حضرت ام سلمه (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د سپینو زرو په لوښو کي د څښلو یو شي څښي د هغه دا څښل به د هغه په نس کي د دوزخ اور بل کړي. بخاري او مسلم.، او د بخاري په یوه روایت کي د االفاظ دي څوک چي د سپینو یا سرو زرو په لوښو کي خوري یا څښي .(د هغه به دغه حال وي کوم چي ذکر سو) .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۹۶، رقم: ۵۶۳۴، ومسلم ۱۴\۱۶۳۴، رقم: ۱– ۲۰۶۵.

**تشریح**: د ټولو علماوو او امامانو پر دې مسئله اتفاق دی چي د خلکو او ښځو دواړو لپاره د سرو او سپینو زرو په لوښو کي خوړل او څښل حرام دي همدارنګه په هغه لوښو کي د اوبو څخه په ډکولو سره اودس کول یا په هغه کي د عطر اېښودل یا چلم څکول او داسي نورو کارو

كي استعمالول هم حرام دي كه د سرو يا سپينو زرو په لوښي كي د خوراک او څيښاک يو شی ايښودل سوی وي نو هغه دي په بل لوښي كي كښېږدي او بيا دي هغه استعمال كړي همدا رنګه كه تېل يا بل څه پكښې وي نو هغه دي لومړی د چپه لاس په ورغوي راوكاږي او بيا دي يې په راسته لاس سره ولګوي.

كه چېري دا صورت اختيار كړل سو چي هغه تېل يا عطر يا بل څه د سرو يا سپينو زرو د لوښي څخه په ورغوي راوكښل سي او بيا د ورغوي څخه ولګول سي نو دا به جائز نه وي، په هدايه كي ليكلي دي چي په مفضض لوښي كي اوبه څيښل جائز دي په شرط ددې چي د خولې لګولو ځای د سپينو زرو نه وي همدارنګه د سپينو يا سرو زرو په مضبب پياله كي هم اوبه څيښل جائز دي ځكه چي پر پياله باندي ضباب كېدل يعني پر هغه باندي د سرو يا سپينو زرو پترۍ لګول د هغه پيالې د ټينګوالي لپاره وي نه د ښكلا او زينت لپاره.

﴿۴۰۸۷﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا

د حضرت حذيفة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې:

تَلْبَسُوا الْحَرِيرَ وَلَا الدِّيبَاجَ وَلَا تَشْرَبُوا فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَلَا تَأْكُلُوا فِي صِحَافِهَا فَإِنَّهَا لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَهِيَ لَكُمْ فِي الْآخِرَةِ. متفق عليه.

حرير او ديباج (ريښمني جامې) مه اغوندئ، د سرو او سپينو زرو په لوښو كي مه څښئ او د سرو او سپينو زرو په پيالو كي خوراک مه كوئ ځكه چي دا شيان په دنيا كي د كافرانو لپاره دي او ستاسو لپاره په آخرت كي دي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۵۴، رقم: ۵۴۲۶، ومسلم ۳\۱۶۳۷، رقم: ۴- ۲۰۶۷.

**تشريح**: ريښمينه جامه مه اغوندئ: په دغه حكم كي د څلورو ګوتو په اندازه هغه ريښمنه جامه مستثنی ده چي د بلي جامې په غاړه ولګول سي د مثال په توګه الحاق وغيره يعني كوټ يا بل شی ته د ريښمنو جامې لګول جائز دي په شرط ددې چي هغه د څلورو ګوتو څخه زيات پلن نه وي همدارنګه هغه جامه اغوستل جائز دي چي په هغه كي رېښم وي او سوت وي او كه چيري سوت په تانې كي وي او رېښم په بانې كي وي نو د هغه اغوستل به جائز نه وي مګر د جنګ په وخت كي ددې اغوستل هم جائز دي همدارنګه كه چا ته د خارش ناروغي وي، يا شپږې زياتي سوي وي نو په دغه صورت كي هم رېښمينه جامه اغوستل ورته جائز دي.

## د راسته خوا څخه شروع

﴿۴۰۸۸﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ حُلِبَتْ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةٌ دَاجِنٌ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې د رسول الله ﷺ لپاره په كور كې د ساتل سوې بزې څخه

وَشِيبَ لَبَنُهَا بِمَاءٍ مِنَ الْبِئْرِ الَّتِي فِي دَارِ أَنَسٍ فَأَعْطَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

شيدې ولويشل سوې بيا په هغه كې د څاه او به ګډې كړل سوې چې د انس رضي الله عنه په كور كې وو ، بيا هغه شيدې رسول الله ﷺ ته وركول سوې

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَدَحَ فَشَرِبَ وَعَلَى يَسَارِهِ أَبُو بَكْرٍ وَيَمِينِهِ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ عُمَرُ

رسول الله ﷺ د هغه څخه يو څه وڅښل دغه وخت د رسول الله ﷺ چپه طرف ته ابوبكر صديق رضي الله عنه وو او راسته طرف ته يې يو صحرائي وو ، حضرت عمر رضي الله عنه وويل:

أَعْطِ أَبَا بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَأَعْطَى الْأَعْرَابِيَّ الَّذِي عَنْ يَمِينِهِ ثُمَّ قَالَ الْأَيْمَنَ فَالْأَيْمَنَ، وفي رواية الايمنون الايمنون الا فيمنوا. متفق عليه.

ابوبكر رضي الله عنه ته يې وركړئ اې د خداى رسوله! ، رسول الله ﷺ هغه پياله صحرائي ته وركړه چې د رسول الله ﷺ راسته طرف ته ناست وو ، رسول الله ﷺ وفرمايل: اول راسته دئ او بيا چپه، او په يوه روايت كې داسې دي چې د راسته خوا خلك مستحق دي د راسته خوا خلك مستحق دي ، خبردار! د راسته خوا كسانو ته يې وركوي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۳۰، رقم: ۲۳۵۲، ومسلم ۳\۱۶۰۳، رقم: ۱۲۵- ۲۰۲۹.

**تشريح**: د انس رضي الله عنه په كور كې وو : د ظاهري طرز تقاضا خو داوه چې حضرت انس رضي الله عنه دلته داسې ويلي واى چې زموږ په كور كې وو ځكه چې حضرت انس رضي الله عنه د كومې پېښې ذكر كړې دى هغه دده د كور ده او د كومې مېږې شيدې چې يې لويشلې وې هغه هم دده په كور كې وه او خپله حضرت انس رضي الله عنه ددغه پېښې بيانونكى دى مګر هغه د ظاهري طرز د تقاضا پر خلاف وكړه په دې ويلو سره چې د انس په كور كې وو ، يعني د تفنن عبارت يې اختيار كړ چې هغه ته په علم عربيت كې وضع مظهر ، موضع مضمر وايي ، دواړه الفاظ د نون په پيش سره دي چې ژباړه يې داده چې راسته مقدم دى او بيا چپه، يعني تر ټولو مخكې دې هغه سړي ته وركړل سي چې

راسته خوا ته وي او بيا دي هغه چا ته ورکړل سي چي د مخکني سړي خوا ته وي په همدغه ترتيب دي يې تهولو ته ورکوي تر دې چي د چپه خوا ته سړي وار راسي ، په يوه روايت کي دغه دواړه الفاظ د ايمن د نون په زور سره دي په دغه صورت کي به معنی دا وي چي زه به راسته خوا ته ورکوم بيا چپه خوا والا ته مګر د نون د پيش والا روايت تائيد د ذکر سوي دوهم روايت : الايمنون څخه هم کيږي ، ددغه حديث څخه ثرګنده سوه چي د يو شي په ورکولو کي د راسته خوا لحاظ ساتل مستحب دي يعني که څه هم د راسته خوا سړی د چپه خوا د سړي په نسبت د کمي درجې وي مګر بيا هم مخکي دي هغه ته ورکول کيږي ځکه چي نبي کريم ﷺ هغه صحرائي پر حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ځکه مقدم کړ چي هغه راسته خوا وو ،

او دغه حديث د رسول الله ﷺ پر عدل او انصاف او حق شناسی باندي هم دلالت کوي ، رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د افضل او مقرب کېدو او د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د سفارش سربېره د صحرائي سړي حق نظر انداز نه کړ ، کوم چي د حضرت عمر رضي الله عنه د وينا تعلق دی نو هغه محض د يادوني لپاره وينا کړې وه چي کيدای سي رسول الله ﷺ ته د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه موجودتيا په ياد نه وي .

﴿۴۰۸۹﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَدَحٍ

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ته يوه پياله د شېدو راوړل سوه ،

فَشَرِبَ مِنْهُ وَعَنْ يَمِينِهِ غُلَامٌ أَصْغَرُ الْقَوْمِ وَالْأَشْيَاخُ عَنْ يَسَارِهِ فَقَالَ يَا

رسول الله ﷺ د هغې څخه وڅښل او هغه وخت د رسول الله ﷺ راسته طرف ته يو هلک وو چي تر ټولو کوچنی وو او د پوخ عمر سړي چپه طرف ته ناست وه، رسول الله ﷺ

غُلَامُ أَتَأْذَنُ لِي أَنْ أُعْطِيَهُ الْأَشْيَاخَ فَقَالَ مَا كُنْتُ لِأُوثِرَ بِفَضْلِي مِنْكَ أَحَدًا

د هغه هلک (يعني ابن عباس رضي الله عنه) څخه پوښتنه وکړه چي ايا ته اجازه کوې چي زه دا پياله مشرانو خلکو ته ورکړم؟ (په مشرانو کي خالد بن وليد هم وو) هلک وويل: اې د الله رسوله ! ستاسو د پاته شونو د څښلو څخه زه تر خپل ځان ماسوا بل څوک نه غوره کوم،

يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ. متفق عليه و حديث ابي قتادة سنذكر في باب

المعجزات ان شاء الله تعالى .

نو رسول الله ﷺ هغه پياله هغه كوچني ته وركړل . بخاري او مسلم . او د ابو قتاده رضي الله عنه حديث به مور په باب المعجزات كي ډير ژر بيان كړو . ان شاء الله تعالى .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۹-۳۰، رقم: ۲۳۵۱. ومسلم ۳\۱۶۰۴، رقم: ۱۲۷-۲۰۳۰.

**تشريح**: د دغه حديث څخه دا هم څرګنديږي كه چيري په مجلس كي تر يوه زيات كسان وي او هغوى ته يو شى وركول كيږي نو د راسته خوا سړى د دې زيات حقدار دى چي د وركولو پيل د هغه څخه وكړل سي ، مګر كه چيري د يو مصلحت تقاضا دا وي چي مخكي دي هغه سړي ته وركړل سي كوم چي چپه خوا ته وي نو د راسته خوا سړي څخه دي اجازه واخيستل سي ، كه هغه اجازه وركړي نو بيا چپه خوا سړي ته دي وركړل سي، پاته سوه دا خبره چي دلته خو رسول الله ﷺ د ابن عباس رضي الله عنه څخه اجازه وغوښتل مګر په ذكر سوي حديث كي چي كومه پېښه ذكر سوې ده هلته رسول الله ﷺ د صحرائي څخه اجازه نوه اخيستې نو د دې وجه داوه چي دلته د رسول الله ﷺ چپه خوا ته چي كوم مشران خلک ناست وه د هغوى تعلق د قريشو سره وو او ابن عباس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ قريب وو نو رسول الله ﷺ فكر وكړ كه د ابن عباس رضي الله عنه څخه د اجازې په اخيستلو سره هغه خلكو ته وركړل سي نو ابن عباس رضي الله عنه به ناراضه نسي او د هغه مشرانو خلكو تاليف قلوب به هم وسي ، حال دا چي دلته د رسول الله ﷺ چپه خوا ته حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه وو چي د هغه د رسول الله ﷺ سره تعلق، مينه او اخلاص پوخ وو د هغه د تاليف قلوب سوال نه پيدا كيدى ، بلي خوا ته د هغه صحرائي په اړه هم دا خيال وو كه د هغه څخه د اجازې په اخيستلو سره ابوبكر صديق رضي الله عنه ته وركړل سي نو كيداى سي دا خبره هغه خپل حق تلفي وګڼي او د وحشت ښكار سي ځكه چي هغه په اسلام كي نوى داخل سوى وو يعني رسول الله ﷺ د هغه د تاليف قلب په دې كي وليدى چي د هغه څخه اجازه نه واخيستل سي .

د فقهاوو پر دې خبره اتفاق دى چي په طاعات (يعني ديني امورو او عباداتو) كي ايثار جائز نه دى ، دا خو د فقهاوو قول دى مګر ددغه مسئلې زيات وضاحت دادى كه ايثار په واجباتو كي وي نو حرام دى او كه په فضائلو او مستحباتو كي وي نو مكروه دى ، د مثال په توګه د يو سړي سره يوازي دومره اوبه دي چي په هغه سره خپله اودس كولاى سي مګر هغه اوبه دوهم سړي ته وركړي او خپله په تيمم كولو سره لمونځ وكړي ، يا د هغه سره دومره جامه وي چي د هغه ستر په پټيږي مګر هغه جامه بل سړي ته وركړي او خپل لوڅ بدن لمونځ وكړي نو داسي

ایثار جائز نه دی بلکه حرام دی ، دا خو په واجباتو کي د ایثار صورت وو، په فضائلو او مستحباتو کي د ایثار صورت دادی د مثال په توګه یو سړی په جماعت سره د لمانځه کولو لپاره په لومړي صف کي امام ته نژدې ناست وو مګر هغه ځای یې بل چا ته ورکړ او خپله دوهم صف ته ولاړی او هلته یې لمونځ وکړ نو داسي ایثار ښه نه دی بلکه مکروه دی ، د طاعاتو برعکس په دنیوي چارو کي ایثار یو ستایل سوی او مستحسن عمل دی ، کوم چي ددې خبري تعلق دی چي د ځینو صوفیانو په اړه دا نقل سوي دي چي هغوی په ځینو وختونو کي په طاعاتو کي د ایثار صورتونه اختیار کړي دي نو هغوی به داسي د غلبه حال په سبب کړي وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په ولاړه خوراک او څښاک

﴿۴۰۹۰﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا نَأْكُلُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَمْشِي وَنَشْرَبُ وَنَحْنُ قِيَامٌ . رواه الترمذي و ابن ماجة والدارمي و قال الترمذي هذا حديث حسن صحيح غريب .

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي به موږ تللو او په ولاړه به مو خوراک او چښناک کوئ، ترمذي، ابن ماجه او دارمي، او ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن صحیح غریب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲٦۵، رقم: ۱۸۸۰، وابن ماجه ۲\ ۹۸، رقم: ۳۳۰۱، والدارمي ۲\ ۱٦۲، رقم: ۲۱۲۵.

**تشريح**: علماوو ویلي دي چي په تګ کولو سره خوراک کول او په ولاړه څښل جائز خو دي مګر غوره او ښه خبره داده چي په تګ سره خوراک ونه کړل سي ځکه چي دا د ادب خلاف خبره ده او همدارنګه په ولاړه څښل هم لکه څرنګه چي مخکي تېر سوي دي .

﴿۴۰۹۱﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْرَبُ قَائِمًا وَقَاعِدًا ؟ رواه الترمذي.

حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار څخه او هغه د پلار څخه روایت کوي چي ما رسول الله ﷺ په ولاړه او په ناسته په چښلو لیدلی دئ . ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۲٦٦، رقم: ۱۸۸۳.

**تشریح**: مطلب دادی چي په ولاړه مو یو یا دوه واره لیدلی دی او هغه هم د بیان جواز لپاره وو، یا د یو ضرورت او عذر په وجه وو، د دغه یو یا دوه واره څخه پرته په نورو ټولو وختو کي مو په ناسته څښنلو باندي لیدلی دی.

## د څښنلو په وخت کي د اوبو په لوښي کي ساه مه کاږئ

﴿۴۰۹۲﴾: وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُتَنَفَّسَ فِي الْإِنَاءِ أَوْ يُنْفَخَ فِيهِ. رواه ابوداؤد و ابن ماجة.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ د اوبو په لوښي کي د څښنلو په وخت کي د ساه کښنلو څخه او پوه کولو څخه منع فرمایلي ده. ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۱۱۴، رقم: ۳۷۲۸، وابن ماجه ۲\۱۱۳۳، رقم: ۳۴۲۸.

**تشریح**: د څښنلو په وخت کي په لوښي کي ساه کښنل یا پوه کول ځکه منع دي چي په اوبو کي ناړي یا بل څه لویږي ځکه نو نورو خلکو ته کراهت محسوس کیږي، اکثره وخت د خولې څخه بدبويي پیدا کیږي چي د څښنلو لوښي ته بدبويي ورځي، ددې څخه پرته په اوبو کي ساه کښنل په اصل کي د حیوانانو طریقه ده، ځیني حضرات وایي که چیري د یو شي د یخوالي لپاره د پوکلو ضرورت وي نو په دغه صورت کي دي پوه کول نه کوي بلکه تر هغه وخته دي انتظار کوي تر څو چي هغه یخ سي، او که چیري په اوبو کي خاشه یا بل شی ولویږي نو هغه دي په بل کوچني لرګي یا بل شي راوباسي په ګوتو یا پوه کولو سره دي هغه نه راباسي ځکه چي ددې څخه هم طبیعت نفرت او کراهت محسوسوي.

## په یوه ساه اوبه مه څښئ

﴿۴۰۹۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَشْرَبُوا وَاحِدًا كَشُرْبِ الْبَعِيرِ وَلَكِنْ اشْرَبُوا مَثْنَى وَثُلَاثَ وَسَمُّوا إِذَا أَنْتُمْ شَرِبْتُمْ وَاحْمَدُوا إِذَا أَنْتُمْ رَفَعْتُمْ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو په یو دم (یعني یوه

ساه ) د اوبښ په ډول اوبه مه څښئ بلکه په دوه يا درې واره ساه اخيستلو سره يې څښئ، او هر کله چي تاسو څښل شروع کړئ نو بسم الله وايا ست کله چي په دويم وار د لوښي سره خوله لګوئ نو الحمد لله وايا ست . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۶۷، رقم: ۱۸۸۵.

**تشريح**: ادنا درجه داده چي اوبه په دوو ساوو وڅښل سي چي د اوبښ مشابهت لازم نسي مګر په دې کي څه شک نسته چي په درو ساوو څښل غوره دي لکه څرنګه چي مخکي بيان سوی دی او په زياتو وختونو کي د رسول الله ﷺ هم دا معمول وو .

نو حمد وايا ست: په دې اړه په احياء العلوم کي ليکلي دي چي د لومړی ساه څخه وروسته دي الحمد لله ووايي ، ددوهمي ساه وروسته دي رب العالمين ووايي او د دريمي ساه وروسته دي الرحمن الرحيم ووايي او د اوبو څښلو څخه وروسته دغه دعاء ويل هم نقل سوې ده : (الحمد لله الذي جعله عذبا فراتا برحمته ولم يجعله ملحا اجاجا بذنوبنا ) .

## که په اوبو کي خاشه وي هم په اوبو کي مه پوکه

﴿۴۰۹۴﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم ﷺ د اوبو چښلو پر وخت په هغه

النَّفْخِ فِي الشَّرَابِ فَقَالَ رَجُلٌ الْقَذَاةُ أَرَاهَا فِي الْإِنَاءِ قَالَ أَهْرِقْهَا قَالَ فَإِنِّي لَا

کي د پوه کولو څخه منع فرمايلې ده ، يو سړي وويل : ځيني وخت په اوبو کي يو شی وي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: لږ اوبه توی کړه ، بيا هغه پو ښتنه وکړه زه

أَرْوَى مِنْ نَفَسٍ وَاحِدٍ قَالَ فَأَبِنِ الْقَدَحَ عَنْ فِيكَ ثُمَّ تَنَفَّسْ . رواه الترمذي و الدارمي.

په يوه ساه څښلو سره نه اوبه کيږم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل پياله د خولې څخه ليري کړه او بيا ساه واخله . ترمذي او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۶۸، رقم: ۱۸۸۷، والدارمي ۲\۱۶۱، رقم: ۲۱۲۱.

**د لغاتو حل**: القذاة: ما يسقط في الشراب والعين. اَبِن: اى ابعد القدح.

## د لوښي د ماتي خوا څخه اوبه نه څښل

﴿۴۰۹۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشُّرْبِ مِنْ ثُلْمَةِ الْقَدَحِ وَأَنْ يُنْفَخَ فِي الشَّرَابِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د پيالې د ماتي خوا څخه اوبه چښل منع کړه او په اوبو کي د پوه کولو څخه يې هم منع کړې ده. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۱۱، رقم: ۳۷۲۲.

**د لغاتو حل**: ثلمة: موضع السکر من القدح (د لوښي مات ځای)

**تشريح**: د سوري څخه مراد د لوښي مات سوی ځای دی، مطلب دا که چيري د څښلو لوښی مات وي نو د هغه ځای څخه اوبه مه څښئ ځکه چي هلته د شونډو نښول په ښه ډول نه وي او نتيجه دا وي چي د هغه ځای څخه د اوبو څښلو په صورت کي پر بدن او جامو باندي اوبه توئيږي، دوهم دا چي د لوښي پرېوللو په وخت کي د هغه مات ځای په ښه ډول نه پاکيږي او هلته خاوره يا نور شيان پاته کيږي، په دغه صورت کي د پاکۍ تقاضا هم داده چي د هغه ځای څخه اوبه ونه څښل سي.

د حديث د مفهوم او ذکر سوي وضاحت څخه دا معلومه سوه چي د سوري څخه مات سوی لوښی مراد نه دی بلکه د هغه مات سوی ځای مراد دی يعني ددغه منع دا مطلب نه دی چي په مات سوي لوښي کي دي اوبه نه څيښي بلکه مراد دادی چي د لوښي پر مات سوي ځای باندي دي خوله نه ايږدي.

﴿۴۰۹۶﴾: وَعَنْ كَبْشَةَ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَرِبَ مِنْ فِي قِرْبَةٍ مُعَلَّقَةٍ قَائِمًا فَقُمْتُ إِلَى فِيهَا فَقَطَعْتُهُ. رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب صحيح.

د حضرت کبشه رضي الله عنها څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زما په لور تشريف راوړ او د ژي د خولې سره ودريدئ په ولاړه يې اوبه وڅښلې، ما د ژي د خولې څخه هغه ټوټه پريکړه پر کوم ځای چي رسول الله ﷺ خوله مبارکه لګولې وه. (يعني د برکت تر لاسه کولو لپاره). ترمذي، ابن

ماجه، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب صحيح دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۷۰، رقم: ۱۸۹۲، وابن ماجه ۲\۱۱۳۲، رقم: ۳۴۲۳.

**تشريح**: مطلب دادی چي د ژي د خولې څومره برخه د رسول الله ﷺ د خولې سره لګېدلي وي ما د هغه ځای پوست پرېکړ او د ځان سره مي کښېښود ، او ما دغه د برکت ترلاسه کولو لپاره وکړل ، يا ددې لپاره مي وکړه چي پر هغه ځای باندي د بل چا خوله ونه لګيږي لکه څرنګه چي د بي بي ام سلمه ﷞ په روايت کي بيان سوی دی چي هلته په وضاحت سره ويل سوي دي چي ما د ژي خوله پرېکړل چي د رسول الله ﷺ د څښلو څخه وروسته بل څوک پر هغه ځای خوله ونه لګوي.

## د نبي کريم ﷺ خوږي او يخي اوبه خوښي وې

﴿۴۰۹۷﴾: وَعَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ أَحَبُّ الشَّرَابِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحُلْوَ الْبَارِدَ . رواه الترمذي وقال والصحيح ما روى عن الزهري عن النبي صلى الله عليه وسلم مرسلا .

حضرت زهري د عروة څخه او هغه د حضرت عائشې (رض) څخه روايت کوي چي د څښلو په شيانو کي به رسول الله ﷺ خوږي او يخي اوبه ډيري خوښولې . ترمذي، ترمذي ويلي صحيح هغه دي کوم چي زهري د نبي کريم ﷺ څخه مرسلا روايت کړی دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۷۲، رقم: ۱۸۹۵.

**تشريح**: د خواږه شي څخه عموم مراد دی او د رسول الله ﷺ هر خوږ څښناک ډېر خوښ وو، که څه هم هغه خوږې اوبه وې يا خوږې شيدې يا عسل وغيره، په دغه وضاحت سره په دغه حديث او هغه دوو حديثو کي مطابقت پيدا کيږي چي په هغو کي دا بيان سوی دی چي د رسول الله ﷺ د څښلو په شيانو کي شيدې تر ټولو زياتي خوښي وې او په دوهم روايت کي دا بيان سوی دی چي د رسول الله ﷺ د څښلو په شيانو کي عسل زيات خوښ وه .

هغه روايت صحيح ...الخ: ددې مطلب دادی چي زهري رحمه الله دغه روايت په دوو طريقو سره نقل کړی دی يو خو مسند يعني په سند سره لکه څرنګه چي مخکي نقل سوی دی چي : عن الزهري عن عروة عن عائشة ...الخ، او دوهم مرسل يعني بېله سند ذکر سوی دی ، داسي چي په هغه کي د بي بي عائشې ﷞ ذکر نسته بلکه د عبارت ظاهري مفهوم څخه دا معلوميږي چي د عروه ذکر يې هم نه دی کړی ځکه چي زهري رحمه الله خپله هم تابعي دی که څه هم هغه کوچنی

تابعي دی ، ترمذي رحمه الله وايي : د زهري روايت چي د ارسال په طريقه موږ ته رسيدلی دی د هغه په سند کي چي د کومو راويانو ذکر دی هغوی د حديث په اصطلاح کي قوي دي پر خلاف د دغه روايت د سند چي متصل دی ، د دې ځيني راويان ضعيف دي .

## په څښلو کي شيدې ښه شی دی

﴿۴۰۹۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَكَلَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي په تاسو کي

أَحَدُكُمْ طَعَامًا فَلْيَقُلْ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيهِ وَأَطْعِمْنَا خَيْرًا مِنْهُ وَإِذَا سُقِيَ

يو څوک خوراک وخوري نو دا کلمات دي وايي (اللهم بارک ......) اې الله ! زموږ لپاره په دې خوراک کي برکت واچوي او د دې څخه غوره طعام راباندي وخورې او هر کله چي شيدې

لَبَنًا فَلْيَقُلْ اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيهِ وَزِدْنَا مِنْهُ فَإِنَّهُ لَيْسَ شَيْءٌ يُجْزِئُ مِنَ الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ إِلَّا اللَّبَنُ. رواه الترمذي و ابوداؤد.

څښبي نو دا دعاء دي کوي (اللهم بارک ...منه) اې الله په دغه شيدو کي زموږ لپاره برکت واچوې او تر دې زياتي راکړي، او دد<sup></sup>ې څخه غوره دي نه وايي ځکه چي کوم شی د خوراک او څښاک دواړه لپاره کافي سي تر هغه بل غوره شی څه شي کيدلای سي . ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۴۷۲، رقم: ۳۴۵۵، وابوداود ۴\۱۱۶، رقم: ۳۷۳۰.

## د رسول الله ﷺ لپاره خوږې اوبه راوړل

﴿۴۰۹۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْتَعْذَبُ لَهُ الْمَاءُ مِنَ السُّقْيَا قِيلَ هِيَ عَيْنٌ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْمَدِينَةِ يَوْمَانِ . رواه ابوداؤد.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي دنبي کريم ﷺ لپاره به د سقيا څخه خوږې اوبه راوړل سوې، سقيا د مديني منورې څخه د دوو ورځو په فاصله يوه چينه ده . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۱۹، رقم: ۳۷۳۵.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د سرو او سپينو زرو لوښي منع دي

﴿۴۱۰۰﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ شَرِبَ فِيْ إِنَاءِ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ أَوْ إِنَاءٍ فِيْهِ شَيْءٌ مِّنْ ذٰلِكَ فَإِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِيْ بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ. رواه الدار قطني.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د سرو او سپينو زرو په لوښو کي يا په هغه لوښي کي چي سره يا سپين زر پکښې وي يو شی وڅښي نو د هغه دا څښل د هغه په نس کي د دوږخ اور تيزوي . دار قطني

**تخريج**: سنن الدار قطني ۱۱ /۴۰، رقم: ۱.

**تشريح**: په هغه کي د سپينو يا سرو زرو يو برخه وي : ددې مطلب دادی چي په هغه کي د سرو يا سپينو زرو مېخونه يا بل څه لګيدلي وي ، طيبي رحمه الله په نووي رحمه الله څخه دا نقل کړي دي که هغه مېخونه يا بل څه کوچني کوچني وي او په دومره اندازه او شمېر استعمال سوي وي چي د ضرورت او حاجت په اندازه وي نو هغه د حرام او مکروه په حکم کي داخل نه دی مګر که زيات وي او لوی لوی وي نو بيا به هغه د حرام په حکم کي وي ، مګر څرنګه چي مخکي بيان سوی دی چي په دې اړه د حنفيه مذهب دادی چي په کوم لوښي کي د سپينو يا سرو زرو مېخونه لګيدلي وي په هغو کي اوبه يا بل شی څښل جائز دی په شرط ددې چي کوم ځای خوله لګول کيږي هلته سپين يا سره زر نه وي .

==========

# بَابُ النَّقِيْعِ وَالْاَنْبِذَةِ

## (دخوړو اوبو او د خرماوو د اوبو بیان)

رسول اللہ ﷺ چي به کوم شیان څښنل په هغو کي نقیع او نبیذ هم دي، او دغه دواړه شیان د شربتو له ډولو څخه دي، د نقیع جوړولو صورت دادی چي انګور یا خرماوي په اوبو کي خشته کړل سي او هغه ته جوش نه ورکول کیږي همدارنګه د انګورو یا خرماوو خوړوالی هغه ته راځي او یو ډول ښه شربت جوړیږي، دغه شربت ډېر خوندور وي او بدن ته هم ګټه رسوي ، د خرما نقیع د معدې نظام سموي او خوراک ژر هضم کوي او د انګورو نقیع د بدن د زیات حرارت رفع کولو خاصیت لري.

نبیذ هم داسي جوړیږي، فرق دادی چي د نبیذ په صورت کي انګور یا خرماوي په اوبو کي په خشتولو سره تر یو څه وخت پوري ایږدي چي په هغو کي لږ تیزي او تغیر پیدا سي مګر دومره زیاته تیزي او تغیر نه چي د نشه کېدونکي شیانو حد ته ورسیږي ځکه چي په کوم نبیذ کي نشه پیدا سي د هغه څښنل قطعا حرام دي ، نبي کریم ﷺ به هغه نبیذ هیڅکله نه څښنل چي پر هغو به تر درو ورځو زیات وخت تېر سوی وو لکه چي مخکي به راسي، د نقیع په ډول نبیذ هم یو ګټور څښناک دی د بدن په طاقت او قوت کي زیاتوب کوي او دعامي روغتیا ساتنه کوي.

څرګنده دي وي چي نبیذ د انګورو او خرما څخه پرته د نورو شیانو څخه هم جوړیږي، په نهایه کي لیکلي دي چي نبیذ د خرماوو څخه هم جوړیږي، د انګورو څخه هم جوړیږي او د عسلو، غنمو ، اوربشو او داسي نورو شیانو څخه هم جوړیږي، د مشکوٰة مصنف په ذکر سوي عنوان کي د انبذه یعني د جمع صیغه ځکه استعمال کړې ده چي د هغو ډېرو ډولو او انواعو ته اشاره وکړل سي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حضرت انس رضی اللہ عنہ پیاله

﴿۴۱۰۱﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ لَقَدْ سَقَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ بِقَدَحِي هٰذَا الشَّرَابَ كُلَّهُ الْعَسَلَ وَالنَّبِيذَ وَالْمَاءَ وَاللَّبَنَ . رواه مسلم .

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دئ چي ما په خپل دغه پياله کي په رسول الله ﷺ باندي د څښنلو ټول شيان څښنلي دي يعني شات، نبيذ، اوبه او شيدې. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۹۰، رقم: ۸۹- ۲۰۰۸.

**تشريح** رسول الله ﷺ چي په کومه پياله کي د څښنلو شيان څښنل هغه د حضرت انس ﷛ سره وه، نقل سوي دي چي نصر بن انس ﷛ دغه پياله د حضرت انس ﷛ څخه په اته لکه درهمه رانيول، امام بخاري ﷫ دغه پياله په بصره کي ليدلې وه او د هغه د خوشبختۍ به يې څه ويل چي هغه ته په دغه پياله کي د اوبو څښنلو سعادت هم تر لاسه سو.

## د نبيذ جوړولو ذکر

﴿۲۱۰۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنَّا نَنْبِذُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سِقَاءٍ يُوكَى أَعْلَاهُ وَلَهُ عَزْلَاءُ نَنْبِذُهُ غُدْوَةً فَيَشْرَبُهُ عِشَاءً وَنَنْبِذُهُ عِشَاءً فَيَشْرَبُهُ غُدْوَةً. رواه مسلم

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دي چي موږ به د رسول الله ﷺ لپاره نبيذ (د خرما اوبه نښتېږل) جوړول، زموږ سره يو ژی وو چي د هغه به لوړ طرف بنديدئ او کښته طرف ته يې خوله وه موږ به هغه ژی د سهار په وخت کي د اوبو او خرماوو څخه ډکوي او رسول الله ﷺ به د شپې هغه اوبه څښنلې او د شپې به مو د خرماوو او اوبو څخه ډکوئ او رسول الله ﷺ به د ورځي هغه اوبه څښنلې. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۹۰، رقم: ۸۵- ۲۰۰۵.

**د لغاتو حل**: العزلاء: فم المزادة وهو ما يخرج منه الماء. (د ژي خوله)

**تشريح**: عزلاء په اصل کي د لوښي خولې ته ويل کيږي او دلته د ژي خوله مراد ده چي د هغه لاندي وي، خلاصه دا چي د هغه ژي سرېږه خوله وه مګر د هغه په لاندي برخه کي هم يوه خوله وه د هغه پورته خوله به وتړل سوه او د هغه د لاندي خولې څخه به اوبه را اخيستل کېدې، د نبيذو جوړولو دغه طريقه زيات وختونه په ګرم موسم کي اختياريږي چي په هغه کي د تغير د ژر پيدا کېدو احتمال وي، په کومو حديثو کي چي د نبيذ جوړولو لپاره د خرماوو يوه ورځ او يوې شپې څخه زيات پوري تر دې چي تر درو ورځو او شپو پوري د خښتولو ذکر دی ددې تعلق کيدای سي د يخ د موسم سره وي.

﴿۴۱۰۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْتَبَذُ

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ لپاره به د شپې په اول کي نبيذ

لَهُ أَوَّلَ اللَّيْلِ فَيَشْرَبُهُ إِذَا أَصْبَحَ يَوْمَهُ ذٰلِكَ وَاللَّيْلَةَ الَّتِي تَجِيْءُ وَالْغَدَ وَاللَّيْلَةَ

تيارېدل او رسول الله ﷺ به هغه د هغه شپې د سهار څخه تر ماښام پوري څښل بيا به يې ټوله

الْأُخْرٰى وَالْغَدَ إِلَى الْعَصْرِ فَإِنْ بَقِيَ شَيْءٌ سَقَاهُ الْخَادِمَ أَوْ أَمَرَ بِهٖ فَصُبَّ.

رواه مسلم.

شپه څښل، بيا په دويمه ورځ به يې د سهار څخه تر ماښام پوري څښل، بيا به يې ټوله شپه څښل او په دريمه ورځ به يې د مازديگر پوري څښل بيا که څه به پاته سول نو په خادم باندي به يې څښل يا به يې توېول. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۸۹، رقم: ۷۹- ۲۰۰۴.

**تشريح**: په (سقاه الخادم او امر به) کي د او حرف د شک د اظهار لپاره نه دی بلکه د تنويع لپاره دی، مطلب دا چي په دريمه ورځ تر مازديگر پوري د څښلو څخه وروسته چي کوم نبيذ پاته سول هغه به وښې پاته سوي وه ځکه رسول الله ﷺ به هغه نه څښل بلکه خادم ته به يې د څښلو لپاره ورکول، او که چيري په هغه کي به د نشې اثر راغلی نو بيا به يې خادم ته هم د څښلو لپاره نه ورکول بلکه توېول به يې.

مظهر رحمۃ اللہ علیہ وايي دد غه حديث څخه ثرگنده سوه چي د بادار او مالک لپاره دا جائز ده چي هغه سرېږن خوراک وخوري او لاندينی خوراک غلام او خادم ته ورکړي.

﴿۴۱۰۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ يُنْبَذُ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سِقَاءٍ فَإِذَا لَمْ يَجِدُوْا سِقَاءً يُنْبَذُ لَهُ فِيْ تَوْرٍ مِنْ حِجَارَةٍ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ لپاره به په ژي کي نبيذ جوړېدل او که ژی به نه وو نو بيا د ډبري په لوښي کي به جوړېدل. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۳\۱۵۸۴، رقم: ۶۲- ۱۹۹۷.

**د لغاتو حل**: التور: اناء صغير يشرب فيه. (د څښاک کوچنی لوښی)

## د نبيذ منع لوښي

﴿۴۱۰۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الدُّبَّاءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ وَالنَّقِيرِ وَاَمَرَ اَنْ يُّنْبَذَ فِيْ اَسْقِيَةِ الْاَدَمِ. رواه مسلم.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د کدو په لوښي کي، په شنه منګي کي، د لاکو په لوښو کي او د لرګي په لوښي کي د نبيذ جوړولو څخه منع فرمايلې ده او دا حکم يې کړی دئ چي د پوست (څرمن) په لوښي کي دي نبيذ جوړ کړل سي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۸۳، رقم: ۴۶- ۱۹۹۷.

**د لغاتو حل**: الدباء: تقدم شرحها في الحديث. الحنتم: الجرة الخضراء (زرغونه کوزه). المزفت: الاناء المطلي بالزفت. النقير: المنقور من الخشب.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د اسلام په پېل کي په دغه لوښو کي د نبيذ جوړولو څخه منع فرمايلې وه او ددغه منع بنياد دا بېره وه چي په دغه لوښو کي جوړ سوي نبيذ کي نشه پيدا نسي، مګر کله چي د نشې د حرمت پر نازلېدو باندي ډېر وخت تېر سو او د خلکو په ذهن کي دغه حرمت په ښه ډول مشهور او پوخ سو نو بيا په هر ډول لوښي کي نبيذ جوړول مباح سول لکه څرنګه چي مخته د راتلونکي حديث څخه به څرګند سي او ددغه مسئلې تحقيق په کتاب الايمان کي هم تېر سوی دی.

## ټول د نشې شيان حرام دي

﴿۴۱۰۶﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَهَيْتُكُمْ عَنْ

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ما تاسو د يو څو ډوله لوښو د

الظُّرُوفِ فَإِنَّ ظَرْفًا لَا يُحِلُّ شَيْئًا وَلَا يُحَرِّمُهُ وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ. وفي رواية

استعمال څخه منع کړي واست مګر لوښي نه يو شی حلالوي او نه يې حراموي. (حقيقت دادئ) چي هر نشه راوستونکی شی حرام دئ، او په يوه روايت کي دي چي ما تاسو د يو څو لوښو کي

قَالَ نَهَيْتُكُمْ عَنِ الْأَشْرِبَةِ فِي ظُرُوفِ الْأَدَمِ فَاشْرَبُوا فِي كُلِّ وِعَاءٍ غَيْرَ أَنْ لَا تَشْرَبُوا مُسْكِرًا. رواه مسلم.

د څښنلو څخه منع کړي واست مګر د پوست په لوښي کي د څښنلو اجازه مي درکړې وه (اوس

هغه حکم منسوخ دئ) تاسو په هر لوښي کي چښل کوئ مګر هيڅ يو نشي والا شی مه څښئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۵۸۰/۱۳، رقم: ۶۵- ۹۷۷.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د شرابو نوم بدلول

﴿۴۱۰۷﴾: عَنْ أَبِيْ مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ لَيَشْرَبَنَّ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي الْخَمْرَ يُسَمُّوْنَهَا بِغَيْرِ اسْمِهَا. رواه ابوداؤد و ابن ماجة.

د حضرت ابو مالک اشعري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي زما په امت کي به ځيني خلک شراب څښني او په نوم بدلولو سره به د هغه يو بل نوم ايږدي. ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داود ۹۱/۴- ۹۲، رقم: ۳۶۸۸، وابن ماجه ۱۳۳۳/۲، رقم: ۴۰۲۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي د کومو خلکو په ذهن کي کوږوالی او فساد وي هغوی به د شرابو څښنلو په اړه ډول ډول بهانې کولې په خاصه توګه د نامه بهانې، د مثال په توګه نبيذ يا مباح شربت لکه څرنګه چي ماء العسل يا بل نشه کېدونکی شی چي څښني او دا ګمان کوي چي دا حرام نه دي ځکه چي هغه د انګورو يا خرماوو په ذريعه جوړ سوي نه دي حال دا چي د هغوی دا ګمان کول د هغوی په حق کي د هغه مشروباتو مباح او حلال کېدو لپاره کار کونکی نه وي بلکه په حقيقت کي هغوی په شراب څښنونکو کي شمېرل کيږي او د هغه سزا به ورکول کيږي، ځکه چي اصل حکم دادی چي هر نشه کونکی څښناک حرام دی که څه هم هغه د هر شي څخه جوړ سوي وي،

يو صورت دا هم وو چي هغوی به شراب څښنل مګر د خپل لوري به يې د هغه بل نوم ايښودی او هغه ته به يې شراب نه ويل چي خلک د شرابو الزام پر عائد نه کړي مګر په حقيقت کي د نوم بدلون د هغوی په حق کي هيڅ ګټور نه دی ځکه چي په اصل کي اعتبار خو د مسمی دی نه د اسم.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### په شنه منګي کي نبيذ

﴿۴۱۰۸﴾: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى قَالَ نَهَى رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نبيذ الْجَرِّ الْأَخْضَرِ قُلْتُ أَنَشْرَبُ فِي الْأَبْيَضِ قَالَ لَا . رواه البخاري.

د حضرت عبدالله بن ابي اوفى ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د شين منګي د نبيذ څښلو څخه منع وفرمايل ، ما عرض وکړ اې دالله رسوله ! ايا موږ د سپين منګی نبيذ څښو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : يا ، (دا حکم په حديث نمبر ۴۱۰۶ سره منسوخ دئ.) بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۸۵، رقم: ۵۵۹۶.

**تشريح**: د شنه منګي څخه مراد حنتم يعني شين غوړ منګی دی، عبدالله ابن ابي اوفى ﷺ د شنه منګي په قيد سره دا وګڼل چي منګی شين نه وي نو دهغه نبيذ څښل به مباح وي ځکه هغه پوښتنه وکړه چي ايا موږ د سپينو منګيانو نبيذ څښلای سو ، مګر رسول الله ﷺ د سپين منګي د نبيذ څښلو څخه هم په منع کولو سره دې ته اشاره وکړه چي د شنه قيد محض اتفاقي دی او ددې يو سبب دادی چي په هغه زمانه کي په کومو منګيانو کي نبيذ جوړېدل هغه به په عامه توګه شنه وه ځکه د شنه ذکر وکړل سو کنه د شنه او سپين حکم يو دی چي هغه غوړ وي که څه هم هغه شين وي يا بل رنګ وي ، په هغه کي جوړ سوي نبيذو څښلو څخه بايد ځان وساتل سي مګر څرګنده دي وي چي ددغه حديث حکم هم منسوخ دی لکه چي مخکي يادونه وسوه .

===========

# بَابُ تَغْطِيَةِ الْأَوَانِيْ وَغَيْرِهَا

## ( د لوښو او وغيره پټولو بيان )

په دغه باب کي به هغه حديثونه ذکر سي چي د شپې بېده کېدو په وخت کي د لوښو پټولو ، دروازو بندولو او څراغانو مړه کولو په اړه نقل سوي دي .

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

## د شپې راتګ

﴿۴۱۰۹﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ جُنْحُ اللَّيْلِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي شپه شروع سي او

أَوْ أَمْسَيْتُمْ فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ فَإِنَّ الشَّيَاطِينَ ينتشير حِينَئِذٍ فَإِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ

مانبام سي نو تاسو خپل کوچنیان د باندي تلو ته مه پرېږدئ ځکه چي د غه وخت شیطانان د ځلورو خواوو څخه خپاره سي بیا چي د شپې یو ګړی تیر سي

مِنَ اللَّيْلِ فَحُلُّوهُمْ فَأَغْلِقُوا الْأَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ

نو په بسم الله ویلو سره د کور دروازې بندي کړئ او کوچنیان په کور کي د لوبو لپاره پرېږدئ ځکه چي شیطانان نه خلاصوي

بَابًا مُغْلَقًا وَأَوْكُوا قِرَبَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ وَخَمِّرُوا آنِيَتَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ

بندي دروازې او د ژي دواړي غاړي په بسم الله ویلو سره بندي کړئ او په بسم الله ویلو سره خپل لوښي پټ کړئ

وَلَوْ أَنْ تَعْرُضُوا عَلَيْهَا شَيْئًا وَأَطْفِئُوا مَصَابِيحَكُمْ. متفق عليه وفي رواية

که څه هم په پلنوالي کي یو داسي شی پر کښېږدئ چي څه اندازه لوښي پټ کړي او څراغ مړ کړئ. بخاري او مسلم،

للبخاري قَالَ خَمِّرُوا الْآنِيَةَ وَأَوْكُوا الْأَسْقِيَةَ وَأَجِيفُوا الْأَبْوَابَ وَاكْفِتُوا

او د بخاري په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: لوښي پټ کړئ د ژیانو خولې بندي کړئ، دروازې بندي کړئ

صِبْيَانَكُمْ عِنْدَ الْمَسَاءِ فَإِنَّ لِلْجِنِّ انْتِشَارًا وَخَطْفَةً وَأَطْفِئُوا الْمَصَابِيحَ عِنْدَ

او د مانبام په وخت کي خپل کوچنیان د ځان سره کښېنوئ ځکه چي په دغه وخت کي پیریانان خپاره سي او تښتول (حمله) کوي، د بیده کېدو پر وخت څراغ مړ کړئ

الرُّقَادِ فَإِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ رُبَّمَا اجْتَرَّتْ الْفَتِيلَةَ فَأَحْرَقَتْ أَهْلَ الْبَيْتِ، و في رواية

ځکه چي ځيني وختونه مږي څراغ کشوي (چيه کوي يې) او کور والا سوځي. او د مسلم په يوه

لمسلم قَالَ غَطُّوا الْإِنَاءَ وَأَوْكُوا السِّقَاءَ وَأَغْلِقُوا الْبَابَ وَأَطْفِئُوا السِّرَاجَ فَإِنَّ

روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: لوښي پټ کړئ، د ژيانو خولې بندي کړئ
، دروازې بندي کړئ او څراغونه مړه کړئ ځکه چي

الشَّيْطَانَ لَا يَحُلُّ سِقَاءً وَلَا يَفْتَحُ بَابًا وَلَا يَكْشِفُ إِنَاءً فَإِنْ لَمْ يَجِدْ أَحَدُكُمْ إِلَّا

شيطان (تړلی) ژی نه خلاصوي بنده دروازه نه خلاصوي او نه (پټ کړي) لوښي خلاصوي، که
د چا سره د لوښو پټولو يو شی نه وي

أَنْ يَعْرُضَ عَلَى إِنَائِهِ عُودًا وَيَذْكُرَ اسْمَ اللهِ فَلْيَفْعَلْ فَإِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ تُضْرِمُ عَلَى

نو په پلنوالي کي د الله ﷻ په نوم اخيستلو سره يو لرګی پر کښيږدئ دا کار وکړه ځکه چي کوچنی فاسق
(مږه) ستاسي کور سوځي،

أَهْلِ الْبَيْتِ بَيْتَهُمْ. و في رواية له قَالَ لَا تُرْسِلُوا فَوَاشِيَكُمْ وَصِبْيَانَكُمْ إِذَا غَابَتْ

او د مسلم په يو روايت کي دي چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي خپل رمې (پسونه) او کوچنيان مه
پرېږدئ هغه وخت چي لمر پريوځي

الشَّمْسُ حَتَّى تَذْهَبَ فَحْمَةُ الْعِشَاءِ فان الشيطان يبعث اذا غابت الشمس حتى

بيا تر هغه وخته چي ماخستن سي ځکه چي شيطان هغه وخت را ليږل کيږي چي لمر پريوځي تر

تذهب فحمة العشاء و في رواية له قَالَ غَطُّوا الْإِنَاءَ وَأَوْكُوا السِّقَاءَ فَإِنَّ فِي

هغه وخته چي د ماخستن تياره ختميږي او د مسلم په يوه روايت کي دي چي نبي کريم ﷺ
فرمايلي دي چي لوښي پټوئ د مشکو (ژي) سرونه تړئ ځکه چي په

السَّنَةِ لَيْلَةً يَنْزِلُ فِيهَا وَبَاءٌ لَا يَمُرُّ بِإِنَاءٍ لَيْسَ عَلَيْهِ غِطَاءٌ أَوْ سِقَاءٍ لَيْسَ عَلَيْهِ
وِكَاءٌ إِلَّا نَزَلَ فِيهِ مِنْ ذَلِكَ الْوَبَاءِ.

کال کي يوه شپه ده چي وبا پکښي نازليږي او تر هغه لوښي نه تيريږي چي سر يې نه وي يا تر مشک چي سر تړونی ونه لري مګر نازليږي پکښي وبا.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٣٦، رقم: ٣٢٨٠، ومسلم ٣\١٥٩٥، رقم: ٩٧- ٢٠١٢.

**تشريح**: د متفق عليه روايت څخه وروسته چي د بخاري کوم روايت نقل سوی دی او په هغه کي د عند المساء (يعني کله چي ماښام سي) الفاظ ذکر سوي دي نو په دې اړه دا هم کېدای سي چي ددې تعلق د ټولو ذکر سوو شيانو سره وي (يعني کله چي شپه پېل سي نو لوښي دي پټ کړل سي، د ژيانو خولې دي وتړل سي ، دروازې دي هم بندي کړل سي او ماشومان دي له دباندي وتلو څخه منع کړل سي) په دغه صورت کي د ماښام څخه مراد هغه وخت دی چي د ماښام د پېل څخه تر ماختستن پوري وي او د دروازو بندولو او لوښو پټولو دغه وخت دی ، او که چيري دا مراد واخيستل سي چي د عند المساء تعلق يوازي د (واكفتوا صبيانكم) يعني خپل ماشومان د ځان سره وساتئ، سره وي لکه څرنګه چي د حديث سياق هم پر دې دلالت کوي نو مراد به انسب وي ، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي د شپې ددغه ټولو شيانو خيال وساتئ چي د شپې په لومړني برخه کي يعني د لمر لوېدو څخه سمدستي وروسته ماشومان د دباندي وتلو او آخوا دېخوا ګرځېدو څخه منع کړئ ځکه چي دغه وخت د پيريانو د خپرېدو وخت دی ، کله چي د شپې يو ساعت تېر سي نو دا ټول کارونه کوئ يعني لوښي پټ کړئ ، دروازې بندي کړئ او بيا دغه وخت د ماشومانو په دباندي وتلو کي څه پروا نسته ، په دغه توجيه سره ددغه روايت د متفق عليه روايت سره مطابقت هم راځي.

او تښتوي يې : د شيطانانو د ماشومانو تښتول حقيقت دی چي د هغه تصديق د ځينو واقعو څخه هم سوی دی، که څه هم دا لږ پېښيږي او يا د تښتولو څخه مراد د ماشوم هوش او حواس زائل کول دي يا هغوی په لوبو او مسخرو کي لګول دي.

جنات او شياطين په اصل کي دواړه يو دي ، په جناتو کي چي کوم سرکښ او فاسق وي هغوی ته شيطان وايي.

فحمه : د شپې په پېل کي يعني د ماښام او ماختستن په مينځ کي چي کومه تياره خپره سي نو هغې ته فحمه وايي، د ماختستن د لمانځه څخه تر سهار پوري چي کومه تياره وي هغه ته عسعسه وايي، په قرآن کريم کي د (والليل اذا عسعس ...الخ) هم دغه مفهوم دی.

څرګنده دې وي چي په دغه حديث کي کوم احکام ورکړل سوي دي هغه د وجوب په توګه نه دي بلکه د هغو مقصد محض د هغه امورو لارښوونه کول دي کوم چي موږ په ورځني ژوند کي

د خير او مصلحت متقاضي دي ، يا دا چي ددغه احكامو تعلق د استحباب سره دی يعني په حديث كي پر ذكر سوي هدايت باندي عمل كول مستحب دي . نووي رحمة الله عليه وايي : كه چيري ددغه حديث پر مضمون باندي په ژور نظر سره فكر وكړل سي او په هدايا تو يې عمل وكړل سي نو ښكاره به سي چي په دغه ارشاد كي مختلفي ښېګڼي، جامع ادبونه او د تهذيب رموز پټ دي، په خاصه توګه په دغه احكامو كي چي تر ټولو لوی تعليم دی هغه دادی چي د هر حركت او سكون په وخت د الله جل جلاله نوم اخيستل يعني بسم الله ويل يوه داسي اسانه ذريعه ده چي د دنيا او آخرت د افاتو او بلاګانو څخه د سلامتيا او ساتني ضامن ګرځول كيږي .

## لوښي پټوئ

﴿۲۱۱۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ جَاءَ أَبُو حُمَيْدٍ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ مِنَ النَّقِيْعِ بِإِنَاءٍ مِّنْ لَبَنٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَّا خَمَّرْتَهُ وَلَوْ أَنْ تَعْرُضَ عَلَيْهِ عُودًا . متفق عليه.

د جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو انصاري سړي چي د هغه نوم ابو حميد وو د نقيع نامي ځای څخه د رسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره د شيدو يو لوښی راوړ، نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه ته وفرمايل : تا دا پټ ولي نه راوړ كه نور څه نه وه نو يو لرګی به دي پر هغه په پلنوالي ايښی وای . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۷۰، رقم: ۵۶۰۵، ومسلم ۳\۱۵۹۳، رقم: ۹۵- ۲۰۱۱.

## د بيديدو پر وخت اور مړ كړئ

﴿۲۱۱۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَتْرُكُوا النَّارَ فِي بُيُوتِكُمْ حِينَ تَنَامُونَ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : هر كله چي تاسو بيده كيږئ نو په كور كي اور مه پرېږدئ . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۸۵، رقم: ۶۲۹۳، ومسلم ۳\۱۵۹۶، رقم: ۱۰۰- ۲۰۱۵.

**تشريح**: د اور څخه مراد هغه اور دی چي په هغه سره د يو شي د سوځيدو بېره وي ، كه هغه څراغ وي يا د نغري او بل شي اور وي، مګر د رڼا كولو كوم شيان چي د څراغ، ګروپ يا بل شي

په صورت کي وي او د هغه څخه د اور لګېدو بېره نه وي نو د هغه په پرېښودو کي څه پروا نسته او داسي شيان په دغه منع کي داخل نه دي ځکه چي د دغه منع اصل علت يعني د اور لګېدو بېره نسته نو په دغه حکم باندي عمل کول ضروري نه دی بلکه شيخ عبد الحق محدث دهلوي رحمه الله عليه وايي که چيري اور په کور کي داسي پرېښودل سي چي په هغه سره د بل شي د سوځېدو بېره نه وي لکه د يخ په وخت کي د شب بيداری په غرض يا د يو بل حکمت په وجه د نغري يا بل شي اور پرېږدي نو ويل کيږي چي پر مذکوره وضاحت باندي په قياس کولو سره به دا هم منع نه وي.

﴿۴۱۱۲﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ احْتَرَقَ بَيْتٌ بِالْمَدِينَةِ عَلَى أَهْلِهِ مِنَ اللَّيْلِ فَحُدِّثَ بِشَأْنِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ هَذِهِ النَّارَ إِنَّمَا هِيَ عَدُوٌّ لَكُمْ فَإِذَا نِمْتُمْ فَأَطْفِئُوهَا عَنْكُمْ . متفق عليه.

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دئ چي په مدينه کي د شپې يو کور وسوځيدئ، رسول الله ﷺ ته د هغه ياد ونه وسول نو رسول الله ﷺ وفرمايل: دا اور ستاسو دښمن دئ هر کله چي تاسو بيده کيږئ نو دا اور وژنئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۸۵، رقم: ۶۲۹۴، ومسلم ۳\۱۵۹۶، رقم: ۱۰۱- ۲۰۱۶.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د سپي يا خره اواز په شپه کي

﴿۴۱۱۳﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا سَمِعْتُمْ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي کله تاسو د شپې

نُبَاحَ الْكِلَابِ وَنَهِيقَ الْحَمِيرِ مِنَ اللَّيْلِ فَتَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ

د سپيو غپا واورئ او د خرو آواز واورئ نو د الله تعالی په ذريعه د شيطان څخه پناه غواړئ او اعوذ بالله من الشيطان الرجيم وايا ست

فَإِنَّهُنَّ يَرَيْنَ مَا لَا تَرَوْنَ وَأَقِلُّوا الْخُرُوجَ إِذَا هَدَأَتِ الْأَرْجُلُ فَإِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ

ځکه چي هغوی هغه شيانويني کوم چي تاسو نه وينئ، (يعني شيطانان) او هر کله چي د خلکو

تک راتک (په شپه تيريدو آبادۍ کې) بند سي نو تاسو هم کم وځئ ځکه چي دغه وخت الله ﷻ

يَبُثُّ مِنْ خَلْقِهِ فِيْ لَيْلَتِهِ مَا يَشَاءُ وَأَجِيفُوا الْأَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ

خپل مخلوق خپرول غواړي خپروي ، د کورونو دروازې د الله په نامه اخيستلو سره بندوی

فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لاَ يَفْتَحُ بَابًا إِذَا أُجِيفَ وَذُكِرَ اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ وَغَطُّوا الْجِرَارَ وَأَكْفِئُوا الْآنِيَةَ وَأَوْكُوا الْقِرَبَ . رواه في شرح السنة.

ځکه چي شيطان هغه دروازې نه سي خلاصولای چي بنده سي او د الله تعالی نوم پر واخيستل سي او لوښي پټ کړئ او ژيانو خولې وتړئ . شرح السنه .

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۱\۳۹۲، رقم: ۳۰۶۰.

## د مږې شرارت

﴿۴۱۱۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَاءَتْ فَأْرَةٌ تَجُرُّ الْفَتِيلَةَ فَأَلْقَتْهَا بَيْنَ يَدَيْ

د ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي يو موږک يو لګيدلی څراغ راوړ او د رسول الله ﷺ په مخ

رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْخُمْرَةِ الَّتِي كَانَ قَاعِدًا عَلَيْهَا فَأَحْرَقَتْ

کي يې پر چټائي وغورځوئ چيري چي رسول الله ﷺ تشريف فرما وو او د يوه درهم په اندازه

مِنْهَا مِثْلَ مَوْضِعِ الدِّرْهَمِ فَقَالَ إِذَا نِمْتُمْ فَأَطْفِئُوا سُرُجَكُمْ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدُلُّ مِثْلَ هٰذِهِ عَلٰى هٰذَا فَتُحْرِقُكُمْ . رواه ابوداؤد.

چټائي يې وسوځل ، ددې په ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل هر کله چي تاسو بيده کيږئ نو څراغ مړ کړئ ځکه چي شيطان دغه ضررناک شي (موږک) ته داسي مشوره ورکوي يا لاره ور ښيي او تاسو سوځي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۴۰۸، ۴۰۹، رقم: ۵۲۴۷.

**تشريح**: د مشکوة مصنف په دغه باب کي دريم فصل نه دی راوړی او نه يې دا ويلي دي چي دغه باب له دريم فصل څخه خالي دی ، ددې د نه ويلو وجه د کتاب الاشربه په اول فصل کي بيان سوې ده .

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَابُ اللِّبَاسِ

## (د جامو بیان)

لباس په اصل کي مصدر دی مګر استعمال يې د ملبوس په معنی دی ، لکه څرنګه چي د کتاب لفظ د مصدر کېدو سربېره د مکتوب په معنی کي استعمالیږي ، د لباس د ماضي او مضارع صيغې د علم يعلم باب څخه دي ، او مصدر يې د لُبس يعني د لام په پېښ سره هم راځي او لَبس يعني د لام په زور سره هم راځي چي معنی يې د التباس ده چي د ضرب يضرب له باب څخه ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نبي ﷺ خوښي جامې

﴿۴۱۱۵﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ أَحَبُّ الثِّيَاب إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَلْبَسَهَا الْحِبَرَةُ . متفق عليه.

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي د اغستلو په جامو کي د نبي کريم ﷺ حبره (د سرو یا شنو کرښو لرونکي څادر) ډېر خوښ وو . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۷٦، رقم: ۵۸۱۳، ومسلم ۱۳\۱٦۴۸، رقم: ۳۲- ۲۰۷۹.

**د لغاتو حل**: الحِبرة: من البرود، جمع بردة، ما كان موشيا مخططا. (کرښه لرونکی)

**تشريح**: (حبره) يو ډول يمني څادر ته وايي چي په هغه زمانه کي تر ټولو غوره څادر وو، په دغه څادر کي به سرې کرښي وې او په ځينو کي به شنې کرښي وې ، دغه څادر د سوت څخه جوړېدی، علماوو ويلي دي چي رسول الله ﷺ دغه څادر په دې وجه خوښوی ، ځينو علماوو ليکلي دي چي د هغه څادر د خوښی سبب د هغه شين رنګ وو ځکه چي شنه جامه د جنتيانو د جامو څخه ده، او دا هم نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ شين رنګ ډېر زيات خوښوی لکه څرنګه چي په عبراني اوسط ، ابن نسي او ابونعيم محب کي دا روايت نقل سوی دی: (انه كان احب الالوان اليه الخضرة) يعني په ټولو رنګونو کي د رسول الله ﷺ شين رنګ زيات خوښ وو.

ځينو حضراتو دا هم ليکلي دي چي رسول الله ﷺ هغه ځادر ځکه خوښوی چي د هغه کرښي سرې وي او سور رنګ نه خېرنېدونکی وي .

## تنګ لستوڼي جبه

﴿۴۱۱۶﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةَ بْنِ شُعْبَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَبِسَ جُبَّةً رُوْمِيَّةً ضَيِّقَةَ الْكُمَّيْنِ . متفق عليه.

د حضرت مغيره بن شعبه ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه رومي جبه وا غوستل چي د هغې لستوڼي تنګ وو . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۴۷۳، رقم: ۳۶۳، ومسلم ۱\۲۲۹، رقم: ۷۷- ۲۷۴.

**تشريح**: دا د يو سفر پېښه ده کله چي رسول الله ﷺ د تنګو لستوڼو والا جبه (چپنه) واغوستل، په يو بل روايت کي بيان سوی دی چي د هغه لستوڼي دومره تنګ وه چي رسول الله ﷺ به کله اودس کوی نو هغه لستوڼي به نه پورته کېدل نو رسول الله ﷺ به د خپلو لاسونو پرېوللو لپاره خپل لاسونه له هغه څخه را ايستل ، ځيني حضرات وايي چي ددې څخه معلومه سوه چي د خپل قميص ، چپني او نورو شيانو لستوڼي د سفر په دوران کي تنګ جوړول مستحب دي مګر د سفر څخه پرته مستحب نه دي ځکه صحابه کرامو به پراخ لستوڼي جوړول ، ابن حجر رحمة الله عليه ويلي دي : په دې اړه د امامانو قول دادی چي د لستوڼو پراخول يو بد بدعت دی ، هغوی د صحابه کرامو د لستوڼو پراخه کېدو بله معنی ليکلې ده چي د هغه تفصيل د هغوی په شرحو کي تر لاسه کېدای سي، مګر دا ويل کيږي چي د امامانو قول پر مفرط يعني د حد څخه زيات پراختيا باندي محمول دی ځکه په منتقی کي چي د امامانو د کتابو څخه يو کتاب دی دا ليکلي دي چي د لستوڼو يوه لويشت پراخول مستحب دي .

## د نبي ﷺ آخري دوې جامې

﴿۴۱۱۷﴾: وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ أَخْرَجَتْ إِلَيْنَا عَائِشَةُ كِسَاءً مُلَبَّدًا وَإِزَارًا غَلِيظًا فَقَالَتْ قُبِضَ رُوحُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هٰذَيْنِ . متفق عليه.

د حضرت ابو برده ﷺ څخه روايت دی چي بي بي عائشې (رض) موږ ته د بنکاره کولو لپاره يو ټوټه ټوټه ګنډل سوی ځادر او يو لوی لنګ و ښودی او و يې وفرمايل: په دې دوو کپړو کي د

رسول الله ﷺ روح مبارک قبض سوی وو (یعني نبي کریم ﷺ وفات سوی وو) بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢١٢، رقم: ٥٨١٨، ومسلم ٣\١٦٤٨، رقم: ٣٤-٣٥-٢٠٨٠.

**د لغاتو حل**: ملبدا: ای مرقعا: (گنډل سوی)

**تشریح**: رسول الله ﷺ د خپل ځان لپاره دغه دعاء کړې وه: (اللهم احييني مسكينا و امتني مسكينا) ژباړه: اې الله! ما مسکین راوپاځوې او مسکین مي وفات کړې، نو دا دهغه دعاء اثر وو چي کله رسول الله ﷺ ددغه دنیا څخه تشریف وړی نو پر بدن مبارک یې دغه دوې جامې وې، له دغه حدیث څخه ثرگنده سوه چي د دنیا او ددنیا د رزق څخه بې شوقي د ژوند یوه غوره سرمایه ده، نو پر امت باندي لازمه ده چي په هر خصلت او عادت کي د رسول الله ﷺ پیروي اختیار کړي.

## د نبي ﷺ بستره

﴿۴۱۱۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ فِرَاشُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي يَنَامُ عَلَيْهِ أَدَمًا حَشْوُهُ لِيفٌ. متفق عليه.

د بي بي عائشې ؓ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ بستره چي پر هغې باندي دي به یې ارام کوی، د څرمنې وه چي د خرماؤ د پوستکي څخه ډکه سوې وه. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٢٨٢، رقم: ٦٤٥٦، ومسلم ٣\١٦٥٠، رقم: ٣٧-٢٠٨٢.

**تشریح**: په شمائل ترمذي کي چي د بي بي حفصې ؓ کوم روایت نقل سوی دی په هغه کي دا بیان سوی دی چي د رسول الله ﷺ نالي (کوربچه) د ټاټ وه، نو په دغه دواړو روایتو کي څه تضاد او اختلاف نسته ځکه چي د رسول الله ﷺ سره په یوه زمانه کي د پوست کوربچه وه او په یوه زمانه کي د ټاټ، یا دا چي د خوب کوربچه یې د پوست وه او د ناستي کوربچه یې د ټاټ وه.

## د نبي ﷺ بالښت

﴿۴۱۱۹﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ وِسَادَةُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي يَتَّكِئُ عَلَيْهِ مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ. متفق عليه

د بي بي عائشې ؓ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ بالښت چي په هغه باندي نبي کریم ﷺ تکیه وهله یا د بیده کېدو په وخت کي به یې تر سر لاندي کوی د څرمني وو او هغه د خرماؤ د

پوستکو څخه ډک سوی وو. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\ ۱٦٥٠، رقم: ۳۷- ۲۰۸۲.

**تشریح** تکیه کول: یعني پر هغه به په څنګ وهلو سره کښېنستی، یا د خوب په وخت کي به یې تر سر لاندي کوي. ددغه روایتو څخه څرګنده سوه چي د خوب او ارام لپاره د کوربچې او بالښت تکیه جوړول مستحب دي په شرط ددې چي د عیش او عشرت او د نفس په ارامتیا کي د اسراف په توګه نه وي، رسول الله ﷺ به تکیه خوښول او د خوب په وخت کي به یې تر سر لاندي ایښودل او پر هغه به یې څنګ وهی، او رسول الله ﷺ به فرمایل: که یو سړی بالښت او خوشبویي درکړي نو د هغه څخه انکار مه کوئ.

ددغه روایت او داسي نورو روایتو څخه دا څرګندیږي چي د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي د دنیا په ژوند کي یې زهد او استغناء اختیار کړې وه او ددنیا د متاع او خوندونو څخه یې مخ اړولی وو، ځکه د رسول الله ﷺ جامې هم پر غټو او شکېدلو زړو جامو باندي مشتمل وو، نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ ته به کومه جامه تر لاسه سول نو هغه به یې اغوستل په هغه کي به یې تکلف نه کوی البته داسي هم سوي دي چي رسول الله ﷺ ته یوه ښه جامه راوړل سوې وي نو بیا یې د جواز لپاره اغوستې ده مګر بیرته یې سمدستي هغه جامه بل چا ته ورکړې ده، نو د ښه جامو اغوستلو قید پر ځان باندي عائد کول یا د خرابو جامو اغوستل عادت اختیارول او په دې اړه بې ځایه تکلف او پابندي کول د سنت خلاف کار دی که څه هم په اصل کي مباح دی مګر دا هم باید څرګنده وي چي د ښه جامو اغستلو د استطاعت او توان سربېره محض د بخل او سستی په وجه غټي او شکېدلي جامې اغوستل یا خلکو ته د خپل ځان زاهد او تقواداره ښودلو لپاره یا د حرص او طمع په وجه معمولي او بېکاره جامې اغوستل ښه کار نه دی بلکه د ځینو شیخانو په اړه نقل سوي دي چي هغوی د خپل پرهیزګارۍ او خپل لوړ مقام د نورو د سترګو څخه پټولو لپاره یا د تحدیث نعمت په توګه د خپلي خوشحالۍ څرګندولو لپاره غوره جامې اغوستلې، خلاصه دا که چیري الله ﷻ یو چا ته نعمتونه ورکړي وي او هغه په مالي توګه ښه وي نو د هغه لپاره د غوره او ښه جامو اغوستلو کي څه پروا نسته په شرط ددې چي د اسراف او تکبر حد ته ونه رسیږي ځکه چي میانه روي په هر ځای او هر عمل کي ستایل سوی او مطلوب صفت دی.

## د نبي ﷺ څادر

﴿٤١٢٠﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ بَيْنَا نَحْنُ جُلُوسٌ فِي بَيْتِنَا فِي حَرِّ الظَّهِيرَةِ قَالَ قَائِلٌ لِأَبِي بَكْرٍ هَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُقْبِلًا مُتَقَنِّعًا. رواه البخاري.

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي د غرمې په ګرمۍ کي موږ په خپل کور کي د ننه ناست وو چي يو چا زما پلار (ابو بکر صديق رضي الله عنه) ته وويل ، چي رسول الله ﷺ پر سر پټو اچولي وو تشريف يې راوړ. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري ١٠\ ٢٧٣، رقم: ٥٨٠٧.

**د لغاتو حل**: متقطنعا : اى مغطيا راسه بالقناع (سر په پټو کي پټ کړی)

**تشريح**: د رسول الله ﷺ خپل سر مبارک د څادر په څوکه سره پټول د ګرمۍ څخه د ساتني لپاره وو، يا رسول الله ﷺ خپل سر مبارک ځکه پټ کړی وو چي مخ مبارک يې پټ وي او ددين دښمنان يې ونه پېژني، دغه حديث په اصل کي د هغه حديث يوه ټوټه ده چي په هغه کي د نبي کريم ﷺ د هجرت پېښه بيان سوې ده چي په مکه مکرمه کي د بيعت العقبه څخه وروسته رسول الله ﷺ د الله تعالى له خوا د هجرت د حکم په انتظار وو، بلې خوا ته حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه دا خواست کوی چي په دغه سفر کي د ملګرتيا شرف ور په برخه سي، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: که د هجرت حکم نازل سي نو همدا سي به کيږي (يعني ته به زما ملګری يې) ، يوه ورځ ناڅاپه د هجرت حکم نازل سو نو رسول الله ﷺ په غرمه کي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه کو ر ته ورغلی او ورته وه يې ويل چي د هجرت حکم نازل سوی دی او دا هدايت دی چي زه د هجرت لپاره د مکې څخه ووځم او ته زما ملګری سې، بيا رسول الله ﷺ په شپه کي د ابوبکر صديق رضي الله عنه سره د هغه د سرای د هغه کلکين څخه ووتل چي د مکې په لاندي خوا کي واقع وو او غار ثور ته په تلو سره هلته پټ سول ...الخ.

## تر درو کوربچو بالا مه پر يږدئ

﴿٤١٢١﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ فِرَاشٌ لِلرَّجُلِ وَفِرَاشٌ لِامْرَأَتِهِ وَالثَّالِثُ لِلضَّيْفِ وَالرَّابِعُ لِلشَّيْطَانِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و هغه ته و فرمايل : يوه کوربچه د سړي

لپاره يوه كوربچه د ښځي لپاره دريمه كوربچه د مېلمه لپاره او څلورمه د شيطان لپاره (يعني د ضرورت څخه زياته كوربچه په فضول خرچي كي راځي) . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\ ۱٦٥۱، رقم: ۴۱- ۲۰۸۴.

**تشريح**: مطلب دادى كه چيري په يو كور كي محض ښځه او خاوند وي او هغوى استطاعت لري نو درې بستري دي ساتي يوه د خاوند لپاره ، دوهمه د ښځي لپاره چي كيداى سي يو وخت هغه د ناروغۍ په وجه بېله بېده سي كنه نو د ښځي او خاوند په يوه بستره كي بېده كېدل غوره دي او د سنتو مطابق دى ځكه چي رسول الله ﷺ به د ازواجو مطهراتو سره بېده كېدى، او دريمه بستره ددې لپاره وي كه يو څوک مېلمه راسي نو پر هغه باندي د شپې بېده سي، او دغه درې بسترې كافي دي، تر دې زياتي بسترې د اسراف په حد كي راځي لكه څرنګه چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كه څلورمه بستره وي نو هغه به د شيطان لپاره وي ، شيطان ته ځكه نسبت سوى دى چي هغه څلورمه بستره به يقينا د ضرورت او اړتيا څخه زياته وي او د ضرورت څخه زيات شى اېښودل د فخر او مباحات په دائره كي په راتلو سره بد دي او د هر بد شي نسبت شيطان ته وي، يا ددې نسبت سبب دادى چي هغه څلورمه بستره چي د ضرورت څخه زياته وي ځكه چي شيطان په هغه كي شپه تېروي ، څرګنده دي وي چي كوم سړى سخي او د پراخ زړه خاوند وي او هغه ته زيات مېلمانه راځي نو هغه ته د زياتو بسترو درلودل بد نه دي ، هغه وخت زياتي بسترې درلودل بد دي چي محض د خپل لويي او فخر د اظهار لپاره وي .

## پرتوګ تر بجلكو كښته كول حرام دي

﴿۴۱۲۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْظُرُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى مَنْ جَرَّ إِزَارَهُ بَطَرًا. متفق عليه.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم سړى چي د تكبر او د رياڅخه پرتوګ د بجلكو څخه كښته اغوندي ، د قيامت په ورځ به خداي تعالي و هغه ته د رحمت په نظر نه ګوري . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۲۵۷، رقم: ۵۷۸۸، ومسلم ۳\ ۱٦۵۳، رقم: ۴۸- ۲۰۸۷.

**د لغاتو حل**: بطرا : اى تكبرا و فرحا.

**تشريح**: د غرور او تكبر د قيد څخه څرګنده سوه كه يو سړى د غرور او تكبر څخه پرته خپل

پرتوګ يا لونګ تر بجلکو لاندي کوي نو دا حرام نه دي مګر بيا هم مکروه تنزيهي دی، او د يو عذر په وجه لکه يخ يا ناروغی وغيره په وجه د پرتاګه يا لونګ تر بجلکو لاندي کول مکروه تنزيهي هم نه دي.

## زړيدلې جامه

﴿۴۱۲۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللّٰهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم سړی چي د تکبر له کبله خپله جامه زړيدلې ساتي، الله جل جلاله به د قيامت په ورځ د رحمت په نظر ور ته و نه ګوري. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۲۵۴، رقم: ۵۷۸۴، ومسلم ۳\ ۱۶۵۲، رقم: ۴۴- ۲۰۸۵.

**تشريح**: په جامو کي عموميت دی که لونګ وي يا پرتوګ وي، او که قميص وي يا پټو وغيره د دغه ټولو هم دغه حکم دی.

﴿۴۱۲۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ بَيْنَمَا رَجُلٌ يَجُرُّ إِزَارَهُ مِنَ الْخُيَلَاءِ خُسِفَ بِهِ فَهُوَ يَتَجَلْجَلُ فِي الْأَرْضِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رواه البخاري

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يوه سړي په مخکنيو امتونو کي خپل لنګ يا پرتوګ د تکبر په خاطر را کښته کړی روان وو، هغه په مځکه ننوت دا خسف به تر قيامته پوري جريان ولري يعني په دغه مځکه کي به تر قيامت پوري ننوځي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\ ۵۱۵، رقم: ۳۴۸۵.

**تشريح**: د کوم سړي په اړه چي يادونه سوې ده کيدای سي چي هغه د دغه امت يو کس وي او رسول الله ﷺ د دغه خبره د وړاندويني په توګه فرمايلې وي چي په راتلونکې زمانه کي به داسي وي او د دې واقع کېدل يو يقيني امر وو ځکه رسول الله ﷺ د دغه خبري د خبر ورکولو لپاره د ماضي بيان اختيار کړ، يا دا چي د يو داسي سړي پېښه ده چي په مخکني يو امت کي به وي، په دغه اعتبار سره د حديث ظاهري مفهوم به پر خپل ځای برقرار وي چي رسول الله ﷺ د تيري پېښي خبر ورکړی دی او دا وضاحت زيات صحيح هم دی ځکه چي بخاري د دغه پېښه د بني

اسرائيلو د يادونه په دوران كي نقل كړې ده او ځيني حضرات وايي چي د دغه سړي څخه مراد قارون دی مګر د حديث ظاهري مفهوم او د هغه سړي د نامه اخيستلو څخه پرته ذكر كولو څخه دا واضحه كيږي چي هغه سړی به د قارون څخه پرته بل څوک وي.

## په لباس كي ډېر ټوكر مه كاروئ

﴿۴۱۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ مِنَ الْإِزَارِ فَفِي النَّارِ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د پرتوګ يا لنګ كومه برخه چي د بجلكو څخه كښته وي، هغه به په دوږخ كي واچول سي (يعني د بدن هغه برخه چي په هغه باندي د پرتوګ هغه حصه وي). بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۶۵، رقم: ۵۸۸۷.

**تشريح**: مطلب دادی چي تر بجلكو لاندي د پښو پر څومره برخه باندي پرتوګ يا لونګ وغيره زړېدلي وي هغه ټوله برخه به په دوږخ كي اچول كيږي او ځيني حضراتو دا مطلب بيان كړی دی چي دغه عمل (يعني د پاېڅو تر بجلكو لاندي كول) يو بد عمل دی او د دوږخيانو كار دی، د پاېڅو تر بجلكو لاندي كولو په مسئله كي بايد دا خبره څرګنده وي چي په دې اړه كوم حديثونه نقل سوي دي په هغو كي زيات د پرتوګ يا لونګ يادونه ده او د پرتاګه زړونكي په اړه ډېر سخت وعيدونه هم بيان سوي دي تر دې چي په يوه روايت كي نبي كريم ﷺ يوه ورځ سړی په دغه حال كي پر لمانځه كولو وليدی چي د هغه پايڅې تر بجلكو لاندي وې نو رسول الله ﷺ هغه ته د دوهم وار اودس كولو او لمونځ كولو حكم وكړ، همدارنګه په يوه روايت كي دا نقل سوي دي چي د شعبان په پنځلسمه شپه د ټولو مسلمانانو بخښنه كيږي پرته د عاق، مدمن خمر او مسبل ازار څخه چي د دغه خلكو بخښنه نه كيږي، مګر حقيقت دادی چي د دغه ټولو وعيدو تعلق محض د ازار (پرتوګ) سره نه دی بلكه د ټولو جامو سره دی يعني پر بدن چي كومه جامه د ضرورت څخه زياته او د سنت د دائرې څخه وتلې وي پر هغو ټولو به د دغه منع حكم كيږي، او كوم چي د ازار د تخصيص تعلق دی نو د دې وجه داده چي په هغه زمانه كي څادر او ازار په عامه توګه جامې وې ځكه نو زيات استعمال په وجه د هغه ذكر وكړل سي، په نورو رواياتو كي د ازار سره د نورو جامو لكه قميص، لنګوټې وضاحت هم سوی دی، وروسته په دوهم فصل كي د

حضرت ابن عمر ﷺ روایت نقل کیږي چي : (الاسبال في الازار والقمیص والعمامة من جر منها شیئا خیلاء ...الخ) همدارنګه په دغه فصل کي د حضرت ابن عمر ﷺ روایت تېر سوی دی چي په هغه کي د مطلق جامې ذکر دی ، ددې څخه هم دا ثابتیږي چي په جامه کي د ضرورت څخه زیاته جامې د منع تعلق دهري جامې سره دی.

په هر حال ادنی درجه داده چي ازار یعني (پرتوګ یا لونګ) پر نیمو پنډیو پوري وساتل سي، رسول الله ﷺ به خپل لونګ تر نیمو پونډیو پوري زړوی مګر رخصت یعني اجازه او د اسانۍ درجه تر بجلکو پوري ده چي لونګ او پرتوګ تر بجلکو پوري وزړول سي ، د کرتۍ، قمیص، چپني او داسي نورو شیانو هم دغه حکم دی ، همدارنګه د قمیص او کرتۍ سنت اوږدوالی دادی چي هغه د لاسو تر بندو پوري وي ، د لنګوټې شمله باید دومره وي چي د ملا تر نیمایي پوري رسیدلې وي کومه شمله چي په اوږدوالي یا پلنوالي کي تر دې زیاته وي نو هغه بدعت او په زیات زړولو کي شمېرل کیږي چي منع کار دی، د ځینو سیمو او ښارو خلک په خپلو جامو کي د ضرورت څخه زیات تهوکر استعمالوي لکه د ضرورت څخه زیات اوږده اوږده لستوڼي ، پراخي لمني ، غټې غټې پرتوګونه او لوی لوی لنګوټې نو دا ټول د سنت خلاف دي بلکه که چیري د ضرورت څخه زیات تهوکر استعمالول د تکبر او غرور په نیت سره وي نو حرام ورته ویل کیږي او که د خلکو د رواج په وجه وي نو مکروه ورته ویل کیږي ، په جامو کي د ضرورت څخه زیات اوږدوالی او پلنوالی د ښځو لپاره هم منع دی مګر د خلکو په نسبت یوه لوېشت یا دوې لویشتي زیاتوب جائز دی بلکه دومره اندازه خو مستحب دی چي د پردې په اندازه وي لکه چي د بي بي ام سلمه ﷺ د روایت څخه معلومیږي چي په دوهم فصل کي به راسي.

## ممنوع کالي

﴿۴۱۲۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَأْكُلَ الرَّجُلُ بِشِمَالِهِ أَوْ يَمْشِيَ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ وَأَنْ يَشْتَمِلَ الصَّمَّاءَ وَأَنْ يَحْتَبِيَ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ كَاشِفًا عَنْ فَرْجِهِ . رواه مسلم

د حضرت جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هیڅوک دي په چپه لاس خوراک نه کوي ، او نه دي په یوه چپلکه کي ګرځي ، او یو څادر دي پر ټول بدن نه چاپیروي او داسي جامو د را نغښتلو سره دي نه کښیني چي ستر یې ورسره ښکاره سي . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۶۶۱، رقم: ۷۰- ۲۰۹۹.

**تشریح**: په چپه لاس سره د خوړلو منع د نهي تنزیهي په توګه ده او د ځینو حضراتو په نزد د نهي تحریمي په توګه دي ،

په یوه پښه باندي د څپلۍ په پښو کول یو ډول بدهیئتي ده او د وقار خلاف کار دی ، دوهم دا که چیري څپلۍ لوړي وي نو په دغه صورت کي به د قدم ښوئېدو او پر مځکه د لوېدو باعث وي نو ددې څخه منع فرمایل سوې ده ،

جامه دي پر بدن داسي چاپېره کړي ...الخ: دې ته په عربي کي (اشتمال الصماء) وایي، ددې صورت دا وي چي سړی یوه جامه لکه څادر یا بل شی داسي واغوندي یا پر بدن یې داسي چاپېره کړي چي ټول بدن یې پټ سي او له هیڅ خوا څخه خلاص نه وي او دواړه لاسونه هم بند سي له داسي جامې اغوستلو او څادر اچولو څخه منع فرمایل سوې ده ، په دغه صورت کي داسي وي لکه هغه ته چي طوق اچول سوی وي دې ته صماء ځکه وایي چي هغه د بدن د اندامو نقل او حرکت بندوي لکه صخرة صماء چي هغه ټینګي ډبري ته وایي چي په هغه کي سوری یا درز نه وي، ابن عام رحمه الله د هدایې په شرح کي لیکلي دي چي په لمانځه کي اشتمال صماء مکروه دی ، ددې صورت دادی چي یو سړی په یوه جامه کي خپل سر او خپل ټول بدن داسي وپېچي چي د لاسو ایستلو ځای هم نه وي مګر امام محمد رحمه الله ددغه کراهت لپاره دا شرط لګولی دی چي هغه لونګ هم تړلی نه وي ، حال دا چي د نورو په نزد دغه شرط نسته، نووي رحمه الله د مسلم په شرح کي لیکلي دي چي د فقهاوو په نزد د اشتمال صماء صورت دادی چي یو سړی یوه جامه پر خپل ټول بدن باندي را وګرځوي او بله جامه لکه لونګ ، پرتوګ وغیره د هغه پر بدن نه وي او دبیا د هغه چاپېره سوي جامې په پورته کولو سره پر خپل اوږو واچوي، دغه صورت حرام دی ځکه چي په دې کي د ستر ځیني برخه ښکاره کیږي ، خلاصه دا که چیري د ستر لوڅېدل یقیني وي نو اشتمال صماء به حرام وي او که د ستر لوڅېدل محض د احتمال په درجه کي وي نو بیا مکروه دي .

پر کوناټو کښېنستل : دا هغه ناستي ته وایي چي دواړه کوناټي پر مځکه لګولو سره پندي ودروي او دواړه لاسونه پر هغه چاپېره ونیسي ، یا په داسي ناسته سره یوه جامه پر ملا او پنډیو باندي چاپېره کړي (کله چي ددغه جامې څخه پرته بله جامه یې اغوستې نه وي) داسي ناسته په هغه صورت کي منع ده کله چي د هغه سره یوازي یو څادر وي ، که هغه داسي چاپېره کړي نو ستر یې نه لوڅېږي او که د څادر څخه پرته د هغه سره بله جامه هم وي نو په داسي ناسته کي څه

پروا نسته بلکه د لمانځه څخه پرته په نورو حالاتو کي داسي ناسته مستحب هم ده ځکه چي د رسول الله ﷺ په اړه نقل سوي دي چي هغه د کعبې شريفي مخته په يو څادر کي او د لاسونو په ذريعه پر کوناټو کښېنستی ، او که چيري څادر دومره لوی او پلن وي چي د هغه په چاپېره کولو سره د ستر لوڅېدو احتمال نه وي نو په يوازي څادر کي داسي ناسته به جائز وي .

## د نارينوو لپاره ورېښم حرام دي

﴿۴۱۲۷﴾: وَعَنْ عُمَرَ وَاَنَسٍ وَّ ابْنِ الزُّبَيْرِ وَاَبِيْ اَمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَبِسَ الْحَرِيرَ فِي الدُّنْيَا فَلَم يَلْبَسَهُ فِي الْآخِرَةِ . متفق عليه.

د حضرت عمر ﷛ ،حضرت انس ﷛ ، حضرت ابن زبير ﷛، او حضرت ابي امامه ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي په دنيا کي ورېښم وا غوستل ، په اخرت کي به ورته د اغوستلو لپاره نه ورکول کيږي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۲۸۴، رقم: ۵۸۳۲، ومسلم ۳\ ۱۶۴۵، رقم: ۲۱- ۲۰۷۳.

**تشريح**: ددغه ارشاد تعلق د هغه چا سره دی چي هغه د نارينوو لپاره د رېښم جامې اغوستل حلال ګڼي ، او يا دغه ارشاد پر زجر او توبيخ باندي محمول دی، يا ددې تعلق ددې سره دی چي داسي سړی به تر يو خاص وخت پوري په جنت کي له داخلېدو څخه مخکي د رېښمو د جامو اغوستلو څخه محروم وي، ځکه چي په جنت کي به د جنتيانو جامه د رېشمو وي ، د حافظ سيوطي ﷫ د قول مطابق اکثر علماء ددغه حديث دغه تاويل کوي چي کوم څوک په دنيا کي د ريشمو جامې اغوندي نو هغه به د هغه خلکو سره جنت ته نه داخليږي کوم چي په پېل کي په فائز المرام کېدو سره جنت ته ځي ، ددغه تائيد ددغه روايت څخه هم کيږي چي امام احمد ﷫ د بي بي جويريه ﷞ څخه نقل کړی دی : من لبس الحرير في الدنيا البسه الله يوم القيامة ثوبا من نار. يعني څوک چي په دنيا کي د ريشمو جامې واغوندي نو الله ﷻ به د قيامت په ورځ د اور جامې ور واغوندي .

﴿۴۱۲۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا يَلْبَسُ الْحَرِيرَ فِي الدُّنْيَا مَنْ لَا خَلَاقَ لَهُ فِي الْآخِرَةِ . متفق عليه.

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په دنيا کي چي څوک

وربښم اغوندي ، نو په اخرت كې به د هغه لپاره د هغه برخه نه وي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۸۵، رقم: ۵۸۳۵، ومسلم ۳\۱۶۳۹، رقم: ۷- ۲۰۶۷.

**تشريح**: مطلب دادی چې په دنيا کې د ريشم اغوستونكی سړی د آخرت د عقيدې برخمن نه دی يا دا چې په دنيا كې د ربښم اغوستونكي ته به په جنت كې ربښم اغوستل په برخه نسي، لكه څرنګه چې په ذكر سوي حديث كې فرمايل سوي دي چې : لم يلبسه في الاخرة، يعني هغه به په آخرت كې ربښم نه اغوندي، په دې اعتبار سره د ارشاد مقصد كنايتا دا بيانول دي چې داسي سړی به په جنت كې نه داخليږي لكه څرنګه چې په قرآن كريم كې فرمايل سوي دي : ولباسهم فيها حرير، نو د كافرانو په اړه خو دا خبره بالكل څرګنده ده مګر د مسلمانانو په اړه دغه خبره د تغليظ په توګه ده ، د دغه خبرې په ذريعه دغه حقيقت په سختوالی سره بيان سوی دی چې كوم مسلمان په دنيا كې ربښم اغوندي نو هغوی به په پېل كې جنت ته نه داخليږي، يا دا چې هغوی به تر هغه وخته پوري په جنت كې نه داخليږي تر څو چې د نورو بد كارو سره هغه هم د دوږخ د اور د جامو عذاب تېر نه كړي .

## د ريښمو منعه

﴿۴۱۲۹﴾ : وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ نَهَانَا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَشْرَبَ فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَأَنْ نَأْكُلَ فِيهَا وَعَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ وَأَنْ نَجْلِسَ عَلَيْهِ . متفق عليه.

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ موږ د سرو او سپينو زرو په لوښي كې د خوراک او چښاک څخه منعه كړي يو او د وربښمو او ديباج (چې يو ډول د وربښمو جامې) اغوستلو څخه او د هغې په فرش د كښېنستلو څخه منعه كړي يو . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۹۱، رقم: ۵۸۳۷، ومسلم ۳\۱۶۳۷، رقم: ۴- ۲۰۶۷.

**تشريح**: د سرو او سپينو زرو په لوښو كې خوراک او څښاک او د ربښمو د جامو اغوستلو په اړه مخكې بيان سوی دی ، په فتاوی قاضي خان كې ليكلي دي چې د ريشمو د جامو استعمال څرنګه چې د نارينوو لپاره حرام دی همدارنګه د ماشومانو لپاره هم حرام دی ، امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله وايي : د ريشمو استعمال په كوربچو كې او پر هغه بېده كېدل څه پروا نه لري

همدارنگه که د هغه څخه د بالښت پوښ جوړ کړي يا پردې ور څخه جوړي کړي نو په دې کي هم څه پروا نسته ، امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليهما دغه ټولو ته مکروه ويلي دي، خلاصه دا چي په حديث کي د نارينوو لپاره د ريشمو اغوستلو او پر ريشمو باندي د ناستي چي کومه منع نقل سوې ده په هغه کي د اغوستلو منع خو په اتفاقي توګه د ټولو په نزد پر تحريم محمول ده حال دا چي د امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله په نزد پر تنزيهي باندي محمول دی ځکه چي مخکي په دې اړه وښودل سول چي هغه د ريشمو استعمال په کوربچو او نورو شيانو کي دا وايي چي په دې کي څه پروا نسته ،

ددې مطلب دادی چي په دغه شيانو کي د ريشمو استعمال په هر حال د احتياط او تقوا پر خلاف دی ځکه چي د يو عمل په اړه دا ويل چي د هغه په کولو کي څه پروا نسته ددې خوف په سبب چي کيدای سي په هغه کي څه حرج وي او دا معنی ددغه مشهور حديث هم ده : دع ما يريبک الی ما يريبک، يعني هغه کار پرېږده چي په هغه کي شک وي او هغه کار اختيار کړه چي په هغه کي شک نه وي، په هر حال امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله ته داسي يو قطعي دليل تر لاسه نسو چي د هغه پر بنياد پر ريشمينو جامو باندي ناسته يا بيده کېدل حرام وګرځول سي او د جامو اغوستلو په منع کي صريح نصوص يعني د هغه د حرمت واضح احکام نقل سوي دي او په هغو کي پر ريشمو جامو باندي د ناستي مسئله نه راځي ځکه چي اغوستل او کښېنستل دوه بېل بېل شيان دي چي د اغوستلو اطلاق پر ناسته نسي کيدای ځکه هغه په دغه حديث کي پر ريشمو باندي د ناستي منعه پر نهي تنزيهي باندي محمول کړې ده .

﴿۴۱۳۰﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةُ سِيَرَاءَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ته د هديې په ډول کرښي لرونکي يو

فَبَعَثَ بِهَا إِلَيَّ فَلَبِسْتُهَا فَعَرَفْتُ الْغَضَبَ فِي وَجْهِهِ فَقَالَ إِنِّي لَمْ أَبْعَثْ بِهَا إِلَيْكَ

څادر را ولېږل سو ، نبي کريم ﷺ و ماته را ولېږی ما هغه و اغوستی ما و ليدل چي د نبي کريم ﷺ پر مخ باندي د غصې اثار وه بيا نبي کريم ﷺ وفرمايل :ما خو دا ستا د اغوستلو لپاره نه

لِتَلْبَسَهَا إِنَّمَا بَعَثْتُ بِهَا إِلَيْكَ لِتُشَقِّقَهَا خُمُرًا بَيْنَ النِّسَاءِ . متفق عليه.

وو درلېږلي بلکه د دې لپاره مي در لېږلي وه چي ته دا پرېکړه او پوړنی ځيني جوړ کړه او په

ښځو باندي يې تقسيم کړه .بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۲۹، رقم: ۲٦۱۴، ومسلم ۳\۱٦۴۴، رقم: ۱۷- ۲۰۷۱.

**د لغاتو حل**: سيراء: بردة يخالطها حرير. (هغه څادر چي ورېښم پکښې کار سوي وي)

**تشريح**: کله چي رسول الله ﷺ هغه جوړه حضرت علي رضي الله عنه ته واستول نو هغه دا وګڼل چي زما د اغوستلو لپاره يې راليږلي دي ځکه که چيري د هغه اغوستل جائز نه واى نو ما ته به يې ولي را استولاى، نو هغه واغوستل او کوم چي د رسول الله ﷺ تعلق دي نو د رسول الله ﷺ د غصې سبب دا وو چي په هغه جامه کي زياته برخه ريشم وو په دغه صورت کي د حضرت علي رضي الله عنه د هغه په اغوستلو سره د يو شرعي حکم خلاف ورزي وکړه يا دا که چيري په هغه کي ريشم کم وه نو ددې وجه د هغه اغوستل جائز نه وو ، په هر حال د حضرت علي رضي الله عنه دا شان وو چي هغه اغوستې واى ځکه نو رسول الله ﷺ خفه سو چي هغه ولي دا فکر ونه کړ چي دغه جامه د متقي او پرهيزګاره خلکو جامه نسي کيداى .

﴿۴۱۳۱﴾: وَعَنْ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ إِلَّا

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د ورېښمو د اغوستلو څخه منعه کړېده او

هٰكَذَا وَ رَفَعَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِصْبَعَيْهِ الْوُسْطَى وَالسَّبَّابَةَ وَ

وروسته يې و فرمايل : چي په دومره اندازه چي د شهادت ګوته دواړي يو ځاي کړي و ښودل (د دې مطلب دادي چي په قدر د دوو ګوتو د ورېښمو استعمال د نارينه لپاره جائز دي) .

ضَمَّهُمَا. متفق عليه و في رواية لمسلم أَنَّهُ خَطَبَ بِالْجَابِيَةِ فَقَالَ نَهَى

بخاري او مسلم. او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي ، د حضرت عمر رضي الله عنه په ځاي جابيه کي خطبه ورکړه او و يې فرمايل :

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ إِلَّا مَوْضِعَ إِصْبَعَيْنِ أَوْ ثَلَاثٍ أَوْ أَرْبَعٍ .

چي رسول الله ﷺ د ورېښمو د اغوستلو څخه منعه کړېده خو دوه ، درې او د څلورو ګوتو په اندازه د نارينه لپاره جائز دي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۲۸۴، رقم: ۵۸۲۹، ومسلم ۳\ ۱۶۴۲، رقم: ۱۲- ۲۰۶۹.

**تشريح**: د اول روايت څخه د نارينوو لپاره د ريشمو د اباحت اندازه دوې ګوتې معلوم سو او د دوهم روايت څخه تر څلورو ګوتو پورې مباح دي نو ثابته سوه که چيرې د څلورو ګوتو په اندازه ريشم استعمال کړل سي نو جائز دي د اکثرو علماوو همدغه قول دی.

## طيلساني جبه

﴿۴۱۳۲﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ أَنَّهَا أَخْرَجَتْ جُبَّةَ طَيَالِسَةٍ كِسْرَوَانِيَّةٍ

د بي بي اسماء بنت ابوبکر رض څخه روايت دئ چي هغې د طيلساني، کسرواني جبه را وکښل

لَهَا لِبْنَةُ دِيبَاجٍ وَفَرْجَيْهَا مَكْفُوفَيْنِ بِالدِّيبَاجِ وَقَالَتْ هَذِهِ جُبَّةُ رَسُولِ اللَّهِ

چي په هغه کي د ورېښمو يوه ټوټه د سنجاک په ډول لګېدلې وه او په لستوڼو (يا لمنو) په دواړو برخو يې ورېښم لګېدلي وه، بيا يې و فرمايل: د رسول الله ﷺ دا جبه

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ عِنْدَ عَائِشَةَ فَلَمَّا قُبِضَتْ قَبَضْتُهَا وَكَانَ النَّبِيُّ

د عائشې رض سره وه کوم وخت چي هغه وفات سو نو (بي بي اسماء وايي) دا جبه ماته حاصله

ﷺ يَلْبَسُهَا فَنَحْنُ نَغْسِلُهَا لِلْمَرْضَى نَسْتَشْفِي بِهَا. رواه مسلم

سوه، نبي کريم ﷺ به دا (کله کله) اغوستله او اوس موږ د دې په پرېولو سره د دې اوبه و ناروغانو ته ورکوو او د دې په ذريعه هغوی لپاره شفاء غواړو. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\ ۱۶۴۱، رقم: ۱۰- ۲۰۶۹.

**تشريح**: طيالس د طيلسان جمع ده، او طيلسان د يو بلې ژبې لفظ تالسان معرب دئ چي يو خاص ډول څادر ته وايي، دغه څادر تور وي او د وړې څخه جوړېږي، په مخکني زمانه کي به دغه څادر په عامه توګه يهوديانو استعمالوی، په دغه حديث کي چي د کومي چپني ذکر سوی دی هغه ددغه څادر څخه جوړه سوې وه او تور رنګه وه، دغه ډول چپنه د فارس پاچا خسرو ته منسوب وه او د خسرو عربي لفظ کِسریٰ يا د ځينو په نزد کَسریٰ دی ځکه دغه چپني ته کسرواني ويل کيږي.

د دواړو څوکو څخه د چپني هغه غاړي مراد دي چي د هغه څخه ځای څخه به چپنه خلاصېدل چي يوه ترشا او يوه مخته وي لکه څرنګه چي په عامه توګه په ځينو چپنو کي د مخ او

شا لمني خلاصي وي، ددغه دوو برخو په اړه ښودل سوي دي چي په هغو کي د ريښم تارونه لګيدلي وه ، بي بي اسماء ﷦ هغه چپنه ددې لپاره را ايستلې وي چي خلکو ته ددغه نعمت او برکت د بي بي اسماء ﷦ سره کيدل معلوم سي او دا څرګندول هم مقصد وو که چيري په چپنه کي داسي د ريښمو تارونه لګيدلي وي نو د هغه اغوستل جائز دي .

څرګنده دي وي چي ددغه حديث څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د ريښمو تارو والا چپنه اغوستې ده حال دا چي ددغه باب په دوهم فصل کي د حضرت عمران ابن حصين ﷛ څخه د رسول الله ﷺ دغه ارشاد نقل سوی دی چي زه داسي قميص نه اغوندم چي په هغه کي د ريښمو تارونه لګيدلي وي ، په دغه دواړو روايتو کي په ظاهره تضاد معلوميږي نو دغه تضاد ددغه توجيه په ذريعه ليري کيږي چي د حضرت عمران ﷛ روايت پر هغه صورت باندي محمول دی کله چي هغه د ريښمو تارونه تر څلورو ګوتو زيات وي او دلته چي کوم روايت نقل سوی دی نو دا تر څلورو ګوتو کم ريښمو باندي محمول دی ، يا دا چي حضرت عمران ﷛ ته د روايت منشاء د احتياط او تقوا صورت بيانول دي او د بي بي اسماء ﷦ ددغه حديث مقصد د اصل جواز څرګندول دي .

او ددې په ذريعه شفاء تر لاسه کوي: ددې مطلب دادی چي يا خو د هغه اوبه ناروغانو ته ورکوي چي په هغه سره هغوی شفاء تر لاسه کوي يا د شفاء لپاره هغه چپنه د ناروغ پر سر او سترګو تېروي يا د هغه چپني په لاس مس کولو سره او د هغې په مچولو سره دهغه د برکت څخه شفاء تر لاسه کوي .

## د ضرورت په وخت کي د ريښمو اجازه

﴿۴۱۳۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ رَخَّصَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ وَعَبْدِ

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و حضرت زبير ﷛ او عبد الرحمن بن

الرَّحْمَنِ بن عوف فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ لِحِكَّةٍ بِهِمَا. متفق عليه و في رواية لمسلم قَالَ اِنَّهُمَا شَكَوُا الْقَمْلَ فَرَخَّصَ لَهُمَا فِيْ قُمُصِ الْحَرِيْرِ .

عوف ﷛ ته د وريښمو د اغوستلو اجازت ورکړی وو چي (د ښپږو په وجه به) د هغوی بدن خارش کوی . بخاري او مسلم، او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي دوی دواړو د ښپږو څخه شکايت وکړ نو رسول الله ﷺ هغوی ته د وريښمو د قميص د اغوستلو اجازه ورکړه .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۲۹۵، رقم: ۵۸۳۹، و مسلم ۳\ ۱۶۴۶، رقم: ۲۵- ۲۰۷۶.

**تشريح**: په موجز کي ليکلي دي چي رېښم په اصل کي ګرم او مفرح دي او د رېښمو د جامو په اغوستلو سره شپږي ختميږي .

## د کسم رنګ سوي کالي

﴿۴۱۳۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيَّ ثَوْبَيْنِ مُعَصْفَرَيْنِ فَقَالَ إِنَّ هَذِهِ مِنْ ثِيَابِ الْكُفَّارِ فَلَا تَلْبَسْهُمَا.

د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روايت دی ، رسول الله ﷺ زه کله د کسم (يو ډول ګل دي چي سور رنګ ور څخه تشکيليږي) په رنګ سوي جامو اغوستلو کي وليدم نو ويې فرمايل :دا د کفارو لباس دی ، دا مه اغونده .

و في رواية قلت اغسلهما قال بل احرقهما . رواه مسلم ، و سنذكر حديث عائشة خرج النبي ﷺ ذات غداة في مناقب اهل بيت النبي ﷺ .

او په يوه بل روايت کي دا الفاظ دي : ما عرض وکړ چي دا پرېولم نو نبي کريم ﷺ راته وفرمايل: بلکه و يې سوځه . مسلم ،او ژر به د بي بي عائشې رضي الله عنها حديث : خرج النبي ﷺ : په مناقب اهل بيت کي بيان کړل سي .

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\ ۱۶۴۷، رقم: ۲۷- ۲۰۷۷.

**تشريح**: شارحينو ليکلي دي چي د سوځلو مقصد د رسول الله ﷺ ددې خبري په مبالغې سره ښکارول وو چي دغه جامې په هر صورت کي د خپل ملکيت او واک څخه وباسئ که هغه پر يو چا باندي وپلورئ يا يې يو چا ته هبه کړئ غرض دا چي څرنګه وي د ځان څخه يې بېل کړئ ، کوم چي ددې خبري تعلق دی چي رسول الله ﷺ د هغه جامو د پرېوللو حکم ولي ونه کړ نو د هغه سبب دا وو چي په کسم کي رنګ سوې جامه که څه هم د نارينوو لپاره حرام او مکروه ده مګر د ښځو لپاره مکروه نه ده نو د هغه د پرېوللو په صورت کي د خپل مال ضائع کول وو ځکه رسول الله ﷺ د ذکر سوي حکم په ذريعه دې خبري ته اشاره وکړل چي دغه جامې خپلو ښځو ته ورکړه او که وغواړې وه يې پلورل او که وغواړي د بل چا ښځو ته يې هبه کړه چي هغوی ددغه جامو څخه ګټه تر لاسه کړي .

په يوه روايت كي داسي دي چي حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ ته په ظاهره دا حكم وركړل سو او هغه جامې وسوځلې بيا بله ورځ چي هغه د رسول الله ﷺ په خدمت كي جاضر سو نو د هغه په اړه يې عرض وكړ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : تا هغه جامې خپلو ښځو ته ولي ور نه كړې، ځكه د داسي جامو اغوستل د ښځو لپاره صحيح دي ، ددغه روايت پر بناء شارحينو سوځل د هغه ظاهري حكم پر خلاف محمول كړى دى او ځينو حضرات چي دا ويلي دي چي د سوځولو حكم په اصل كي د مبالغې بيانول وو چي د هغه جامو څخه د كسم رنګ ختم كړل سي مګر دغه قول د روايت له مفهوم سره هم مطابقت لري او د روايت خلاف هم دى .

څرګنده دي وي چي نارينوو ته په كسم كي رنګ سوي جامو اغوستلو په اړه د علماوو اختلاف دى ، ځيني علماء مطلق حرام ورته وايي او ځيني مباح ورته وايي او ځيني وايي كه د جامو جوړېدو څخه وروسته په كسم كي رنګ سوي وي نو د هغو اغوستل به حرام وي او كه د رنګولو څخه وروسته د هغه تهوكر جوړ سوى وي نو د هغه اغوستل به مباح وي ، ځيني حضرات وايي كه چيري د كسم بوى زائل سوى وي نو مباح دى كنه نو حرام دى، ځينو حضراتو ويلي دي چي په كسم كي رنګ سوې جامه په مجلسونو وغيره كي اغوستل مكروه دي مګر په كور كي اغوستل صحيح دي ، د حنفيه په مذهب كي مختار قول دادى چي په كسم كي رنګ سوې جامه اغوستل مكروه تحريمي ده او په هغه كي لمونځ كول مكروه دى ، د كسم څخه پرته د بل سره رنګ په اړه اختلاف دى، شيخ قاسم حنفي رحمة الله عليه چي د مصر په متاخرين حنفيه علماوو كي د ډېر لوى حيثيت څښتن تېر سوى دى او د قسطلاني رحمة الله عليه استاذ دى ، هغه فتوا وركړې ده چي اصل حرمت د رنګ په سبب دى ځكه هر سور رنګه جامه د نارينوو لپاره حرامه او مكروه ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### قميص غوره جامه ده

﴿۴۱۳۵﴾: عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ أَحَبَّ الثِّيَابِ إِلَى رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَمِيصُ . رواه الترمذي و ابوداؤد.

د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ په ټولو جامو كي قميص ډېر خوښ وو . ترمذي او ابوداؤد

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۰۸، رقم: ۱۷۶۲، وابي داود ۴\۳۱۲، رقم: ۴۰۲۵.

**تشریح**: د قمیص د خوښۍ وجه داده چې یو خو ددې په اغوستلو سره د بدن ټول اندامونه په ښه ډول پټ سي او دوهم دا چې قمیص ډېر سپک او بدن ته ارام ورکونکی وي، دریم دا چې د قمیص په اغوستلو سره سړی متواضع او منکسر معلومیږي او تر ټولو لویه وجه داده چې کوم شی د رسول الله ﷺ ډېر زیات خوښ وو په هغه کي به یقینا هغه اسرار او انوار وي چې د هغه څخه پرته په بل شي کي به نه وي لکه څرنګه چې د ټولو مستحباتو حکم دی.

**د لستوڼو اوږدوالی**

﴿۴۱۳۶﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ كَانَ كُمُّ قميص رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الرصغ . رواه الترمذي و ابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب .

د بي بي اسماء بنت یزید رضي الله عنها څخه روایت دی چې د نبي کریم ﷺ د قمیص لستوڼي تر مړونده پوري وو. ترمذي او ابوداؤد، او په ترمذي کي دا حدیث غریب ښکاره سوی دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۰۹، رقم: ۱۷۶۵.

**د لغاتو حل**: الرصغ: لايتجاوز كم القميص.

**تشریح**: په ځینو روایتو کي د رسول الله ﷺ د قمیص لستوڼي د لاسو تر ګوتو پوري هم منقول دي همدارنګه په ځینو روایتو کي د قمیص اوږدوالی تر بجلکو پورته وو.

**د راسته لوري څخه اغوستل**

﴿۴۱۳۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَبِسَ قَمِيصًا بَدَأَ بِمَيَامِنِهِ . رواه الترمذي.

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی رسول الله ﷺ چې به قمیص اغوستی نو د راسته طرفه به يې اغوستل شروع کول. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۰۹، رقم: ۱۷۶۶.

**تشریح**: میامن د میمنه جمع ده چې معنی یې د راسته خوا ده، په حدیث کي د دغه لفظ د جمع په صیغې سره ځکه راوړل سوی دی چې د قمیص د راسته خوا تعلق د لستوڼي او قمیص تر لاندي

پوري هم د نورو شيانو لکه غاړي وغيره دی .

## پرتوګ تر نيمي پونډۍ پوري

﴿۴۱۳۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واورېدل: د

يَقُولُ إِزْرَةُ الْمُؤْمِنِ إِلَى أَنْصَافِ سَاقَيْهِ لَا جُنَاحَ عَلَيْهِ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَعْبَيْنِ

مؤمن د پرتاګه غوره صورت دا دی چي هغه تر نيمه پنډۍ پوري وي ، او د نيمي پنډۍ پوري په اغوستلو کي څه ګناه نسته ليکن د دې څخه (يعني د بجلکو څخه)

وَمَا أَسْفَلَ فَفِي النَّارِ قال ذالك ثلاث مرات ولَا يَنْظُرُ اللّٰهُ يوم القيامة إِلَى مَنْ جَرَّ إِزَارَهُ بَطَرًا . رواه ابوداؤد وابن ماجة.

لاندي ځاي په دوږخ کي دی ، نبي کريم ﷺ درې وراه دا الفاظ و فرمايل ، او د قيامت په ورځ به الله جل جلاله د هغه نفرو طرف ته و نه ګوری چي د تکبر په خاطر خپل پرتوګ اوږد ساتي . ابوداؤد او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۳۵۲، رقم: ۴۰۹۳، وابن ماجه ۲\ ۱۱۸۳، رقم: ۳۵۷۳.

---

## اوږد قميص منع دی

﴿۴۱۳۹﴾: وَعَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْإِسْبَالُ

حضرت سالم رضي الله عنه د خپل پلاره څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ و فرمايل : اوږد لونګ، اوږد

فِي الْإِزَارِ وَالْقَمِيصِ وَالْعِمَامَةِ مَنْ جَرَّ مِنْهَا شَيْئًا خُيَلَاءَ لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه النسائي و ابوداؤد وابن ماجة.

قميص او اوږده لنګوټه (په ټولو کي) ګناه ده ، څوک چي په دې کي يو شی د تکبر په وجه اوږد ساتي ، د قيامت په ورځ به خداي تعالي و هغه ته و نه ګوري . نسائي ، ابوداؤد او ابن ماجه .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۳۴۵، رقم: ۴۰۸۵، والنسائي ۸\ ۲۰۸، رقم: ۵۳۳۴، وابن ماجه ۲\ ۱۱۸۴، رقم: ۳۵۷۶.

**تشريح**: اسبال يعني د جامو د شرعي اندازې ځخه زيات زړولو چي كوم حرمت او كراهت منقول دى د هغه تعلق محض د ازار يعني لونګ او پرتوګ سره نه دى لكه ځرنګه چي په عامه توګه خلک فكر كوي بلكه د قميص او لنګوټې سره هم دى او هغه هم د شرعي اندازې ځخه زيات زړول حرام او مكروه دي، ددغه مسئلې تفصيلي بحث په اول فصل كې د حضرت ابو هريره ﷺ په روايت كي تېر سوى دى.

**د صحابوو خولۍ**

﴿۴۱۴۰﴾: وَعَنْ أَبِي كَبْشَةَ قَالَ كَانَ كِمَامُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُطْحًا. رواه الترمذي وقال هذا حديث منكر.

د حضرت ابو كبشه ﷺ ځخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ اصحابو كرامو خولۍ په سر باندي جوته (ټېنګه) پر سر كوله. ترمذي، او په ترمذي كي دا حديث منكر دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۱۶، رقم: ۱۷۸۲.

**د لغاتو حل**: كِمام: جمع كمة وهي القلنسوة. (خولۍ)

**تشريح**: اكثرو شارحينو ويلي دي چي كمام په اصل كي د كمه جمع دى لكه ځرنګه چي د قبه جمع قباب دى، كمه مدور يعني ګردې خولۍ ته وايي او بطح د بطحا جمع ده چي معنى يې د هواري ډبريني ځمكي ده، په دغه صورت كي به د حديث مطلب دا وي چي صحابه كرامو كومي خولۍ استعمالولې هغه به ګردې او خپرې وې چي د سرونو سره به موښتي وې نه دا چي په هواء كي پورته كېدونكي لوړي او پراخه، لكه چي په دغه زمانه كي تركي او ايراني خولۍ دي.

ځينو حضراتو ليكلي دي چي كمام د كمه جمع نه ده بلكه د كم جمع ده چي معنى يې د لستوڼي ده لكه ځرنګه چي د قف جمع قفاف ده، د قف معنى د لوړي ځمكي ده په دغه صورت كي به د بطحا معنى د پراخ وي ځكه چي بطحا يعني هواره او ډبرينه ځمكه پراخه هم وي، همدا رنګه د حديث مطلب به دا سي چي د رسول الله ﷺ صحابه كرامو په خپلو قميصونو كي تنګ لستوڼي نه جوړول بلكه د هغوى د قميصونو لستوڼي به د يوه لوېشت په اندازه پراخ وه.

**د ښځي پرتوګ اوږدول**

﴿۴۱۴۱﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ ذُكِرَ

د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ د ازار (پرتوګ) ذکر وکړ، او ما عرض

الْإِزَارُ فَالْمَرْأَةُ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ تُرْخِي شِبْرًا فقالت إِذًا تَنْكَشِفُ عَنْهَا قَالَ

وکړ اې د الله جل جلاله رسوله ! د ښځي لپاره څه حکم دی ؟(يعني د پرتوګ په هکله يې وفرمايل: د نيمي پنډۍ څخه يوه لويشت پوري دي زياتي کړي ، ما عرض وکړ که په دې سره د ستر د لڅېدو احتمال وي ، نو وه يې فرمايل :

فَذِرَاعًا لَا تَزِيدُ عَلَيْهِ . رواه مالك و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة وفي رواية الترمذي والنسائي عن ابن عمر فقالت اذا تنكشف اقدامهن قال فيرخين ذراعا لا يزدن عليه.

يوه لويشت نور او نه ددې څخه زيات)(مالک ، ابوداؤد ، نسائي او ابن ماجه) او په ترمذي او نسائي کي چي کوم حديث د ابن عمر رضي الله عنه څخه نقل سوی دی په هغه کي دا الفاظ دي چي بي بي ام سلمه رض عرض وکړ په دې صورت کي (يعني د نيمو پنډيو څخه يوه لويشت په زياتوب کي)خو د ښځو قدم به ښکاري ، نبي کريم ﷺ وفرمايل: نو يوه لويشت يې نوره زياته کړئ د دې څخه نور زيات نه .

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\ ۹۱۵، رقم: ۱۳، وابوداود ۴\ ۳۶۴، رقم: ۴۱۱۷، والنسائي ۸\ ۲۰۹، رقم: ۵۳۳۷، وابن ماجه ۲\ ۱۱۸۵، رقم: ۳۵۸۰.

## خلاص ګريوان

﴿۴۱۴۲﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَتْ أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ

حضرت معاويه بن قره رضي الله عنه د خپل پلار ه څخه روايت کوي چي د مزينه قوم د يوې ټولۍ سره زه د

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَهْطٍ مِنْ مُزَيْنَةَ فَبَايَعوه وَإِنَّ لَمُطْلَقُ الْأَزْرَارِ فَأَدْخَلْتُ يَدَيَّ فِي جَيْبِ قَمِيصِهِ فَمَسَسْتُ الْخَاتَمَ . رواه ابوداؤد.

نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم ، هغو خلکو د نبي کريم ﷺ سره بيعت وکړ ، په دغه وخت کي د نبي کريم ﷺ د قميص تنۍ خلاصي ناست وو ، ما د نبي کريم ﷺ په ګريوان کي

لاس د ننه کړ او په مهر نبوت باندي مي لاس را تير کړ . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۳۴۲، رقم: ۴۰۸۲.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د قميص گرېوان پر سينه مبارکه وو، پر دې خبره ډېر حديثونه دلالت کوي ځکه شيخ جلال الدين سيوطي رحمة الله عليه ليکلي دي ځيني خلک چي د سنتو د علم څخه بې خبره دي دا فکر کوي چي د قميص گرېوان پر سينه جوړول بدعت دی دغه قول قطعاً بې بنياده او بالکل باطل دی .

## د سپيني جامې فضيلت

﴿۴۱۴۳﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ اَنَّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْبَسُوا الثِّيَابَ الْبَيْضَ فَاِنَّهَا أَطْهَرُ وَأَطْيَبُ وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ. رواه احمد والترمذي والنسائي وابن ماجة.

حضرت سمره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : سپيني جامې اغوندئ ځکه چي دا ډيري پاکي او په زړه پوري دي او په سپينو جامو کي خپل مړی دفن کوئ . احمد ، ترمذي ، نسائي او ابن ماجه.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\ ۱۳، والترمذي ۵\ ۱۰۹، رقم: ۲۸۱۰، والنسائي ۴\ ۳۴، رقم: ۱۸۹۶، وابن ماجه ۲\ ۱۱۸۱، رقم: ۳۵۶۷.

**تشريح**: سپيني جامې ته ډېره پاکه په دې اعتبار ويل سوي دي چي سپينه جامه ډېر ژر خېرنه کيږي ځکه نو هغه په وار وار او زياته پرېولل کيږي ددې پر خلاف پر رنگينه جامه خېره نه معلوميږي ځکه نو هغه تر ډېره وخته پوري نه پرېولل کيږي ، او پاکه په دې اعتبار سره وي چي هغه په نورو رنگونو کي نه گډيږي ، همدارنگه سپيني جامې ته ښه په دې اعتبار ويل سوي دي چي سليم الطبع خلک سپيني جامې ته زيات راغب وي مگر د ضرورت صورت ددې څخه وتلی دی ، لکه څرنگه چي ځيني صوفيان شنه جامه يا بل رنگ جامې ددغه ضرورت په وجه اختيار وي چي هغوی د سپينو جامو په وار وار پرېوللو باندي قادر نه وي .

څرگنده دي وي چي په کفن کي سپينه جامه افضل ده ځکه چي هغه وخت مړی د ملائکو په مجلس کي حاضريږي ، لکه څرنگه چي سپينه جامه اغوستل د هغه سړي لپاره غوره دي کوم چي مجلسونو او محفلونو ته تلل غواړي د مثال په توگه د جمعې يا جماعت لپاره په مسجد کي

او د علماوو او اولیاء الله د ملاقات لپاره د هغوی په خدمت کي حاضریږي مګر ځینو حضراتو ویلي دي چي په اختر کي هغه جامه اغوستل غوره دي کوم چي زیاته قیمتي وي چي د الله ﷻ د ورکړي نعمت زیات اظهار وکړل سي ، ددې تائید د هغه روایت څخه هم کیږي چي په هغه کي نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به په اخترونو او جمعې کي د سرو لیکو والا څادر پر سر کوی .

## د لنګوټې ول

﴿۴۱۴۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اعْتَمَّ سَدَلَ عِمَامَتَهُ بَيْنَ كَتِفَيْهِ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ به لنګوټه تړله نو شمله به یې د دواړو اوږو په مینځ کي زړوله. ترمذي، او په ترمذي کي دا حدیث غریب ګڼل سوی دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۹۷، رقم: ۱۷۳۶.

**تشريح**: یعني رسول الله ﷺ د لنګوټې د دواړو سرونو شمله پرېښودو سره یوه یې پر سینه او بله یې پر شا زړول ، څرګنده دي وي چي لنګوټه تړل سنت دي او د هغه په فضیلت کي ډېر زیات حدیثونه نقل سوي دي بلکه په یوه روایت کي که څه هم ضعیف دی دا نقل سوي دي چي په لنګوټه کي دوه رکعته لمونځ تر بېله لنګوټې لمانځه اوویا رکعتو لمانځه افضل دی .

څرګنده دي وي چي په لنګوټه کي شمله پرېښودل غوره دي مګر په دائمي توګه سره نه، د رسول الله ﷺ په اړه نقل سوي دي چي کله به یې شمله پرېښودل او کله به یې نه پرېښودل، همدارنګه ځیني وختونه به د رسول الله ﷺ د لنګوټې شمله تر څټ مبارک لاندي زړېدل او کله به داسي وه چي د لنګوټې یو سر به یې په لنګوټې کي ورکوی او دوهم سر به یې پرېښودی، یعني د رسول الله ﷺ د لنګوټې شمله به په زیاتو وختونو کي پر شا پرته وه او کله کله به راسته خوا ته هم زړېدل ، او کله بهٔ داسي هم کېدل چي د لنګوټې دواړه سرونه بهٔ یې د شملې په پرېښودو سره د دواړو اوږو په مینځ کي یعني یوه پر سینه او بله شا ته زړول ، مګر چپه خوا ته زړول ثابت نه دي ځکه چي دا بدعت دی ، په کنز کي لیکلي دي چي د شملې د اوږو په مینځ کي پرېښودل مستحب دي .

لکه څرنګه چي مخکي بیان سوی دی چي د شملې اوږدوالی کم از کم یوه لوېشت او زیات تر زیات د یوه لاس برابر کېدل پکار دي تر دې زیاته شمله پرېښودل بدعت دی او د هغه حکم

خلاف ورزي ده چي د هغه په ذريعه د اسبال او اسرافو څخه منع سوې ده كه چيري د ټاكلي سوي حد څخه زيات اوږدوالی د غرور او تكبر په توگه وي نو حرام به وي كنه نو مكروه او د سنت خلاف كار به وي، محدثينو ليكلي دي چي د شملې پرېښودل يوازي د لمانځه د وخت سره مختص كول هم د سنت خلاف دی ، څرگنده دي وي چي شمله پرېښودل په فقهي اعتبار سره مستحب ده چي د هغه تعلق د سنت زائده سره دی د سنت هدی سره نه دی ځكه د شملې په پرېښودو كي څه گناه يا خرابي نسته كه څه هم په اختيارولو كي يې ثواب او فضيلت دی ، كومو حضراتو چي د شملې پرېښودو ته سنت مؤكد ويلي دي د هغوی دا قول د تحقيق او روايت خلاف دی .

﴿۴۱۴۵﴾ : وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ قَالَ عَمَّمَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَدَلَهَا بَيْنَ يَدَيَّ وَمِنْ خَلْفِي . رواه ابوداؤد.

د حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبي كريم ﷺ و ما ته لنگوټه را وتړله نو د هغې شمله يې زما مخ او شا دواړو طرفو ته و زړوله يعني و دواړو طرفو ته يې د دواړو سرونو شمله پرېښوده . ابوداؤد

**تخريج** : سنن ابي داود ۴\۳۴۱، رقم: ۴۰۷۹.

## لنگوټه پر خولۍ تړل د مسلمان امتيازي علامه ده

﴿۴۱۴۶﴾: وَعَنْ رُكَانَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَرْقَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْمُشْرِكِينَ الْعَمَائِمُ عَلَى الْقَلَانِسِ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب واسناده ليس بالقائم .

د حضرت ركانه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زموږ او د مشريكانو ترمنځ فرق دادی چي هغوی بېله رخچيني لنگوټه تړي او موږ يې د رخچيني سره تړو. په ترمذي كي دا حديث غريب گڼل سوی دی . او ابوداؤد د دې اسناد قائم نه بولي .

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\۲۱۷، رقم: ۱۷۸۴.

**تشريح** : دغه حديث ابوداؤد هم روايت كړی دیمگر هغه سكوت اختيار كړی دی يعني هغه دا

نه دي ويلي چي ددغه حديث اسناد صحيح نه دي نو كېداى سي چي ددغه حديث اسناد د اصل په اعتبار صحيح وي يا د دواړو يعني ترمذي او ابوداؤد د نقل كولو په وجه صحيح والى ورته تر لاسه سوى وي ، په هر حال د حديث د عبارت دوې معناوي كيداى سي يو خو دا چي موږ مسلمانان پر خوليو باندي لنگوټه تړو او مشركان بېله خولۍ لنگوټه تړي او دوهم دا چي موږ پر خوليو لنگوټه تړو او مشركان بالكل لنگوټه نه تړي ، شارحينو ليكلي دي چي ددغه دواړو معناوو څخه لومړى معنى مراد ده ځكه چي په هغه زمانه كي زياتو مشركانو لنگوټې تړلې مگر د هغوى خولۍ پر سر كول ثابت نه دي ، كه څه هم ملا علي قاري رحمة الله عليه د حذري رحمة الله عليه څخه نقل كړي دي چي دواړي معناوي هم مراد كيداى سي او هغه ويلي دي چي د ځينو علماوو د قول مطابق سنت داذى چي خولۍ او لنگوټه استعمال كړل سي يوازي خولۍ پر سر كول د مشركانو نښه ده .

## د ښځو لپاره سره زر او ريښم حلال دي

﴿۴۱۴۷﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْاَشْعَرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُحِلَّ الذَّهَبُ وَالْحَرِيرُ لِإِنَاثِ من أُمَّتِي وَحُرِّمَ عَلَى ذُكُورِهَا . رواه الترمذي والنسائي و قال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.

د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : زما په امت كي د ښځو لپاره سره زر او ورېښم حلال سوي دي او په نارينهٔ باندي حرام سوي دي . ترمذي او نسائي،او په ترمذي كي دا حديث حسن دى .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۸۹، رقم: ۱۷۲۰، والنسائي ۸\۱۶۱، رقم: ۵۱۴۸.

**تشريح**: د خلكو په لفظ كي هلكان هم داخل دي ، هلكان مكلف نه دي ځكه د هغوى په اړه ددغه شيانو د حرمت تعلق به پر اغوستلو والا وي ، كه يو كوچني رېشم يا د سرو زرو زېورات اغوندي نو د هغه گناه به د هغه پر سرپرست وي ، او د سرو زرو څخه مراد د سرو زرو گېڼې دي كنه نو د سرو او سپينو زرو د لوښو استعمال څرنگه چي د نارينوو لپاره حرام دى همدارنگه د ښځو لپاره هم حرام دى همدارنگه د سپينو زرو حلال كېدل هم يوازي د ښځو سره خاص دى پرته د هغه مقدار څخه چي د خلكو لپاره هم حلال دى لكه گوتمې او داسي نور .

## د جامو اغوستلو دعاء

﴿۴۱۴۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ

إِذَا اسْتَجَدَّ ثَوْبًا سَمَّاهُ بِاسْمِهِ عِمَامَةً أَوْ قَمِيصًا أَوْ رِدَاءً ثُمَّ يَقُولُ اللّٰهُمَّ لَكَ

نوي جامې اغوستلې نو د هغې نوم به يې اخيستی يعني دا لنګوټه ده دا قميص دي يا دا پټو دی بيا به يې فرمايل : اللهم........ما صنع له (اې الله! تا لره

الْحَمْدُ أَنْتَ كَسَوْتَنِيهِ أَسْأَلُكَ خَيْرَهُ وَخَيْرَ مَا صُنِعَ لَهُ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهِ وَشَرِّ مَا صُنِعَ لَهُ . رواه الترمذي وابوداؤد.

تعريف دی چي تا ماته دا جامه را وا غوستل ، زه ستا څخه د دې جامې خير غواړم او د هغه شي خير غواړم چي د کوم غرض لپاره دا جامه جوړه سوې ده او د دې د شر څخه او د هغه شي د شر څخه ستا په ذريعه پناه غواړم چي د هغه لپاره دا جوړه سوې ده ) .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۱۰، رقم: ۱۷۶۷، وابوداود ۴\۳۰۹، رقم: ۴۰۲۰.

**تشريح**: د نوو جامو اغوستلو په اړه ابن حبان، خطيب او بغوي رحمة الله عليهم نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ به کله د نوو جامو اغوستلو اراده وکړه نو هغه به يې د جمعې په ورځ اغوستل. د هغه چي به څه نوم وو ....الخ: يعني رسول الله ﷺ به د هغه جامې نوم اخيستی که هغه به جامه وه يا لنګوټه ، يا قميص يا څادر وغيره، په ذکر سوې جمله کي د ثوب څخه عموميت مراد دی او په خاصه توګه د کومو جامو ذکر چي سوی دی هغه محض د مثال په توګه دی.

﴿۴۱۴۹﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ

د حضرت معاذ بن انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

أَكَلَ طَعَامًا ثم قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنِي هَذَا الطعام وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ

طعام وخوري او دا ووايي : الحمد لله......... و لاقوة (ټوله تعريفونه د هغه خداي لپاره دي چي هغه په ما دا طعام و خوړی او دا طعام يې ماته پر ته

حَوْلٍ مِنِّي وَلَا قُوَّةٍ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ . رواه الترمذي. وزاد ابوداؤد

د حيلې او قوت را رسولې دی)نو د هغه مخکني (ټول) ګناهونه ور بخښي . ترمذي .او په ابوداؤد کې دا الفاظ زيات دي ،

مَنْ لَبِسَ ثَوْبًا فَقَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَسَانِي هَذَا وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلَا قُوَّةٍ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ.

څوک چې جامه واغوندي او دا ووايي : الحمد لله الذي کساني هذا و رزقنيه من غير حول مني و لاقوة نو د هغه ټول مخکني او وروستني ګناهونه ور بخښي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۴۷۴، رقم: ۳۴۵۸، وابوداود ۴\ ۲۱۰، رقم: ۴۰۲۳.

## زړې جامې مه غورځوئ

﴿۴۱۵۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يا عائشة!

د بي بي عائشې ﷺ څخه روايت دی چې يوه ورځ نبي کريم ﷺ ماته وفرمايل: اې عائشې!

ان أَرَدْتِ اللُّحُوقَ بِي فَلْيَكْفِكِ مِنَ الدُّنْيَا كَزَادِ الرَّاكِبِ وَإِيَّاكِ وَمُجَالَسَةَ

که ته زما سره په دنيا او اخيرت کې يوځای کېدل غواړې نو ته د دنيا څخه دومره اخله څومره چې د يوه سپاره لپاره کافي وي د دولتمندو د خبرو څخه ليرې اوسېږه

الْأَغْنِيَاءِ وَلَا تَسْتَخْلِقِي ثَوْبًا حَتَّى تُرَقِّعِيهِ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب لا نعرفه الا من حديث صالح بن حسان وقال محمد بن اسماعيل صالح بن حسان منكر الحديث.

او جامه تر هغه وخته پورې د زوړتيا په خاطر مه غورځوه تر څو پورې چې هغه د اغوستلو قابله وي . ترمذي دا روايت کړی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی .موږ ته يوازيدا د صالح بن حسّان څخه معلوم دی ، محمد بن اسماعيل ويلي چې صالح بن حسّان منکر الحديث دی .

**تشريح**: چي د سپاره سړي د لاري د توشې برابر وي : ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ ددې خبري ترغيب ورکړی دی چي انسان بايد د دنيا پر دومره شيانو باندي قناعت وکړي چي د هغه د ژوند او مقصد حيات لپاره ضروري وي، په دغه جمله کي د سپاره سړي تخصيص کېدای سي ددې لپاره وي چي هغه خپله لار په تېزي سره پرې کوي او منزل ته رسيږي چي د هغه په وجه هغه ته لږ د لاري توشه هم بس وي ، د هغه پر خلاف پياده سړی ځکه چي هغه ته د لاري توشه زياته اخيستل پکار دي .

د شتمنو کسانو د ناستي څخه د ځان ساتني حکم ځکه ورکړل سوی دی چي د شتمنو خلکو مجلس د دنيا او دنيا د لذتونو په وجه په خواهشاتو کي د زياتوب او په لهب او لعب کي د بوختيا باعث جوړيږي ځکه الله جل‌جلاله فرمايي : (لا تمدن عينيک ...) ، په يوه روايت کي نقل سوي دي چي يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل: د مړو د ناستي څخه پرهيز کوئ، وويل سول چي اې د الله رسوله ! هغه کوم خلک دي چي هغوی ته مړه ويل کيږي، او دهغوی د ناستي څخه د ځان ساتني تلقين فرمايل کيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل: شمتن خلک .

تر څو چي ته هغه د پېوند وړ وګڼې : ددې مطلب دادی که جامه زړه او څيري سي نو د هغه څخه بې پرواهي مه کوه او هغه مه ضائع کوه بلکه د هغه په پېوند لګولو سره کم از کم يو وار نوره استعمال کړه ، ددې ارشاد په ذريعه ددې خبري تلقين سوی دی که د چا سره څيري سوي زړې جامې وي نو د زهد او قناعت تقاضا داده چي د ستر پټولو لپاره پر هغه اکتفاء وکړل سي، د حضرت عمر فاروق رضي‌الله‌عنه په اړه نقل سوي دي چي هغه د خپل خلافت په زمانه کي کله چي هغه ته د دنيا د يو عظيم حکمران حيثيت حاصل وو يوه ورځ په داسي حالت کي خطبه وفرمايل چي کوم لونګ يې تړلی وو په هغه کي دوولس پيني لګيدلي وې .

﴿۴۱۵۱﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ اَيَاسِ بْنِ ثَعْلَبَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا تَسْمَعُونَ أَلَا تَسْمَعُونَ إِنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيمَانِ إِنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيمَانِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو امامه رضي‌الله‌عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :ايا تاسو نه اورئ ؟ ايا تاسو نه اورئ ؟ چي سادګي د ايمان علامه ده ، سادګي د ايمان علامه ده . په دغه حديث کي د سادګۍ مطلب زړې جامې اغوستل دي چي د ہر زيب او زينت پکښي نه وي .ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۹۳، رقم: ۴۱۶۱.

**د لغاتو حل**: تستخلقي: اى لاتعديه خلقا وهو نقيض استجد. (خيرنول)

**تشريح**: مطلب دادى چي د جامو په اړه د زيات تكلف او پابندۍ څخه كار اخيستل د ښځو په ډول خپل ځان ښكلى كول او هر وخت د ښكلا خيال ساتل د مسلمان سړي شان نه دى، كه الله ﷻ د ښو جامو اغوستلو توان وركړى وي نو ښېله شكه په خپلو جامو كي د شرعي حدودو دننه د نفاست خيال ساتل او په جائزه طريقه سره ښه جامې اغوستل څه بده خبره نه ده مګر كله نا كله زړې جامې اغوستل هم غوره دي، خلاصه دا چي په جامو كي تواضع او انكساري اختيارول او د دنيا د زيب او زينت څخه ځان ساتل د اهل ايمانو د عاداتو څخه دى او د حسن ايمان علامه ده ځكه چي د آخرت پر زينتونو باندي ايمان راوړل د دغه زهد او قناعت سبب كېږي.

## ګران بيه جامه نه ده پكار

﴿۴۱۵۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ فِي الدنيا أَلْبَسَهُ اللّٰهُ ثَوْبَ مَذَلَّةٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه الترمذي و احمد وابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي په دنيا كي د شهرت جامه اغوندي (يعني هغه جامې چي په هغه كي د تكبر او لويي اظهاركيږي) خداي تعالى به د قيامت په ورځ د ذلت لباس په واغوندي. ترمذي، احمد، ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۱۳۹، و ابوداود ۴\۳۱۴، رقم: ۴۰۲۹، وابن ماجه ۲\۱۱۹۲، رقم: ۳۶۰۶.

**تشريح**: مطلب دادى چي كوم څوک د خپل عزت او لوئي د اظهار په غرض ښه جامې اغوندي يعني د هغه مقصد دا وي چي خلک زما پر بدن باندي د ښه جامو په ليدو سره زما عزت وكړي او ما ته شهرت او لويي تر لاسه سي نو داسي سړي ته به الله تعالى د قيامت په ورځ ذليل او حقير جامې ور واغوندي يعني هغه به د هغه جامو په ذريعه ذليل او بې عزت كړي، ددې څخه دا خبره معلوميږي چي كوم څوک د الله تعالى د رضا لپاره په دنيا كي داسي جامې واغوندي چي د هغه څخه تواضع او بې نفسي معلوميږي نو هغه ته به الله تعالى په آخرت كي د عزت او عظمت جامې ور واغوندي.

ځيني حضرات وايي چي د شهرت د جامو څخه مراد هغه حرامي جامې دي چي د هغو اغوستل مباح نه دي، ځينو ويلي دي چي هغه جامې مراد دي چي د فقيرانو او مسکينانو د ذليل او خوار کولو او د هغوی د زړه ماتولو په غرض د غرور او لويي لپاره يې واغوندي، ځينو دا هم ويلي دي چي هغه جامې مراد دي چي د تمسخر او مزاق له مخي يعني د خلکو د خندولو لپاره يې اغوندي، يا هغه جامې مراد دي چي د خپل زهد د اظهار لپاره يې اغوندي، همدارنګه ځيني حضرات وايي چي په حديث کي اعمال په جامو سره تعبير سوي دي يعني مراد دادی چي کوم څوک د ريا لپاره يعني محض د ښوونې لپاره ښه اعمال کوي چي د هغه په وجه د دنيا والاوو په نظر کي هغه ته شهرت او عزت تر لاسه سي نو د قيامت په ورځ به د هغه حشر دا وي، په هر حال د حديث د سياق په لېدو سره دا خبره ښه ويل کېږي چي هغه مراد او مطلب زيات صحيح دی کوم چي مخکي بيان سوی دی.

## د بل قوم مشابهت

﴿۲۱۵۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ. رواه احمد وابوداؤد.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د يوه قوم مشابهت اختيار کړي نو هغه د هغه قوم څخه دی. احمد او ابوداؤد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\ ۵۰، وابوداود ۴\ ۳۱۴، رقم: ۴۰۳۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم څوک د کوم قوم او ډلي مشابهت اختياروي هغه ته به د هغه قوم په ډول خير او معصيت تر لاسه کيږي، د مثال په توګه يو سړی د خپلو جامو او طرز په ذريعه د يو کافر قوم يا فاسقانو او فاجرانو خلکو مشابهت اختيار کړي نو د هغه په عمل نامه کي به هغه ګناه ليکل کيږي کوم چي د هغه کافرانو خلکو يا فاسقانو او فاجرانو ته ورکول کيږي، همدارنګه که يو سړی خپل ځان د علماوو، مشائخو او اولياء الله پر نمونه جوړوي د هغوی په ډول جامې اغوندي، د هغوی طريقې خپلوي او د هغوی په ډول عمل کوي نو هغه به د خير او سعادت په اعتبار د هغوی په ډله کي وشمېرل سي، د دغه ارشاد الفاظ ډېر جامع دي چي د هغه په دائره کي ډېري خبري او ډېر شيان راځي يعني د مشابهت مفهوم د عموميت حامل دی، مشابهت که په اخلاقو کي وي او که په افعالو او کردار کي وي او که په جامو کي هستوګنه کي

وي يا په خوراک او څښناک، ناسته او ولاړه کي وي د ټولو همدغه حکم دی.

## د زينت جامه پريږدئ

﴿۴۱۵۴﴾: وَعَنْ سُوَيْدِ بْنِ وَهْبٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

حضرت سويد بن وهب رضي الله عنه د يوه صحابي د زوی او هغه بيا د خپل پلاره څخه روايت کوي چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَرَكَ

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : څوک چي د زينت جامه پرېږدي

لُبْسَ ثَوْبِ جَمَالٍ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَيْهِ، وفي رواية تَوَاضُعًا كَسَاهُ اللَّهُ حُلَّةَ الْكَرَامَةِ

په داسي حال کي چي د هغه توان او طاقت لري، او په يوه بل يوه روايت کي راځي، څوک چي د زينت لباس د تواضع او عاجزي په طور پرېږدي خداي تعالی به و هغه ته د لويي او عظمت لباس ورواغوندي

وَمَنْ تَزَوَّجَ لِلَّهِ تَعَالَى تَوَّجَهُ اللَّهُ تَاجَ الْمُلْكِ. رواه ابوداؤد و روى الترمذي منه عن معاذبن انس حديث اللباس.

او څوک چي د خداي تعالی لپاره نکاح وکړي خداي تعالی به و هغه ته د باچاهی تاج ورپه سر کړي. ابوداؤد. او په ترمذي کي دده څخه او د معاذ بن انس رضي الله عنه څخه حديث د لباس روايت کړ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۳۸، رقم: ۴۷۷۸.

**تشريح**: د حديث د اولي برخي مطلب دادی چي کوم څوک د ښه جامو اغوستلو توان لري مګر د هغه سربېره يا خو د الله تعالی د بيري په وجه يا په آخرت کي د لوړي مرتبي په اميد يا د دنيا د زينت د حقير ګڼلو په وجه د ښو جامو اغوستل پرېږدي نو الله تعالی به هغه په دنيا او آخرت کي دعزت او عظمت په دولت سره ونازوي.

د الله تعالی د رضا لپاره د نکاح کولو مطلب دادی چي هغه د يو داسي ښځي سره نکاح وکړي چي نه خو د هغه سره په کفو او عزت کي برابره وي او نه شتمنه وي او هغه سړی چي د هغه ښځي سره محض د دې لپاره نکاح وکړي چي هغه د الله تعالی رضا غوښتل يا هغه خپل نفس د بدو کارو څخه ساتل غوښتل يا د هغه مقصد د دين ساتنه او د نسل بقاء وي.

هغه ته به الله تعالی د پاچاهۍ تاج ورکړي: ددې مطلب دادی چي الله تعالی به هغه ته ددغه عمل په بدله کي په جنت کي د پاچاهۍ د عزت او عظمت تاج ور پر سر کړي، او یا دغه جمله د عزت او توقیر څخه کنایه ده یعني الله تعالی به هغه ته په دنیا او آخرت کي عزت او توقیر ورکړي. د روایت د آخري الفاظو مطلب دادی چي امام ترمذي رحمه الله دغه حدیث د معاذ ابن انس رضي الله عنه څخه نقل کړی دی او یوازي هغه برخه یې نقل کړې ده چي په هغه کي د جامو ذکر دی، د حدیث دوهمه برخه چي په هغه کي د نکاح ذکر دی هغه یې نه دی نقل کړی.

## د الله تعالی نعمت څرګند کړئ

﴿۴۱۵۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ أَنْ يَرَى أَثَرَ نِعْمَتِهِ عَلَى عَبْدِهِ. رواه الترمذي.

حضرت عمرو بن شعیب رضي الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه بیا د خپل پلاره څخه روایت کوي چي نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: د خداي تعالی دا خبره ډېره خوښه ده چي د هغه د نعمتو اثر د هغه په بندګانو کي ښکاره سي. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۱۴، رقم: ۲۸۱۹.

**تشریح**: مطلب دادی چي کله الله تعالی یو بنده ته مادي نعمت ورکړي نو باید چي هغه ظاهر کړي د مثال په توګه هغه د خپل حیثیت سره سم او د مبالغې او اسراف حد ته د رسېدو څخه پرته ښه جامې واغوندي مګر د هغه داسي کول د غرور او تکبر په جذبه سره نه وي بلکه د شکر ادا کولو په نیت سره وي چي فقیرانو او اړ کسان د هغه څخه د زکوة او صدقو اخیستلو لپاره رجوع وکړي، ددې څخه معلومه سوه چي د الله تعالی ورکړي نعمتونه پټول ښه نه دي بلکه د کفران نعمت یعني ناشکرۍ سبب دی، همدارنګه که چیري الله تعالی یو بنده ته روحاني نعمت لکه د علم او فضیلت دولت ورکړی وي نو هغه باید د خلکو په وړاندي ددغه نعمت اظهار وکړي چي خلک د هغه څخه ګټه تر لاسه کړي، که چیري دا سوال پیدا سي چي په ذکر سوي حدیث کي د زینت او ښکلا پرېښودو ته ترغیب ورکړل سوی دی او په دغه حدیث کي د ښه جامو په ذریعه د زیب او زینت اختیارولو تلقین ورکړل سوی دی، په دغه صورت کي ددواړو حدیثو په مینځ کي چي کوم اختلاف محسوس کیږي د هغه د دفع لپاره څه توجیه ده؟ نو ددې جواب دادی چي د ذکر سوي حدیث تعلق د هغه صورت سره دی کله چي د ښه جامو اغوستلو توان نه وي نو په هغه

صورت کي د زينت ترک کولو ته رغبت ورکړل سوی دی که یو سړي ته په یو وخت کي د ښه جامو ضرورت پېښ سي او د هغه توان نه لري نو ددې مقصد د تکمیل لپاره غیر موزون تکلف کولو سره او د ناروا زحمت زغملو سره د ښو جامو تر لاسه کولو هڅه دي نه کوي بلکه د صبر او استقامت لار دي اختیار کړي ددې پر خلاف کوم څوک چي د ښه جامو اغوستلو توان لري او هغه ددې سربېره د زينت پر ترک باندي خيرني او زړې جامې اغوندي نو دا څه خبره نه ده ځکه چي د هغه دغه عادت په اصل کي پر بخل او سستئ باندي محمول دی.

## وريښتان او جامه سم ساتئ

﴿۴۱۵۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَتَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَائِرًا فَرَأَى

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ زموږ د ليدو يا زموږ سره د کښېنستلو

رَجُلًا شَعِثًا قَدْ تَفَرَّقَ شَعْرُهُ فَقَالَ مَا كَانَ يَجِدُ هَذَا مَا يُسَكِّنُ بِهِ رَأْسَهُ وَرَأَى

لپاره موږ ته تشريف راوړ، نبي کريم ﷺ يو سړی وليدي چي د هغه وريښتان ببر او ګډوډ وه، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: ايا دا سړي ته هغه شی حاصل نه دی چي په هغه سره خپل وريښتان سم کړي بيا يې

رَجُلًا عَلَيْهِ ثِيَابٌ وَسِخَةٌ فَقَالَ مَا كَانَ يَجِدُ هَذَا مَا يَغْسِلُ بِهِ ثَوْبَهُ. رواه احمد والنسائي.

يو بل سړی وليدي چي د هغه جامې خيرني وې نبي و فرمايل: ايا دې سړي ته هغه شی نه حاصليږي چي په هغه سره خپل جامې پرېولي. احمد او نسائي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۳\۳۵۷، والنسائي ۸\۱۸۳، رقم: ۵۲۳۶.

**تشريح**: ددغه حديث څخه څرګنده سوه چي د بدن پاکي او نفاست او د جامو پاکوالی د رسول الله ﷺ په نزد خوښ وو او ددې برعکس يې ناخوښه وو، دغه شيان د تهذيب او ښکلا نښه هم دي او د اسلام د روح د پاکی عين مطابق هم دي، نو ددغه ارشاد (البذاذة من الايمان) يعني د جامو سادګي او د زينت پرېښودل د ايمان نښه ده، ددې څخه مراد پر غټو جامو باندي قناعت کول دي ځکه نو دا خبره د ذکر سوي روايت خلاف نه ده او نه د هغه نظافت او پاکۍ خلاف ده چي د هغه په باره فرمايل سوي دي چي: (انها من الدين) يعني نظافت او پاکي د دين يو برخه ده.

## د الله ﷻ نعمت پر ځان څرګند کړئ

﴿۴۱۵۷﴾: وَعَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَتَيْتُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو الاحوص رضي الله عنه د خپل پلاره څخه روايت کوي چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر

وَعَلَيَّ ثَوْبٍ دُونٍ فَقَالَ لِيْ أَلَكَ مَالٌ قُلتُ نَعَمْ قال مِنْ اَيِّ الْمَالِ قلت مِنْ كُلِّ

سوم هغه وخت زما پر بدن باندي خيرني جامې وې ، نبي کريم ﷺ زما څخه پوښتنه وکړه ايا ستا سره مال سته ؟ ما عرض وکړ هو ، نبي کريم ﷺ وفرمايل: څه ډول مال سته ؟ ما عرض وکړ ،

الْمَالِ قَدْ آتَانِي اللهُ مِنَ الْإِبِلِ والبقر وَالْغَنَمِ وَالْخَيْلِ وَالرَّقِيقِ قَالَ فَإِذَا

اوښان هم سته او پسونه هم ، اسان او غلامان هم ، نبي کريم ﷺ وفرمايل: کله چي خداي تعالى

آتَاكَ اللهُ مَالًا فَلْيُرَ أَثَرُ نِعْمَةِ اللهِ وَكَرَامَتِهِ . رواه النسائي و في شرح السنة بلفظ المصابيح.

درته مال درکړي نو د الله ﷻ د نعمت اثر په ځان کي ښکاره کړه او هغه چي تاته کوم نعمت او عزت درکړي هغه څرګند کړه . نسائي او په شرح السنة کي د مصابيح الفاظ دي .

**تخريج**: مسند الامام احمد والنسائي ۸\۱۹٦، رقم: ۵۲۹۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي کله الله تعالى تا ته دومره مال درکړی دی او ته ښه جامې اغوستلای شې نو بيا ښه جامې اغونده چي خلکو ته معلومه سي چي ته شتمن يې او الله تعالى تا ته خپل نعمتونه درکړي دي ، په شرح السنه کي ليکلي دي چي دا خبره (يعني د الله تعالى د نعمت اظهار کول) په پاکو او نوو جامو اغوستلو سره تر لاسه کيږي، په شرط ددې چي هغه جامې د خپل حيثيت او توان سره سم وي او دا چي دومره نازکي نه وي چي د هغه څخه منع سوې ده او نه دومره زياتي ښه وي چي په هغه سره د بې ځايه شان او شوکت اظهار وي، همدارنګه د هغه جامې لاندي بل جامه يعني د يوې سربېره بله جامه يې نه وي اغوستې، نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به د جامو په اړه د دواړو شهوتونو څخه منع فرمايل يعني نازکي جامې ، لوی جامې، کلکي جامې ، اوږدي جامې او د کوچنۍ جامې څخه هم مګر دا چي هغه جامه د درمياني درجې وي. شيخ عبد الحق محدث دهلوي رحمه الله ليکلي دي : د جامو زړېدل او په هغو کي پينه لګېدل يو

غوره او محمود كار دى او د ايمان د افعالو څخه دى په شرط ددې چي محض د الله تعالى د رضا لپاره وي او په دنيا كي د زهد ، فقر ، تواضع او انكسارۍ اختيارول په مخلصانه جذبه سره وي او كه د حيثيت او توان سربېره وي نود بخل او سستۍ په وجه به وي او دې ته به قبيح او بد عمل وايي .

## د نارينه لپاره سرې جامې حرامې دي

﴿۲۱۵۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ مَرَّ رَجُلٌ وَعَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَحْمَرَانِ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ. رواه الترمذي و ابوداؤد.

د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دى چي يوه سړي دوې سرې جامې اغوستي وې د نبي كريم ﷺ سره تير سو او نبي كريم ﷺ ته يې سلام ادا كړ ، نبي كريم ﷺ د هغه د سلام جواب ور نه كړ . ترمذي او ابوداؤد

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۰۷، رقم: ۲۸۰۷، وابوداود ۴\۳۳۶، رقم: ۴۰۶۹.

**تشريح**: دغه حديث په څرګنده پر دې دلالت كوي چي د نارينوو لپاره د سرو جامو اغوستل حرام دي او دا حديث پر دې هم دلالت كوي چي كوم څوک منع كار كوي او هغه سلام ادا كړي نو د هغه د سلام جواب وركولو او د عزت وركولو وړ نه دى لكه څرنګه چي مخكي هم بيان سوى دى ، پر رېشمينو جامو باندي ناسته هم د صاحبينو او درې سره امامانو په نزد مكروه ده مګر د امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد جائز ده ، همدارنګه د ورېښمو تلتک هم مكروه دى مګر د رېشمو بالښت او بستره باندي بېده كېدل د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد جائز دي او د صاحبينو په نزد مكروه دي .

## خوشبويي

﴿۲۱۵۹﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا

د حضرت عمران بن حصين ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زه

أَرْكَبُ الْأُرْجُوَانَ وَلَا أَلْبَسُ الْمُعَصْفَرَ وَلَا أَلْبَسُ الْقَمِيصَ الْمُكَفَّفَ بِالْحَرِيرِ

د ارغواني (سور ، نارنجي ، سور رنګ يو ښائسته ګل چي خوند يې خوږوړي وي) رنګه په زين پوښ باندي نه سپرېږم ، په ژړ يا سور رنګ رنګ كړي جامې نه اغوندم ، او چي لستوڼي ،

ګرېوان او لمن يې ګنډلي وي په رېشمو هغه قميص نه استعمالوم،

وَقَالَ أَلَا وَطِيبُ الرِّجَالِ رِيحٌ لَا لَوْنَ لَهُ أَلَا وَطِيبُ النِّسَاءِ لَوْنٌ لَا رِيحَ لَهُ .

رواه ابو داؤد،

بيا يې وفرمايل: اګاه سئ! په خوشبويي د سړي کي به يوازي بوي وي رنګ به نه وي او د ښځو خوشبوئي دي رنګداره وي، خوشبوئي دي پکښي نه وي. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۳۲۴، رقم: ۴۰۴۸.

**د لغاتو حل**: الارجوان: وسادة صغيرة حمراء تتخذ من حرير (کوچنی د ورېښمو بالښت)

**تشريح**: (أرجُوان): د الف په پېش او دراء په سکون سره، معنی يې د سره رنګ رېشمو ځين دی، مطلب دادی چي زه د سپرلۍ پر داسي حيوان باندي نه سپرېږم چي د هغه زين يا پالان باندي د رېشمو جامه وي، په نهايه کي ليکلي دي چي ارجوان په اصل کي د ارغوان معرب دی او ارغوان هغه درختي ته وايي چي د هغه ګل سور رنګه وي او کوم رنګ چي د هغه ګل مشابه وي لکه نارنجي نو هغه ته هم ارجوان وايي، په قاموس کي ليکلي دي چي ارجوان سره رنګ ته وايي، په هر حال د ملا علي قاري رحمه الله د وينا مطابق په حديث کي د ارجوان څخه مراد سره جامه ده که هغه د رېشمو وي يا غير ريشمو وي، دغه ارشاد د خپل مفهوم په اعتبار سره دغه حکم په زيات تاکيد سره څرګندوي چي نارينوو ته د سرو جامو اغوستلو څخه ځان ساتل پکار دي که څه هم پر سپرېدو باندي د اغوستلو اطلاق نه کيږي مګر ددې سربېره رسول الله ﷺ به پر سره زين باندي د سپرېدو څخه ځان ساتی نو د سره رنګ جامو اغوستلو څخه يې په طريقه اولی ځان ساتی.

او نه زه داسي قميص اغوندم ...الخ: ددې مطلب دادی چي زه داسي قميص يا چپنه وغيره نه اغوندم چي په هغه کي د رېشمو تارونه د څلورو ګوتو څخه زيات وي يا دا چي دغه ارشاد پر تقوا او احتياط باندي محمول دی.

چي په هغه کي رنګ وي مګر خوشبويي نه وي: ددې مطلب دادی چي ښځي ته د خپل کور څخه د وتلو په وخت کي داسي شی استعمالول صحيح نه دی چي په هغه کي خوشبويي وي مګر په کور کي دننه د هغه په استعمال کي څه پروا نسته.

په حديث کي چي د خوشبويي په اړه څه فرمايل سوي دي د هغه ظاهري اسلوب بيان د خبر دی مګر په معنی کي امر يعني حکم دی، مطلب هغه دی کوم چي په ترجمه کي هم څرګند سوی

دی، چي نارینه کومه خوشبويي استعمالوي په هغه کي دي رنګ نه وي ، ددې پر خلاف ښځي چي کومه خوشبويي استعمالوي په هغو کي دي خوشبويي نه وي، همدارنګه د شمائل ترمذي په يوه روايت کي داسي دي چي د نارينو خوشبويي بايد داسي وي چي د هغه څخه خوشبويي راوځي مګر د هغه رنګ ښکاره نه وي او د ښځو خوشبويي بايد داسي وي چي د هغه رنګ ظاهر وي مګر د هغه څخه خوشبويي نه راوځي ، ددغه روايت مطلب هم هغه دی کوم چي مخکي بيان سوی دی چي ښځو ته د کور وتلو په وخت کي داسي خوشبويي استعمال نه دي پکار چي د هغه بوی خپرېږي ځکه که چيري دا مطلب نه واخيستل سي نو د عبارت مفهوم به غير واضح سي چي هيڅ خوشبويي بېله بويه نسي کيدای ، په دغه صورت کي هغه طرف ته د خوشبويي نسبت به غير ضروري او بې ګټي وي او که دا وويل سي چي ځيني خوشبويي داسي هم وي چي په هغه کي بوی بالکل نه وي او د ښځو لپاره د داسي خوشبويي استعمال جائز سوی دی نو دا خبره به بالکل غير حقيقي او غير صحيح وي .

## د لسو خبرو ممانعت

﴿۴۱۶۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ رَيْحَانَةَ قَالَ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَشْرٍ

د ابو ريحانه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د لسو شيانو څخه منعه کړېده :

عَنِ الْوَشْرِ وَالْوَشْمِ وَالنَّتْفِ وَعَنْ مُكَامَعَةِ الرَّجُلِ الرَّجُلَ بِغَيْرِ شِعَارٍ وَعَنْ

(۱)-د غاښونو نو د تيره کولو څخه . (۲)- په بدن کي د خالو د وهلو څخه . (۳)- د وربېښتانو د کښلو څخه . (۴)- د نارينه او نارينه د يو ځاي پرېوتلو څخه چي په مينځ کي پرده حائله نه

مُكَامَعَةِ الْمَرْأَةِ الْمَرْأَةَ بِغَيْرِ شِعَارٍ وَأَنْ يَجْعَلَ الرَّجُلُ فِي أَسْفَلِ ثِيَابِهِ حَرِيْرًا

وي .(۵)- د ښځي او ښځي د يو ځاي پرېوتلو څخه چي په مينځ کي پرده نه وي .(۶)- او د دې څخه منعه کړې ده چي نارينه د خپلو جامو لاندي د وربښمنو استر ولګوي څنګه چي د عجمو خلک يې لګوي .(۷)- يا په اوږو باندي

مِثْلَ الْأَعَاجِمِ وَعَنِ النُّهْبَى وَعَنْ رُكُوْبِ النُّمُوْرِ وَلُبُوْسِ الْخَاتَمِ إِلَّا لِذِي

سُلْطَانٍ .رواه ابوداؤد والنسائي.

د عجميانو په شان ورېښم لګوي .(۸)-د لوټ څخه (۹)-د ښرموښ د پوست زين باندي د سپرېدو څخه .(۱۰) د ګوتمۍ په لاسول خو دا د يوه حاکم لپاره جائزه ده . ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۲۵، رقم: ۴۰۴۹، والنسائي ۸\۱۴۳، رقم: ۵۰۹۱.

**د لغاتو حل**: الوشر: تحديد الاسنان وترقيق اطرافها. الوشم: وهو ان يغرز الجلد بابرة ثم يحشى بكحل او نيل فيزرق. النتف: اى نتف النساء الشعور من وجوهنن. مكامعة: اى مضاجعة الرجل صاحبه في ثوب واحد لاحاجز بينهما.

**تشريح**: په عربو کي دا رواج وو چي سپين سرو ښځو به د پېغلو ښځو سره د مشابهت اختيارولو لپاره د خپلو غاښونو څوکي تېزولې او نرى کولې، رسول الله ﷺ ددې څخه منع وفرمايل، همدارنګه يو رواج دا هم وو چي ښځو به د خپل بدن ځيني برخي په ستني سره د نېل يا رانجو څخه ډکولې لکه څرنګه چي دلته د کافرانو هم دا رواج دى چي د بدن يو برخه په خاصه توګه لاسو باندي نومان وغيره ليکي، رسول الله ﷺ ددې څخه هم منع وفرمايل .

د وېښتانو کښلو څخه د منع کولو مطلب دادى چي د زينت او ښکلا لپاره د ږيري او سر سپين وېښتان کښل منع دي يا دا چي د ښځو لپاره د خپل مخ يعني بارخوګانو څخه وېښتان کښل منع دي ، ددغه شيانو د منع وجه داده چي اول خو په دې سره د الله تعالى په تخليق کي تغير کول لازميږي دوهم دا چي دغه شيان د زينت او ښکلا لپاره د بې ځايه او خراب ډول تکلفاتو کېدو باعث دى ، که څه هم د زينت او ښکلا لپاره ښځو ته دا جائز دى مګر دا ډول بد تکلفات د هغوى لپاره هم منع دي، ځينو حضراتو دا هم ويلي دي چي دلته د وېښتانو کښلو څخه مطلب دادى چي د يو پېښي او مصيبت په وخت کي د جذباتو په مغلوب کېدو سره د خپل سر او ږيري وېښتان شکول منع دي .

د نارينه د نارينه سره بېده کېدل ...الخ: د حديث د ظاهري مفهوم سره سم مطلب دادى چي دوه نارينه دي په يوه څادر (يا تلتک وغيره) کي داسي نه بېديږي چي دواړه لوڅ وي، يا د هغوى يوازي ستر پټ وي نو داسي کول بالکل منع دي ، يا دا هم کېداى سي چي ددغه منع تعلق يوازي د هغه صورت سره وي کله چي د دواړو ستر هم پټ نه وي ، دغه دواړه احتماله د ښځو په اړه هم دي، که د دوو ښځو داسي بېده کېدل د فتنې او شر بېره وي نو په دغه صورت کي څرګنده خبره ده چي داسي کول بالکل منع دي ، او که د فتنې او شر بېره نه وي نو بيا هم دغه صورت د تهذيب او ادب خلاف دى او د بې حيايۍ او بې شرمۍ کار دى .

نارينه لره د خپلو جامو لاندي د رېشمو استر لګولو مطلب دادى چي د رېشمو جامه د سړي

لپاره اغوستل بالکل حرام دي که څه هم هغه جامه د داسي لباس په صورت کي وي چي د هغه سربېره وړی وي او لاندي استريې د ريښمو وي، یا د هغه سربېره برخه د ريښمو وي او لاندي استريې د وړی وي او صحیح قول دادی.

پر اوږو باندي د ريښمو جامو اچولو مطلب دادی چي قمیص، چپنه یا بله جامه پر اوږو باندي د سنجاف په توګه د ريښمو جامه لګول یا د ريښمو کار کول په داسي صورت کي جائز دی کله چي د هغه اندازه تر څلور ګوتو پوري وي، تر څلور ګوتو زيات منع دي، او کیدای سي چي د دغه جملې څخه مراد دا وي چي پر اوږو باندي د پټو په ډول د تکبر او غرور لپاره د ريښمو جامه اچول منع دي.

د شرموښ د پوست پر زين باندي د سپرېدو څخه ځکه منع فرمایل سوې ده چي په دې کي د متکبرینو مشابهت دی، ځینو مشائخو ويلي دي چي د حیوانانو او درندګانو پر پوست باندي په ناسته سره د هغه حیوانانو او درندګانو خاصیت په انسان کي سرایت کوي.

مګر دا چي هغه د حکومت څښتن وي: لکه پاچا، قاضي، حاکم وغیره، خلاصه دا چي د مهر والا ګوتمی بېله ضرورته محض د زينت او ښکلا لپاره په ګوته کول مکروه تنزيهي دي، او ځيني حضرات وايي چي دغه حکم منسوخ دی په دې دلیل چي د حضرت عمر رضي الله عنه او نورو خلفاوو په زمانه کي صحابهٔ کرامو د مهر والا ګوتمی په ګوته کولې او هیچا مخالفت نه کوی.

## د نارينه لپاره سره زر او ريښم

﴿۴۱۶۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ نَهَانِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ وَعَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ وَالْمَيَاثِرِ. رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجة و في رواية لابي داؤد وقال نهي عن المياثر الارجوان.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ زه منعه کړم د سرو زرو د انګشترۍ څخه او قسي څخه او د میاثر څخه (قسّي: - مصري جامه چي سوتي وي ليکن په هغه کي وريښمني کرښي وي او میاثر: - سور زين پوښ ته وايي). ترمذي، ابوداؤد، نسائي او ابن ماجه. او د ابوداؤد په یوه روايت کي دادي چي رسول الله ﷺ د سور رنګ پوښ څخه منع فرمایلې ده.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۱۹۸، رقم: ۱۷۳۷، وابوداود ۴\ ۲۲۷، رقم: ۴۰۵۱، والنسائي ۸\ ۱۶۶، رقم: ۵۱۶۵، وابن ماجه ۲\ ۱۲۰۵، رقم: ۳۶۵۴، و رواية ابي داود الموضع السابق.

**تشريح**: د نارينوو لپاره د سرو زرو ګوتمۍ په ګوته کول د څلورو امامانو په نزد حرام دي، او کوم چي ددې خبري تعلق دی چي ځينو صحابه کرامو لکه حضرت طلحه، حضرت سعد او حضرت صهيب رضي الله عنهم په اړه نقل سوي دي چي هغوی د سرو زرو ګوتمۍ په ګوته کول نو د هغه تعلق د هغه زمانې سره دی کله چي د غه حرمت جاری سوی نه وو.

قسی هغه جامې ته وايي چي د مصر په يو ښار (قس) کي جوړېدلې، ځيني حضرات وايي چي قسی يو خاص ډول جامې ته وايي چي په هغو کي د ورېښمو ليکي وې، په دغه صورت کي به ددغه منع تعلق د احتياط او تقوا په وجه پر نهي تنزيهي وي، حضرت ابن ملک رحمه الله ويلي دي: د ذکر سوي منع تعلق د هغه صورت سره دی چي کله جامه ټوله د ورېښمو وي يا په هغه کي د ورېښمو کار سوی وي، په دغه صورت کي به دغه منع پر نهي تحريمي وي، طيبي رحمه الله ويلي دي: قسي هغه جامې ته وايي چي هغه د کتان وي چي په هغو کي ورېښم هم ګډ سوي وه،

مياثر د مثيره جمع ده چي سره زين پوښ ته وايي او هغه به په عامه توګه د ورېښمو وو، ددغه منع تعلق د هغه صورت سره دی کله چي هغه د ورېښمو وي مګر دغه احتمال هم کيدای سي چي ددغه منع تعلق د هغه د سوتي کېدو د صورت سره هم دی، په دغه صورت کي دغه منع به د بې ځايه شان او شوکت او غرور کي د اخته خلکو د مشابهت مظهر کېدو په وجه د نهي تنزيهي په توګه وي.

## پر کوم زين سپرېدل منع دي

﴿۴۱۶۲﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَرْكَبُوا الْخَزَّ وَلَا النِّمَارَ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د حضرت معاويه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په ورېښمنو جامو او د شرموښ د پوستکي پر زين باندي مه سپرېږئ. ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۴\ ۳۷۲، رقم: ۴۱۲۹، لم نجده عند النسائي.

**د لغاتو حل**: الخز: هو ثوب يتخذ من وبر. النمار: کساء مخطط.

**تشريح**: خز په تېره زمانه کي هغه جامو ته ويل کېدل چي د اُون او ورېښمو په يو ځای کولو سره جوړېدل، يو ډول خاص د ورېښمو جامې ته هم خز وايي، که د خز څخه مراد هغه جامه وي چي په هغه کي وړی او ورېښم دواړه وي نو هغه د عجميانو د مشابهت په وجه چي د تکبر له موخي به

يې خز پر زين اچوي، دغه منع به د نهي تنزيهي په توګه وي ځکه چي ددغه خز اغوستل مباح دي، صحابه کرامو او تابعينو به دغه اغوستل، او که د خز څخه مراد خاص د ورېښمو جامه وي نو بيا دغه منع به پر نهي تحريمي يعني د حرمت په توګه وي؛ څرګنده دي وي چي په يو بل روايت کي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد نقل سوی دی چي په اخره زمانه کي به داسي خلک پيدا سي چي خز او د ورېښمو جامې به حلال ګڼي نو په دغه روايت کي د خز څخه هغه خاص د ورېښمو جامې مراد دي، علماوو ليکلي دي چي د نبوت په زمانه کي ددغه جامو (يعني هغه خز چي د خاصو ورېښمو وو) وجود نه وو، په دغه صورت کي به دغه ارشاد د رسول الله ﷺ پر معجزې محمول وي چي رسول الله ﷺ د يو داسي جامې په اړه خبرداری ورکړ چي په ډېره وروسته زمانه کي به په وجود کي راسي.

## د سور زين پوښ څخه منعه

﴿۴۱۶۳﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْمِيْثَرَةِ الْحَمْرَاءِ. رواه في شرح السنة

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د سره زين د پوښ څخه منعه کړې ده. شرح السنه

**تخريج**: شرح السنة ۱۲\۵۸، رقم: ۳۱۳۰.

## د نبي کريم ﷺ دوه ورېښتانو سپينوالی

﴿۴۱۶۴﴾: وَعَنْ أَبِي رِمْثَةَ التَّيْمِيِّ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ

د حضرت ابو رمثه تيمي رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم او نبي کريم ﷺ دوې شنې جامې اغوستې وې

ثَوْبَانِ أَخْضَرَانِ وَلَهُ شَعْرٌ قَدْ عَلَاهُ الشَّيْبُ وَشَيْبُهُ أَحْمَرُ. رواه الترمذي وفي رواية لأبي داود: وهو ذو وفرة وبها ردع من حناء.

او د نبي کريم ﷺ په ورېښتانو باندي يو څه سپين وېښته واله غالب سوي وه يعني ډېره يې سپينه سوې نه وه خو سوروالي ته مائله وه ترمذي، او د ابوداؤد په روايت کي دي چي نبي کريم ﷺ

صاحب د (وفر) وو او هغه رنګ د نکریزو وو . (وفرة د سر وږبښتانو ته ویل کیږئ چي د غوږو تر نرمیو پوري رسیږي) .

**تخریج**: سنن الترمذي ۱۵\۱۱۰، رقم: ۲۸۱۲، وابوداود ۱۴\۳۳۴، رقم: ۴۰۶۵.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ د سپینو وېښتانو په اړه مختلف روایتونه نقل سوي دي، په یوه روایت کي د حضرت انس رضي الله عنه بیان دی چي ما د رسول الله ﷺ د سر او ږیري وېښتان وشمېرل نو هغه تر څورلسو زیات نه وه ، همدارنګه په یو بل روایت کي د اووه لس شمېر راغلی دی .

(وفره) د سر هغه وېښتانو ته وایي چي د غوږو تر نرمیو پوري وي، رسول الله ﷺ وفره والا وو ، ددې مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ د سر وېښتان د غوږو تر نرمۍ پوري وه ،

د رسول الله ﷺ سپین ږېرتوب سور وو : ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ وېښتان په نکرېزو سره کړي وه، ځینو حضراتو ویلي دي چي د سره سپین ږېرتوب څخه مراد دادی چي هغه څو وېښتان هم بالکل سپین نه وه بلکه سره وه لکه څرنګه چي په عامه توګه لېدل کیږي چي کله وېښتان سپین کیږي نو هغه مخکي خړ وي او بیا سپین سي .

او کوم چي د رسول الله ﷺ د خضاب (نکرېزو) لګولو تعلق دی نو په دې اړه د محدثینو او فقهاوو په مینځ کي اختلاف دی چي رسول الله ﷺ نکرېزي لګولي دي که یا؟ اکثر محدثین وایي چي رسول الله ﷺ نکریزي نه دي لګولي او نه د رسول الله ﷺ سپین ږېرتوب د سپینو وېښتانو دغه حد ته رسیدلی وو چي رسول الله ﷺ ته د نکریزو لګولو ضرورت محسوس سوی وه، لکه څرنګه چي د حدیثو څخه ثابته ده ، او بیا د رسول الله ﷺ چي څو سپین وېښتان وه نو د هغو حالت هم دا وو چي کله به رسول الله ﷺ په سر مبارک کي تېل ولګول نو د هغو وېښتانو سپین والی به هم نه څرګندېدی ، او کله چي به یې سر مبارک بېله تېلو وو نو هغه سپین وېښتان به څرګندېدل، ددې پر خلاف فقهاء ددې خبري ثابتولو هڅه کوي چي رسول الله ﷺ به نکریزي لګولې، ددې تفصیل د فقهي په کتابو کي تر لاسه کیدای سي، محدثین ددغه حدیث په اړه وایي چي ددغه حدیث څخه دا مفهوم اخیستل کیږي چي کوم سپین وېښتان وه رسول الله ﷺ به یوازي پر هغه نکریزي لګولې مګر دا هم کیدای سي چي رسول الله ﷺ پر هغه وېښتانو باندي په قصد سره نکریزي نه لګولې بلکه د هغه صورت دا وو چي رسول الله ﷺ به د خپل وېښتانو پرېوللو او پاکولو لپاره کله کله په سر کي نکریزي اچولې ، په دې وجه به هغه سپین وېښتان رنګین کېدل، په یوه روایت کي دا نقل سوي دي چي د حضرت انس رضي الله عنه سره کوم وېښته مبارک

وو هغه لېدونكو ته داسي معلومېدى لكه په نكريزو چي وهل سوى وي، په دې باره كي محدثين دا وايي چي بېله شكه پر هغه وېښتانو د نكريزو اثر وو مگر هغه نكريزي رسول الله ﷺ نه وې لگولې بلكه د هغه حقيقت دا وو چي حضرت انس رضي الله عنه د ادب او تبرك په توگه هغه وېښته په خوشبويي كي اچولى وو ځكه هغه د خوشبويي په اثر د نكريزو مشابه معلومېدى، يا دا هم كېداى سي چي خپله حضرت انس رضي الله عنه د هغه وېښتانو د ساتني او ټينگوالي لپاره پر هغه نكريزي لگولي وې، همدارنگه په ځينو رواياتو كي دا نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به كله سرې نكريزي لگولې او كله ژړې، ددې حقيقت هم دادى چي رسول الله ﷺ به د خپل بيري مباركي پاكي لپاره نكريزي استعمالوې او كله به يې په زعفرانو سره پرېولل، د بيري مباركي وېښتان يې په خپله تور وه همدارنگه په پرېوللو سره رنگين سول.

## پر سرو ليكو والا پټو لمونځ

﴿۴۱۶۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ شَاكِيًا فَخَرَجَ يَتَوَكَّأُ عَلَى أُسَامَةَ وَعَلَيْهِ ثَوْبُ قِطْرٍ قَدْ تَوَشَّحَ بِهِ فَصَلَّى بِهِمْ. رواه في شرح السنة

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي نبي كريم ﷺ ناروغ وو يوه ورځ پر اسامه رضي الله عنه باندي په تكيه وهلو سره د باندي راووت او په دې وخت كي نبي كريم ﷺ سرو ليكو والا پټو پر ځان راگرزولى وو او نبي كريم ﷺ اصحابو كرامو ته لمونځ وركړ. شرح السنه

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ١٢\٢٢، رقم: ٣٠٩٢.

**تشريح**: قطر يو ډول څادر ته وايي چي په هغه كي سرې ليكي وې، ځيني حضرات وايي چي د كومي جامې ذكر سوى دى هغه د قطر وه چي د بحرين په سيمه كي د يو كلي نوم دى، په دغه مناسبت سره دغه جامې ته قطري ويل سوي دي، حضرت انس رضي الله عنه چي د كومي پېښې ذكر كړى دى دا د هغه وخت پېښه ده چي رسول الله ﷺ په مرض الموت كي وو، دا د رسول الله ﷺ آخري لمونځ وو چي د صحابه كرامو سره يې په مسجد نبوي كي ادا كړ، په روايت كي نقل سوي دي چي هغه وخت ابوبكر صديق رضي الله عنه صحابه كرامو ته لمونځ وركول پيل كړي وه چي رسول الله ﷺ د ناروغۍ او كمزورۍ په وجه د اسامه رضي الله عنه په مرسته د حجرې مباركي څخه راووتى او مسجد ته راغلى او د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په څنگ كي كښېنستى او لمونځ يې وركړ، ددغه پېښي پوره تفصيل په كتاب الصلوة باب الامامت كي تېر سوى دى.

﴿۴۱۶۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ عَلَى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَوْبَانِ قِطْرِيَّانِ

د بي بي عائشې ﷺ څخه روایت دی چې نبي کریم ﷺ د قطر د ځای کلکې غټې جامې اغوستی

غَلِيظَانِ وَكَانَ إِذَا قَعَدَ فَعَرِقَ ثَقُلَا عَلَيْهِ فَقَدِمَ بَزٌّ مِنَ الشَّامِ لِفُلَانِ الْيَهُودِيِّ

وی کله چې به نبي کریم ﷺ ډیر کښېنستی او خوله په وربانديې راغله نو هغه جامې په درنې سوې (په دې ورځو کې) یوه یهودي د شام څخه رخت راوړی

فَقُلْتُ لَوْ بَعَثْتَ إِلَيْهِ فَاشْتَرَيْتَ مِنْهُ ثَوْبَيْنِ إِلَى الْمَيْسَرَةِ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ فَقَالَ

ما عرض وکړ که تاسو څوک ولیږی او د پراخي په وعده باندې (یعني د مال د راتلو یا د زر نقد رسولو په وعده) دوې جامې را وغواړئ (نو بهتره به وي) نبي کریم ﷺ یو سړی ور ولیږی، یهودي هغه ته وویل،

قَدْ عَلِمْتُ مَا تُرِيدُ إِنَّمَا تُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِمَالِي أَوْ بِدَرَاهِمِي فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ

ستا اراده ماته معلومه ده ته غواړې چې زما مال و خورې (په ظاهره د دې الفاظو مخاطب هغه سړیوو لیکن په حقیقت کې د هغه مراد نبي کریم ﷺ وو) هغه سړی چې واپس راغی نو د یهودي الفاظ یې بیان کړه،

ﷺ كَذَبَ قَدْ عَلِمَ أَنِّي مِنْ أَتْقَاهُمْ وَآدَاهُمْ. رواه الترمذي والنسائي.

نبي کریم ﷺ و فرمایل: هغه دروغجن دی او د دې څخه خبر دی (په تورات کې دا خبره معلومه ده چې نبي کریم ﷺ ډیر پرهیزګاره دی) چې زه د خدای تعالی څخه تر ټولو خلکو زیات بیریږم او د امانتو په ښه ډول سره ادا کونکی یم. ترمذي او نسائي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۵۱۸، رقم: ۱۲۱۳، والنسائي ۷\۲۹۴، رقم: ۴۶۲۸.

**تشريح**: د دغه حدیث څخه ثرګنده سوه چې رسول الله ﷺ غټې جامې اغوستي وې مګر د هغه جامې په وجه چې رسول الله ﷺ ته تکلیف سو نو د خپل ارام په وجه یې د بلې جامې په پور رانیولو اراده وکړه، همدارنګه د دغه حدیث څخه د هغه یهودي شقاوت هم ثرګند سو چې هغه د رسول الله ﷺ سره څومره بغض او نفرت درلودی.

## سرې جامې د ښځو لپاره جائز دي

﴿۴۱۶۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ رَآنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د عبد الله بن عمر بن عاص رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ زه په داسي حال كي وليدم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيَّ ثَوْبٌ مَصْبُوغٌ بِعُصْفُرٍ مُوَرَّدٌ فَقَالَ مَا هٰذَا فَعَرَفْتُ مَا كَرِهَ

چي ما د مصبوغ عصفر (سور رنگه) گلابي جامه اغوستې وه ، نبي كريم ﷺ پوښتنه وكړه دا څه دي ؟ زه پوه سوم چي نبي كريم ﷺ دا خوښه نه كړه

فَانْطَلَقْتُ فَأَحْرَقْتُهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا صَنَعْتَ بِثَوْبِكَ فَقُلْتُ

زه سمدستي بيرته راغلم او هغه جامه مي و سوزل (دويم وار د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سوم نو) نبي كريم ﷺ راڅخه پوښتنه وكړه چي تا د هغه سرې جامې سره څه وكړه؟ ما ورته وويل :

أَحْرَقْتُهُ قَالَ أَفَلَا كَسَوْتَهُ بَعْضَ أَهْلِكَ فَإِنَّهُ لَا بَأْسَ بِهِ لِلنِّسَاءِ . رواه ابوداؤد

هغه مي وسوځلې ، نبي كريم ﷺ راته وفرمايل: تا په خپل كورنۍ كي په يو ښځي ولي وانه غوستلی ځكه چي د ښځو لپاره د دې ډول جامو اغوستل گناه نه لري .ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۳۵، رقم: ۴۰۶۸.

## د سرو ليكو والا څادر

﴿۴۱۶۸﴾: وَعَنْ هِلَالِ بْنِ عَامِرٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ رَأَيْتُ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى يَخْطُبُ عَلَى بَغْلَةٍ وَعَلَيْهِ بُرْدٌ أَحْمَرُ وَعَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَمَامَهُ يُعَبِّرُ عَنْهُ . رواه ابوداؤد.

حضرت هلال بن عامر رضي الله عنه د خپل پلاره څخه روايت كوي ، چي ما په منیٰ كي رسول الله ﷺ په خطبه ويلو باندي و ليدی ، نبي كريم ﷺ هغه وخت په قچره باندي سپور وو ، سره ليكي داره جامه يې پر بدن وه، حضرت علي رضي الله عنه يې و مخته ولاړ وو او د نبي كريم ﷺ الفاظ يې تكرارول (ځكه چي گڼه گوڼه زياته وه). ابوداؤد .

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۳۳۸، رقم: ۴۰۷۳.

**د لغاتو حل**: یعبر: ای یبلغ عنه الکلام الی الناس.

**تشریح**: هلته د خلکو ډېر رش وو او د رسول الله ﷺ اواز مبارک په مجمع کي لیري خلکو ته نه رسیدی ځکه حضرت علي رضی الله عنه به د رسول الله ﷺ الفاظ په لوړ اواز خلکو ته رسول.

**تور څادر**

﴿۴۱۶۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ صُنِعَتْ النبي اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُرْدَةً سَوْدَاءَ فَلَبِسَهَا فَلَمَّا عَرَقَ فِيهَا وَجَدَ رِيحَ الصُّوفِ فَقَذَفَهَا. رواه ابوداؤد.

د بي بي عائشي رضی الله عنها څخه روایت دی، چي د رسول الله ﷺ لپاره تور څادر تیار سو، نبي کریم ﷺ هغه استعمال کړ، کوم وخت چي ورته خوله راغله او د هغې بوئ د وړیو خپور سو نو نبي کریم ﷺ هغه لیري کړ. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۳۳۹، رقم: ۴۰۴۷.

**د نبي ﷺ د ناستي طریقه**

﴿۴۱۷۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْتَبٍ بِشَمْلَةٍ وَقَدْ وَقَعَ هُدْبُهَا عَلَى قَدَمَيْهِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم، نبي کریم ﷺ دواړي ګونډې درولي وې او ګونډئ یې په پټو باندي تړلي وې چي د هغه زوړندوالي د نبي کریم ﷺ په پښو مبارکو باندي پرېوتل. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۳۳۹، رقم: ۴۰۷۵.

**تشریح**: محتبب بشملة هغه ناستي ته وایي چي د کوناټو پر مځکه اېښودو سره پښې ودرول سي او د مرستي لپاره دواړه لاسونه یا یو څادر پر پښو چاپېره کړي.

**نازک توکر**

﴿۴۱۷۱﴾: وَعَنْ دِحْيَةَ بْنِ خَلِيفَةَ قَالَ أُتِيَ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَبَاطِيَّ

د حضرت دحیه بن خلیفه ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ته قباطي (مصری جامه چي سپینه او نازکه وه) تانونه راوړل ،

فَأَعْطَانِي مِنْهَا قُبْطِيَّةً فَقَالَ اصْدَعْهَا صَدْعَيْنِ فَاقْطَعْ أَحَدَهُمَا قَمِيصًا وَأَعْطِ

په هغه کي یوه قبطي (تان) ماته هم را کړ او راته یې وفرمایل: دا دوې ټکړې کړه د یوې ټکړې څخه قمیص جوړ کړه او ورکړه

الْآخَرَ امْرَأَتَكَ تَخْتَمِرُ بِهِ فَلَمَّا أَدْبَرَ قَالَ وَأْمُرِ امْرَأَتَكَ أَنْ تَجْعَلَ تَحْتَهُ ثَوْبًا

لَا يَصِفُهَا. رواه ابوداؤد.

دویمه ټکړه و خپلي بي بي ته ، هغه به و ځان ته پوړنی جوړ کړي ، کوم وخت چي زه راتلم نو نبي کریم ﷺ راته وفرمایل: و خپلي بي بي ته دا هدایت وکړه چي د دې لاندي دي یوه بله جامه واغوندي چي د سر وربښتان او بدن یې ښکاره نه سي . ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود: ۴/۳۶۳، رقم: ۴۱۱۶.

**تشریح**: قباطي د قبطیه جمع ده ، قبطیه یو خاص ډول جامې ته وایي چي سپینه وي او په مصر کي به جوړېدل ، ددغه حدیث څخه معلومه سوه چي ښځو ته د داسي جامو اغوستل چي تر هغه لاندي بدن معلومیږي نو هغه باید یوازي هغه جامه نه واغوندي بلکه د هغه لاندي یوه بله جامه هم واغوندي چي بدن یې ښکاره نسي .

## د پوړني طریقه

﴿۴۱۷۲﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَهِيَ تَخْتَمِرُ فَقَالَ لَيَّةً لَا لَيَّتَيْنِ. رواه ابوداؤد.

د بي بي ام سلمه ﷺ څخه روایت دی ، چي نبي کریم ﷺ د هغې کره تشریف راوړ هغه وخت د هغې پوړنی پر سر وو ، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : پر سر د پوړني یو پېچ کافي دی ، د دوو ضرورت نسته . ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داؤد: ۴/۳۶۳، رقم: ۴۱۱۵.

**د لغاتو حل**: لیة: ای لغة.

**تشريح**: مطلب دادی چي د پوړني پر سر او ترغاړي لاندي يو ول واچوه دوه وله مه ورکوه چي اسراف ونسي او د نارينوو د پټو مشابهت هم ونسي ، دا هم کيدا يسي (بلکه زيات صحيح هم دادی) چي دلته د ول څخه مراد پر سر څادر اچول وي لکه څرنگه چي د پخواني زمانې د عربو ښځو رواج وو، چي هغوی به خپل سر د عصابه په ډول جامه اچول، رسول الله ﷺ څرگنده کړه چي د پوړني يو پيچ کافي دی ، پوړنی پر سر باندي ډېر مه پېچی چي د اسراف صورت پيدا نسي او د نارينوو د پټو مشابهت لازم نسي ، ددې څخه معلومه سوه چي د ښځو لپاره دا صحيح نه دي چي هغوی د نارينوو په ډول جامه واغوندي او د هغوی مشابهت اختيار کړي لکه څرنگه چي د نارينوو لپاره د ښځو په ډول جامه اغوستل او د ښځو مشابهت اختيارول صحيح نه دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### پرتوګ تر نيمي پنډۍ پوري

﴿۴۱۷۳﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ مَرَرْتُ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي إِزَارِي

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ سره روان وم او زما پرتوګ

اسْتِرْخَاءٌ فَقَالَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ ارْفَعْ إِزَارَكَ فَرَفَعْتُهُ ثُمَّ قَالَ زِدْ فَزِدْتُ فَمَا زِلْتُ

زړېدی نبي کريم ﷺ راته و فرمايل: اې عبدالله! خپل پرتوګ پورته کړه ، ما يو څه اندازه پورته کړ دي څخه وروسته ما همېشه

[illegible]حَرَّاهَا بَعْدُ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ إِلَى أَيْنَ قَالَ لِي أَنْصَافِ السَّاقَيْنِ . رواه مسلم

د نبي کريم ﷺ د ارشاد مطابق خپل پرتوګ پورته تړی ، ځينو خلکو پوښتنه ځيني وکړه چي څومره يې پورته کول ويلي وه ده وويل د پنډيو تر نيمي پوري . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۶۵۳\۳، رقم: ۴۷- ۲۰۸۶.

**تشريح**: اتحراها : دلته ضمير په اصل کي فعله (چي محذوف دی) ته راجع دی ، او ترجمه يې ددې مطابق سوې ده ، مګر په څرګنده دا معلوميږي چي ددې ضمير رفعه اخيره ته راجع دی ، په دغه صورت کي به ترجمه دا وي چي زه همېشه دې خبري ته متوجه يم چي زما لونګ دې د رسول الله ﷺ د خوښۍ سره سم لوړ وي، په هر حال مطلب په دواړو صورتو کي يو دی .

## د پرتوګ ترلو طريقه

﴿۴۱۷۴﴾: وَعَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ لَمْ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د تکبر څخه خپله جامه (پرتوګ) کښته کړي

يَنْظُرُ اللّٰهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِزَارِي يَسْتَرْخِي إِلَّا

د قيامت په ورځ به خداي تعالى هغه ته نه ګوري، حضرت ابو بکر رضي الله عنه عرض وکړ، اې د الله جل جلاله رسوله! که زه د خپل پرتوګ خاص خيال و نه کړم

أَنْ أَتَعَاهَدَهُ فَقَالَ لَهُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّكَ لَسْتَ مِمَّنْ يَفْعَلُهُ خُيَلَاءَ. رواه البخاري

نو هغه اکثره کښته کيږي، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: ته د تکبر په وجه داسي نه کوې (يعني ته د هغو خلکو څخه نه يې چي تکبر کوي) بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۹۱۷، رقم: ۳۶۶۵.

**تشريح**: مطلب دادى چي لونګ يا پرتوګ بېله قصد او ارادې زړول په شرعي توګه تاواني نه وي په خاصه توګه د هغه سړي په اړه چي هغه غرور او تکبر نه لري مګر غوره دادي چي په هر صورت متابعت اختيار کړل سي ، ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د لونګ او پايڅو تر بجلکو لاندي کولو د حرمت اصل تکبر او غرور دى.

﴿۴۱۷۵﴾: وَعَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ رَأَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَأْتَزِرُ فَيَضَعُ حَاشِيَةَ إِزَارِهِ مِنْ

د عکرمه رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما ابن عباس رضي الله عنه په داسي لنګ ترلو باندي ليدلي دى چي د

مُقَدَّمِهِ عَلَى ظَهْرِ قَدَمِهِ وَيَرْفَعُ مِنْ مُؤَخَّرِهِ قُلْتُ لِمَ تَأْتَزِرُ هٰذِهِ الْإِزْرَةَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتَزِرُهَا . رواه ابوداؤد.

هغه مخکني برخه په قدمونو پرته وه او د شا برخه به يې پورته وه ، ما ورته وويل ، ته لنګ داسي ولي ترې؟ هغه وويل ، ما رسول الله ﷺ په داسي لنګ ترلو باندي ليدلي دى . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۵۴، رقم: ۴۰۹۶.

**تشريح**: ددې څخه معلومه سوه كه لونګ يا پرتوګ مخته زړېدلی وي مګر د شا له خوا تر بجلكو پورته وي نو عدم اسبال يعني تر بجلكو لاندي كېدو د حكم د تعميل لپاره كافي دی.

## د لنګوټې تړلو حكم

﴿۴۱۷۶﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ بِالْعَمَائِمِ فَإِنَّهَا سِيمَاءُ الْمَلَائِكَةِ وَأَرْخُوْهَا خَلْفَ ظُهُوْرِكُمْ. رواه البيهقي.

د حضرت عباده رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :تاسو لنګوټه تړئ ځكه چي لنګوټه تړل د ملائكو علامه ده او د لنګوټې شمله خپل د شا طرف ته پرېږدئ. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\۱۷۶، رقم: ۶۲۶۲.

## د ښځو لپاره نرۍ جامه منعه ده

﴿۴۱۷۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ دَخَلَتْ عَلَى رَسُوْلِ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي بي بي اسماء(رض) د ابوبكر رضي الله عنه لور د نبي كريم ﷺ

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهَا ثِيَابٌ رِقَاقٌ فَأَعْرَضَ عَنْهَا وَقَالَ يَا أَسْمَاءُ

په خدمت كي حاضره سوه ، هغه وخت د هغې پر بدن باندي نازكه جامه وه ، رسول الله ﷺ د هغې څخه مخ واړوی او ويې فرمايل :اې اسماء!

إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا بَلَغَتِ الْمَحِيضَ لَمْ تَصْلُحْ أَنْ يُرَى مِنْهَا إِلَّا هٰذَا وَهٰذَا وَأَشَارَ إِلَى وَجْهِهِ وَكَفَّيْهِ. رواه ابوداؤد.

كله چي ښځه بالغه سي ،نو د هغې سره نه ښائي چي ددې اندامونه دي وليدل سي نبي كريم ﷺ خپل مخ او دواړو لاسونو ته اشاره وكړه. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\۳۵۷، رقم: ۴۱۰۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي د ښځو لپاره د شرعي پردې حد دادی چي هغه د خپل مخ او لاسونو څخه پرته پاته ټول اندامونه پټ كړي مګر د شرم او حجاب تقاضا داده چي په دغه حالت كي هم

د کور ښخه دباندي وتلو په صورت کي خلکو ته په مخ ورنسي چي د هغه پوره بدن پرته د مخ او لاسو ښخه پټ وي بلکه که چیري وتل ضروري وي مخ او لاسو نه دي هم پټ کړي ، ددغه حدیث ښخه معلومه سوه که چیري ښځه یوه داسي نری جامه اغوستې وي چي د هغه لاندي د هغې بدن معلومیږي نو هغه به د لوڅي په حکم کي وي .

## د نوو جامو اغوستلو دعاء

﴿۴۱۶۸﴾ : وَعَنْ أَبِي مَطَرٍ أَنَّ عَلِيًّا اشْتَرَى ثَوْبًا بِثَلَاثَةِ دَرَاهِمَ فَلَمَّا لَبِسَهُ قَالَ

د حضرت ابو مطر رضی الله عنه ښخه روایت دی چي حضرت علي رضی الله عنه په دري درهمه یوه جامه رانیول ، کوم وخت چي یې واغوستل نو یې وویل :

الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي رَزَقَنِي مِنَ الرِّيَاشِ مَا أَتَجَمَّلُ بِهِ فِي النَّاسِ وَأُوَارِي بِهِ عَوْرَتِي ثُمَّ قَالَ هَكَذَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ. رواه احمد.

الحمد لله .....به عورتي . ټول ثنا او صفت و الله جل جلاله ته دي چي ماته یې د زینت جامې را کړې او زه د خلکو په مینځ کي د دې د زینت اظهار کوم او په دې سره خپل ستر پټوم بیا یې وویل ، ما داسي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ښخه دا اوریدلي دي . احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱\۱۵۷.

**د لغاتو حل**: الرياش: ما ظهر من اللباس.

﴿۴۱۶۹﴾ : وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ لَبِسَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ثَوْبًا جَدِيدًا

د حضرت ابو امامه رضی الله عنه ښخه روایت دی چي حضرت عمر بن خطاب نوي جامې واغوستلې او

فَقَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَسَانِي مَا أُوَارِي بِهِ عَوْرَتِي وَأَتَجَمَّلُ بِهِ فِي حَيَاتِي ثُمَّ

دا یې وویل : الحمد لله ..... فی حیوتي (ټول تعریفونه خداي تعالي لره دي چي ما ته هغه جامې را واغوستلې چي زه ورسره خپل ستر پټوم او خپل ژوند ته ورباندي ښائست ورکوم)

قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ لَبِسَ ثَوْبًا جَدِيدًا فَقَالَ

بيايې وفرمايل: ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي څوک چې نوي جامې واغوندي او دا

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي كَسَانِي مَا أُوَارِي بِهِ عَوْرَتِي وَأَتَجَمَّلُ بِهِ فِي حَيَاتِي ثُمَّ عَمَدَ إِلَى

ووايي : الحمد لله الذي كساني ما اواري به عورتي و اتجمل به في حياتي . او بيا هغه جامه

الثَّوْبِ الَّذِي أَخْلَقَ فَتَصَدَّقَ بِهِ كَانَ فِي كَنَفِ اللّٰهِ وَفِي حِفْظِ اللّٰهِ وَفِي سَتْرِ اللّٰهِ

حَيًّا وَمَيِّتًا. رواه احمد والترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب

چې د بدن څخه يې كنبلې وي (يعني زاړه كالي) صدقه كړي نو هغه په ژوند كي هم او د مرگ څخه وروسته هم د خداي تعالى په پناه او پرده كي وي . احمد ، ترمذي او ابن ماجه، ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دى.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱\۴۴، والترمذي ۵\۵۲۱، رقم: ۳۵۶۰، وابن ماجه ۲\۱۱۷۸.

## نرى پوړنى منع دى

﴿۴۱۸۰﴾: وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ أَبِي عَلْقَمَةَ عَنْ أُمِّهِ قَالَتْ دَخَلَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَلَى عَائِشَةَ وَعَلَيْهَا خِمَارٌ رَقِيقٌ فَشَقَّتْهُ عَائِشَةُ وَكَسَتْهَا خِمَارًا [illegible]يفًا. رواه مالك .

[illegible]رت علقمه بن ابو علقمه ﷺ د خپلي مور څخه روايت كوي چې د عبدالرحمن ﷺ لور [illegible]فصه ﷺ د بي بي عائشې ﷺ په خدمت كي حاضره سوه هغه وخت هغې نازک پوړني پر سر وو [illegible]، بي بي عائشې ﷺ د هغې نازک پوړنى څيري كړ او لوئ پوړني يې ورته په سر كړ. مالک .

**تخريج**: الموطا ۲\۹۱۳، رقم: ۶.

**تشريح**: حفصه ﷺ د بي بي عائشې ﷺ وريره وه، كله چې يې هغه په نازک پوړني كي ولېدل نو خفه سوه او هغې ته د سبق وركولو لپاره يې د هغې نازک پوړنى ټوټې ټوټې كړ او بيا يې د هغه په بدله كي د هغې پر سر يو لوى پوړنى واچوى .

## د بي بي عائشې فقر او زهد

﴿۴۱۸۱﴾: وَعَنْ عَبْدِالْوَاحِدِ بْنِ اَيْمَنَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ رَضِيَ

حضرت عبد الواحد رضي الله عنه بن ايمن د خپل پلار څخه روايت كوي چي زه د بي بي عائشې رض په

اللّٰهُ عَنْهَا وَعَلَيْهَا دِرْعُ قِطْرٍ ثَمَنُ خَمْسَةِ دَرَاهِمَ فَقَالَتْ ارْفَعْ بَصَرَكَ إِلَى جَارِيَتِي

خدمت كي حاضر سوم هغه وخت هغې مصرى قميص اغوستي وو چي د هغې قيمت پنځه درهمه وو ، بي بي عائشې رضي الله عنها راته وويل ، ته زما د دې مينځي و لوړ ته وګوره

انْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهَا تُزْهَى أَنْ تَلْبَسَهُ فِي الْبَيْتِ وَقَدْ كَانَ لِي مِنْهَا دِرْعٌ عَلَى عَهْدِ

چي څومره غرور كوي ، هغه په كور كي د دې جامو په اغوستلو باندي نه راضي كيږي ، د دې څخه وروسته بي بي عائشې رضي الله عنها وفرمايل: زما سره

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا كَانَتْ امْرَأَةٌ تُقَيَّنُ بِالْمَدِينَةِ إِلَّا أَرْسَلَتْ

إِلَيَّ تَسْتَعِيرُهُ. رواه البخاري.

د رسول الله صلى الله عليه وسلم د زمانې د دې ډول يو قميص وو ، په مدينه منوره كي چي به كومه انجلۍ واده كېده نو د هغې د ناوي كېدو لپاره به يې هغه غوښتى (يعني د بركت د حاصلولو لپاره). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۴۱، رقم: ۲۶۲۸.

**تشريح**: په دغه حديث كي بي بي عائشې رضي الله عنها دا څرګنده كړې ده چي په دغه لږ وخت كي په ذهنو كي څومره تبديلي پيدا سوې ده چي تر پرون پوري د كومي جامې قميص ښځو د خپل زينت لپاره ضرورت ګڼى هغه قميص اوس په خپل كور كي اغوستل هم نه خوښوي، يعني هغې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه كي د خپل فقر او زهد بيان هم كړى دى .

## ريښمنه قباء

﴿۴۱۸۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ لَبِسَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا قَبَاءً مِنْ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم يوه ريښمينه قبا وا غوستل چي د

دِيبَاجٍ أُهْدِيَ لَهُ ثُمَّ أَوْشَكَ أَنْ نَزَعَهُ فَأَرْسَلَ بِهِ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَقِيلَ

تحفې په ډول ورته را لېږل سوې وه ، بیا نبي کریم ﷺ سمدستي لیري کړه او حضرت عمر رضی الله عنه ته یې را ولېږل ، عرض وسو (یعني اصحابو عرض وکړ)

لَهُ قَدْ أَوْشَكَ مَا نَزَعْتَهُ يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ نَهَانِي عَنْهُ جِبْرِيلُ فَجَاءَهُ عُمَرُ

اې د الله جل جلاله رسوله ! تاسو دومره زر دا قبا ولي لیري کړه؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : زه جبرائیل علیه السلام د دې د اغوستلو څخه منعه کړم، بیا حضرت عمر علیه السلام په ژړا تشریف راوړ

يَبْكِي فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ كَرِهْتَ أَمْرًا وَأَعْطَيْتَنِيهِ فَمَا لِي قَالَ إِنِّي لَمْ أُعْطِكَهُ

او عرض یې وکړ ، اې د الله جل جلاله رسوله ! تاسو یو شی بد و ګڼئ او وروسته مو بیا ماته راکړ (چي زه یې وا غوندم)زما به څه حال وي ؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : دا قبا ما تاته د

لِتَلْبَسَهُ إِنَّمَا أَعْطَيْتُكَهُ تَبِيعُهُ فَبَاعَهُ بِأَلْفَيْ دِرْهَمٍ . رواه مسلم .

اغوستلو لپاره نه ده درکړې بلکه د خرڅولو لپاره مي در لېږلې وه ، حضرت عمر رضی الله عنه هغه په دوه زره درهمه باندي خرڅه کړه . مسلم.

**تخریج** : صحیح مسلم: ۴\۱۶۴۴، رقم: ۱۶-۲۰۷۰.

## په کالو کي دوریشمو تارونه

﴿۴۱۸۳﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّمَا نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الثَّوْبِ الْمُصْمَتِ مِنَ الْحَرِيرِ فَأَمَّا الْعَلَمُ مِنَ الْحَرِيرِ وَسَدَى الثَّوْبِ فَلَا بَأْسَ بِهِ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د خاص وریښمني جامو څخه منعه کړېده لیکن د وریښم کناره یا ګوټ چي په اندازه د څلورو ګوتو وي یا بله جامه چي د هغې استر د وریښمو وي ، په هغه کي بیا څه ګناه نسته . ابوداؤد.

**تخریج** : سنن ابي داود : ۴\۳۲۹، رقم: ۴۰۵۵.

**تشریح** : په کومو جامو کي چي لاندي او باندي ریښم وي نو هغه د نارینوو لپاره اغوستل حرام دي او د صاحبینو په نزد په جنګ کي د هغه اغوستل مباح دي او د کومو جامو لاندینۍ برخه

چي د ربښمو وي او سربېره برخه د وړيو وي د هغه اغوستل په اتفاق سره جائز دي او دديِ برعکس ناجائز دی مګر په جنګ کي جائز دي، د صاحبينو په نزد په جنګ کي هم د هغه جامې اغوستل مباح دي چي خاص د ربښمو وي او هغه جامه هم چي د هغه لاندينۍ برخه د ربښمو وي مګر د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد په جنګ کي يوازي هغه جامه اغوستل مباح دي چي د هغه لاندينۍ برخه د ربښمو وي او سربېرنه برخه د وړيو وي او د کومي جامې لاندينۍ برخه چي د ربښمو وي او سربېرنه برخه د بل شي وي نو هغه په هر حالت کي مباح ده.

## ښه جامه

﴿۴۱۸۴﴾: وَعَنْ اَبِي رَجَاءٍ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ وَعَلَيْهِ مِطْرَفٌ

د ابو رجاء رضي الله عنه څخه روايت دی چي عمران بن حصين ما ته راغلی، هغه وخت هغه ربښميني او

مِنْ خَزٍّ وَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَنْعَمَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ

وړيني جامې اغوستي وې هغه وويل: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: الله جل جلاله چي يو څوک په

عَلَيْهِ نِعْمَةً فَإِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ يُحِبُّ أَنْ يُرَى أَثَرُ نِعْمَتِهِ عَلَى عَبْدِهِ. رواه احمد

خپل نعمت سره و نازوي نو خدای تعالی دا خوښوي چي د هغه نعمت اظهار دي وکړي. احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۴۳۸.

**تشريح**: مطرف يو ډول خاص ټوکر وو چي د هغه دواړو خواوو ته څوکي ورکړل سوي وې، په قاموس کي ليکلي دي چي مطرف د مکرم پر وزن دی، او د خز ليکه دار څادر ته وايي، په دغه صورت کي د مطرف من خز د خز د تاکيد لپاره وي او خز هغه جامې ته وايي چي خاص د ربښمو وي او ځيني حضرات وايي چي خز هغه جامې ته وايي چي د ربښمو او وړيو دواړو څخه جوړ وي د هغه اغوستل مباح دي دلته د خز څخه دغه مراد دی.

## اسراف او تکبر مه کوه

﴿۴۱۸۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كُلْ مَا شِئْتَ وَالْبَسْ مَا شِئْتَ مَا أَخْطَأَتْكَ اثْنَتَانِ سَرَفٌ أَوْ مَخِيلَةٌ. رواه البخاري في ترجمة باب.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي وخوره څه چي دي زړه غواړي او اغونده څه چي

دي خوښ وي ترڅو پوري چي ته په دوو شيانو كي اخته نه سې يعني په اسراف او تكبر كي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۲۵۲،

**تشريح**: مطلب دادی چي د خوراک هر شي خوړل او د اغوستلو هر شي اغوستل صحيح دي مگر په خوراک او اغوستلو كي هغه توسع مكروه ده چي د اسراف او تكبر په توگه وي ، په كوم توسع كي چي اسراف او تكبر نه وي نو هغه مباح دي .

﴿۴۱۸۶﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه بيا د خپل پلار څخه روايت كوي ، چي

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُوا وَاشْرَبُوا وَتَصَدَّقُوا وَالْبَسُوا مَا لَمْ يُخَالِطْ إِسْرَافٌ وَلَا مَخِيلَةٌ. رواه احمد والنسائي وابن ماجة.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي : و خورئ ، و څښئ او خيرات كوئ او اغوندئ تر څو پوري چي په دې كي اسراف او تكبر نه وي . احمد ، نسائي او ابن ماجه.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\ ۱۸۱، والنسائي ۵\ ۷۹، رقم: ۲۵۵۸، وابن ماجه ۲\ ۱۱۹۲، رقم: ۳۶۰۵.

## د سپينو كالو فضيلت

﴿۴۱۸۷﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحْسَنَ مَا زُرْتُمُ اللَّهَ بِهِ فِي قُبُورِكُمْ وَمَسَاجِدِكُمُ الْبَيَاضُ . ابن ماجة

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه بهترينه جامه چي د هغې په اغوستلو سره تاسو په خپلو قبرونو او مسجدونو كي د الله جل جلاله سره يو ځاي كيږي ، سپينه جامه ده . ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۱۸۱، رقم: ۳۵۶۸.

**تشريح**: مسجد د الله جل جلاله كور دی څوک چي د عبادت لپاره مسجد ته ولاړ سي نو د الله تعالی سره د ملاقات لپاره ولاړی نو هلته سپينه جامه اغوستل غوره دي همدارنگه د مرگ څخه وروسته د الله تعالی سره ملاقات كوي نو مړي ته سپين كفن وركول غوره دی .

==============

# بَابُ الْخَاتَمِ (د گوتمې بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د سپينو زرو گوتمې

﴿۴۱۸۸﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ اتَّخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ جوړه کړه

خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ، وفي رواية وجعله في يده اليمين ثُمَّ أَلْقَاهُ ثُمَّ اتَّخَذَ خَاتَمًا

د سرو زرو گوتمې (مُهر). او په يوه روايت کي دا الفاظ هم دي چي هغه گوتمې يې په راسته لاس کړه او وروسته يې وکښل، وروسته يې د سپينو زرو څخه يوه گوتمې جوړه کړه

مِنْ وَرِقٍ وَنَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللّٰهِ وَقَالَ لَا يَنْقُشُ أَحَدٌ عَلَى نَقْشِ خَاتَمِي هٰذَا وَكَانَ إِذَا لَبِسَهُ جَعَلَ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي بَطْنَ كَفِّهِ. متفق عليه.

چي په هغه کي د محمد رسول الله الفاظ نقش سوي وه او دا يې وفرمايل: چي هيڅوک دي زما د مهر په شان الفاظ نه نقش کوي، کله چي په نبي کريم ﷺ دا گوتمې په لاسه کړه نو د هغې غمې به يې د لاس د ورغوي خوا ته کوي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۱۸، رقم: ۵۸۶۶، ومسلم ۳\۱۶۵۶، رقم: ۵۵- ۲۰۹۲.

**تشريح**: نبي کريم ﷺ د سرو زرو گوتمې په هغه وخت کي جوړه کړې وه کله چي د نارينوو لپاره سره زر حرام نه وه، کله چي الله تعالی د وحي په ذريعه د سرو زرو استعمال حرام وگرځوی نو رسول الله ﷺ هغه گوتمې وغورځول، امام محمد رحمة الله عليه په خپل کتاب مؤطا کي ويلي دي: څرنگه چي د نارينوو لپاره د سرو زرو گوتمې جائز نه ده همدارنگه د هغوی لپاره د اوسپني، ژړو او داسي نورو شيانو گوتمې هم جائز نه ده، نارينه لره د سپينو زرو څخه پرته د بل شي گوتمې صحيح نه ده، د ښځو لپاره د سرو زرو گوتمې او نوري گڼې جائز دي، بلکه علماوو داسي ليکلي دي چي د ښځو لپاره د سپينو زرو گوتمې مکروه ده ځکه چي د سپينو زرو گوتمې د نارينوو لپاره دي او ښځو ته د نارينوو مشابهت مکروه دی، که يوه ښځه د سپينو زرو گوتمې

په ګوته کول وغواړي نو د هغې رنګ دي بدل کړي، په هدايه کي دا هم ليکلي دي چي په دې اړه د ګوتمۍ د حلقې (کړۍ) اعتبار دی نه د غمي،

هيڅوک دي زما د مُهر په ډول الفاظ نه جوړوي: اصل خبره دا وه چي رسول الله ﷺ به دا کتل چي مسلمانان زما د اتباع څومره حريص دي هغوی زما د هر عمل پيروی کولو هڅه کوي، ځکه نو ليري خبره نه ده چي هغوی ددغه مهر الفاظ په خپلو ګوتميو کي جوړول پيل کړي نو رسول الله ﷺ ددې څخه منع وفرمايل، ددغه منع يوه وجه دا هم وه چي د رسول الله ﷺ د هغه ګوتمۍ او پر هغه باندي جوړ سوي الفاظو يو قانوني حيثيت وو چي رسول الله ﷺ به کوم خطونه د دنيا د پاچاهانو او مشرانو په نامه لېږل نو پر هغو به يې مهر لګوی، په دغه صورت کي که نورو خلکو هم په خپلو ګوتميو کي داسي مهر جوړ کړی وای نو نه يوازي دا چي د مهر رسالت خاص حيثيت به د هغه پاچاهانو په نظر کي مشتبه کېدی بلکه يوه عجيبه خرابي به هم پيدا سوې وای، قاضي خان رحمه الله ويلي دي: د سپينو زرو ګوتمۍ د هغه چا لپاره مباح ده چي د هغه لپاره د مهر جوړول د يو ضرورت په درجه کي وي لکه قاضي او داسي نور، او کوم څوک چي د مهر جوړولو ته اړ نه وي نو د هغه په اړه افضل دادي چي هغه د سپينو زرو ګوتمۍ استعمال نه کړي، او کوم څوک چي دغه ګوتمۍ استعمالوي نو د هغه لپاره مناسب دادي چي هغه ګوتمۍ د چپه لاس په ګوته کړي او د هغه غمی دی سربېره وي.

پاته سوه دا خبره چي ګوتمۍ بايد په کوم لاس کي وي، نو سيوطي رحمه الله وايي: حديثونه په راسته لاس کي د ګوتمۍ په اړه هم منقول سوي دي او په چپه لاس کي هم مګر عمل په هغه حديثو دی چي په هغو کي په چپه لاس د ګوتمۍ يادونه ده، او کوم حديثونه چي د راسته لاس په اړه دي هغه منسوخ ګرځول سوي دي، عدي رحمه الله او داسي نور حضرات د ابن عمر رضي الله عنه دغه حديث نقل کړی دی چي نبي کريم ﷺ به مخکي په راسته لاس ګوتمۍ په ګوته کول مګر بيا يې په چپه لاس په ګوته کول پيل کړل.

د سفر السعادت مصنف ليکلي دي چي په دې اړه مختلف حديثونه نقل سوي دي، په ځينو روايتو کي دا نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ په راسته لاس ګوتمۍ په ګوته کول او په ځينو روايتو کي چپه لاس نقل سوی دی، دغه ټول روايتونه صحيح دي او له هغو څخه دا ثابتيږي چي کله به رسول الله ﷺ ګوتمۍ په راسته کول او کله به يې په چپه لاس، امام نووي رحمه الله دا ليکلي دي چي د ټولو علماوو پر دې اتفاق دی چي د ګوتمۍ په راسته کول هم جائز دي او په چپه لاس هم، مګر د شوافعو په نزد په راسته لاس کول غوره دي ځکه چي راسته لاس په نسبت د چپه لاس

شرف او فضيلت لري ځکه هغه لاس دي د دې زيات حقدار وي چي د هغه د زينت او ښکلا وسي.

﴿۴۱۸۹﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ نَهٰى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ وَالْمُعَصْفَرِ وَعَنْ تَخَتُّمِ الذَّهَبِ وَعَنْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي الرُّكُوعِ. رواه مسلم

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ منعه کړېده (۱)- د وربښمو د مصري جامو د اغوستلو څخه. (۲)- د کسم (د سره رنګ)باندي د رنګ سوي جامو د اغوستلو څخه. (۳)- د سرو زرو د ګوتمۍ د په لاس لو څخه. (۴)- او په رکوع کي د قرانکريم د تلاوت څخه. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۴۸، رقم: ۲۹- ۲۰۷۸.

**د لغاتو حل**: القسي: ثياب من كتان مخلوط بحرير، يوتى بها من مصر (يو ډول مصري جامه)

**تشريح**: قسي يو ډول د ريشمو جامو ته وايي چي د مصر په ښار قص كي به جوړېدل، په ركوع كي د قرآن كريم د ويلو څخه د منع دوې معناوي دي: يو دا چي رسول الله ﷺ د دې څخه منع وفرمايل چي په ركوع يا سجده كي د تسبيح پر ځاى قرآن كريم وويل سي، دوهم دا چي رسول الله ﷺ د دې څخه منع وفرمايل كه يو سړى د قيام په حالت كي د اضطراب او بې اطميناني رويه اختيار كړي او د قرائت پوره كولو څخه پرته ركوع ته ولاړ سي چي د هغه د قرائت څه برخه په ركوع كي واقع سي.

## د سرو زرو ګوتمۍ منعه ده

﴿۴۱۹۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى

د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وليدل

خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ فِي يَدِ رَجُلٍ فَنَزَعَهُ فَطَرَحَهُ فَقَالَ يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ إِلَى جَمْرَةٍ

د يوه سړي په لاس كي د سرو زرو ګوتمۍ، نبي كريم ﷺ د هغه د لاسه څخه را و كښل او ويې غورځول او ورسته يې ورته وفرمايل: په تاسو كي يو سړى د دوږخ د اور د سكروټو اراده كوي

مِنْ نَارٍ فَيَجْعَلُهَا فِي يَدِهِ فَقِيلَ لِلرَّجُلِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

او هغه ګوتمۍ په لاسه وي، كوم وخت چي نبي كريم ﷺ تشريف يوووړ نو هغه سړي ته يې

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذْ خَاتِمَكَ انْتَفِعْ بِهِ قَالَ لَا وَاللّٰهِ لَا آخُذُهُ أَبَدًا وَقَدْ طَرَحَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه مسلم

وويل : ته خپله ګوتمۍ پورته کړه او د دې څخه فائده واخله ، هغه وويل ، يا ، په خدای دي مي قسم وي دا چي دا رسول الله ﷺ غورځولې ده نو زه به يې هيڅکله بيرته نه اخلم . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱٦٥٥، رقم: ٥۲- ۲۰۹۰.

**تشريح**: ددغه حديث څخه څرګنده سوه چي څوک توان لري او هغه د شريعت خلاف يو کار وويني نو هغه دي په خپل لاس سره منع کړي لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (من رايا حد منکم منکرا فليغيره بيده ...الخ) يعني کله چي په تاسو کي يو څوک د شريعت خلاف يو کار ووينې نو هغه دي په لاس منع کړي ... الخ.

## د نبي ﷺ مهر

﴿۴۱۹۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَادَ أَنْ يَكْتُبَ إِلَى كِسْرَى وَقَيْصَرَ وَالنَّجَاشِيِّ فَقِيلَ إِنَّهُمْ لَا يَقْبَلُونَ كِتَابًا إِلَّا بِخَاتَمٍ فَصَاغَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ خَاتَمًا حَلْقَتُهُ فِضَّةً وَنَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللّٰهِ . رواه مسلم وفي رواية للبخاري كَانَ نَقْشُ الْخَاتَمِ ثَلَاثَةَ أَسْطُرٍ مُحَمَّدٌ سَطْرٌ وَرَسُولُ سَطْرٌ وَاللّٰهِ سَطْرٌ .

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی کوم وخت چي رسول الله اراده وکړه ﷺ کسری قيصر او نجاشي ته د اسلام د دعوت د خطونو د لېږلو ، نبي کريم ﷺ ته عرض وسو چي دا خلک دا تحرير نه قبلوي (يعني خط مستند نه ګڼي چي په هغه باندي مهر نه وي) نو نبي کريم ﷺ يو ه ګوتمۍ جوړه کړه چي حلقه يې د سپينو زرو وه او پر هغې باندي د محمد رسول الله الفاظ نقش سوي وه . مسلم، او د بخاري په يوه روايت کي دا الفا ظ دي چي د مُهر په دننه برخه کي درې ليکي وې په يوه ليکه کي محمد ليکلی وو او په دويمه ليکه کي رسول او په دريمه ليکه کي الله ليکل سوی وو .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۳۲۴، رقم: ٥۸۷٥، ومسلم ۳\ ۱٦٥۷، رقم: ٥۸- ۲۰۹۲.

**تشريح**: دلته د گوتمۍ په اړه يوازې د هغه د حلقې (کړۍ) پر يادونه اکتفاء سوې ده او د غمي يادونه يې نده سوې، ځکه چې په گوتمۍ کي گړۍ وي او هغه محل استبعاد هم ديځکه د بيان جواز لپاره د هغه يادونه وسوه، مگر په نورو حديثو کي د غمي ذکر هم دی، په ځينو روايتو کي دادي چي د رسول الله ﷺ د گوتمۍ غمی هم د سپينو زرو وو او په يوه روايت کي دي چي د هغه غمی حبشي يعني د عقيق وو چي وروسته به يې يادونه وسي.

په مُهر نبوي کي چي کوم الفاظ جوړ سوي وه د هغو هيئت امام نووي رحمه الله هغه بيان کړی دی کوم چي مخکي ذکر سوي دي يعني په سربېره ليکه کي (الله)، په منځنۍ ليکه کي (رسول) او په لاندينۍ ليکه کي (محمد) ليکل سوي وو، ځينو حضراتو د دغه مهر دا صورت بيان کړی دی (محمد رسول الله)، والله اعلم.

د رسول الله ﷺ څخه وروسته هغه گوتمۍ بهٔ د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په گوته وه، او د هغه څخه وروسته د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په گوته وه او د هغه څخه وروسته د حضرت عثمان رضي الله عنه په لاس ورغله مگر د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په آخري دور کي هغه گوتمۍ د معيقيب د لاس څخه چي د حضرت عثمان رضي الله عنه خادم وو، په اويس نامي څاه کي ولوېدل، بيا يې هغه ډېره ولټول مگر پيدا يې نه کړل.

علماوو ليکلي دي چي هغه د هغه فتنو او فساد چي د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په آخري دور کي پيدا سو او بيا د هغه څخه وروسته په اسلامي هيواد کي پيدا سو د هغه سبب د دغه گوتمۍ ورکېدل وه ځکه چي هغه گوتمۍ ته الله تعالی داسي برکت ورکړی وو چي د حکومت او مملکت د انتظام او انصرام يوه مؤثره ذريعه وه لکه څرنگه چي د حضرت سليمان عليه السلام د مهر والا گوتمۍ خاصيت وو.

## د نبي ﷺ د گوتمۍ غمی

﴿۴۱۹۲﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ خَاتَمُهُ مِنْ فِضَّةٍ وَكَانَ فَصُّهُ مِنْهُ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ يوه گوتمۍ (مُهر) د سپينو زرو وه او غمی يې هم د سپينو زرو وو. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۲۲، رقم: ۵۸۷۰.

﴿۴۱۹۳﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَبِسَ خَاتَمَ فِضَّةٍ فِي يَمِينِهِ فِيهِ فَصٌّ حَبَشِيٌّ كَانَ يَجْعَلُ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي كَفَّهُ. متفق عليه

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د سپينو زرو ګوتمۍ په ښي لاس کړې وه چي په هغه کي حبشي غمی وو او هغه غمی به يې د ورغوي طرف ته کړی وو. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۱۵، رقم: ۵۸۶۵، ومسلم ۳\۱۶۵۸، رقم: ۶۲- ۲۰۹۴.

**تشريح**: د حبشي څخه مراد عقيق دی او عقيق حبشې ته په منسوب کولو سره حبشي ځکه ورته ويل کيږي چي د عقيقو کان په حبشه او يمن کي وو، يا هغه غمی به د عقيق پر ځای بل ډول غمی وو او هغه به په حبشه کي پيدا کېدل، ځکه هغه ته حبشي وويل سول، يا دا چي هغه غمی تور وو لکه څرنګه چي حبشيان تور وي، په دغه مناسبت سره هغه ته حبشي وويل سول يا دا چي هغه غمی به يو حبشي سړي جوړ کړی وي ځکه نو په حبشي سره تعبير کړل سو، په دغه صورت کي دغه روايت د هغه روايت خلاف نه دی چي په هغه کي بيان سوی دی چي د رسول الله ﷺ د ګوتمۍ غمی هم د سپينو زرو وو مګر که مخکني معنی مراد واخيستل سي يعني دا چي هغه غمی د عقيق وو او د عقيق کان په حبشه کي وو ځکه نو هغه ته حبشي ويل کيدی نو په دغه صورت کي دواړه روايتونه به پر تعدد باندي محمول دي يعني دا به ويل کيږي چي د رسول الله ﷺ د يوې ګوتمۍ غمی د سپينو زرو وو او د بلي ګوتمۍ غمی حبشي يعني د عقيق وو.

﴿۴۱۹۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذِهِ وَأَشَارَ إِلَى الْخِنْصِرِ مِنْ يَدِهِ وَالْيُسْرَى. رواه مسلم.

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ګوتمۍ په دې ګوته کړې وه يعني د چپه لاس په خچې ګوته کي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۵۹، رقم: ۶۳- ۲۰۹۵.

## ګوتمۍ په کومه ګوته کول

﴿۴۱۹۵﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ نَهَانِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَتَخَتَّمَ فِي

إِصْبَعِي هَذِهِ أَوْ هَذِهِ قَالَ فَأَوْمَأَ إِلَى الْوُسْطَى وَالَّتِي تَلِيهَا . رواه مسلم.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ زه د ګوتمۍ په دې ګوته کي د اچولو څخه منعه کړی يم (يعني په مينځنۍ ګوته او د شهادت په ګوته کي) . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۵۹، رقم: ۶۵-۲۰۷۸.

**تشريح**: د منځنۍ او شهادت ګوتي په اړه ددغه حديث څخه څرګنده سوه او د بتي ګوتي او غچۍ ګوتمي ته نژدې ګوتي کي د ګوتمۍ په ګوته کول نه خو د رسول الله ﷺ څخه ثابت دي او نه د صحابه کرامو او تابعينو څخه، ددې څخه معلومه سوه چي د ګوتمۍ په بټه ګوته کول مستحب دي ، د شوافعو او حنفيه رجحان هم دې طرف ته دی مګر دا خبره د نارينوو په اړه ده ، د ښځو لپاره په ټولو ګوتو کي اچول جائز دي ، امام نووي رحمه الله ويلي دي د نارينوو لپاره په منځنۍ او شهادت په ګوته کي ګوتمۍ اچول مکروه تنزيهي دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### ګوتمۍ په راسته لاس کول

﴿۴۱۹۶﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ قال كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ . رواه ابن ماجة و رواه ابوداؤد والنسائي عن علي.

د حضرت عبد الله بن جعفر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د مهر ګوتمۍ په خپل لاس راسته کوله . ابن ماجه او په ابو داؤد او نسائي کي دا د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت کړی دی .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۲۰۳، رقم: ۳۶۴۷.

﴿۴۱۹۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَتَّمُ فِي يَسَارِهِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په چپه لاس کي مهر اچوی . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داو: ۴\۴۳۱، رقم: ۴۲۲۷.

## ريښم او سره زر د نارينه لپاره حرام دي

﴿۴۱۹۸﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ حَرِيرًا فَجَعَلَهُ فِي يَمِينِهِ وَأَخَذَ ذَهَبًا فَجَعَلَهُ فِي شِمَالِهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ هٰذَيْنِ حَرَامٌ عَلَى ذُكُورِ أُمَّتِي. رواه احمد وابوداؤد والنسائي.

د حضرت علي رضی الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ ريښمينه جامه را واخيستل په راسته لاس كي يې كښېښودل او سره زر يې راواخيستل په چپه لاس كي يې كښېښودل او د سادګۍ مطلب زړې جامې اغوستل دي چي ډېر زيب او زينت پكښې نه وي .ابوداؤد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱\۹۶۱، رقم: ۴۰۵۷، والنسائي ۸\۱۶۰، رقم: ۵۱۴۴.

﴿۴۱۹۹﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ رُكُوبِ النِّمورِ وَعَنْ لُبْسِ الذَّهَبِ إِلَّا مُقَطَّعًا . رواه ابوداؤد والنسائي.

د معاويه رضی الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د شرموښ د پوست په زين د سپرېدو څخه منعه كړې ده او نارينه يې د سرو زرو د ګوتمۍ د په لاسولو څخه منعه كړې دى مګر چي د سروزرو مقدار ډېر كم وي (لكه د كمر بند ميخ چي د سروزرو وي نو بيا مباح دي) . ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۳۷، رقم: ۴۲۳۹، والنسائي ۸\۱۶۱، رقم: ۵۱۵۰.

**د لغاتو حل**: النمور: اى جلود النمور وهي السباغ المعروفة. ()

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو چي په لږ اندازه د سرو زرو اباحت ثابتيږي ، دا هم منسوخ سوى دى ، ځينو علماوو دا هم ليكلي دي چي ددغه الفاظو څخه په ظاهره كوم جواز ثابتيږي هغه د حنفيه په نزد پر دې محمول دى د مثال په توګه يو شي ته د سرو زرو آب وركړل سي يا په غمي وغيره كي د سرو زرو مېخ ولګول سي ، يا پر جامو باندي د كرښو وغيره په توګه د سرو زرو كار وكړل سي نو دا د حنفيه په نزد د نارينوو لپاره هم جائز دي .

﴿۴۲۰۰﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلٍ عَلَيْهِ خَاتَمٌ

د حضرت بريده رضی الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ يو سړي ته چي د ژړو ګوتمۍ يې په

مِنْ شَبَهٍ مَا لِي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ الْأَصْنَامِ فَطَرَحَهُ ثُمَّ جَاءَ وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ

گوته کړې وه و فرمایل : څه دي چي زه په تا کي د بتانو بوي حس کوم؟ هغه سړي هغه گوتمۍ و غورځول بیا چي هغه سړی راغلی

حَدِيدٍ فَقَالَ مَا لِي أَرَى عَلَيْكَ حِلْيَةَ أَهْلِ النَّارِ فَطَرَحَهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ

نو د اوسپني گوتمۍ یې په لاس کړې وه ، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : څه دي چي زه تا د دوږخ کالي (زېور) په لاس کړی وینم ، نو هغه گوتمۍ و غورځول او عرض یې وکړ ، اې د الله

مِنْ أَيِّ شَيْءٍ أَتَّخِذُهُ قَالَ اتَّخِذْهُ مِنْ وَرِقٍ وَلَا تُتِمَّهُ مِثْقَالًا . رواه الترمذي

ﷻ رسوله ! د څه شي څخه گوتمۍ جوړه کړم؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : د سپینو زرو څخه او دیوه مثقال څخه یې کم وزن ساته . ترمذي ،

وابوداؤد والنسائي وقال محي السنة و قد صح عن سهل بن سعد في الصداق ان النبي ﷺ قال لرجل التمس ولو خاتما من حديد.

ابو داؤد او نسائي، امام محي السنه وایي ، چي د سهل بن سعد رضي الله عنه په صحیح حدیث کي چي د ښځي د مهر په اړه دی ، دا الفاظ دي چي نبي کریم ﷺ یوه سړي ته وفرمایل: د خپل ښځي د مهر لپاره د یو شي تلاش و کړه ، که څه هم د اوسپني گوتمۍ وي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۱۸، رقم: ۱۷۸۵، وابوداود ۴\ ۴۲۸، رقم: ۴۲۲۳، والنسائي۸\ ۱۷۲، رقم: ۵۱۹۵، وشرح السنة ۱۲\ ۵۹، رقم: ۳۱۳۰.

**د لغاتو حل**: الشبه: النحاس الاصفر ،

**تشريح**: پوره یو مثقال نه وي : دغه منع په اصل کي د احتیاط او تقوا لپاره ده یعني غوره داده چي په گوتمۍ کي تر یو مثقال کم سپین زر وي ، او کوم چي د جواز تعلق دی نو د پوره یوه مثقال گوتمۍ هم جائز ده او غوره داده چي سره زر او سپین زر د اصل په اعتبار ناخوښه دي نو ددې استعمال باید همدومره وي چي د ضرورت مطابق وي ځکه تر دوو یا زیاتو گوتمیو په گوته کول مکروه دي مگر ډېري گوتمۍ جوړول مکروه نه دي په شرط ددې چي هغه یو ځای نه په گوته کوي بلکه په وار وار یې په گوته کوي .

په فتاوی قاضي خان کي ليکلي دي : د اوسپني ، مسو او نورو شيانو ګوتمۍ په ګوته کول مکروه دي او د نارينوو لپاره د سرو زرو ګوتمۍ حرامه ده .

محي السنه چي د ښځو د مَهر په اړه د حضرت سهل رضي الله عنه کوم روايت نقل کړی دی په هغه سره دا څرګندول مقصد دي چي رسول الله ﷺ هغه سړي ته دا وفرمايل چي د ښځي په مَهر کي د ورکولو لپاره مال تيار کړه که څه هم هغه د اوسپني ګوتمۍ وي نو ددې څخه معلومه سوه چي په ذکر سوي روايت کي د ګوتمۍ اچولو کومه منع ثابتيږي هغه د تحريم لپاره نه ده ، که په حقيقت کي د اوسپني ګوتمۍ په ګوته کول حرام وای نو رسول الله ﷺ به د نکاح کونکي سړي ته د اوسپني ګوتمۍ تيارولو لپاره ولي فرمايلای .

د مَهر د مال په اړه د ذکر سوي ارشاد په اړه علماوو ليکلي دي چي ددې مقصد په اصل کي د ښځي په مَهر کي د مال مصرفولو اززښت او ضرورت په زيات تاکيد سره بيانول دي چي د مَهر په توګه څه نا څه مال ضرور ورکل سي که څه هم هغه ادنا شی وي ، ددغه ارشاد څخه دا هم څرګنده سوه چي د اوسپني ګوتمۍ که څه هم منع سوې ده مګر هغه ګوتمۍ د مال متقوم د دائرې څخه وتلې نه ده مګر دا هم کيدای سي چي د اوسپني د ګوتمۍ منع د حضرت سهل رضي الله عنه د ذکر سوي روايت څخه وروسته سوې وي ځکه چي دا خو ثابته ده چي د حضرت سهل رضي الله عنه روايت استقراء سنن او استحکام شرائع څخه مخکي دی او د حضرت بريده رضي الله عنه روايت د هغه وروسته دی نو د حضرت سهل رضي الله عنه روايت به منسوخ وګرځول سي او د حضرت سهل رضي الله عنه دغه روايت د باب المَهر په اول فصل کي تېر سوی دی .

## لس خراب شيان

﴿۴۲۰۱﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُ عَشْرَ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به لس شيان بد ګڼل :

خِلَالٍ الصُّفْرَةَ يَعْنِي الْخَلُوقَ وَتَغْيِيرَ الشَّيْبِ وَجَرَّ الْإِزَارِ وَالتَّخَتُّمَ بِالذَّهَبِ

(۱)- ژړوالی يعني د خلوق د استعمال چي زعفران او داسي نورو څخه جوړ سوي وي . (۲): د سپين ږير واله پټول ، يا خو يې سپين وربښته کښل يا توري نکريزي لګول . (۳): اوږدول د لونګ . (۴)-د سرو زرو ګوتمۍ په لاسول .

وَالتَّبَرُّجَ بِالزِّينَةِ لِغَيْرِ مَحَلِّهَا وَالضَّرْبَ بِالْكِعَابِ وَالرُّقَى إِلَّا بِالْمُعَوِّذَاتِ

(۵)-د ښځي بې ځايه د زينت اظهار كول (يعني يوازي د مېړه لپاره ښځه ځان ته زينت وركولای سي) . (٦)- نرد كول (د يوې لوبې نوم دی چې د چوسر د شطرنج ګوته).(۷)- دم كول پرته د معوذاتو يعني دم كول يا و چا ته ښودل پرته د سورة برب الفلق ، برب الناس څخه چې په دې سره پناه جائزه ده .

وَعَقْدِ التَّمَائِمِ وَعَزْلَ الْمَاءِ لِغَيْرِ مَحَلِّهِ وَفَسَادَ الصَّبِيِّ غَيْرَ مُحَرِّمِهِ. رواه ابوداؤد والنسائي .

(۸)- د كنجكو او منكو تړل يعني د بد نظر او داسي نور د دفعي لپاره (او ځينو د كنجكو او منكونه د جاهليت جادو مراد اخيستل كېدای سي)(۹)- عزل كول يعني د ښځي د مخصوص ځايه څخه مني د باندي غورځول .(۱۰)- بچی خرابول يعني د كوچني د شيدو رودلو په ورځو كي د خپلي كوروالا سره يو ځايوالي كول چې په هغه سره حمل وسي او د كوچني و شيدو ته نقصان ورسيږي ، اخيري شی يعني (۱۰) نمبر نبي كريم ﷺ نه دی حرام كړی. ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۲۷، رقم: ۴۲۲۲، والنسائي ۸\۱۴۱، رقم: ۵۰۸۸.

**د لغاتو حل**: الكِعَاب: فصوص النرد.

**تشريح**: خلوق يو ډول خوشبويي ته وايي چې د زعفران او نورو شيانو څخه جوړيږي ، د خلوق استعمالولو منع يوازي د نارينوو لپاره ده ښځو ته د هغو استعمال صحيح دی ، كه څه هم داسي حديثونه هم نقل سوي دي چې د هغو څخه د نارينوو لپاره د خلوق د استعمال اباحت ثابتيږي مګر داسي حديثونه زيات نقل سوي دي چې د هغو څخه منع ثابتيږي، ددې څخه څرګنديږي چې د اباحت حديثونه منسوخ دي ، د نارينوو لپاره د خلوق استعمال ځكه منع دی چې هغه په خاصه توګه د ښځو خوشبويي ده .

سپين ږېرتوب بدلول: كه د سپينو وېښتانو د كښلو په صورت كي وي يا د تور رنګ لګولو په ذريعه وي، دا په هر صورت منع دی ، مګر د نكرېزو لګول مستثنی دی ځكه چې د نكريزو د جواز په اړه ډېر حديثونه نقل سوي دي ، سپين وېښتان كښل د حنفيه مختار قول د حرمت او كراهت دی .

په (والتبرج بالزينة لغير محلها) كي د حاء لفظ په زور سره دی چې د موضع حل په معنی كي دی يعني هغه ځای چيري چې ښځو ته ښكلا او سنګار كول حلال دي او هغه ځای د هغې

خاوند او د هغې محارم لکه پلار ، ورور وغيره دي، مطلب دادی چې ښځو ته د خپل خاوند او محارمو څخه پرته د نورو خلکو په وړاندې د خپل ښکلا او سنګار څرګندول صحيح نه دي لکه څرنګه چې په قرآن کريم کې فرمايل سوي دي : (ولا يبدين زينتهن الا لبعولتهن او ابائهن ...) ، ځينو حضراتو په محلها کې د محل لفظ د حاء په زېر سره هم ويلی دی چې د حلول څخه دی .

کعاب د کعب جمع ده چې د مهرو په معنی کې ده، چې يو ډول لوبه ده، مطلب دادی چې دغه لوبه منع ده ، د اهل علمو صحابه کرامو د اکثريت په نزد دغه لوبه حرامه وه ، حنفيه شطرنج لوبې ته هم مکروه تحريمي ويلې دي.

رقی د رقيه جمع ده ، چې معنی يې په دم کولو سره د پوه کولو ده ، او د معوذات څخه مراد قل اعوذبرب الفلق او قل اعوذ برب الناس دي، او ددې په حکم کې هغه دعاوي هم شاملې دي چې په حديثو کې نقل سوي دي ، او په اسماء الهي سره هم تعويذ کول شامل دي ، ځينو حضراتو ويلي دي چې د معوذات څخه مراد د قرآن کريم هغه آياتونه دي چې د استعاذه پر معنی مشتمل دي که هغه دغه سورتونه وي يا ددې څخه پرته نور آياتونه وي، خلاصه دا چې د قرآن کريم آياتونه ، په حديثونه کې نقل سوي دعاوي او د اسماء الهي په ذريعه دم او چف کول جائز دي ، ددې څخه پرته په نورو شيانو حرام دي، په خاصه توګه داسې الفاظو په ذريعه چې د هغو معنی معلومه نه وي ، دا حرام دي بلکه د کفر په حد کې د داخلېدو بېره هم ده .

تمائم د تميمه جمع ده ، او معنی يې د هغه دانو او هډوکو ده چې د هغه په يو ځای کولو سره به عربو د ماشومانو د نه نظر کېدو لپاره د هغوی په غاړه کول، دا د جاهليت د زمانې طريقه وه مګر اسلام ددې څخه منع وکړه ، ځينې حضرات وايې چې د تمائم څخه مراد تارونه او دم دی چې د هغه نوعيت مشرکانه وي او د جاهليت په زمانه کې رواج وو ، مګر هغه تعويذونه وغيره چې په هغو کې د قرآن کريم آياتونه، نقل سوي دعاوي او د الله تعالی اسماء ليکلي وي ، په غاړه کول جائز دي، لکه څرنګه چې په حصن حصين کې د حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ د روايت څخه ثابتيږي .

بې ځايه عزل: ددې مطلب دادی چې د حمل کېدو د بيرې عزل کول په هغه صورت کې جائز دی کله چې د ښځې رضا تر لاسه وي که د هغې رضا نه وي او عزل وکړل سي نو داسې عزل ته بې ځايه ويل کيږي چې د هغه څخه منع په دغه حديث کې راغلې ده مګر که چيرې ښځه ازاده نه وي بلکه مينزه وي نو هغه مينزه محل عزل ده ځکه د هغې د خوښې څخه پرته عزل کول جائز دي.

د ماشوم د خرابولو څخه مطلب دادی چې د هغه ښځې سره صحبت وکړل سي چې د هغې په

غږ کي تی رودونکی ماشوم وي او د هغې سره د کوروالي په نتیجه کي هغه حامله سي ، د دغه عمل په وجه د هغې شیدې خرابيږي او هغه ماشوم ته تاوان رسيږي ، ځکه تي رودونکي ښځي سره کوروالي کول ماشوم ته تاوان رسول دي ، د تي ورکونکي ښځي سره کوروالي کولو ته غیل وایي او ددې یادونه په باب المباشرت کي سوې ده .

که څه هم رسول الله ﷺ دې ته حرام نه ویل: ددې مطلب دادی که څه هم رسول الله ﷺ د تي ورکولو په زمانه کي د ښځي سره کوروالي کولو او ماشوم ته تاوان رسول نه خوښول مگر دا یې حرام نه گرځول ځکه د منکوحه ښځي سره جماع کول حلال دي او محض د حمل د احتمال چي د هغه ماشوم سره د ذکر تاوان رسېدو تعلق دی ، هغه ښځه نه حرامیږي .

## د ښځي لپاره پایزیبونه حرام دي

﴿۴۲۰۲﴾: وَعَنِ الزُّبَيْرِ أَنَّ مَوْلَاةً لَهُمْ ذَهَبَتْ بِابْنَةِ الزُّبَيْرِ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ

د حضرت زبیر ﷛ څخه روایت دی چي د هغه ازاده کړي مینځي د زبیر ﷛ لور د حضرت عمر بن خطاب په خدمت کي حاضره کړه

وَفِي رِجْلِهَا أَجْرَاسٌ فَقَطَعَهَا عُمَرُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَعَ كُلِّ جَرَسٍ شَيْطَانٌ. رواه ابوداؤد.

او د انجلۍ په پښو کي پایزیب وو ، حضرت عمر ﷛ د هغې څخه پایزیب پرې کړه او ورته یې وفرمایل: ما د نبي کریم ﷺ څخه دا اورېدلي دي چي د هر پایزیب سره شیطان وي . ابوداؤد .

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۴۳۲، رقم: ۴۲۳۰.

**تشریح**: مطلب دادی چي جرس (ژنگ) د شیطان باجه ده، لکه څرنگه چي فرمایل سوي دي : (الجرس مزامیر الشیطان) هر ژنگ د شیطان سره وي ، ددې مطلب دادی چي شیطان هر ژنگ وهونکي شي ته خلک مائل کول او د هغوی په نظر کي د هغه اواز زیات زړه کښونکي جوړوي.

﴿۴۲۰۳﴾: وَعَنْ بُنَانَةَ مَوْلَاةِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَيَّانَ الْأَنْصَارِيِّ كَانَتْ عِنْدَ

د حضرت عبد الرحمن بن حیان انصاري ﷛ مینزه بنانه روایت کوي ، هغه د بي بي عائشې ﷝

عَائِشَةَ إِذْ دُخِلَتْ عَلَيْهَا بِجَارِيَةٍ وَعَلَيْهَا جَلَاجِلُ يُصَوِّتْنَ فَقَالَتْ لَا تُدْخِلْنَهَا

په خدمت کي حاضره سوه چي و هغې ته يوه کوچنۍ انجلۍ راوستل سوه چي پايزيبونه اچولي وه او هغه شرنګاری کوی ، بي بي عائشې رضي الله عنها هغې ښځي ته چي انجلۍ يې راوستلې وه وويل چي دا انجلۍ تر هغه وخته پوري زما و کور ته مه راوله

عَلَيَّ إِلَّا أَنْ تُقْطِعَنَّ جَلَاجِلَهَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ جَرَسٌ . رواه ابوداؤد.

ترڅو پوري چي د ا پايزيب ور څخه پرې نه کړې او و يې نه غورځوې ، ځکه چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي په کوم کور کي چي پايزيبونه وي و هغه کور ته ملائکي نه راځي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\۴۳۳، رقم: ۴۲۳۱.

## د مجبوری په وخت کي د سروزرو استعمال

﴿۴۲۰۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ أَنَّ جَدَّهُ عَرْفَجَةَ بْنَ أَسْعَدَ قُطِعَ

د حضرت عبد الرحمن رضي الله عنه بن طرفه څخه روايت دی چي د هغه د نيکه عرفجه بن اسعد پزه د

أَنْفُهُ يَوْمَ الْكُلَابِ فَاتَّخَذَ أَنْفًا مِنْ وَرِقٍ فَأَنْتَنَ عَلَيْهِ فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان يتخذ أَنْفًا مِنْ ذَهَبٍ . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي .

کلاب په ځاي په جګړه کي پرې سوې وه ، هغه د سپينو زرو پزه جوړه کړه ، په هغه کي بدبويي پيدا سوه ، نبي کريم ﷺ حکم ورته وکړ چي ته د سرو زرو پزه جوړه کړه . ترمذي ، ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۱۱، رقم: ۱۷۷۰، وابوداود ۴\۴۳۴، رقم: ۴۲۳۲، والنسائي ۸\۱۶۳، رقم: ۵۱۶۱.

**تشريح**: کلاب د يو ځای نوم دی ، هلته جګړه وسوه چي په هغه کي حضرت عرفجه رضي الله عنه هم ګډون درلود ، ددغه جګړې په دوران کي د هغه پزه پرېکړل سول چي د هغه په وجه هغه د سپينو زرو د پزي جوړولو سره پر مخ ولګول مګر په هغه کي بدبويي پيدا سوه نو رسول الله ﷺ د سرو زرو د پزي جوړولو اجازه ورکړه ، ددغه حديث په وجه علماوو د سروزرو د پزي جوړولو او همدارنګه په غاښو کي د سپينو زرو تار لګول مباح ګرځولي دي ، مګر امام محمد رحمة الله عليه په غاښو کي د سرو زرو د تارو لګولو ته هم جائز ويلي دي .

## د سرو زرو په باره کې وعید

﴿۴۲۰۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَحَبَّ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي خپل محبوب

أَنْ يُحَلِّقَ حَبِيبَهُ حَلْقَةً مِنْ نَارٍ فَلْيُحَلِّقْهُ حَلْقَةً مِنْ ذَهَبٍ وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ

ته د اور حلقه اچول خوښوي هغه دي ورته د سرو زرو حلقه جوړه کړي او څوک چي خپل محبوب

يُطَوِّقَ حَبِيبَهُ طَوْقًا مِنْ نَارٍ فَلْيُطَوِّقْهُ طَوْقًا مِنْ ذَهَبٍ وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُسَوِّرَ

ته د اور طوق اچول خوښوي، هغه ته پکار ده چي هغه ته د سرو زرو طوق واچوي او څوک چي

حَبِيبَهُ سِوَارًا مِنْ نَارٍ فَلْيُسَوِّرْهُ سِوَارًا مِنْ ذَهَبٍ وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِالْفِضَّةِ

فَالْعَبُوا بِهَا. رواه ابوداؤد.

خپل محبوب ته د اور بنګړي اچول خوښوي هغه ته پکار ده چي هغه ورته د سرو زرو بنګړي ور په لاس کړي، لیکن و تاسو ته د سپینو زرو استعمال جائز دی په دې سره چي څنګه غواړئ و لوبېږئ (د ضرورت څخه زیات د زېوراتو استعمال په لهو و لعب کي داخل دي). ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۴۳۶، رقم: ۴۲۳۷.

**تشریح**: د حدیث آخري الفاظ (فلعبوا بها)، اصل معنی یې دا ده چي تاسو په سپینو زرو لوبي مه کوئ یعني د سپینو زرو ګېڼې جوړوی او خپلو ښځو ته یې ورکوئ او د هغه ګوتمۍ جوړوئ او خپله یې په ګوته کوئ او که د خپل وسلې لکه توره وغیره زینت او ښکلا وغواړئ نو د هغه لپاره هم سپین زر استعمالوئ مګر د حدیث په الفاظو کي دې ته اشاره ده چي د دنیا زینت او ښکلا او د دنیا ګېڼې په لهو او لعب کي داخل دي که څه هم په حقیقت کي مباح دي، یا دې ته اشاره ده چي د ګېڼو لرونکي ښځي سره تفریح او زړه لګول د هغې د ګېڼو سره لوبي کول دي.

ابن مالک رحمه الله وايي: په یو شي سره لوبي کول په هغه کي د خواهش مطابق د تصرف کولو برابر دی، د الفاظو مطلب دادی چي د خپلو ښځو د ګېڼو څخه کوم ډول چي غواړئ په هغه کي سپین زر استعمالوئ مګر نارینوو ته یوازي په ګوتمۍ کي او د جنګ په نورو وسلو کي د ښکلا لپاره د سپینو زرو استعمال جائز دی.

﴿۴۲۰۶﴾: وَعَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د بي بي اسماء ﷺ د يزيد د لورځخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

أَيُّمَا امْرَأَةٍ تَقَلَّدَتْ قِلَادَةً مِنْ ذَهَبٍ قُلِّدَتْ فِي عُنُقِهَا مِثْلَهُ مِنَ النَّارِ يَوْمَ

كومه ښځه چي د سرو زرو امېل په غاړه كړي ، د قيامت په ورځ به د هغې په غاړه كي د هغه په

الْقِيَامَةِ وَأَيُّمَا امْرَأَةٍ جَعَلَتْ فِي أُذُنِهَا خُرْصًا مِنْ ذَهَبٍ جُعِلَ فِي أُذُنِهَا مِثْلُهُ

مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه ابوداؤد والنسائي .

شان د اور امېل واچول سي او كومه ښځه چي په خپلو غوږو باندي دسرو زرو والي په غوږو كړي د قيامت په ورځ به د هغې په غوږو كي د هغو په شان د اور والي واچول سي . ابو داؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۳۷، رقم: ۴۲۳۸، والنسائي ۸\۱۵۷، رقم: ۵۱۳۹.

﴿۴۲۰۷﴾: وَعَنْ أُخْتٍ لِحُذَيْفَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ أَمَا لَكُنَّ فِي الْفِضَّةِ مَا تَحَلَّيْنَ بِهِ أَمَا إِنَّهُ لَيْسَ مِنْكُنَّ امْرَأَةٌ تَحَلَّى ذَهَبًا تُظْهِرُهُ إِلَّا عُذِّبَتْ بِهِ . رواه ابوداؤد والنسائي .

د حضرت حذيفه ﷺ خور بيان كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اې ښځو ! ستا سو لپاره سپين زر كافي نه دي چي تاسو د دې زر ځخه كالي جوړ كړئ ، اګاه سئ ! په تاسو كي چي كومه ښځه د سرو زرو زېور جوړوي او بيا يې ښېله موقع د هغو اظهار كوي نو هغې ته به د زرو په وجه عذاب وركول كيږي . ابو داؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۳۶، رقم: ۴۲۳۷، والنسائي ۸\۱۵۷، رقم: ۵۱۳۸.

**تشريح**: د ذكر سوي حديث څخه دا څرګنديږي چي ښځو لره يوازي د سرو زرو استعمال منع دى ، كومه ښځه چي د سرو زرو ګېڼې استعمالوي هغه به په حديث كي د ذكر سوي وعيد مورد وي او دا چي ښځو لره محض د سپينو زرو ګېڼې مباح دي حالانكه حقيقت دادى چي د ښځو لپاره دواړه مباح دي، هغوى د سرو زرو ګېڼې هم استعمالولاى سي او د سپينو زرو هم، علماوو

د دغه حديث مختلف تاويلونه بيان كړي دي، ځيني حضرات وايي چي مخكي دا حكم وو چي د سرو زرو استعمال د ښځو لپاره هم مباح نه وو مګر وروسته د هغه روايت په ذريعه دغه حكم منسوخ سو كوم چي حضرت علي رضي الله عنه نقل كړى دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: حرير (ريښم) او سره زر زما د امت د خلكو لپاره حرام دي، نو د دغه ارشاد څخه ثابته سوه چي ښځو لره سره زر او ريښم مباح دي، ځينو علماوو ويلي دي چي په ذكر سوو حديثو كي چي كوم وعيد بيان سوى دى د هغه تعلق د هغه ښځو سره دى چي د زكوة ادا كولو څخه پرته ګاڼې استعمالوي او ځيني حضرات وايي چي ذكر سوى وعيد د هغه ښځو په اړه دى چي د ګاڼو په استعمال سره پردو ښځو ته ځان ښيي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### كه د جنت كالي غواړي

﴿۴۲۰۸﴾: عَنْ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْنَعُ أَهْلَهُ الْحِلْيَةَ وَالْحَرِيرَ وَيَقُولُ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ حِلْيَةَ الْجَنَّةِ وَحَرِيرَهَا فَلَا تَلْبَسُوهَا فِي الدُّنْيَا. رواه النسائي.

د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به زيور (كالي) او وريښمو والا ته فرمايل: كه تاسو د جنت كالي (زيور) او وريښم خوښوئ نو په دنيا كي د اشيان مه اغوندئ.

**تخريج**: سنن النسائي ١٥٦\٨، رقم: ٥١٣٦.

### ګوتمۍ

﴿۴۲۰۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ خَاتَمًا فَلَبِسَهُ قَالَ شَغَلَنِي هَذَا عَنْكُمْ مُنْذُ الْيَوْمَ إِلَيْهِ نَظْرَةٌ وَإِلَيْكُمْ نَظْرَةٌ ثُمَّ أَلْقَاهُ. رواه النسائي

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم يوه ګوتمۍ جوړه كړه او هغه يې په

لاس کړه ، بیا یې وفرمایل: زه نن دې ګوتمۍ ستاسو څخه مشغوله کړم ، کله زه و دې ته ګورم او کله تاسو ته په دې ویلو سره یې هغه وکښل. نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ۸\ ۱۹۵، رقم: ۵۲۹۳.

**تشريح**: په ظاهره دا معلومیږي چې په حدیث کې د کومې ګوتمۍ ذکر سوی دی هغه د سرو زرو وه.

## کوچنیانو ته سره زر حرام دي

﴿۴۲۱۰﴾: وَعَنْ مَالِكٍ قَالَ أَنَا أَكْرَهُ أَنْ يُّلْبَسَ الْغِلْمَانُ شَيْئًا مِّنَ الذَّهَبِ لِأَنَّهُ بَلَغَنِيْ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ التَّخَتُّمِ بِالذَّهَبِ فَأَنَا أَكْرَهُ لِلرِّجَالِ الْكَبِيْرِ مِنْهُمْ وَالصَّغِيْرِ. رواه في الموطأ

د حضرت مالک ﷺ څخه روایت دی چې زه دا نه خوښوم چې و کوچنیانو ته د سرو زرو شیان په وا غوندم ځکه چې ما ته معلومه سوې ده چې رسول الله ﷺ د سرو زرو د ګوتمۍ څخه منعه کړېده ، زه چې کوم شیان د لویانو لپاره نه خوښوم نو د کوچنیانو لپاره یې هم نه خوښوم. مؤطا

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\ ۹۱۱، رقم: ۴.

**تشريح**: لکه څرنګه چې د نارینوو لپاره د سرو زرو د یو شي استعمال یا هلکانو ته استعمال منع دی همدرانګه د سپینو زرو شیان هم منع دي پرته د ګوتمۍ څخه او د رېښم جامه هم د سرو زرو په حکم کې ده.

==========

# بَابُ النِّعَالِ (د څپلیو بیان)

نعال د نعل جمع ده او نعل هغه شي ته وایي چې د هغه په ذریعه پښې د مځکې څخه ساتل کیږي، د کوم شي په ذریعه چې د پښو ساتنه کیږي یعني څپلۍ ، د هغه حیثیت او ډول په هرې زمانې کې او د هر قوم په خلکو کې مختلف وي ، که هغه د څپلیو په صورت کې وي یا د بوټو وغیره په شکل کې وي، ددغه باب اصل مراد د رسول الله ﷺ د څپلیو هیئت او صفات بیانول دي چې په هغه زمانه کې په عربو کې رواج وو، په هغه زمانه کې هم څپلۍ ډول ډول وې ځکه نو د باب عنوان په جمع یعني نعال سره ذکر سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نبي ﷺ څپلې

﴿۴۲۱۱﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُ النَّعْلَ الَّتِي لَيْسَ فِيهَا شَعَرٌ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ د داسي څپلې په پښو کولو کي ليدلي دی چي په هغه کي وريښته نه وه. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۰۸، رقم: ۵۸۵۱.

﴿۴۲۱۲﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ اِنَّ نَعْلَ النَّبِيِّ ﷺ كَانَ لَهَا قِبَالَانِ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په چوټو کي دوې تسمې وې (يعني يوه تسمه يې په بټه ګوته کي او بله تسمه په منځنۍ ګوته کي). بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۱۲، رقم: ۵۸۵۷.

**د لغاتو حل**: قبالان: زمام النعل وهو السير، اى الجلد، الذي يكون بين الاصبعين. (تسمې)

**تشريح**: قبال د څپليو تسمې ته وايي چي د ګوتو په مينځ کي وي، د رسول الله ﷺ څپليو مبارکو دوې تسمې درلودې چي يوه تسمه به د بټې ګوتې او د هغه سره په څنګ کي ګوتي په مينځ کي وه او بله تسمه به د منځنۍ ګوتي او د هغه سره په څنګ کي ګوتي کي وه، دغه څپلې په هغه زمانه کي د عربو د څپليو په توګه استعمالېدلې.

### د څپليو اهميت

﴿۴۲۱۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ غَزَوْنَاهَا يقول اسْتَكْثِرُوا مِنَ النِّعَالِ فَإِنَّ الرَّجُلَ لَا يَزَالُ رَاكِبًا مَا انْتَعَلَ. مسلم

د جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي په يوه غزا کي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واورېدل چي ډېري څپلې رانيسئ ځکه چي ترڅو پوري د يو سړي څپلې په پښو وي د سپور (سپاره) په ډول دی. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۳\۱۶۶۰، رقم: ۶۶-۲۰۹۶.

**تشريح**: كوم څوک چي څپلۍ په پښو کوي نو هغه يقينا د لوڅي پښو سړي په نسبت زيات تېز ځي او د هغه پښې هم د تکليف او تاوان څخه خوندي وي، د دغه حقيقت بيانولو لپاره د څپلۍ په پښو کونکي سړي ته د سپاره په مثل ويل سوي دي، په دغه ارشاد کي دې خبري ته هم توجه سوې ده چي د سفر په اسبابو کي هغه شيان چي د سفر په دوران کي د ځان سره ضروري وي چي د هغو ضرورت پېښيږي.

## اول راسته څپلۍ په پښو کوی

﴿۴۲۱۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي څوک څپلۍ په

وَسَلَّمَ إِذَا انْتَعَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَبْدَأْ بِالْيَمِينِ وَإِذَا نَزَعَ فَلْيَبْدَأْ بِالشِّمَالِ لِيَكُنْ الْيُمْنَى أَوَّلَهُمَا تُنْعَلُ وَآخِرَهُمَا تُنْزَعُ. متفق عليه

پښو کوي نو اول دي يې په راسته پښه کوي او کله چي څپلۍ کاږي نو د چپه پښې څخه دي يې کاږي چي راسته پښه په پښو کولو کي اوله سي او په کښلو کي دوهمه سي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۱۱، رقم: ۵۸۵۶، ومسلم ۱۳\۱۶۶۰، رقم: ۶۷ - ۲۰۹۷.

**تشريح**: په ذکر سوې مسئله کي قاعده داده چي کوم عمل فضيلت لري په هغه کي د راسته خوا څخه پېل کول مستحب دي او کوم عمل چي داسي نه وي نو په هغه کي د چپه خوا څخه پېل کول کار دي، څپلۍ په پښو کړل مسجد ته د تلو او نورو نېکو اعمالو ذريعه او وسيله ده ځکه د څپلۍ په پښو کولو په وخت کي د راسته پښې څخه پېل کول مستحب دي، د دغه قاعدې په رڼا کي دا هم مستحب دي چي مسجد ته د داخلېدو په وخت کي اول راسته پښه ابښودل پکار دي او د مسجد څخه د وتلو په وخت کي اول چپه پښه ابستل پکار دي، د دې پر خلاف بيت الخلاء ته د تلو په وخت کي اول چپه پښه دننه کول پکار دي او د راوتلو په وخت کي اول راسته پښه ايستل پکار دي، د دې څخه پر ته دا هم بايد په فکر کي وي چي د چپه پښې په مقابل کي راسته پښې ته د فضيلت او غوره والي درجه تر لاسه ده او د هغې تکريم کول پکار دي او تکريم يې دادی چي کله څپلۍ په پښو کيږي نو مخکي دي په راسته پښه په پښو کيږي او کله چي څپلۍ کاږي نو اول دي يې د چپه پښې څخه کاږي تر څو راسته پښه د چپې پښې په نسبت زيات وخت

په څپلۍ کي وي، يعني دا د راسته پښې د احترام ذريعه ده پر دې باندي مسجد ته ننوتل او د هغه څخه وتل هم قياس کېداى سي.

## يوه څپلۍ په پښه کول منع دي

﴿۴۲۱۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَمْشِي أَحَدُكُمْ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ لِيُحْفِهِمَا جَمِيعًا أَوْ لِيُنْعِلْهُمَا جَمِيعًا. متفق عليه

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هيڅوک دي په يوه چپلکه کي نه ګرځي، يا دي دواړي پښې لڅي وي يا په دواړو پښو څپلۍ اغوندئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۰۹، رقم: ۵۸۵۵، ومسلم ۱۳\۱۶۶۰، رقم: ۶۸ – ۲۰۹۷.

**تشريح** مطلب دا دى چي کله څپلۍ په پښو کوي نو په دواړو پښو دي يې کوي او که يې نه په پښو کوي نو دواړي پښې دي لوڅي وي، په يوه پښه څپلۍ کول او بله لوڅه کېدل مکروه تنزيهي دي ځکه چي دغه طريقه د تهذيب خلاف ده، دوهم دا چي د پښو پورته او کښته کېدل د لوېدو سبب ګرځي په خاصه توګه په هغه صورت کي کله چي څپلۍ پورته او مځکه لوړه او کښته وي، علماوو له دې سره د يوه لاس د لستوڼي څخه را ايستل هم شامل کړي دي که يو سړى د قميص وغيره په يوه لستوڼي کي لاس دننه کړى وي مګر په دوهم لستوڼي کي يې لاس دننه کړى نه وي نو د هغه حکم هم دغه دى، همدارنګه په يوه پښه څپلۍ کول او په بله پښه موزه کول هم دغه حکم لري.

﴿۴۲۱۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا انْقَطَعَ شِسْعُ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي د چا د څپلۍ تسمه

نَعْلِهِ فَلَا يَمْشِ فِي نَعْلٍ وَّاحِدَةٍ حَتّٰى يُصْلِحَ شِسْعَهُ وَلَا يَمْشِ فِي خُفٍّ وَّاحِدٍ وَ

وشکېږي نو په يوه څپلۍ سره دي نه ګرځي ترڅو پوري چي د هغه بلي څپلۍ تسمه يې جوړه کړې نه وي او نه دي تګ کوي په يوه موزه کي

لَا يَأْكُلْ بِشِمَالِهِ وَلَا يَحْتَبِي بِالثَّوْبِ الْوَاحِدِ وَلَا يَلْتَحِفُ الصَّمَّاءَ. رواه مسلم

او نه دي په چپه لاس باندي خوراک کوي او نه دي داسي کالي اغوندي چي په کښېنستلو سره

يې ستر معلوميږي او نه دي داسي جامه اغوندي چي دواړه لاسونه يې د ننه راسي او. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۳\۱۶۶۱، رقم: ۷۱- ۲۰۹۹.

**د لغاتو حل**: شسع: هو احد سيور اى جلود النعل المشدود في الزمام. الصماء: قيل لها صماء، لانه يسد على يديه ورجليه المنافذ كلها كالصخرة الصماء التي ليس فيها خرق ولاصدع.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د نبي كريم ﷺ د څپليو تسمې

﴿۴۲۱۷﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ لِنَعْلِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَالاَنِ مُثَنًّى شِرَاكُهُمَا. رواه الترمذي

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په دوو څپليو كي دوې دوې تسمې وې او هره تسمه غبرګه وه. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۱۲، رقم: ۱۷۷۲.

### په ولاړه څپلۍ په پښو كول

﴿۴۲۱۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْتَعِلَ الرَّجُلُ قَائِمًا. رواه ابوداؤد ورواه الترمذي وابن ماجة عن ابي هريرة.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د دې څخه منعه كړېده چي سړی په ولاړه باندي څپلۍ په پښو كړي. ابوداؤد، او په ترمذي كي دا روايت د ابو هريره رضي الله عنه څخه نقل كړی دی

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۲۷۶، رقم: ۴۱۳۵.

**تشريح**: دغه منع په هغه صورت كي ده كله چي په دربدو سره د څپلۍ په پښو كولو كي تكليف وي يعني داسي څپلۍ وي چي د هغه په پښو كولو او د تسمو په تړلو كي لاس رسېدل ګران وي، كنه نو مطلق د څپليو په اړه دغه منع نسته.

## يوه څپلۍ په پښو کول

﴿۴۲۱۹﴾: وَعَنِ القاسم بن محمد عن عَائِشَةَ قَالَتْ رُبَّمَا مَشَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ ، وفي رواية انها مشت بنعل واحدة. رواه الترمذي و قال هذا اصح.

حضرت قاسم بن محمد رضي الله عنه د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ به په ځينو وختو کي په يوه چپلې اغوستلو سره تلی او په يوه بل روايت کي دا الفاظ دي چي بي بي عائشه رضي الله عنها په يوه چپل په پښو کولو سره ولاړل. ترمذي ويلي چي دا روايت زيات صحيح دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۱۴، رقم: ۱۷۷۷.

**تشريح**: په کومو حديثونو کي چي په يوه پښه کي د څپلۍ په پښو کولو سره د ګرځېدو منع راغلې ده دغه حديث د هغه بالکل خلاف دی، علماوو ددغه حديث په صحيح کېدو د شک او شبهې اظهار کړی دی او ليکل يې دي که دغه حديث صحيح ومنل سي نو په هغه صورت کي به د رسول الله ﷺ دغه عمل د نادر په درجه کي وي او دا چي ددې تعلق به له کور سره وي نه له دباندي سره، يعني رسول الله ﷺ به په کور کي دننه د يوې څپلۍ په پښه کولو سره ګرځېدی او هغه د يو مجبورۍ په وجه، يا د بيان جواز لپاره چي دا معلومه سي چي د يوې څپلۍ په پښه کولو سره ګرځېدل بالکل حرام نه دي، ددې څخه معلومه سوه چي کوم شی د امت په اړه مکروه تنزيهي دی د هغه د شارع په عمل کي راتلل د هغه شي د اصل د جواز څرګندولو لپاره وي، په دې اعتبار سره هغه شی ګويا د شارع په حق کي نه مکروه کيږي بلکه د يو شي جواز بيانول پر شارع واجب دي ، دغه نکته صاحب مواهب لدنيه د رسول الله ﷺ په ولاړه اوبو څښلو په ضمن کي هم کړې ده .

## څپلۍ وکاږه کښېنه

﴿۴۲۲۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مِنَ السُّنَّةِ إِذَا جَلَسَ الرَّجُلُ أَنْ يَخْلَعَ نَعْلَيْهِ فَيَضَعَهُمَا بِجَنْبِهِ. رواه ابو داؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي دا طريقه سنت ده چي يو سړی چيري کښېني نو

خپلي چپلکي دي و کاږي او خپل په بغل کي دي يې کښېږدي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۷۷، رقم: ۴۱۳۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي د څپليو سره دي کښېني بلکه هغه دي و کاږي چي د مجلس د ادابو تقاضا ده او د تهذيب علامه هم ده، او څپلی دي خپل چپه خوا ته کښېږدي چي د راسته خوا تکريم وسي ، مخته دي يې هم نه ايږدي (که چيري په مسجد وغيره کي ناست وي) چي د قبلې د تعظيم خلاف نسي او د غلا کېدو د بيري څخه شا ته دي يې هم نه ايږدي .

## د نجاشي له طرفه تحفه

﴿۴۲۲۱﴾: وَعَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّجَاشِيَّ أَهْدَى لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُفَّيْنِ أَسْوَدَيْنِ سَاذَجَيْنِ فَلَبِسَهُمَا . رواه ابن ماجة و زاد الترمذي عن ابي بريدة عن ابيه ثم توضأ ومسح عليها.

حضرت ابن بريده ﷺ د خپل پلاره څخه نقل کوي چي نجاشي پاچا د رسول الله ﷺ په خدمت کي دوې ساده توري موزې د تحفې په ډول را ولېږلې ، نبي کريم ﷺ هغه په پښو کړې.ابن ماجه،او د ترمذي د ابی بريده ﷺ څخه دا روايت بيان کړي دی ، په هغه کي دا الفاظ دي ، نبي کريم ﷺ هغه موزې په پښو کړې وروسته يې اودس وکړ او پر هغو موزو يې مسحه وکړه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۱۴، رقم: ۲۸۲۰، وابن ماجه ۱\۱۸۲، رقم: ۵۴۹.

**تشريح**: هغه موزې چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي وړاندي سوې نو رسول الله ﷺ دا پلټنه ونه کړل چي دغه موزې د کوم پوست دي ، ايا د هغه دباغت سوی دی که يا؟ او دغه موزې د مردار حيوان دي که د ذبح سوي حيوان؟ ددغه خبرو د پوښتنه کولو څخه پرته رسول الله ﷺ هغه موزې په پښو کړې ، ګويا رسول الله ﷺ د هغه موزو د ظاهري صورت حال اعتبار وکړ چي په ظاهر کي پر هغه باندي د نجاست وغيره اثار نه وه ځکه نو هغه يې پاکي وګڼلې ، له دې څخه د نوو جامو ، تغر او نورو شيانو حکم هم معلوم سو که پر هغه باندي په ظاهره نجاست وغيره نه وي نو هغه به پاک ګڼل کيږي .

=========

# بَابُ التَّرَجُّلِ (د ږمونځ کولو بیان)

ترجل په عربي ژبه کي ژمونځولو ته وايي که د هغه تعلق د سر ژمونځولو سره وي يا د ږيري سره وي مګر په عامه توګه د ترجل استعمال د سر ژمونځولو په معنی کي وي او د ږيري ژمونځول د تسريح په لفظ سره بيانوي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حائضې بدن ناپاک نه دی

﴿۴۲۲۲﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أُرَجِّلُ رَأْسَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا حَائِضٌ. متفق عليه.

د بي بي عائشې ﷺ څخه روايت دی چي ما به د حيض په ورځو کي د نبي کريم ﷺ سر ور ږمونځوی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۶۸، رقم: ۵۹۲۹، ومسلم ۱\۲۴۴، رقم: ۹- ۲۹۷.

**تشريح**: د دغه حديث څخه ثرګنده سوه چي د حائضې ښځي بدن ناپاک نه وي او دا چي د هغه حائضې ښځي سره اختلاط (يو ځاېوالی) جائز دی.

### پنځه فطري خبري

﴿۴۲۲۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ اَلْفِطْرَةُ خَمْسٌ اَلْخِتَانُ وَالِاسْتِحْدَادُ وَقَصُّ الشَّارِبِ وَتَقْلِيمُ الْأَظْفَارِ وَنَتْفُ الْإِبْطِ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و فرمايل: پنځه شيان فطري (پيدائشي) دي يعني د ټولو انبياؤ کرامو په نيزد سنت دي (او هغه دادي) (۱)- سنتي کول. (۲)- د نامه لاندي ورېښتان خرول. (۳)- د برېتو کوچني کول. (۴)- نوکان پرېکول. (۵)- د بغلو ورېښتان کښل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۴۹، رقم: ۵۸۹۱، ومسلم ۱\۲۲۲، رقم: ۵۰- ۲۵۷.

**تشريح**: د فطرت مطلب دادی چي دغه پنځه شيان د ټولو انبياء کرامو عليهم السلام په شريعت

كي مسنون راغلي دي، څرګنده دي وي چي د فطرت سره اړوند حديث د کتاب په لومړنۍ برخه کي په باب السواک کي هم تېر سوی دی او هلته لس شيان په فطرت کي شمېرل سوي دي او دلته د پنځو شيانو بيان سوی دی، ددې څخه معلومه چي نه خو هلته حصر مقصد وو او نه دلته بلکه مراد دادی چي کوم شيان د ټولو انبياء کرامو عليهم السلام د سنت کېدو په وجه د فطرت درجه لري په هغو کي لس شيان دادي (کوم چي په باب السواک کي بيان سوي دي) او بيا په هغه لسو شيانو کي د پنځو شيانو په بېلولو سره بيان سوي دي.

## د مشركانو مخالفت

﴿۴۲۲۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم خَالِفُوا الْمُشْرِكِينَ اَوْفِرُوا اللِّحَى وَأَحْفُوا الشَّوَارِبَ. وفي رواية انهكوا الشوارب واعفوا اللحى. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مشركانو مخالفت كوئ يعني ږيره لويوئ او برېتونه كوچني كوئ (يعني مشركان ږيره خروي او برېتونه پرېږدي) او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي برېتونه ښه غچي كوئ (مګر داسي نه چي خرولي يې وي) او ږيري اوږدې كړئ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۵۱، رقم: ۵۸۹۳، ومسلم ۱\۲۲۲.

## د زائدو وېښتانو صفا كولو وخت

﴿۴۲۲۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ وُقِّتَ لَنَا فِي قَصِّ الشَّارِبِ وَتَقْلِيمِ الْأَظْفَارِ وَنَتْفِ الْإِبِطِ وَحَلْقِ الْعَانَةِ أَنْ لَا نَتْرُكَ أَكْثَرَ مِنْ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً. رواه مسلم.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي زموږ لپاره د وربېښتانو د غچي كېدو او نوكانو د پرېكولو د بغل د وربېښته د كښلو او د نامه لاندي د وربېښتانو د خريلو وخت ټاكل سوی دی، دا چي په هغو باندي تر څلوېښتو ورځو زيات وخت تېر نه سي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۲۲۲، رقم: ۵۱- ۲۵۸.

**تشریح**: ابن ملک رحمة الله عليه وايي د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه نقل سوی يو روايت بيان سوی دی چي نبي کريم ﷺ نوکان او د شونډو وېښتان هره جمعه کوچني کول، د نامه لاندي وېښتان به يې په شلو ورځو کي پاکول او د بغلو وېښتان به يې په څلوېښتو ورځو کي پاکول، په قنيه کي ليکلي دي چي غوره داده چي په اونۍ کي يو وار نوکان پرېکړل سي، د شونډو وېښتان (برېتونه) کوچني کړل سي او د بدن زياتو ويښتانو په پاکولو سره د غسل په ذريعه خپل بدن پاک کړل سي، که په هره اونۍ کي ممکن نه وي نو په هرو پنځلسو ورځو کي دي په دې عمل وکړل سي تر دې که چيري تر څلوېښتو ورځو زيات وخت تېر سي نو دې ته به بېله عذره پرېښودل ويل کيږي، ګويا د دغه شيانو لپاره يوه اونۍ غوره وخت دی، پنځلس ورځي درمياني وخت دی او آخري وخت يې تر څلوېښتو ورځو پوري دی، تر څلوېښتو ورځو زيات وخت تېرونکی به بېله عذره پرېښودونکی شمېرل کيږي چي د حنفيه په نزد هغه د وعيد وړ دی.

مظهر رحمة الله عليه وايي: د ابو عمر او عبدالله الاغر څخه نقل سوي دي چي نبي کريم ﷺ به د هري جمعې په ورځ لمانځه ته د تللو څخه مخکي برېتونه او نوکان کوچني کول او ځينو حضراتو ويلي دي چي رسول الله ﷺ به د بغلو وېښتان او د نامه لاندي وېښتان په څلوېښتو ورځو کي پاکول، او د ځينو حضراتو د روايت مطابق په يوه مياشت کي يې پاکول، د يوې مياشتي والا روايت يو معتدل قول دی.

## د نکريزو استعمال

﴿۴۲۲۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارٰى لَا يَصْبُغُونَ فَخَالِفُوهُمْ. متفق عليه

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يهودو او نصاراؤ به نکريزي نه لګولې تاسو د هغوی مخالفت کوئ (يعني نکريزي لګوئ ليکن توري نکريزي نه په کوم چي نن سبا خلک سر يا ږيره توروي). بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۳۵۴، رقم: ۵۸۹۹، ومسلم ۳\ ۱۶۶۳، رقم: ۸۰-۲۱۰۳.

**تشريح**: مطلب دادی چي تاسو خلک د نکريزو په لګولو سره د يهوديانو او عيسايانو مخالفت څرګند وی، څرګنده دي وي چي د خضاب څخه مراد هغه خضاب دی چي تور نه وي ځکه چي تور خضاب لګول منع دی، د دې تفصيلي بحث به مخته راسي، کوم چي د صحابه

کرامو وغیره تعلق دی نو هغوی به د نکریزو سور خضاب لګوی او کله کله به یې ژړ خضاب هم لګوی ، د نکریزو د خضاب لګولو په اړه ډېر حدیثونه نقل سوي دي او علماوو لیکلي دي چي د نکریزو خضاب لګول د مؤمن کېدو علامه ده ، د ټولو علماوو په نزد د نکریزو خضاب لګول جائز دي بلکه ځیني فقهاء د نارینوو او ښځو دواړو لپاره مستحب ورته وایي او په فضائلو کي یې هغه حدیثونه هم نقل کړي دي که څه هم هغه حدیثونه محدثینو ضعیف ګرځولي دي.

په مجمع البحار کي لیکلي دي چي په دغه حدیث کي د خضاب کولو حکم د هغه خلکو لپاره نه دی چي د هغوی وېښتان تور او سپین وي بلکه د هغه خلکو لپاره دی چي د هغوی وېښتان بالکل سپین سوي وي او د تورو وېښتانو نوم او نښان هم نه وي، لکه څرنګه چي د حضرت ابو قحافه رحمة الله عليه وېښتان وه (چي د هغه په اړه په راتلونکي حدیث کي یادونه کیږي) ، په دغه کتاب کي هم دا لیکلي دي چي د خضاب په مسئله کي د علماوو مختلف قولونه دي او ددې اختلاف بنیاد د احوالو پر مختلف کېدو باندي دی، ځینو حضراتو ویلي دي چي ددغه حکم تعلق د هغه مسلمان او سیمي د خلکو سره دی چیري د خضاب لګولو عام رواج وي ، که یو سړی د خپل ښار د خلکو د عادت څخه بېلوي نو د غیر مناسب شهرت حامل کیږي چي مکروه دی او ځیني حضرات وایي چي د کوم سړي د وېښتانو سپین والی د هغه د باوقار سپین ږیرتوب علامه وي او د هغه د مخ د موزونیت سبب وي بلکه د خضاب په لګولو سره د هغه وقار کمیږي نو د هغه په اړه خضاب نه لګول زیات غوره دي ، ددې پر خلاف د کوم سړي د وېښتانو سپینوالی چي د هغه د بد شکله او بې وخته سپین ږېرتوب سبب وي چي د هغه په وجه د هغه شخصیت مجروح کیږي نو د هغه لپاره دغه عیب پټول او خضاب لګول زیات غوره او مناسب دي.

﴿۴۲۲۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أُتِيَ بِأَبِي قُحَافَةَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَرَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ كَالثَّغَامَةِ بَيَاضًا فَقَالَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيِّرُوا هَذَا بِشَيْءٍ وَاجْتَنِبُوا السَّوَادَ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي د ابوبکر صدیق رضي الله عنه پلار ابو قحافه د مکې د فتحي په ورځ و رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راوستل سو (یعني د اسلام د قبلولو لپاره) په دې وخت کي د هغه د ږیري او د سر وړېښته د ثغامه په شان سپین وه (ثغامه د هغو وښو نوم دی چي د هغه شګوفه (غوټۍ) او میوه سپینه وي)نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل : د دې وړېښتانو سپینوالي په یو شی

سره وربدل کړئ لیکن د تور رنګ څخه ځان وژغورئ . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۶۳، رقم: ۷۹ - ۲۱۰۲.

**د لغاتو حل**: الثغامة: نبت شديد البياض، زهرة يشبه الشيب.

**تشريح**: ثغامه یو ډول وابښو ته وایي چې د هغه غوټۍ او میوې سپیني وي، دغه وابښو ته په فارسي کې درمغه وایي، ددې حدیث څخه معلومه سوه چې تور خضاب لګول مکروه حرام دي او په مطالب المؤمنین کې د علماوو دا قول لیکل سوی دی که یو لمونځ کونکی او مجاهد د دین د ښمنانو په نظر کې د خپل هیبت قائمولو لپاره تور خضاب استعمال کړي نو جائز دي او کوم څوک چې د خپل نفس خوشحاله کولو لپاره د زینت او ښکلا لپاره او د ښځي په نظر کې د ښه معلومېدو لپاره تور خضاب لګوي نو دا د اکثرو علماوو په نزد ناجائز دي، په دې اړه د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په باره کې چې څه نقل سوي دي د هغه حقیقت دادی چې هغه به د نکریزو او وسمه (د نېل پاڼو) خضاب لګوی او د هغه خضاب په وجه به د هغه د وېښتانو رنګ تور نه وو بلکه سور به وو ، همدارنګه په دې اړه د ځینو نورو صحابه کرامو په اړه چې کوم روایتونه نقل سوي دي هغه هم پر دې محمول دي .

خلاصه دا چې د نکریزو خضاب لګول په اتفاق سره جائز دی او په تور خضاب کې حرمت او کراهت دی بلکه په دې اړه سخت وعید بیان سوی دی لکه څرنګه چې په دوهم فصل کې به بیان سي .

## په سر کې لار ایستل او نه ایستل

﴿۴۲۲۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به

وَسَلَّمَ يُحِبُّ مُوَافَقَةَ أَهْلِ الْكِتَابِ فِيمَالَمْ يُؤْمَرُ فِيهِ وَكَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ

په هغو خبرو کې د اهل کتابو موافقت خوښوی چې د هغه په اړه به احکام نه وه نازل سوي ، په

يَسْدِلُونَ أَشْعَارَهُمْ وَكَانَ الْمُشْرِكُونَ يَفْرُقُونَ رُءُوسَهُمْ فَسَدَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاصِيَتَهُ ثُمَّ فَرَقَ بَعْدُ. متفق عليه

هغه زمانه کې به اهل کتابو خپل وربښته دغسي پرېښول یعني په هغه کې به یې د ډمونځ کولو سره په سر کې لار نه ایستل او مشرکانو به په سر کې لار ایستل، رسول الله ﷺ به په هغه زمانه

کي د خپل تندي مبارک وربښتان دغسي پرېښودل لیکن بیا یې په سر مبارک کي لار ایستل.
بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۶۱، رقم: ۵۹۱۷، ومسلم ۴\۱۸۱۷، رقم: ۹۰– ۲۲۳۶.

**تشریح**: د سدل معنی د سر د وېښتانو ځلورو خواوو ته پرېښودل او زړول، او د لیکي جوړولو لپاره د دواړو خواوو وېښتان یو ځای کول، او د (فرق) مطلب دادی چي د نیم سر وېښتان یوې خوا ته او د نیم سر وېښتان بلي خوا ته یو ځای کول، په قاموس کي لیکلي دي چي فرق د وېښتان په مینځ کي پیدا کېدونکي لاري ته وایي.

لکه څرنګه چي بیان سول چي نبي کریم ﷺ د مکې څخه مدینې منورې ته په هجرت تشریف راوړ نو په پیل کي یې د اهل کتابو په موافقت کي د تندي وېښتان سدل کول یعني همداسي به یې بې ترتیبه پرېښودل ځکه چي د اهل کتابو طریقه د سدل وه، څرګنده دي وي چي د سدل مطلب که څه هم د وېښتان د ځلورو خواوو څخه همداسي پرېښودل دي او په دې کي د تندي د وېښتانو هیڅ تخصیص نسته مګر سدل او فرق په مینځ کي امتیاز د تندي سربېره وېښتانو څخه څرګندېږي، په دې سبب په خاصه توګه د تندي د وېښتانو ذکر سوی دی، که څه هم طیبي رحمه الله ویلي دي چي دلته د سدل څخه مراد محض د تندي وېښتان پرېښودل دي.

د حدیث څخه څرګنده سوه چي په پېل کي د رسول الله ﷺ معمول د سدل وو مګر وروسته فرق یعني لاره پرېښودل آخري عمل وګرځول سو، له دې کبله ځیني حضرات وایي چي سدل یعني وېښتان همداسي پرېښودل منسوخ دي ځکه چي د رسول الله ﷺ د سدل پرېښودو سره فرق اختیارول د حکم الهي او وحي په وجه وو لکه څرنګه چي د الله جل جلاله له خوا رسول الله ﷺ ته دا اجازه وه چي په کومه معامله کي یو شرعي حکم نازل سوی نه وي په هغه کي د اهل کتابو د رواج مطابق عمل کیدای سي، کله چي د وېښتانو په اړه رسول الله ﷺ ته د وحي په ذریعه د فرق یعني لاري ایستلو حکم ورکړل سو نو دا ددې خبري علامه وګرځول سول چي د وېښتانو په اړه په عارضي توګه سره د اهل کتابو د رواج مطابق عمل منسوخ سو، له دې څخه دا څرګنده سوه چي د فرق حکم آخري او حتمي دی ځکه په دې اړه د اهل کتابو مخالفت یعني سدل پرېښودل هم په حتمي توګه کېدل پکار دي.

ددغه حدیث څخه ځینو حضراتو پر دې خبره استدلال کړی دی چي د مخکنیو انبیاوو علیهم السلام شریعت زموږ لپاره د اجتماع قابل دی تر څو چي موږ ته د هغه پر خلاف د عمل

کولو حکم رانه کړل سي مګر دغه اجتماع به په هغه شیانو کي وي چي د هغو په اړه دا معلومه وي چي په هغه کي څه تغیر او تبدیل نه دی سوی بلکه هغه احکام دي کوم چي الله ﷻ په مخکنیو شریعتو کي نازل کړي دي .

د روایت دغه الفاظ: (یحب موافقتهم) یعني رسول الله ﷺ به د اهل کتابو موافقت خوښوی، ددې څخه څرګندیږي چي په هغه معاملو کي هم د اهل کتابو موافقت کول د رسول الله ﷺ پر اختیار باندي پرېښودل سوی وو که رسول الله ﷺ خوښ کړي نو د اهل کتابو مطابق دي عمل وکړي او که خوښ یې نه کړي نو عمل دي نه کوي، که دغه یعني د موافقت کولو حکم ددې درجې وي د کومي درجې چي یو شرعي حکم وي نو په دې کي د رسول الله ﷺ د خوښی یا نه خوښی څه سوال نه پیدا کیږي بلکه یو واجب او لازم امر به وي .

په ځینو حدیثو کي دا هم نقل سوي دي چي د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي کله به د رسول الله ﷺ وېښتان بې ترتیبه وه نو د هغه په یو ځای کولو سره به یې لار پکښې ایستل او هغه به یې پر خپل حالت باندي پرېښودل، یعني په عامو حالاتو کي کله چي به وېښتان آخوا دېخوا نه وه نو رسول الله ﷺ به سدل یا فرق دواړو کي د یوه اهتمام او تکلف نه کوی بلکه هغه وېښتان به یې پر خپل حالت باندي پرېښودل ، ددې څخه معلومه سوه چي سدل او فرق دواړه جائز دي مګر فرق غوره دی .

## د قزع څخه منعه

﴿۴۲۲۹﴾:وَعَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنِ الْقَزَعِ قِيلَ لِنَافِعٍ مَا الْقَزَعُ قَالَ يُحْلَقُ بَعْضُ رَأْسِ الصَّبِيِّ وَيُتْرَكُ الْبَعْضُ. متفق عليه. والحق بعضهم التفسير بالحديث.

حضرت نافع رضي الله عنه د ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت کوي چي ما د رسول الله ﷺ څخه د ((قزع)) منعه واورېدل ، د نافع رضي الله عنه څخه پوښتنه وسوه ((قزع)) څشي ده ؟ هغه ورته وویل :د قزع معنی ده د کوچنی د سر د یوې برخې ورېښتان خرول او یو څه پرېښودل . بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۳۶۳، رقم: ۵۹۲۰، ومسلم ۳\ ۱۶۷۵، رقم: ۱۱۳– ۲۱۲۰.

**تشریح**: نووي رحمه الله وایي: د قزع معنی : د یو چا د سر یو څه برخه خریل او څه برخه بېله خریلو پرېښودل دي، او دا معنی زیاته صحیح ده ځکه چي د حدیث راوي هم دا معنی بیان کړې ده او

دا د حديث د ظاهري مفهوم مخالفت هم نه دی ، نو پر دغه معنی باندي اعتمادل كول واجب دی او كوم چي د هلک د تخصيص ذكر دی نو دا محض د عام رواج او عادت په وجه دی كنه نو څرنګه چي قزع د هلكانو لپاره مكروه ده همدا رنګه د لويانو په اړه هم مكروه دي، ځكه په فقهي رواياتو كي دا مسئله د قيد او استثناء څخه پرته بيانيږي او په قزع كي كراهت د اهل كفر د مشابهت او بد هيبتۍ څخه د ځان ساتني لپاره دی.

راوي چي د قزع كوم مطلب بيان كړی دی او نووي رحمة الله عليه ورته زيات صحيح ويلي دي په هغه كي چوټي (لكه څرنګه چي كافران يې په خپلو سرو كي پرېږدي ) هم شامل دی چي د مسنون طريقي خلاف كار دی.

﴿۴۲۳۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ رَأَى صَبِيًّا قَدْ حُلِقَ بَعْضُ رَأْسِهِ وَتُرِكَ بَعْضُهُ فَنَهَاهُمْ عَنْ ذٰلِكَ وَقَالَ احْلِقُوا كُلَّهُ أَوِ اتْرُكُوا كُلَّهُ . رواه مسلم .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يو كوچنی وليدي چي د هغه د سر د يوې برخي وربښتان خريل سوي وه او څه يې پرېښبي وه ، نبي كريم ﷺ خلک د دې څخه منعه كړه او ارشاد يې وفرمايه: چي د سر ټول وربښتان خروئ يا ټول پرېږدئ . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱٦٧۵، رقم: ۱۱۳- ۲۱۲۰.

**تشريح**: په دغه حديث كي دې ته اشاره ده چي د حج او عمرې څخه پرته هم سر خريل جائز دي، مسئله داده چي سړي ته اختيار دی كه وغواړي نو سر دي وخريي او كه وغواړي نو وبښتان دي پرېږدي مګر غوره خبره داده چي د حج او عمرې څخه پرته دي سر نه خريي، لكه څرنګه چي د رسول الله ﷺ او حضرت علي رضي الله عنه څخه پرته د نورو صحابه كرامو معمول وو، او د كتاب الله په لومړنۍ برخه كي په باب الجنايت كي د دې يادونه سوې ده.

## پر نر ګډيانو لعنت

﴿۴۲۳۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخَنَّثِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَقَالَ أَخْرِجُوهُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ . رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ پر نرګډي باندي لعنت ويلی دی (يعني په هغو خلکو باندي چي خپل ځانونه يې د ښځو په شکل او صورت باندي جوړکړي وي او پر هغو ښځو چي د سړو سره ځان مشابه کوي په کالو او نورو کارو کي) او حکم يې کړی دی چي هغوی د خپلو کورونو څخه و باسئ. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۳۳، رقم: ۵۸۸٦.

**تشريح**: مخنِث يا مخنَث (زيات صحيح مخنَث دی) ددې اصل خنث دی چي لغوي معنی يې نرمی او ماتېدو ده، مخنث هغه سړي ته وايي چي د ښځو په ډول جامې اغوندي، د ښځو په ډول لاسونه او پښې په نکريزو سره کوي په خبرو اترو کي د ښځو لهجه اختياروي او همدارنګه په حرکاتو کي د ښځو انداز خپلوي، داسي سړي ته زموږ په ژبه کي نرښځی هم ويل کيږي، مخنث پر دوه ډوله وي يو خلقي چي د هغوی د بدن په اندامو کي په خلقي توګه د ښځو په ډول نرمي او حرکت وي، يعني په هغوی کي په قدرتي توګه د ښځو اوصاف او عادات وي، دوهم دا چي ځيني کسان که څه هم د خپل بدن د اندامو او خلقت په اعتبار بشپړ نارينه وي مګر په قصد سره ځان د ښځو مشابه کول غواړي نو هغوی د خبرو اترو انداز او هستوګني په طريقو کي د ښځو مشابهت اختياروي تر دې چي د خپلو خوټو او خاص اندام په پرېکولو سره نامرد هم جوړيږي، د مخنثو د داسي ډول په اړه لعنت او غندنه فرمايل سوې ده، ددې پر خلاف د لومړي ډول مخنث د دغه لعنت څخه مستثنی دی، ځکه چي هغوی معذور دي، او دوی ته په دې کي د خپل قصد او اختيار دخل نسته، همدارنګه پر هغه ښځو هم لعنت ويل سوي دی چي هغوی خپل ځان د نارينوو مشابه کوي،

د شرعة الاسلام په شرح کي ليکلي دي چي نکريزي لګول د ښځو لپاره مسنون دي او د نارينوو لپاره بېله عذره لګول مکروه دي، ځکه چي په دې کي د ښځو مشابهت لازميږي، د دغه قول څخه دا مسئله هم څرګنديږي چي د ښځو لپاره د نکريزو څخه بالکل بې پروا کېدل مکروه دي ځکه چي په دغه صورت کي د هغوی د نارينوو سره مشابهت لازميږي.

﴿۴۲۳۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ اللّٰهُ الْمُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په هغو خلکو باندي

خداي تعالی لعنت ويلي دی کوم سړي چي د ښځو شکل او صورت اختيار کړی وي او کومي ښځي چي د نارينه شکل او صورت اختيار کړی وي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۳۳، رقم: ۵۸۸۵.

## د انسان د وېښتانو څخه فائده اخيستل حرام دي

﴿۴۲۲۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله جل جلاله پر: (۱) واصله (۲)مستوصله (۳) واشمه(۴) او مستوشمه باندي لعنت ويلي دی . بخاري او مسلم، (۱)- واصله: هغه ښځه چي د خپل سر د وړېښتانو د اوږدولو لپاره د نورو وېښتان يو ځای کړي. (۲)- مستوصله : هغه ښځه چي د نورو په وېښتانو کي د نورو وېښتان يو ځای کړي . (۳)- واشمه: هغه ښځه چي په بدن کي خالونه وهي. (۴)- مستوشمه : هغه ښځه چي په بدن کي په [illegible]ل چا باندي خالونه وهي

[illegible]**ريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۳۷۴، رقم: ۵۹۳۷، ومسلم ۳\ ۱۶۷۷، رقم: ۱۱۹- ۲۱۲۴.

[illegible]**شريح**:د وېښتانو يو ځای کول د ځان لپاره يا د بلي ښځي لپاره، ددې څخه مراد دادی چي د وېښتانو د ښکلا او اوږدوالي لپاره يوه ښځه د بلي ښځي وېښتان واخلي او په خپل کوڅۍ کي يې ګډ کړي يا خپل وېښتان د بلي ښځي په کوڅۍ کي ګډ کړي .

امام نووي رحمه الله فرمايي: د حديثو څخه دا خبره څرګندېږي چي بېله استثناء او قيد وېښتان يو ځای کول حرام دي، ظاهر او مختار مسئله هم داده مګر زموږ شافعي علماء په دغه مسئله کي دا تفصيل بيانوي چي د انسان وېښتان لګول بېله اختلافه حرامه دي ځکه چي انسان ته کومه بزرګي او شرف تر لاسه دی د هغه په وجه د هغه د وېښتانو او د بدن د نورو اندامو څخه ګټه اخيستل حرام دي او که د انسان څخه پرته د يو حيوان وېښتان چي پاک وي نو هغه په کوڅيو کي لګولو دغه حکم دی که د ښځي خاوند يا بادار نه وي يعني کومه ښځه چي ازاده وي او مطلقه يا کونډه يا پېغله وي نو د هغې لپاره په خپل کوڅۍ کي د هغه وېښتانو ګډول هم حرام دي او که ښځه خاوند والا يا بادار والا وي نو د هغې لپاره درې صورتونه دي چي په هغو کي تر

ته لو زيات صحيح صورت دادی چي هغه د خاوند يا مالک د اجازې څخه وروسته هغه وېښتان په خپلو کوڅيو کي ګډ کړي نو دا جائز دي.

مالک، طبري او اکثر علماء رحمة الله عليهم وايي چي د ښځي لپاره په خپل چوټي کي د هر شي ګډول منع دي که هغه وېښتان وي يا توري وړی وغيره وي، دغه حضراتو په دغه مسئله کي د حديثو څخه استدلال کړی دی، فقيه ابوالليث رحمة الله عليه وايي چي د ذکر سوي منع تعلق يوازي د وېښتانو سره دی نو په کوڅيو کي د وېښتانو څخه پرته نور شيان لکه وړی وغيره ګډول څه پروا نلري او د وېښتانو په داسي تار سره تړل چي د وېښتانو سره مشابهت نلري بېله کراهته جائز دي.

په فتاوی عالمګيري کي دا ليکلي دي چي د سر په وېښتانو کي د انسان وېښتان ګډول حرام دي مګر صوف يعني (وړی) ګډول جائز دي،

د خال وهلو مطلب دادی چي د بدن پر پوست باندي ستن يا بل شی ننه ايستل سي تر دې چي وينه څيني وبهيږي او بيا هغه د رانجو يا نېل څخه ډک کړل سي، دا د جاهليت د زمانې يو رواج دی او نن سبا هم په ځينو کافرانو دغه رواج سته، اسلامي شريعت داسي کول منسوخ کړي دي، نووي رحمة الله عليه فرمايي: خپله خال وهل يا بل چا ته خال وهل حرام دي او د بدن پر کومه برخه چي خال وهل کيږي او د يو علاج په ذريعه د هغه ختمېدل ممکن وي نو د هغه نښې خرابول واجب دي او که د تکليف څخه پرته د هغه خرابول ممکن نه وي يعني ددې خبري بېره وي چي د هغه په ختمولو سره د بدن هغه برخي ته تاوان رسيږي نو په دغه صورت کي د هغه ختمول واجب نه دي، نو بايد د الله جل جلاله څخه بخښنه وغواړي چي د ګناه بار ځيني ليري سي، او که مذکوره شيان بېله تکليفه ليري کيږي نو بيا د هغو ختمول لازم دي او په هغو کي په زنډ کولو سره ګناه کار کيږي.

## د الله جل جلاله د تخليق پر بدلونکي سزا

﴿۴۲۲۴﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُوْتَشِمَاتِ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي الله جل جلاله لعنت ويلي دی په خالو وهونکو ښځو باندي (که د ځان خالونه وهي او که د بل) او د مخ وېښتانو کښونکو ښځو باندي

وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللّٰهِ فَجَاءَتْهُ اِمْرَاَةٌ فَقَالَتْ

او يا خپل غابنونه په سوهان يا ريتي باندي سوهان كونكو ښځو باندي (د ځينو ښځو په مخ باندي ورېښتان وي د هغو خريل منعه دي ، البته كه د يوې ښځي ږيره او برېت را ووځي نو د هغو خريل يا ليري كول منعه نه دي) يوه ښځه و حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته راغله او ويې ويل:

إِنَّهُ بَلَغَنِي عَنْكَ أَنَّكَ لَعَنْتَ كَيْتَ وَكَيْتَ فَقَالَ وَمَا لِي لا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُولُ

ما او رېدلي دي چي تاسو په داسو داسو ښځو لعنت وايا ست ،ابن مسعود رضي الله عنه ورته وفرمايل : زه په هغو ښځو باندي ولي لعنت و نه وايم چي په هغوى باندي نبي كريم ﷺ لعنت ويلي دى

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ هُوَ فِي كِتَابِ اللهِ فَقَالَتْ لَقَدْ قَرَأْتُ مَا بَيْنَ

او هغوى د خداي تعالى په كتاب كي ملعوني ګڼل سوي دي ، هغې ښځي وويل ، ما دا شيان

اللَّوْحَيْنِ فَمَا وَجَدْتُ فِيهِ مَا تَقُولُ قَالَ لَئِنْ كُنْتِ قَرَأْتِيهِ لَقَدْ وَجَدْتِيهِ أَمَا

ويلي دي چي د دوو تختو په مينځ كي نوشته سوي دي (يعني قرانكريم) خو دا خبره پكښي نسته كومه چي تاسو يې كوئ (يعني په صريحو الفاظو كي چيري لعنت ويل سوى دى)، ابن مسعود رضي الله عنه ورته وفرمايل : كه تا (قرانكريم)په سوچ او فكر سره لوستى وي نو دا ځاي دي نه

قَرَأْتِ { وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا }قَالَتْ بَلَى

قَالَ فَإِنَّهُ قَدْ نَهَى عَنْهُ. متفق عليه.

دي لوستى : وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا (څه چي نبي كريم ﷺ دركړي هغه اخلئ او د څه څخه چي مو منعه كوي د هغه څخه منعه سئ)هغې ښځي وويل :هو ( دا خو مي لوستى دى) ابن مسعود رضي الله عنه ورته وفرمايل : نو رسول الله ﷺ د دې خبرو څخه منعه كړې ده . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۸ ۶۳۰، رقم: ۴۸۸۶، ومسلم ۳\۱۶۷۸رقم: ۱۲۰– ۲۱۲۵.

**تشريح**: د ښځو لپاره د مخ وېښتان كښل مكروه دي مګر كه چيري د يو ښځي پر مخ ږيره يا برېتونه وي نو د هغو پاكول جائز بلكه مستحب دي، په حديث كي يوازي د بلي ښځي د وېښتانو كښلو يادونه ده او خپله د وېښتانو كښونكي ښځي يادونه نسته چي هغې ته نامصه وايي، حال دا چي د دغه مسئلې سره اړوند بل روايت چي په دوهم فصل كي راځي په هغه كي د نامصه

یا دونه هم سته ،

د عربو په نزد د ښځو د غاښو په مینځ کي پراخوالی او فرق کېدل غوره ګڼل کیږي او په عامه توګه د کم عمره ښځو غاښونه داسي وي، په عربو کي دا رواج وو چي ښځي به سپین سري سوې او غاښونه به يې لوی سول چي د هغه په وجه به د هغې د غاښو په مینځ کي دغه پراختیا نه پاته کېدل نو هغوی به د خپلو غاښو په مینځ کي د پراختیا کولو هڅه کول او ددې بنیاد په هغوی دا جذبه وه چي پیغلي او کم عمره معلومي سي، او ښکلا يې څرګنده سي ، اسلامي شريعت دا طريقه منع وګرځول .

لفظ د (المغيرات) د ټولو ذکر سوو ښځو صفت دی کوم چي په ژباړه کي څرګندي سوي دي يعني د کومو ښځو چي یادونه سوې ده هغه ټولي داسي دي چي الله تعالی کوم شی څرنګه جوړ کړی دی په هغه کي دخپل خواهش سره سم تغير کوي چي د الله تعالی د مصلحت او مرضی خلاف دی، همدارنګه لفظ د خلق الله د مغيرات مفعول دی او دغه پوره جمله د تعليل په درجه کي ده چي د وجوب لعنت علت او وجه څرګندوي ، ددې څخه معلومه سوه چي مثله او د ږیري خريلو چي کوم حرمت دی د هغه علت او وجه هم دغه دی يعني د الله تعالی په تخليق کي تغير کول، مګر په دې سره دا نه لازمیږي چي هر تغير حرام دی ځکه دغه علت يو ځانګړی حیثیت نلري بلکه د حرمت اصل علت د شارع له خوا منع کېدل دي او په دغه منع کي چي کوم حکمت پټ دی هغه دا دی چي هغه ته د ظاهري علت درجه ورکول کیږي نو خلاصه دا سوه چي شارع عليه السلام کوم تغيرات مباح ګرځولي دي په هغو کي به اباحت وي او کوم تغيرات چي يې حرام ګرځولي دي په هغو کي به حرمت جاري وي .

ذکر سوي ښځي چي د حضرت ابن مسعود ﷺ په خدمت کي په حاضرېدو سره څه وويل د هغه مطلب دا وو چي ما ته دا معلومه سوې ده چي تاسو هغه ښځي له خپلي خوا لعنتي ګرځوئ یا ددې خبري خبرداری ورکوئ چي په قرآن کريم کي هغه ښځي ملعوني ګرځول سوي دي حال دا چي په قرآن کريم کي پر هغه ښځو باندي د لعنت يو صريح ذکر نسته، او دا مسئله ده چي الله تعالی څوک د لعنت وړ نه وي ګرځولی نو پر هغه لعنت کول جائز نه دي ، نو ابن مسعود ﷺ هغه ښځه په ډېر ښه انداز کي په دې پوه کړل او د قرآن او حديث په حواله يې مسئله ورته ثابته کړه نو هغې ته اطمينان وسو ځکه چي هغې ته د حديث په اړه شبه نه وه محض په قرآن کريم کي د صريح حکم نه تر لاسه کېدو په وجه د هغې په ذهن کي سوال پيدا سوی وو او هغه رفع سو .

د روايت د آخري جملې مطلب دا دی چي کله بندګانو ته د الله تعالی له خوا دا حکم سوی

دی چي رسول الله ﷺ د کومو کارو څخه تاسو منع کړي نو له هغه څخه منع سئ او رسول الله ﷺ په دغه حديث کي هم او د نورو حديثو په ذريعه هم د ذکر سوو شيانو څخه منع فرمايلې ده، نو ددې مطلب دا سو چي د دغه شيانو منع په قرآن کريم کي موجود ده، طيبي رحمه الله وايي: په دغه حديث کي دې ته اشاره ده چي پر ذکر سوو ښځو باندي د رسول الله ﷺ لعنت فرمايل داسي دي لکه څرنګه چي خپله الله تعالی هغه ښځي ملعوني ګرځولي دي نو په دې عمل کول واجب دي.

**بد نظر حق دئ**

﴿۴۲۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَيْنُ حَقٌّ وَنَهَى عَنِ الْوَشْمِ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: بد نظر يا د بد نظر تاثير حق دی او نبي کريم ﷺ د خالو وهلو څخه منعه کړې ده. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۰۳، رقم: ۵۷۴۰.

**تشريح**: مطلب دا دی چي بد نظر يو داسي حقيقت دی چي د هغه اثر څرګنديږي، الله جل جلاله په دې کي دغه خاصيت ايښی دی چي د سحر په ډول بد نظر هم پر انسان وغيره باندي اثر کوي.

**د سر د ويښتانو مښلول**

﴿۴۲۳۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُلَبِّدًا. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ په کونډرو سره د سر مبارک وربښتانو مښلولو باندي وليدی. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۶۰، رقم: ۵۹۱۴.

**تشريح**: د ملبد څخه مراد دا دی چي رسول الله ﷺ د سر وېښتان په ګونډرو سره موښلولي وه چي شيږي ونه کړي او ګرد و غبار څخه خوندي سي، داسي په عامه توګه د ذکر سوي مقصد لپاره د احرام په حالت کي کولای سي، حضرت ابن عمر رضي الله عنهما به رسول الله ﷺ په داسي حال کي يا خو د احرام په حالت کي ليدلی وي يا په يو بل سفر کي به يې ليدلی وي.

## د نارينه لپاره زعفران

﴿۴۲۲۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَزَعْفَرَ الرَّجُلُ. متفق عليه

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ نارينه د زعفران په بدن لګولو يا په جامو مږلو څخه منعه کړې دى. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۰۴، رقم: ۵۸۴۶، ومسلم ۳\۱۶۶۳، رقم: ۷۷- ۲۱۰۲۱.

**تشريح:** دغه منع ځکه ده چي پر جامو يا بدن باندي زعفران موږل د ښځو سره خاص دى، پاتـه سوه دا خبره چي د ځينو صحابه کرامو په اړه نقل سوي دي چي هغوى د خلوق استعمال کړى دى چي د زعفران څخه جوړه سوې يوه خوشبويي ده نو هغه د دغه منع څخه مخکي پيښه ده.

## رنګ لرونکې خوشبويي

﴿۴۲۲۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أُطَيِّبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَطْيَبِ مَا يَجِدُ حَتَّى أَجِدَ وَبِيصَ الطِّيبِ فِي رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ. متفق عليه

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ په بدن باندي بهترينه خوشبوئي ولګوله کوم چي زما سره وه تر داسي حده چي د خوشبويي اثر به يې پر سر مبارک او ږيره مبارکه باندي معلوميدى. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۶۶، رقم: ۵۹۲۳، ومسلم ۲\۸۴۷، رقم: ۳۸- ۱۱۸۹.

**تشريح:** د دغه حديث په اړه د هغه حديث سره سوال واقع کيږي چي په هغه کي دا بيان سوى دى چي د نارينوو لپاره د هغه خوشبويي استعمال جائز دى چي د هغه رنګ نه ښکاره کيږي، او د دغه حديث څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ ته به کومه خوشبويي لګول کېدل د هغه رنګ به ښکارېدى ځکه که چيري د هغه خوشبويي رنګ نه معلومېدى نو د هغه ځلا به د رسول الله ﷺ په سر او ږيره مبارکه کي څرنګه معلومېدى؟ ددې جواب دادى چي په کوم حديث کي د نارينوو لپاره د رنګ لرونکي خوشبويي څخه منع سوې ده د هغه څخه مراد هغه رنګ دى چي د هغه په ښکارېدو سره د ښکلا او زينت اندازه ښکاره کيږي لکه سور او ژړ رنګ او کوم رنګ چي داسي نه وي لکه د مشک او عنبر رنګ نو هغه جائز دى، ددې څخه معلومه سوه چي صندل او داسي

نورو شیانو رنګ هم جائز دی.

## خوشبوداره لرګی دود کول

﴿۴۲۳۹﴾: وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا اسْتَجْمَرَ اسْتَجْمَرَ بِالْأَلُوَّةِ غَيْرَ مُطَرَّاةٍ وَبِكَافُورٍ يَطْرَحُهُ مَعَ الْأَلُوَّةِ ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا كَانَ يَسْتَجْمِرُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه مسلم.

د حضرت نافع رضی الله عنه څخه روايت دی چي کله به حضرت عمر رضی الله عنه (په کور کي) څه خوشبوداره شی دودوی نو داسي خوشبوداره لرګی به يې دود کوی چي په هغه کي به مشک نه وه او کله کافور او خوشبوداره لرګی دواړه به يې په يوځاي کولو باندي دودول بيا به يې ويل: نبي کريم ﷺ به هم داسي خوشبويه بوټی دودول. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۷٦٦، رقم: ۲۱- ۲۲۵۴.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د برېتو کوچني کول سنت دي

﴿۴۲۴۰﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُصُّ أَوْ يَأْخُذُ مِنْ شَارِبِهِ وَكَانَ إِبْرَاهِيمُ خَلِيلُ الرَّحْمٰنِ صلوات الرحمن عليه يَفْعَلُهُ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د خپلو شونډو مبارکو وربښته غچي کول او يا يې اخستل او د خداي تعالى دوست حضرت ابراهيم علیه السلام به هم د شونډو مبارکو وربښته غچي کول. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۸٦، رقم: ۲۷٦۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي د برېتو بالکل کوچني کول يو داسي پخوانی سنت دی چي د حضرت ابراهيم علیه السلام معمول هم وو او د نورو انبياوو عليهم السلام هم، د فطرة لفظ په وضاحت کي دغه

بحث ذكر سوی دی ، پاته سوه دا خبره چي كله دغه يعني د برېتو كوچني كول د نورو انبياوو سنت هم دی نو دلته يوازي د حضرت ابراهيم عليه السلام خاصوالی ولي وسو، نو ددغه خاصوالي وجه د حضرت ابراهيم عليه السلام د خاص عظمت او جلال اظهار دی يا دا چي ددغه سنت پيل د حضرت ابراهيم عليه السلام څخه سوی دی لکه څرنګه چي د هغه حديث څخه څرګنديږي چي په دريم فصل كي به راسي .

## برېتونه كوچني كوئ

﴿۴۲۴۱﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَمْ يَأْخُذْ مِنْ شَارِبِهِ فَلَيْسَ مِنَّا . رواه احمد والترمذي والنسائي .

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : څوک چي د شونډو وربښته(يعني برېت) نه غچي كوي ، هغه زموږ څخه نه دی . احمد ، ترمذي او نسائي

**تخريج**: مسند الامام احمد ۳۶۶\۴، رقم: ۲۷۹۱.

**تشريح**: هغه زموږ څخه نه دی: ددې مطلب دادی چي هغه زموږ پر سنت او طريقه نه دی او د ملا علي قاري رحمه الله مطابق ددغه جملې زياته صحيح معنی داده چي داسي سړی زموږ په سنت او طريقه كي كامل نه دی يا ددغه جملې په ذريعه ددغه سنت د پرېښودونكي مړ كېدل به د امت مسلمه پر خلاف طريقه باندي مړ كېدل وي .

## د ږيري سمول

﴿۴۲۴۲﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْخُذُ مِنْ لِحْيَتِهِ مِنْ عَرْضِهَا وَطُولِهَا . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه بيا د خپل پلاره څخه روايت كوي چي نبي كريم صلی الله علیه وسلم به خپله ږيره مباركه په عرض او طول (پلنوالی او اوږدوالی) كي يعني د دواړو طرفو څخه نه برابروله . ترمذي، او په ترمذي كي دا حديث غريب دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۸۷\۵، رقم: ۲۷۶۲.

**تشريح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به خپله ږيره مبارکه سمول او د رسول الله ﷺ دغه عمل د ږيري پرېښودو او زياتولو خلاف نه دی چي د هغه حکم په نورو حديثو کي نقل سوی دی ، ځکه چي د اصل منع تعلق يا د دومره کوچني کولو سره دی چي د غير مسلم خلکو شعار دی او د ږيري سمولو لپاره له آخوا او دېخوا څخه وېښتان غځي کول منع نه دي لکه څرنګه چي خپله د رسول الله ﷺ په اړه نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به د ږيري د طول او عرض څخه هغه وېښتان کوچني کول چي آخوا دېخوا به لوی سوي وه ځکه ابن ملک رحمه الله ويلي دي چي د ږيري وېښتان برابرول سنت دي ، په احياء العلوم کي ليکلي دي چي د ږيري زياتي او ږدولو په اړه د علماوو مختلف قولونه دي ، ځيني حضرات وايي که يو سړی خپل ږيره په موټ کي نېولو سره هغه برخه پرې کړي چي تر موټ لاندي وي نو په دې کي څه پروا نسته ، دغه قول د ابن عمر رضي الله عنه او تابعينو د يو ډلي دی، شعبي او ابن سيرين رحمة الله عليهما دا ښه ګڼلی دی ، او حسن، قتاده او دهغوی پيروانو دغه شی (يعني د ږيري دغه برخه کوچني کول) ښه نه دي ګڼلي، دغه حضراتو د رسول الله ﷺ د ارشاد (اعفوا اللحي) سره سم دغه شی غوره ګڼلی دی چي د موټ څخه زياته ږيره دي پرېښودل سي، ملا علي قاري رحمه الله ليکلي دي چي لومړی قول زيات صحيح دی .

## د زعفرانو خوشبوئي نارينه ته حرامه ده

﴿۴۲۴۳﴾ : وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأى عَلَيْهِ خَلُوْقًا فَقَالَ اَلَكَ اِمْرَاَةٌ قَالَ لاَ قَالَ فَاغْسِلْهُ ثُمَّ اغْسِلْهُ ثُمَّ لاَ تَعُدْ . رواه الترمذي والنسائي

د حضرت يعلی بن مره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د هغه پر بدن د زعفرانو جوړه سوې خوشبوئي وليده ، نو يې وفرمايل: ايا ستا ښځه سته ؟ عرض يې وکړ، يا ! نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : دا پرېوله ، بيا يې پرېوله او بيا يې پرېوله او دا کار بيا مه کوه، (ايا ستا ښځه سته دلته يې مقصد دا وو چي که چيري ستا ښځه وي او هغې پر ځان يا کالو باندي زعفران موښلي وي او د هغې اثر وتا ته رسيدلی وي نو ته به معذوره يې والا فلا ) . ترمذي او بخاري.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۱۲، رقم: ۲۸۱۶، والنسائي ۸\۱۵۲، رقم: ۵۱۲۱ .

**تشريح**: ايا ته ښځي والا يې؟ : د رسول الله ﷺ ددغه سوال مقصد دا وو چي ايا ښځه لرې او هغې خلوق استعمال کړی دی او بيا دهغې د بدن يا جامې څخه د هغه بوی اثر ستا بدن يا جامې ته رسيدلی دی، نو په دغه صورت کي ته معذور يې او که تا په خپله خلوق استعمال کړي وي نو

يا معذور نه ګڼل کېږي ځکه چې سړي ته د خلوق استعمال جائز نه دی، په دغه صورت کې ستا لپاره دا ضروري ده چې ته خپل بدن يا جامې پرېولي او دغه اثر ختم کړې ، ددې څخه څرګنده سوه چې ددغه سوال مقصد دا څرګندول نه وو چې ته ښځه لرې او تا د ښځې لپاره خلوق استعمال کړي دي نو ته د معذور په حکم کې یې لکه څرنګه چې د حدیث د ظاهري مفهوم څخه ګمان کيږي .

هغه پرېوله : ددغه جملې په ذريعه رسول الله ﷺ درې واره د پرېوللو حکم وکړ او درې واره د پرېوللو حکم ورکول د مبالغې او تاكيد په توګه وو ، مګر زياته صحيح خبره داده چې رسول الله ﷺ درې واره د پرېوللو حکم ځکه ورکړ چې د هغه رنګ کم از کم په درې واره پرېوللو سره له منځه ځي .

﴿۴۲۴۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ تَعَالٰى صَلَاةَ رَجُلٍ فِيْ جَسَدِهٖ شَيْءٌ مِنْ خَلُوْقٍ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوموسی رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : خدای تعالی د هغه سړی لمونځ نه قبلوي چې د هغه پر جسم باندې لږ شان خلوق (یعني د زعفرانو څخه جوړه سوې خوشبوئي) هم لګيدلي وي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۰۲، رقم: ۴۱۷۶.

**تشريح**: سيد رحمه الله وايي : د لمانځه نه قبلېدو څخه مراد د ښځو مشابهت اختيارولو په وجه د دغه ثواب نه تر لاسه کېدل دي کوم چې پر کامل لمانځه باندې تر لاسه کيږي ، ابن ملک رحمه الله ويلي دي چې دغه ارشاد د خلوق د استعمال خلاف د زجر او تهديد په توګه دی .

﴿۴۲۴۵﴾: وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ قَدِمْتُ عَلٰى أَهْلِي من سفر وَقَدْ تَشَقَّقَتْ يَدَايَ فَخَلَّقُوْنِيْ بِزَعْفَرَانٍ فَغَدَوْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ وَقَالَ اذْهَبْ فَاغْسِلْ هٰذَا عَنْكَ . رواه ابوداؤد.

د حضرت عمار بن ياسر رضی الله عنه څخه روایت دی چې زه د سفر څخه و کور ته راغلم نو زما دواړه لاسونه چاؤدلي وه ، کور والا زما په لاسونو باندې د زعفرانو خوشبوئي و موږل ، سهار زه د

نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سوم او سلام مي ادا كړ، نبي كريم ﷺ زما د سلام جواب را نه كړ، او ويې فرمايل چي ولاړ سه خپل لاسونه دي پرېوله. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۰۲، رقم: ۴۱۷۶.

**تشريح**: په ښكنده دا معلوميږي چي د رسول الله ﷺ په علم كي به داسي عذر نوي راغلى چي د هغه په وجه حضرت عمار ﷺ د دغه خوشبويي استعمال وكړي لكه څرنګه چي رسول الله ﷺ د هغه د سلام جواب ورنه كړ او د خپل ناراضي اظهار يې وكړيا دا چي رسول الله ﷺ ته د عمار ﷺ خوشبويي پر خپل لاس لګول او دباندي وتل خوښ نسول.

﴿۴۲۴۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طِيبُ الرِّجَالِ مَا ظَهَرَ رِيحُهُ وَخَفِيَ لَوْنُهُ وَطِيبُ النِّسَاءِ مَا ظَهَرَ لَوْنُهُ وَخَفِيَ رِيحُهُ. رواه الترمذي والنسائي.

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د نارينه ؤ خوشبوئي هغه ده چي په هغه كي يوازى بوى (وږمه) يې ښكاره وي او رنګ يې پټ وي او د ښځو خوشبوئ هغه ده چي د هغې رنګ ښكاره وي او خوشبويئ يې پټه وي. ترمذي او نسائي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۹۹، رقم: ۲۷۸۷، والنسائي ۸\۱۵۱، رقم: ۵۱۱۷.

**تشريح**: لكه څرنګه چي مخكي بيان سول چي د رنګ څخه مراد هغه رنګ دى چي د ښكلا او زينت لپاره وي لكه سور او ژړ رنګ، علماوو ليكلي دي چي د ښځو خوشبويي په هغه وخت كي صحيح ده كله چي هغوى دباندي نه راوځي او په كور كي دننه وي يا د خپل خاوند سره وي نو هغې ته هر ډول خوشبويي استعمالول جائز دي.

## مركبه خوشبويي

﴿۴۲۴۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَتْ لرسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُكَّةٌ يَتَطَيَّبُ مِنْهَا. رواه ابوداؤد.

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ سره يوه سُګه (يوه تركيب سوي خوشبوئي) وه چي د هغې څخه به يې خوشبوئي لګوله. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۴\۳۹۴، رقم: ۴۱۶۲.

## سر غوړول

﴿۴۲۲۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ دَهْنَ رَأْسِهِ وَتَسْرِيحَ لِحْيَتِهِ وَيُكْثِرُ الْقِنَاعَ كَأَنَّ ثَوْبَهُ ثَوْبُ زَيَّاتٍ. رواه في شرح السنة

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ اکثره وخت خپل سر مبارک په روغنو باندي غوړوی او اکثره وخت به يې ږيره مبارکه ږمونځ کوله او پر سر مبارک به يې اکثره وخت ټوکر هواروی (يعني د غوړولو څخه وروسته نبي کريم ﷺ پر سرمبارک ټوکر هواروی چي لنګوټه په غوړه نه سي، هغه ټوکر به غوړ وو لکه د روغن خرڅونکي کالي. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\۸۲، رقم: ۳۱۶۴.

**تشريح**: ږيره مبارکه به يې ډېره ږمونځول: دا خبره د هغه روايت خلاف نه ده چي په هغه کي دا بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ د هري ورځي ږمونځ کولو څخه منع فرمايلې ده ځکه چي اول خو دغه منع د نهي تحريمي په توګه نه ده بلکه د نهي تنزيهي په توګه ده، دوهم د ډېر ږمونځولو څخه دا نه لازميږي چي رسول الله ﷺ به هره ورځ ږمونځول، ځکه د زياتوب اطلاق پر هغه شی هم کيږي چي يو کار د هغه د ضرورت په وخت کي وکړل سي، يعني د کوم عمل چي کوم وخت ضرورت وي هغه وخت کول هم د کثرت په حکم کي داخل دی، او کوم چي د مسئلې تعلق دی نو د ږيري ږمونځول سنت دي مګر کوم خلک چي د هر اوداسه څخه وروسته ږيره ږمونځوي نو د هغه په سنت صحيحه کي بنياد نسته.

د قناع څخه مراد هغه ټوکر دی چي رسول الله ﷺ به په وېښتانو کي د تېلو لګولو څخه وروسته ددې لپاره پر سر اچوی چي لنګوټه خېرنه او غوړه نسي، هغه ټوکر به د تېلو لګېدو په وجه ډېر غوړېدی ځکه يې د غوړ ټوکر سره تشبيه ورکړې ده، دا مراد نه دی چي هغه ټوکر به چټل وو يا دا چي د رسول الله ﷺ ټولي جامې به د غوړو جامو په ډول وې ځکه چي دغه مراد د هغه نظافت او پاکۍ څخه ډېري ليري دی چي د رسول الله ﷺ د مزاج يو جز وو، همدا وجه ده چي رسول الله ﷺ سپيني جامې ډېري خوښولې.

## د نبي ﷺ زلفي

﴿۴۲۴۹﴾: وَعَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ قَدِمَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْنَا بِمَكَّةَ قَدْمَةً وَّلَهُ أَرْبَعُ غَدَائِرَ. رواه احمد وابوداؤد والترمذي وابن ماجة.

د بي بي ام هانى رضي الله عنها څخه روايت دی ، چي يو ځل (د مکې د فتحي په ورځ) نبي کريم ﷺ و مکې ته تشريف راوړ ، دا وخت د نبي کريم ﷺ څلور زلفي وې . احمد ، ابوداؤد ، ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱۶\ ۳۴۱، رقم: ۴۱۹۱، والترمذي ۴\ ۲۱۶، رقم: ۱۷۸۱، وابن ماجه ۲\ ۱۱۹۹، رقم: ۳۶۳۱.

**د لغاتو حل**: زيات: اى بائع الزيت او صانعه (د غوړو پلورونكى يا جوړوونكى).

## په سر كي لاره ايستل

﴿۴۲۵۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ اِذَا فَرَقْتُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ صَدَعْتُ فَرْقَهُ عَنْ يَافُوخِهِ وَأَرْسَلْتُ نَاصِيَتَهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ.

رواه ابوداؤد.

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي ما به د رسول الله ﷺ په سر كي لاره ايستله نو ما به د نبي كريم ﷺ لاره د سر په منځ كي ځيرل او پر تندي به مي هغه پرېښودله ، د دواړو ستركو په مينځ كي (يعني لاره به مي د سر لوړي خوا څخه پيل كول او تر تندي پوري به مي راوستل او هغه به مي د دواړو ستركو مينځ ته راوستل). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۴۰۸، رقم: ۴۱۸۹.

**د لغاتو حل**: يافوخه: اى جله، ومعظمه عن جانب مؤخر راسه مما يلي القفا.

**تشريح**: يافوخ د سر منځنۍ برخي ته وايي ، او دا د ماغ سربېرنه سطح وي ، په وړكتوب كي په دغه ځاى كي بې كراري وي، بي بي عائشې رضي الله عنها د رسول الله ﷺ د سر د لارو صورت بيان كړى دى چي د هغو يو سر به د نزلې سره نژدې وو او د وهم سر به يې د ستركو د مينځ بالمقابل د تندي سره نژدې وو .

د روايت د آخري جملې مطلب دادى چي ما به د لاري مخ د تندي پر هغه غاړه اېښودى كوم

چي د دواړو سترګو په مينځ کي وي داسي چي د تندي نيم وېښتان به د لاري راسته خوا ته وه او نيم به د لاري چپه خوا ته وه ، طيبي رحمة الله عليه د حديث دغه معنى بيان کړې ده .

**هره ورځ ږمونځ کول منع دي**

﴿۴۲۵۱﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّرَجُّلِ إِلَّا غِبًّا . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي .

د حضرت عبد الله بن مغفل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د هري ورځي ږمنځ کولو څخه منع فرمايلې ده مګر په منځ کي د يوې ورځي په پرېښودو سره (يعني يوه نه بله ورځ) . ترمذي ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۰۵، رقم: ۱۷۵۶، وابوداود ۴\ ۳۹۲، رقم: ۴۱۵۹، والنسائي ۸\ ۱۳۲، رقم: ۵۰۵۵.

**تشريح**: قاضي رحمة الله عليه وايي : د غب مطلب دادی چي يو کار يوه ورځ وکړل سي او يوه ورځ پرېښودل سي ، نو د حديث مطلب دا سو چي ږمونځول دي هره ورځ نه کيږي بلکه يوه ورځ دي پرېښودل کيږي مګر دغه منع د نهي تنزيهي په توګه ده او ددې څخه بېله ضرورته هره ورځ د ږمونځولو پابندي کول او د عادت په توګه دغه کار کول مراد دی، ځکه چي دا په ښکلا او زينت کي د مبالغې او بې ځايه تکلف صورت دی، څرګنده دي وي چي لفظ د غب د ملاقات په سياق کي استعماليږي لکه څرنګه چي فرمايل سوي دي : (زر غبا تزدد حبا) ، نو ددې مفهوم دادی چي په اونۍ کي يو وار ملاقات وکړل سي ، او کله چي دغه لفظ د تبي لپاره استعماليږي نو ددې څخه د يوې ورځي په قضائي کولو سره يعني په دريمه ورځ تبه مفهوم کيږي ، همدارنګه د ناروغ پوښتنه کول او د غوښو خوړلو په سياق کي هم ددې څخه مراد دادی چي يوه ورځ دي پرېښودل سي .

هره ورځ د ږمونځولو په منع کي د سر او ږيري دواړو وېښتان مراد دي ، کوم خلک چي د هر اوداسه څخه وروسته ږمونځول کوي ددې د سنت سره هيڅ تعلق نسته، همدارنګه په احياء العلوم کي ليکلي دي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به هره ورځ دوه واره ږيره مبارکه ږمونځول، نو ددغه حديث هم څه ثبوت نه دی تر لاسه سوی ، په احياء العلوم کي د امام غزالي رحمة الله عليه څخه پرته بل هيچا دا حديث نقل کړی نه دی ، بلکه د شيخ ولي الدين عراقي رحمة الله عليه د قول مطابق امام غزالي

رحمة الله عليه په احياء العلوم كي د دغه حديث څخه پرته هم ځيني داسي حديثونه نقل كړي دي چي د هغو اصل ثابت نه دی .

پاته سوه دا خبره چي هره ورځ د ږمونځولو منع يوازي د نارينوو لپاره ده او كه د ښځو لپاره هم ده، نو په ظاهره دا خبره زياته صحيح معلوميږي چي دغه منع يوازي د نارينوو لپاره ده ځكه چي د ښځو لپاره ښكلا او زينت كول مكروه نه دي ، بيا هم ځيني حضرات وايي چي د دغه منع تعلق د نارينوو او ښځو دواړو سره دی مگر هغه حضرات دا هم وايي چي د ښځو په اړه دغه منع د سپكي درجې ده ځكه چي د هغوی لپاره د ښكلا او زينت دائره د نارينوو په نسبت ډېره پراخه ده .

## ډېر عيش او ارام مه كوئ

﴿۴۲۵۲﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ بَرِيْدَةَ قَالَ قَالَ رَجلَ إِلَى فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ مَا لِي

د حضرت عبد الله بن بريده رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه سړي و فضاله بن عبيد ته وويل ، څه

أَرَاكَ شَعِثًا قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْهَانَا عَنْ كَثِيرٍ مِنْ

خبره ده چي زه ستا وړښتان پرېشانه وينم ؟ فضاله ورته وويل ، نبي كريم صلى الله عليه وسلم به موږ د ډېر عيش

الْإِرْفَاهِ قَالَ فَمَا لِي لَا أَرَى عَلَيْكَ حِذَاءً قَالَ كَانَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا أَنْ نَحْتَفِيَ أَحْيَانًا. رواه ابو داؤد.

او ارام د خبرو څخه منعه كولو ، وروسته يې پوښتنه ځيني وكړه چي ولي زه ستا په پښو باندي بوټونه نه وينم ؟ هغه ورته وويل ، رسول الله صلى الله عليه وسلم موږ ته حكم را كړی دی چي كله كله به لڅي پښې هم گرځو . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۹۲، رقم: ۴۱۶۰.

**تشريح**: د عيش او آرام زياتو شيانونه اختيارولو او كله نا كله د لوڅو پښو گرځېدو د حكم وجه داده چي په داسي كولو سره په مزاج او طبيعت كي تواضع او انكساري پيدا كيږي، بلي خوا ته د دغه رياضت او مشقت په ذريعه پر نفس باندي واك تر لاسه كيږي او د دې يوه لويه گټه دا هم ده چي د حالاتو او معيشت د سختۍ او تنگۍ په وخت كي دغه رياضت او مشقت په كار راځي او د هغه سختي او تنگۍ د زغمولو همت او توانايي ور په برخه كيږي .

د دې څخه معلومه سوه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به په وېښتانو كي تېل هم لگول او ږمونځول به

يې هم، بلكه دا يې ښه ګڼل او نورو خلكو به هم د حكم او ترغيب په ذريعه په هغه عمل كوى مګر دديې سره سره رسول الله ﷺ ځيني حاملين زهد او رياضت دديې خلاف هم ساتل تر دې كه يو سړي به د رسول الله ﷺ په وړاندي دغه شيان پرېښودل نو رسول الله ﷺ به نه ترټل، بلكه ددغه شيانو د ترک كولو حكم به يې هم وركوى، دديې څخه ثابته سوه چي په دې اړه اصل كراهت په كومه خبره كي دى هغه دادى چي په عيش او راحت كي د حد اعتدال څخه تجاوز وكړل سي تر دې چي نفس د اسانۍ عادي سي او په تېل لګولو او ږمونځ كولو كي داسي بوختيا ځرګند كړي كوم چي د دين څخه د بېزاره خلكو او د عيش او عشرت كونكو طريقه ده، كله چي دا حكم وركول كيږي چي د زيب او زينت ذرائع مه اختياروئ او په خپل ژوند كي سادګي او انكساري او بې تكلفي بلكه زهد او رياضت اختيار كړئ نو دديې څخه مطلق دا مراد نه دي چي خيرن او چټل اوسېدو سره پاكي او نظافت پرېږدئ بلكه ددغه حكم مراد دادى چي په هر صورت د اعتدال او ميانه روئ خيال ساتئ د هيڅ شرعي حكم دغه منشاء هيڅكله نسي كيداى چي د هستوګني داسي طريقه اختيار كړل سي چي د تهذيب خلاف او د پاكۍ خلاف وي ځكه چي انسان مهذب او ښكلى جوړول د اسلام يو مقصد او تهذيب يو جز دى لكه چي په راتلونكي حديث كي فرمايل سوي دي.

## وريښتان سم ساتئ

﴿۴۲۵۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ لَهُ شَعْرٌ فَلْيُكْرِمْهُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د كوم سړي په سر او ږيره باندي وريښته وي نو هغه ته پكار ده چي په ښه شان سره يې ساتنه وكړي (يعني ښه پاک او خوشنما يې وساتي). ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۴\۳۹۴، رقم: ۴۱۶۳.

## د نكريزو استعمال

﴿۴۲۵۴﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحْسَنَ مَا غُيِّرَ بِهِ الشَّيْبُ الْحِنَّاءُ وَالْكَتَمُ . رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي.

د حضرت ابو ذر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د سپينو وريښتو بدلونکي ښه شی نکريزي او وسمه ده . ترمذي ، ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۰۴، رقم: ۱۷۵۳، وابوداود ۴\۴۱۶، رقم: ۴۲۰۵، والنسائي ۸\۱۳۹.

**تشريح**: (كَتَمٌ) او د ځينو حضراتو د قول مطابق كُتّمٌ، د يو واښه نوم دی چي د وسمې په ذريعه په يو ځای کولو سره په وېښتانو کي د خضاب کولو لپاره استعماليږي، ځيني حضرات وايي چي كتم په اصل کي وسمې ته وايي، په هر حال د حديث د مفهوم په اړه دا سوال پيدا کيږي چي ايا دا مراد دی چي نکريزي او وسمه دي يوځای کولو سره خضاب کوي يا دا مراد دی چي يوازي د نکريزو يا يوازي د وسمې خضاب دي کوي، د نهايه د قول مطابق په ظاهره داسي معلوميږي چي په حديث کي يوازي كتم يا يوازي د نکريزو خضاب کول مراد دي ځکه که چيري كتم د نکريزو سره يو ځای کړل سي نو د هغه څخه تور خضاب جوړيږي او په صحيح رواياتو کي د تور خضاب منع سوې ده، په دغه صورت کي به ويل کيږي چي د دغه جمله په اصل کي (بالحناء او الكتم) ده يعني د واو پر ځای او دی، د هغه مطلب دادی چي خضاب کونکي ته اختيار دی که د نکريزو خضاب کوي او که د كتم، مګر حقيقت دادی چي دغه روايت په ډېرو طريقو او سندو سره منقول دی او ټولو بالحناء والكتم نقل کړی دی ، که څه هم په دې سره پر مذکوره مفهوم باندي اثر نه لويږي ځکه چي د و حرف د مفهوم په اعتبار د او په معنی کي کېدای سي ، په ځينو حاشيو کي دا ليکلي دي چي يوازي د نکريزو خضاب سور وي او يوازي د كتم خضاب شين وي، د ځينو حضراتو د قول څخه دا مفهوم اخيستل کيږي چي خالص د كتم خضاب تور وي او که كتم د نکريزو سره يو ځای کړل سي نو سور رنګه رنګ پيدا کيږي، په دغه صورت کي که وويل سي چي په حديث کي د كتم او نکريزو دواړو مرکب خضاب دی نو هيڅ سوال نه پيدا کيږي ، مخته د ابن عباس ﷛ يو روايت راځي چي د هغه څخه دا ثابتيږي ،

ملا علي قاري ﷫ ليکلي دي: زياته صحيح خبره داده چي د كتم او نکريزو مرکب خضاب مختلف وي ، که د كتم جز غالب وي يا كتم او نکريزي دواړه برابر وي نو خصاب تور وي او که د نکريزو برخه غالبه وي نو خضاب به سور وي .

## تور خضاب

﴿۴۲۵۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَكُونُ قَوْمٌ فِي آخِرِ الزَّمَانِ يَخْضِبُونَ بهذا بِالسَّوَادِ كَحَوَاصِلِ الْحَمَامِ لَا يَرِيحُونَ

رَائِحَةَ الْجَنَّةِ . رواه ابوداؤد والنسائي.

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په اخيره زمانه كي به يوه ډله وي چي د تور والي لپاره به د كوتري د ججورو په شان نكريزي استعمالوي (يعني څنګه چي د كوترو توري ججوري وي)داسي نكريزي به استعمالوی ، داسي خلک به د جنت بوي و نهويني . ابوداؤد او نسائي

**تخريج** : سنن ابي داود ۴۱۸\۱۴، رقم: ۴۲۱۲، والنسائي ۱۳۸\۸، رقم: ۵۰۷۵.

**د لغاتو حل** : حواصل الحمام: ای صدوره.

**تشريح** : د توروالي څخه مراد خالص توروالی دي، په دغه صورت کي به هغه توروالی مستثنی وي كوم چي سور ماله وي لکه د كتم او نكريزو د خضاب رنګ، د جنت بوی به حس نه كړي: دا په اصل كي د تور خضاب كونكو لپاره د زجر او تهديد په سختۍ سره بيانول دي، يا دغه ارشاد پر هغه چا باندي محمول دی چي تور خضاب استعمالوي او جائز يې هم ګڼي ، په ځينو حاشيو كي ليكلي دي چي داسي خلک كه په جنت كي داخل سي نو د هغه د بوی څخه به نه خوندي كيږي او نه به برخمن كيږي او د ځينو حضراتو د قول مطابق د دې څخه مراد دادی چي په موقف كي د جنت څخه چي كومه خوښۍ او خوشبويي ترلاسه كيږي او په هغه سره مسلمان خوشحاله كيږي نو د دې څخه به ذكر سوي خلک محروم وي ، په هر حال د حديث څخه دا ثابته سوه چي تور خضاب حرام دی .

## ژړ خضاب

﴿۴۲۵۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَلْبَسُ النِّعَالَ السِّبْتِيَّةَ وَيُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالْوَرْسِ وَالزَّعْفَرَانِ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ . رواه النسائي.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د پخ كړی پوست څپلی په پښو كولې او ږيري ته به يې د زعفران او ورس (يو قسم وابښه) سره ژړ رنګ وركوی او حضرت عمر ﷺ به هم داسي كول . نسائي

**تخريج** : سنن النسائي ۱۸۶\۸، رقم: ۵۲۴۴.

**د لغاتو حل**: السبتيه: جلود البقر المدبوغة بالقرظ. الورس: نبت اصفر.

**تشريح**. د دغه حديث څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ به خپله ږيره مبارکه خضاب کول، حال دا چي په کتاب اللباس کي د حضرت انس رضی الله عنه روايت تېر سوی دی چي د هغه څخه دا ثابتيږي چي رسول الله ﷺ هيڅکله خضاب استعمال کړی نه دی، د دواړو روايتو په مېنځ کي چي د مطابقت کوم صورت دی هغه د حضرت انس رضی الله عنه د روايت په تشريح کي بيان سوی دی.

﴿۴۲۵۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ قَدْ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دی چي د نبي کريم ﷺ خواته يو سړی تېر سو چي هغه د

خَضَّبَ بِالْحِنَّاءِ فَقَالَ مَا أَحْسَنَ هٰذَا قَالَ فَمَرَّ آخَرُ قَدْ خَضَّبَ بِالْحِنَّاءِ وَالْكَتَمِ

نکريزو خضاب لګولي وو (د هغه په ليدو سره) نبي کريم ﷺ وفرمايل: څومره ښه! ابن عباس رضی الله عنه وايي، وروسته بيا يو بل سړی تير سو چي د نکريو او وسمې خضاب يې لګولي وو،

فَقَالَ هٰذَا أَحْسَنُ مِنْ هٰذَا ثم مر آخَرُ قَدْ خَضَّبَ بِالصُّفْرَةِ فَقَالَ هٰذَا أَحْسَنُ مِنْ هٰذَا كُلِّهِ. رواه ابوداؤد.

نبي کريم ﷺ وفرمايل: دی د هغه څخه بهتر دی، وروسته بيا بل سړی تير سو چي هغه د ژړ رنګ خضاب لګولي وو، نبي کريم ﷺ وفرمايل: دی د ټولو څخه بهتره دی. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۱۷، رقم: ۴۲۱۱.

## د خضاب حکم

﴿۴۲۵۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيِّرُوا الشَّيْبَ وَلَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ. رواه الترمذي ورواه النسائي عن ابن عمر والزبير

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: سپين ږير واله په خضاب سره بدل کړئ او د يهودو مشابهت مه کوئ (چي هغوی به خضاب نه لګوی). ترمذي او نسائي د ابن عمر رضی الله عنه او زبير رضی الله عنه څخه روايت کوي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۰۳، رقم: ۱۷۵۲.

**تشریح** کېدای سي چي په حدیث کي د ذکر سوي حکم تعلق د هغه خلکو سره وي چي هغوی په جهاد کي وي، چي ددې په ذریعه پر دښمنانو باندي د مسلمانانو د طاقت اظهار وي او دښمن په بېره کي سي.

## سپین وېښتان

﴿۴۲۵۹﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ

عمرو بن شعیب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه بیا د خپل پلار څخه روایت کوي چي رسول الله

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَنْتِفُوا الشَّيْبَ فَإِنَّهُ نُورُ الْمُسْلِمِ مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي

ﷺ وفرمایل: سپین وربښته مه کاږئ ځکه چي سپین وربښته د مسلمانانو لپاره د نورانیت سبب دی، د اسلام په حالت کي که دکوم چا یو وربښته هم سپین سي

الْإِسْلَامِ كَتَبَ اللَّهُ لَهُ بِهَا حَسَنَةً وَكَفَّرَ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةً وَرَفَعَهُ بِهَا دَرَجَةً.

رواه ابوداؤد.

نو د هغه لپاره د خدای تعالی له طرفه یوه نیکي لیکل کیږي او یوه ګناه ورڅخه لیري کیږي او یوه درجه یې لوړیږي. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\ ۴۱۴، رقم: ۴۲۰۲.

**تشریح** سپین ږیرتوب ته نورانیت ځکه فرمایل سوی دی چي سپین ږیرتوب په اصل کي د وقار مظهر دی، لکه چي په دریم فصل کي راتلونکي یوه روایت څخه به معلومه سي چي په انسانانو کي تر ټولو پر لومړي سړي باندي د سپینو وېښتانو په صورت کي چي سپین ږیرتوب راغلی هغه حضرت ابراهیم علیه السلام وو، کله چي هغه په لومړي ځل په خپل ږیره کي د سپینو وېښتانو په صورت کي سپین ږیرتوب ولیدی نو الله جل جلاله ته یې عرض وکړ: اې زما پروردګاره! دا څه شي دی؟ جواب راغلی چي دا وقار دی، حضرت ابراهیم علیه السلام وویل: اې الله! رما وقار زیات کړې.

وقار په اصل کي یو داسي صفت دی چي انسان د ګناه، فسق او بې حیایي څخه منع کوي، توبې او طاعات ته یې مائله کوي، ځکه نو دغه صفت په انسان کي هغه نور پیدا کوي چي د حشر په میدان کي به د ظلمت او تیارو په ختمولو سره پر مخ ځي، لکه چي په آیت کریمه کي

فرمايل سوي دي : (يسعى نورهم بين ايديهم و بايمانهم) ، ددې توجيه داده چي په رڼا کي د سپين ږېرتوب د نور څخه د قيامت د ورځي نور مراد دی ، په يوه روايت کي ددې وضاحت هم سته ، او که چيري د نورانيت څخه د شکل او صورت ښه والی ، د باطن پاکوالی او نيک خويونه مراد وي چي په دغه دنيا کي سپين ږېرو ته تر لاسه کيږي نو دا هم د حقيقت څخه ليري خبره نه ده ددغه حديث څخه دا مسئله هم ثابته سوه چي د سپينو وېښتانو کښل مکروه دي .

《۴۲۶۰》: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي الْإِسْلَامِ كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه الترمذي والنسائي

د حضرت کعب بن مره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د اسلام په حالت کي سپين ږيري سي د هغه دا سپين ږير والي به د قيامت په ورځ د هغه لپاره يو نور وي . ترمذي او نسائي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۴۷، رقم: ۱۶۳۴، والنسائي ۲۶\۱۶،رقم: ۳۱۴۲.

**تشريح**: دلته دا سوال پيدا کيږي چي کله سپين ږېرتوب (يعني د وېښتانو سپين کېدل) په دنيا او آخرت کي د نورانيت سبب دی نو د خضاب (نکريزو) په ذريعه د هغو بدلول ولي جائز دي؟ ددې جواب دادی چي د خضاب مشروعيت هم په اصل کي د يو ديني حکمت په وجه دی او هغه دا چي ددې په ذريعه د دښمنانو په مخکي د قوت او هيبت اظهار وي چي هغوی مسلمانان ضعيف او کمزوري ونه ګڼي ، په دغه صورت کي بيا دا سوال پيدا کيږي که چيري د ذکر سوي حکمت په وجه خضاب لګول مشروع وي نو ددغه حکمت لپاره د وېښتانو کښل ولي جائز نه دي؟ ددې جواب دادی چي د وېښتانو کښل داسي عمل دی چي په هغه کي محض د وېښتانو سپينوالی نه بدليږي بلکه سپين وېښتان د ېخه کښل وي چي د تکليف باعث دي او دوهم دا چي د بد شکلۍ سبب هم کيږي ، حال دا چي نکريزي لګول په ښکلا کي زياتوب کوي نو په نکريزو لګونکو او وېښتانو کښونکو کي ډېر فرق دی .

## د نبي کريم ﷺ د سر مبارک وړېښتان

《۴۲۶۱》: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ وَكَانَ لَهُ شَعْرٌ فَوْقَ الْجُمَّةِ وَدُونَ الْوَفْرَةِ. رواه الترمذي

د بي بي عائشې ﷺ څخه روايت دی چي ما او نبي كريم ﷺ به د يوه لوښي څخه غسل كوئ (يعني د اوبو لوښي به د دواړو په مينځ كي پروت وو) او د نبي كريم ﷺ د سر مبارك وريښته د اوږو څخه پورته او د غوږونو څخه كښته وه). ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۰۵، رقم: ۱۷۵۵، والنسائي ۱\۱۲۸، رقم: ۲۳۳.

**تخريج**: الجمة: ما سقط على المنكبين (هغه ويښتان چي پر اوږو پراته وي). الوفرة: ما وصل الى شحمة الاذن (هغه ويښتان چي د غوږونو تر نرمۍ پوري وي).

**تشريح**: د سر ويښتان په عربي كي په درو نومو سره تعبير كيږي: يو خو جمه، دوهم وفره او دريم لمه، كه د يو چا دومره اوږده ويښتان وي چي غوږو ته رسيږي نو هغه ويښتانو ته جُمّه وايي، او كه د غوږو تر نرميو پوري وي نو هغه ته وفره وايي او كوم ويښتان چي د غوږو د نرميو او د اوږو په مينځ كي وي يعني د غوږو د نرمۍ څخه لاندي وي مګر پر اوږو سربېره وي نو هغه ته لمه وايي، بي بي عائشه ﷺ وايي چي هغه وخت د رسول الله ﷺ ويښتان پر اوږو سربېره او د غوږو د نرميو لاندي وه چي لمه ورته وايي، په ځينو ځايو كي جمه د مطلق ويښتانو په معنى استعماليږي لكه څرنګه چي په شمائل ترمذي كي نقل سوي دي: (وكانت جمة تضرب سحمة اذنيه).

## نارينه بايد زائد ويښتان ايسته كړي

﴿۴۲۶۲﴾: وَعَنِ ابْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ رَجُلٌ مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د نبي كريم ﷺ د يو صحابي حضرت ابن حنظليه ﷺ څخه روايت دی چي

قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَ الرَّجُلُ خُرَيْمٌ الْأَسَدِيُّ لَوْلَا طُولُ

رسول الله ﷺ وفرمايل: كه د خريم اسدي د سر ويښته اوږده نه وای او د هغه لنګ اوږد نه وای

جُمَّتِهِ وَإِسْبَالُ إِزَارِهِ فَبَلَغَ ذٰلِكَ خُرَيْمًا فَأَخَذَ شَفْرَةً فَقَطَعَ بِهَا جُمَّتَهُ إِلَى أُذُنَيْهِ وَرَفَعَ إِزَارَهُ إِلَى أَنْصَافِ سَاقَيْهِ. رواه ابوداؤد.

نو هغه ډېر ښه سړی دی. دا الفاظ چي د خريم تر غوږو پوري ورسېدل نو هغه خپل د سر وريښتان د غوږونو پوري پرېكړل او لنګ يې تر نيمي پونډۍ پوري وتړی. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۴۸، رقم: ۴۰۸۹.

﴿۴۲۶۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَتْ لِي ذُؤَابَةٌ فَقَالَتْ لِي أُمِّي لَا أَجُزُّهَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمُدُّهَا وَيَأْخُذُ بِهَا. رواه ابوداؤد.

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چې زما څوښې وې، زما مور ماته وویل: زه دا هیڅکله نه پرېکوم ځکه چې رسول الله ﷺ به دا کشولې او نیول به یې. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴۱۱\۴، رقم: ۴۱۹۶.

## د ماتم کولو وخت

﴿۴۲۶۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْهَلَ آلَ

د حضرت عبدالله بن جعفر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د جعفر طیار اولاد ته درې

جَعْفَرٍ ثَلَاثًا ثُمَّ أَتَاهُمْ فَقَالَ لَا تَبْكُوا عَلَى أَخِي بَعْدَ الْيَوْمِ ثُمَّ قَالَ ادْعُوا لِي

ورځې مهلت ورکړ (یعني کوم وخت چې د جعفر طیار د شهادت خبر راغلی نو نبي کریم ﷺ هغوی ته تر درو ورځو پورې د ماتم کولو اجازت ورکړ او بیا نبي کریم ﷺ د هغوی و کور ته ورغی او ورته یې وفرمایل: د نن څخه وروسته زما په ورور (جعفر) باندې ژړا مه کوئ، بیا یې

بَنِي أَخِي فَجِيءَ بِنَا كَأَنَّا أَفْرُخٌ فَقَالَ ادْعُوا لِي الْحَلَّاقَ فَأَمَرَهُ فَحَلَقَ رُءُوسَنَا.

رواه ابوداؤد والنسائي.

وفرمایل: زما د ورور جعفر زامن ماته راولئ، موږ را وستل سوو، موږ داسې وو لکه کوچنې مرغان، بیا یې وفرمایل: (نائي) را وغواړئ، هغه راغی نو نبي کریم ﷺ ورته د دې کوچنیانو د سر د خریلو حکم ورکړ نو زموږ سرونه وخریل سول. ابوداؤد او نسائي.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴۰۹\۴، رقم: ۴۱۹۲، والنسائي ۱۸۲\۸.

**د لغاتو حل**: افرخ: جمع فرخ وهو ولد الطير. (چیچې)

**تشریح**: حضرت جعفر رضی اللہ عنہ د ابوطالب زوی وو او د حضرت علي رضی اللہ عنہ سکه ورور وو، ځکه نو هغه د رسول الله ﷺ د اکا زوی وو،

د دغه حدیث څخه ثرګنده سوه چې د نوحې، جزع او فزع څخه پرته پر مړي باندې ژړل او

غمجن کېدل تر درو ورځو پوري جائز دي ، د درو ورځو څخه وروسته ژړا او ماتم کول جائز نه دي او نه تعزيت کول روا دي،

د حج او عمرې څخه د فارغه کېدو وروسته د سر خريل افضل دي مګر ددې څخه پرته وېښتان پرېښودل هم افضل دي مګر ددې سربېره رسول الله ﷺ د حضرت جعفر رضي الله عنه د زامنو د سر خريلو حکم ځکه وکړ چي د هغوی مور (يعني بي بي اسماء بنت عميس رضي الله عنها) د خپل خاوند د بېلوالي په سخت غم اخته وه ، هغې ته د خپل مصيبت څخه دومره فرصت نه وو چي د کوچنيانو د وېښتانو ، پاکۍ، تېل لګولو او ږمونځولو خيال وساتي ، په دغه صورت کي د هغوی په سرونو کي د شپږو پيدا کېدو خطره وه نو رسول الله ﷺ د هغوی وېښتان خريل غوره وګڼل .

## د ښځو سنت کول

﴿۴۲۶۵﴾: وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ الْأَنْصَارِيَّةِ أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تَخْتِنُ بِالْمَدِينَةِ فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُنْهِكِي فَإِنَّ ذَلِكَ أَحْظَى لِلْمَرْأَةِ وَأَحَبُّ إِلَى الْبَعْلِ . رواه ابوداؤد و قال هذا الحديث ضعيف و راويه مجهول.

د بي بي ام عطيه انصاريه رضي الله عنها څخه روايت دی ، په مدينه منوره کي به يوې ښځي (د ښځو)سنتي کوله ، نبي کريم ﷺ و هغې ته وفرمايل: د سنت په ځاي کي د پرېکولو زياتوالی مه کوه (يعني زياته غوښه يې مه پرېکوه) ځکه چي په زياته غوښه نه پرېکولو سره د کوروالي په وخت کي ښځي ته زيات لذت او خوند حاصلېږي او خاوند ته هم دا خوښه ده او د زيات پرېکولو سره دا دواړي خبري ختمېږي . ابوداؤد او په ابو داؤد کي دا حديث ضعيف دی او د دې راوي نامعلوم دی.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۴۲۱، رقم: ۵۲۷۱.

**تشريح** (و راويه مجهول) : او راوي يې مجهول دی، کېدای سي چي دلته جنس راوي مراد وي يعني ددغه حديث ټول راويان مجهول دي، همدارنګه دا هم کېدای سي چي ددغه جملې څخه دا مراد وي چي يو راوي مجهول دی لکه چي په يو بلي نسخې کي د نقل سوو الفاظو څخه څرګندېږي : (وفي رواية مجهول). په هر حال دغه روايت طبراني رحمة الله عليه په صحيح سند سره او حاکم په مستدرک کي د ضحاک ابن قيس رضي الله عنه څخه نقل کړی دی چي د هغه الفاظ دادي : (احفضني ولا تنهكي فانه انضر للزوجة واحظى عند الزوج) .

## نكريزي د ښځو لپاره

﴿۴۲۶۶﴾: وَعَنْ كَرِيمَةَ بِنْتُ هُمَامٍ أَنَّ امْرَأَةً سَأَلَتْ عَائِشَةَ عَنْ خِضَابِ الْحِنَّاءِ فَقَالَتْ لَا بَأْسَ وَلَكِنْ أَكْرَهُهُ كَانَ حَبِيبِي يَكْرَهُ رِيحَهُ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د بي بي كريمه بنت همام رضي الله عنها څخه روايت دى چي يوې ښځي د نكروزو په هكله د بي بي عائشې رض څخه پوښتنه وكړه، هغې ورته وفرمايل: هيڅ ګناه نلري، ليكن زه يې نه خوښوم ځكه چي زما د محبوب (نبي كريم ﷺ) د دې بوى خوښ نه وو. ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۹۵، رقم: ۴۱۶۴، والنسائي ۸\۱۴۲، رقم: ۵۰۹۰.

**تشريح**: په څرګنده دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د ښځو په وېښتانو كي د نكريزو لګول نه خوښول، كه چيري د رسول الله ﷺ په نزد د ښځو لپاره د نكريزو استعمال ناخوښه واى نو رسول الله ﷺ به د بي بي هندې رضي الله عنها سره محض د دې وجه څخه د بيعت كولو څخه انكار ولي كولاى چي د هغې لاس د نكريزو څخه خالي وو لكه چي د راتلونكي حديث څخه به څرګنده سي.

## د ښځو پر لاسو نكريزي وهل مستحب دي

﴿۴۲۶۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ هِنْدَ بِنْتَ عُتْبَةَ قَالَتْ يَا نَبِيَّ اللَّهِ بَايِعْنِي قَالَ لَا أُبَايِعُكِ حَتَّى تُغَيِّرِي كَفَّيْكِ فَكَأَنَّهُمَا كَفَّا سَبُعٍ. رواه ابوداؤد.

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دى چي د عتبه لور هندې عرض وكړ اې د الله جل جلاله رسوله! زما سره بيعت وكړئ، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: يا، زه تر هغه وخته پوري ستا سره بيعت نه كوم تر څو پوري چي ته د خپلو لاسونو ورغوي بدل نه كړې، ستا دا لاسونه لكه د ليوه داسي دي (د هندې لاسونه تور وه نكريزي وربانديي نه وې لګېدلي) نبي كريم ﷺ د نارينوو سره د مشابهت كولو په وجه هغه بد وګڼل. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۹۵، رقم: ۴۱۶۵.

**تشريح**: هنده د عتبه لور، د ابوسفيان ښځه او د معاويه رضي الله عنه مور وه، نوموړي د مكې د فتح په كال اسلام قبول كړى دي او دا څرګنديږي چي په ذكر سوي حديث كي د كوم بيعت ذكر سوى

دی هغه د مکې د فتح د ورځي ځخه پرته د بلي ورځي پېښه ده، د حديث څخه دا ثابته سوه چي ښځو لره په لاسو نکريزو لګول مستحب دي او پرېښودل يې مکروه دي او دغه کراهت د نارينوو د مشابهت اختيارولو په وجه دی.

﴿۴۲۶۸﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ أَوْمَتْ امْرَأَةٌ مِنْ وَرَاءِ سِتْرٍ بِيَدِهَا كِتَابٌ إِلَى رَسُولِ

د بي بي عائشي ﷺ څخه روايت دی چي يوې ښځي د پردې د شا څخه خپل لاسونه را وکښل او

اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبَضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ فَقَالَ مَا

دا اشاره يې وکړه چي د هغې په لاس کي د نبي کريم ﷺ په نامه يو خط دی، نبي کريم ﷺ خپل لاس ځيني ليري کړ او ويې فرمايل چي

أَدْرِي أَيَدُ رَجُلٍ أَمْ يَدُ امْرَأَةٍ قَالَتْ بَلْ امْرَأَةٌ قَالَ لَوْ كُنْتِ امْرَأَةً لَغَيَّرْتِ أَظْفَارَكِ يَعْنِي بِالْحِنَّاءِ. رواه ابوداؤد والنسائي

زه نه پوهېږم چي دا لاس د نارينه دی او که د ښځي هغې ښځي وويل: دا لاس د ښځي دی، نبي کريم ﷺ وفرمايل: که ته ښځه يې نو د خپل نوکانو رنګ به دي بدل کړی وای يعني په دې به دي نکريزي لګولي وای. ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۹۶، رقم: ۴۱۶۶، والنسائي ۸\۱۴۲، رقم: ۵۰۸۹.

**تشريح**: دغه حديث د ښځو پر لاسو باندي د نکريزو لګولو استحباب او د اوسيدو پر طريقو او اداب معاشرت څرګندونه کوي.

## پر شيږو ښځو لعنت

﴿۴۲۶۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لُعِنَتْ الْوَاصِلَةُ وَالْمُسْتَوْصِلَةُ وَالنَّامِصَةُ وَالْمُتَنَمِّصَةُ وَالْوَاشِمَةُ وَالْمُسْتَوْشِمَةُ مِنْ غَيْرِ دَاءٍ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي لعنت ويل سوی دی خپل يا د بلي ښځي (يا مصنوعي) وربښته يو ځای کونکو باندي (ځان ته يا بلي ښځي ته) او چي د خپل مخ وربښتان کاږي او يا د بل چا د مخ څخه وربښتان کاږي او د خالو په وهونکو باندي (خواه ځانته خالونه

وهي یا بلي ښځي ته بېله مرضه). ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۳۹۹، رقم: ۴۱۷۰.

**تشریح**: په حدیث کي د ذکرسوو الفاظو وضاحت په اول فصل کي تېر سوی دی، ددغه حدیث څخه دا معلومه سوه که چیري د خال لګولو ضرورت او اړتیا وي نو په دغه صورت کي خال لګول یا بل چا ته وهل جائز دي که څه هم د هغه نښه پاته سي.

## د یو بل شکل اختیارول

﴿۴۲۷۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَ يَلْبَسُ لِبْسَةَ الْمَرْأَةِ وَالْمَرْأَةَ تَلْبَسُ لِبْسَةَ الرَّجُلِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ پر هغه سړي باندي چي د ښځو لباس اغوندي او پر هغه ښځه چي د نارینه لباس اغوندي، لعنت ویلی دی. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\ ۳۵۵، رقم: ۴۰۹۸.

﴿۴۲۷۱﴾: وَعَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ قِيلَ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا إِنَّ امْرَأَةً تَلْبَسُ النَّعْلَ فَقَالَتْ لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ. رواه ابوداؤد

د حضرت ابن ابي ملیکه رحمه الله څخه روایت دی چي بي بي عائشي رضی الله عنها ته وویل سوه چي یوه ښځه د نارینه ؤ په شان بوټونه په پښو کوي، بي بي عائشي رضی الله عنها ورته وفرمایل: نبي کریم ﷺ پر هغه ښځي باندي لعنت ویلی دی چي د نارینه ؤ سره مشابهت کوي. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\ ۳۵۵، رقم: ۴۰۹۹.

**تشریح**: هغه مشابهت بد دی چي په جامو، هستوګني او طریقو کي اختیار کړل سي، او کومه ښځه چي په علم، عقل، حکمت او پوهي کي د نارینوو مشابهت اختیاروي نو هغه بد نه دی، لکه چي د بي بي عائشي رضی الله عنها په اړه ویل سوي دي چي: (کانت عائشة رجلة الرای) یعني د بي بي عائشي رضی الله عنها پوهه د نارینوو په ډول وه.

## د راحت او ارام ژوند نه خوښول

﴿۴۲۷﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ كَانَ

د حضرت ثوبان رضی الله عنه څخه روایت دی، کله چې به رسول الله ﷺ په سفر تلی نو د کور د ټولو

آخِرُ عَهْدِهِ بِإِنْسَانٍ مِنْ أَهْلِهِ فَاطِمَةَ وَأَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ عَلَيْهَا فَاطِمَةَ فَقَدِمَ

وګړو سره به یو ځای کېدی او رخصت به یې ځیني اخیستیا و په اخیر کې به خپلې لور بي بي فاطمې رض ته ورغی (د رخصت اخیستلو لپاره) او کله چې به د سفر څخه بیر ته راغی نو تر ټولو مخکې به (خپلې لور) بي بي فاطمې رضی الله عنها ته را تلی،

مِنْ غَزَاةٍ وَقَدْ عَلَّقَتْ مِسْحًا أَوْ سِتْرًا عَلَى بَابِهَا وَحَلَّتْ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ

یو ورځ حسب معمول نبي کریم ﷺ د یوې غزا څخه تشریف راوړ او د بي بي فاطمې رضی الله عنها و کور ته داخل سو، بي بي فاطمې د کور پر دروازه باندې ټاټ یا پرده اچولې وه او حضرت امام حسن او امام حسین رض ته یې

قُلْبَيْنِ مِنْ فِضَّةٍ فَقَدِمَ فَلَمْ يَدْخُلْ فَظَنَّتْ أَنَّ مَا مَنَعَهُ أَنْ يَدْخُلَ مَا رَأَى

دوې کړې د سپینو زرو اچولې وې، نبي کریم ﷺ تر دروازې پورې تشریف راوړ او کور ته داخل نه سو، بي بي فاطمې رضی الله عنها ته معلومه سوه چې نبي کریم ﷺ ولې و کور ته تشریف را نه

فَهَتَكَتْ السِّتْرَ وَفَكَّتْ الْقُلْبَيْنِ عَنْ الصَّبِيَّيْنِ وَقَطَّعَتْهُ بَيْنَهُمَا فَانْطَلَقَا إِلَى

وړ، نو هغې پرده ایسته کړه او د امام حسن او امام حسین رض څخه یې کړې لیرې او ماتې کړې

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم يَبْكِيَانِ فَأَخَذَهُ مِنْهُمَا وَقَالَ يَا ثَوْبَانُ اذْهَبْ

، دواړه و نبي کریم ﷺ ته په ژړا راغله، نبي کریم ﷺ د هغوی څخه دواړې کړې واخیستلې او ویې فرمایل: اې ثوبان!

بِهَذَا إِلَى آلِ فُلَانٍ إِنَّ هَؤُلَاءِ أَكْرَهُ أَنْ يَأْكُلُوا طَيِّبَاتِهِمْ فِي حَيَاتِهِمُ الدُّنْيَا يَا

دا زېور (کالی) د فلاني سړي کورو الا ته یوسه (چې هغوی ته ضرورت وو) او د نبي کریم ﷺ

دوست وو ، هغوی ته يې ورکړه ، ځکه چې دا بچې زما د اهل بيت څخه دی زه د دوی لپاره دا بد گڼم چې په خپل د نيوي ژوند کې بهترينه غذاوې و خوري

ثَوْبَانُ اشْتَرِ لِفَاطِمَةَ قِلَادَةً مِنْ عَصَبٍ وَسِوَارَيْنِ مِنْ عَاجٍ. رواه احمد وابوداؤد

يا بهترين لباس و اغوندي يا د عيش وعشرت لذت حاصل کړي ، اې ثوبان! د فاطمې لپاره د هډوکو يو اميل واخله او د فيل د غاښو دوه باهوگان . احمد او ابوداؤد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۲۷۵، وابوداود ۴\۴۱۹، رقم: ۴۳۱۳.

**د لغاتو حل**: مسحا : المسح ثوب من الشعر غليظ (د وړې څخه جوړه سوې جامه). عصب: هو سن حيوان

## رانجه

﴿۴۲۷۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اكْتَحِلُوا بِالْإِثْمِدِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : په سترگو کې اثمد رانجه

فَإِنَّهُ يَجْلُو الْبَصَرَ وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ وَزَعَمَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ

لگوئ ځکه چې دا د سترگو رڼا تېزه وي او د سترگو باڼه غځوي. د ابن عباس رضي الله عنهما بيان دی چې د

لَهُ مُكْحُلَةٌ يَكْتَحِلُ بِهَا كُلَّ لَيْلَةٍ ثَلَاثَةً فِي هَذِهِ وَثَلَاثَةً فِي هَذِهِ . رواه الترمذي

نبي کريم ﷺ سره يوه رنجنونې وه او د هغې څخه به يې هره شپه درې سلائي په يوه سترگه کې او درې سلائي يې په بله سترگه کې اچول . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۰۶، رقم: ۱۷۵۷.

**تشريح**: ځيني حضرات وايي چې اثمد مطلق رانجو ته وايي مگر صحيح خبره داده چې اثمد يو خاص ډول رانجو ته ويل کيږي، د ځينو حضراتو د قول مطابق هغه خاص ډول اصفهاني رانجو ته وايي چې د سترگو څخه بهېدونکي اوبه ختموي، که چيرې په سترگو کې زخم يا سوی پيدا سي نو هغه دفع کوي او د سترگو رگو ته چې د رڼا ذريعه طاقت ورکوي، په خاصه توگه د زيات عمر خلکو او کوچنيانو لپاره زيات گټور دي .

په يوه روايت کې د بالاثمد پر ځای د بالاثمد المروح الفاظ دي يعني هغه رانجه چې د خاص مشک مخلوط وي .

د هري شپې څخه مراد هره شپه د بېده کېدو څخه مخکې مراد دي، لکه څرنګه چې په يوه روايت کې وعند النوم الفاظ هم نقل سوي دي، د شپې بېده کېدو څخه مخکې په رانجه لګولو کې حکمت دادی چې د رانجو اجزا په سترګو کې تر ډېره وخته پوري وي او هغه اثرات د سترګو دننه پردو او د اوبو ځايو ته په ښه ډول رسيږي .

**ښه دوا**

﴿۴۲۷۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْتَحِلُ قَبْلَ اَنْ يَّنَامَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به د بيدېدو څخه مخکې سترګې

بِالْاِثْمِدِ ثَلٰثًا فِيْ كُلِّ عَيْنٍ قَالَ وَقَالَ إِنَّ خَيْرَ مَا تَدَاوَيْتُمْ بِهِ اللَّدُوْدُ وَالسَّعُوْطُ

تورولې او هره سترګه به يې درې سلايانې تورولې ، د ابن عباس بيان دی ، نبي کريم ﷺ وفرمايل: په کومو شيانو سره چې تاسو دوا کوئ په هغوی کې تر ټولو ښه دا شيان دي : (۱):لدود (په خوله کې د اچولو دوا).(۲): سعوط (په پزه کې د اچولو يا د بويولو دوا).

وَالْحِجَامَةُ وَالْمَشِيُّ وَخَيْرُ مَا اكْتَحَلْتُمْ بِهِ الْإِثْمِدُ فَإِنَّهُ يَجْلُو الْبَصَرَ وَيُنْبِتُ

(۳): حجامت (وينه کښل).(۴):مشي (جلاب)) او په سترګو کې بهترين شی لګول اثمد رانجه دي هغه د سترګو ديد زياتوي او

الشَّعْرَ وَإِنَّ خَيْرَ مَا تَحْتَجِمُوْنَ فِيهِ يَوْمَ سَبْعَ عَشْرَةَ وَيَوْمَ تِسْعَ عَشْرَةَ

د بانو وربښته ټينګوي او د ويني کښلو بهترينه ورځ (د سپوږمۍ اوولسم ، نوولسم

وَيَوْمَ إِحْدَى وَعِشْرِينَ وَإِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حيث عُرِجَ بِهِ

او يوويشتم تاريخونه دي)، او نبي کريم ﷺ چې معراج ته ولاړ او هلته چې د کومو ملائکو د

مَا مَرَّ عَلَى مَلَإٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا قَالُوا عَلَيْكَ بِالْحِجَامَةِ. روه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب.

صفو څخه تېرېدی نو ملائکو به نبي کريم ﷺ ته ويل ، چې وينه کښل ستاسو لپاره لازم ده . ترمذي ويلي چې دا حديث حسن غريب دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۴۰، رقم: ۲۰۴۸.

**تشريح**: لدود هغه دواء ته وايي چې د ناروغ په خوله کي د وښکي له خوا څښول کيږي. سعوط هغه دواء ته وايي چې په پزه کي اچول کيږي، حجامه: د ويني کښلو ته وايي او مشي د نس ناستي دواء ته وايي، دغه لفظ د مشي (تللو) څخه مشتق دی ځکه چې د نس ناستي د دواء په خوړلو سره په وار وار بيت الخلاء ته د تللو ضرورت وي، په دې مناسبت سره دغه دواء ته مشي ويل کيږي.

د مياشتي د پيل څخه تر نيمي مياشت پوري په وينه بلکه په ټولو رطوباتو کي غلبه او جوش وي، او د مياشتي په آخري تاريخو کي د دغه شيانو عمل سست او کمزور سي، ځکه نو د مياشتي په مينځ کي او په خاصه توګه ذکر سوي تاريخونه د انسان د بدن لپاره معتدل وي، نو په دغه دواړو تاريخو کي وينه کښل زيات ګټور دي، د حجامه په اړه تفصيلي خبري به په کتاب الطب والرقی کي نقل کړل سي. انشاء الله.

## حمام ته تګ

﴿۴۲۷۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى الرِّجَالَ وَالنِّسَاءَ عَنْ دُخُوْلِ الْحَمَّامَاتِ ثُمَّ رَخَّصَ لِلرِّجَالِ اَنْ يَّدْخُلُوْا بِالْمَيَازِرِ. رواه الترمذي و ابوداؤد.

د بي بي عائشې ﷺ څخه روايت دی چې نبي کريم ﷺ ښځه او سړي حمام ته د تلو څخه منعه کړي دي، بيا په دې شرط سره نبي کريم ﷺ يوازي نارينهؤ ته حمام ته د تلو اجازت ورکړ چې هغوی لنګونه وهلي وي. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۰۵، رقم: ۲۸۰۲، وابوداود ۴\۳۰۰، رقم: ۴۰۰۹.

**د لغاتو حل**: الميازر: جمع مئزر وهو الازار. (پرتوګ)

**تشريح**: د حمام څخه مراد هغه غسل خانې دي چې د عامي اړتيا لپاره په بازارو کي جوړيږي او هلته هر څوک د لمبېدو لپاره ورځي، په مخکنيو زمانو کي به دا ډول حمامونه وه چې هلته به د بېل لمبېدو بند و بست نه وو بلکه څو کسانو به يو ځای غسل کوی، څرګنده ده چې په دغه صورت کي د ستر پټول ممکن نه وي ځکه رسول الله ﷺ مسلمانان حمام ته د تللو څخه منع کړل

، مګر وروسته نارينوو ته په دې شرط اجازه ورکړل سول چي هغوی دي د لونګ ټخه پرته چي ترګونډو پوري ضروري دي ، هلته غسل نه کوي،

مظهر رحمة الله عليه وايي: رسول الله ﷺ د لونګ تړلو په شرط سره هم ښځو ته د حمام تلو اجازه ځکه نه ورکړه چي د هغوی ټول اندامونه د ستر په حکم کي داخل دي، د هغوی لپاره د بدن هيڅ برخه ښکاره کول جائز نه دي مګر د واقعي ضرورت او مجبوری په صورت کي د ښځو لپاره هم اجازه ده د مثال په توګه د سخت يخ په وخت کي د حيض او نفاس ټخه په فارغه کېدو سره د ناپاک کېدو په صورت کي د لمبېدو ضرورت وي يا د يو علاج په اړه په تودو اوبو سره لمبېدل ضروري دي او تودې اوبه د حمام ټخه پرته بل ځای نه وي او په يخو اوبو سره لمبېدل د تاوان باعث وي نو په دغه صورت کي به ښځو ته هم د حمام تللو خاص اجازه وي .

دلته دا اندېښنه پيدا کېدای سي چي ددغه وضاحت ټخه هغه وجه نه ٔڅرګندېږي چي د هغه ټخه دا معلومه سي چي په دغه منع کي د نارينوو او ښځو په مينځ کي فرق ولي سوی دی، ځکه چي د ښځو په موجودتيا کي د ښځو لپاره بېله فرقه هغه حکم دی کوم چي د نارينوو په موجودتيا کي د نارينوو لپاره دی ، لکه څرنګه چي يو سړي ته د بل سړي په مخ کي د خپل بدن لوڅول جائز دي پرته د بدن د هغه برخي ټخه چي هغه په شرعي توګه د ښځي لپاره د ستر په حکم کي دی ، په دې اعتبار سره د قياس تقاضا داده چي د نارينوو په ډول ښځو ته هم دغه اجازه ورکول پکار دي، چي هغوی د ښځو حمام ته تللای سي په شرط ددې چي د خپل بدن هغه برخه خامخا پټه کړي چي د هغه برخي لوڅول د ښځو په مخ کي هم جائز نه دي، دغه اندېښنه ددغه توجيه په ذريعه رفع کېدای سي چي رسول الله ﷺ ښځو ته په ذکر سوي شرط سره حمام ته د تللو اجازه ځکه نه ورکړه چي په عامه توګه ښځي د خپل هم جنسو په مخکي د خپل ستر پټولو خاص لحاظ نه ساتي ، ځيني ښځي داسي وي چي د ښځو په مخ کي حتی چي د پرديو ښځو په مخکي د ستر لوڅېدل پېغور نه ګڼي ، نو د خپل قريبانو يعني مور، خور وغيره په مخ کي به د ستر لوڅېدل څه عيب وګڼي، تر دې چي په کور کي هم د غسل کولو په وخت کي د يوې بلي په مخ کي د ستر پټولو خيال نه ساتي نو په حمام کي به څه لحاظ وساتي ، بلکه زياتي ښځي يو ټوکر وغيره هم نه پرده کوي ، نو رسول الله ﷺ د نُور نبوت په ذريعه د ښځو ددغه حالت ادراک وکړ او د هغوی لپاره يې دغه لار بنده کړه .

﴿۴۲۷۶﴾: وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ قَالَ قَدِمَ عَلَى عَائِشَةَ نِسْوَةٌ مِنْ أَهْلِ حِمْصَ فَقَالَتْ

د حضرت ابو الملیح رضي الله عنه څخه روایت دی چي د حمص په ښار کي څو ښځي د بي بي عائشې رض په خدمت کي حاضري سوې، بي بي عائشې رض د هغوی څخه پوښتنه وکړه چي

مِنْ اَيْنَ اَنْتُنَّ قُلْنَ مِنَ الشَّامِ قَالَتْ فَلَعَلَّكُنَّ مِنَ الْكُوْرَةِ الَّتِيْ تَدْخُلُ نِسَاءُهَا

د کوم ځای اوسېدونکي یاست؟ هغوی ورته وویل، د شام، بې بي عائشې رضي الله عنها ورته وفرمایل: شاید تاسو د هغه ځای اوسېدونکي یاست کوم ځاي چي ښځي و حمام ته ځي،

الْحَمَّامَاتِ قُلْنَ بَلٰى قَالَتْ فَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

هغوی ورته وویل، هو! بي بي عائشې رضي الله عنها ورته وفرمایل: ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي

لَا تَخْلَعُ اِمْرَاَةٌ ثِيَابَهَا فِيْ غَيْرِ بَيْتِ زَوْجِهَا اِلَّا هَتَكَتْ السِّتْرَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ رَبِّهَا،

دي، کومه ښځه چي د خپل خاوند د کور څخه پرته د بل چا په کور کي جامې و کاږي ګواکي هغې پرده و شکوله کومه چي د هغې او د الله جل جلاله په مینځ کي حائله وه

وفي رواية في غير بيتها الا هتكت سترها فيما بينهما و بين الله عزوجل.

رواه الترمذي و ابوداؤد

او په یوه بل روایت کي راځي چي د خپل کور څخه پرته خو د هغې هغه پرده و شکیږي کومه چي د هغې او د الله جل جلاله په مینځ کي وي. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\١٠٥، رقم: ٢٨٠٢، وابوداود ٤\٣٠١، رقم: ٤٠١٠.

**د لغاتو حل**: الكورة: اى البلدة او الناحية (ښار یا سیمه)

**تشريح**: د بي بي عائشې رضي الله عنها ذکر سوی حدیث د ښځو د حمام تللو خلاف د دلیل په توګه وړاندي کړ، مطلب یې دادی چي ښځو ته دا حکم سوی دی چي هغوی په پرده کي وي او خپل ځان دي ددې څخه وساتي چي پردی ښځه هغه ووینی تر دې چي د هغې لپاره دا هم مناسب نه دي چي د خپل خاوند د موجودتیا څخه پرته په یوازیوالي کي خپل ستر لوڅ کړي، کله چي هغه بېله شرعي ضرورته حمام ته ولاړه سي او هلته خپل اندامونه او بدن لوڅ کړي نو هغې هغه پرده وشکول چي په هغه کي د خپل بدن پټولو حکم هغې ته الله جل جلاله ورکړی وو.

یحیی رحمه الله وایي: د ذکر سوي ارشاد بنیاد دادی چي الله تعالی لباس ددې لپاره نازل

کړې دی چي ددې په ذريعه خپل ستر پټ کړل سي ، يعني هغه لباس د الله تعالی د حکم د تعميل ذريعه ده ، کومي ښځي چي د الله تعالی دغه حکم پوره نه کړي او خپل ستر لوڅ کړي نو هغې هغه پرده وشکول کوم چي د هغې او د الله تعالی په منځ کي ده .

﴿۴۲۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

سَتُفْتَحُ لَكُمْ أَرْضُ الْعَجَمِ وَسَتَجِدُونَ فِيهَا بُيُوتًا يُقَالُ لَهَا الْحَمَّامَاتُ فَلَا

ستاسو لپاره به د عجمو ځمکه فتحه کړل سي او تاسو ته به په هغه ځمکه کي داسي کورونه پيدا سي چي هغوی ته حمام ويل کيږي

يَدْخُلَنَّهَا الرِّجَالُ إِلَّا بِالْأُزُرِ وَامْنَعُوهَا النِّسَاءَ إِلَّا مَرِيضَةً أَوْ نُفَسَاءَ. رواه ابوداؤد.

او په هغه کي به نارينه د لنګ تړلو سره داخليږي او ښځي د ورتلو څخه منعه کړئ پرته د هغو څخه چي ناروغه يا نفاسه وي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۰۱، رقم: ۴۰۱۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي نارينو ته د حمام تللو لپاره په دې شرط اجازه ده چي هغوی لونګ وتړي مګر ښځو ته مطلق اجازه نسته که څه هم هغوی لونګ تړلی وي يا بېله لونګه وي، ځکه چي د ښځي ټول بدن د سر څخه تر پښو پوري ستر دی او د نارينه ټول بدن ستر نه دی بلکه يوازي د نامه څخه تر زنګنو پوري پټول د هغه لپاره ضروري دي، ځکه په لونګ تړلو سره د هغه ستر پټيږي ، مګر که چيري يوه ښځه ناروغه وي او د يو علاج لپاره د هغې په تودو اوبو لمبېدل ضروري وي ، يا يوه ښځه د ماشوم زېږېدني څخه فارغه سوې وي او د غسل لپاره يا د يو بل شرعي عذر په وجه هغې لره د ښځو په حمام کي داخلېدل جائز دي که څه هم هغه هلته په لونګ تړلو سره غسل وکړي يا بېله لونګ وهلو په حالت کي وي، بېله عذر په حمام کي داخلېدل د ښځو لپاره جائز نه دي .

﴿۴۲۷۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَدْخُلُ الْحَمَّامَ بِغَيْرِ إِزَارٍ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يُدْخِلُ حَلِيلَتَهُ الْحَمَّامَ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَجْلِسُ عَلَى مَائِدَةٍ يُدَارُ عَلَيْهَا بِالْخَمْرِ. رواه الترمذي والنسائي.

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :څوک چي په الله ﷻ او د قیامت پر ورځ ایمان لري هغه دي بیله پرتوګه حمام ته نه داخلیږي او څوک چي پر الله ﷻ او د قیامت پر ورځ ایمان لري نو هغه د ي خپله ښځه و حمام ته نه بیایي او څوک چي پر الله ﷻ او د قیامت پر ورځ ایمان لري نو هغه د ي په هغه سترخوان باندي نه کښېني چي پر هغه باندي د شرابو دور چلیږي . ترمذي او نسائي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۰۴، رقم: ۲۸۰۱، والنسائي ۱\ ۱۹۸، رقم: ۴۰۱.

**تشريح**: خپله ښځه دي په حمام کي نه داخلوي: ددې مطلب دادی چي خپلي ښځي ته دي د حمام تللو اجازه نه ورکوي، په دغه حکم کي مور، خور، لور او داسي ټولي ښځي شامل دي چي د هغه سړي په واک کي وي، او د سړي لپاره دا مکروه دي چي هغه حمام ته د تللو روپۍ خپلي ښځي ته ورکړي ځکه چي په دغه صورت کي هغه د یو مکروه عمل مرسته کونکی ګرځي.

د فقهي په ځینو کتابو کي د رسول الله ﷺ حمام ته تلل نقل سوي دي مګر د محدثینو په نزد دا صحیح نه دي او په دې اړه چي کوم حدیث نقل سوی دی هغه موضوع یعني د ځان څخه جوړ سوی دی، ځکه چي دا خبره درجه صحت ته رسیدلې ده چي رسول الله ﷺ هیڅکله حمام ته نه دی تللی بلکه د حمام مخ یې هم هیڅکله نه دی لیدلی، پاته سوه د هغه حمام خبره کوم چي په مکه معظمه کي د حمام النبي ﷺ په نامه مشهور دی نو کیدای سي چي یو ځای رسول الله ﷺ غسل کړی وي او بیا هغه ته د حمام صورت ورکړل سوی وي او هغه ته په حمام النبي ﷺ سره ویل سوي وي، دا هم کیدای سي چي هغه ځای په حمام النبي ﷺ په نسبت سره د خلکو پر ژبه عام سوی وي چي د رسول الله ﷺ د زېږېدني مبارک ځای د هغه ځای په شاوخوا کي واقع وي، بیا هم په حدیثونو کي د حمام ذکر ضرور موجود دی لکه چي د ذکر سوو روایتو څخه څرګنده سوه.

پر هغه دسترخوان باندي مه کښېنئ: ددې مطلب دادی چي هغه ځای ته هیڅکله مه ورځئ

چيري چي د شرابو څښنل وي، كه شرابيان خلك هلته شراب څښني نو مسلمان دي شراب څښنونكي منع كړي مګر هلته د تللو سربېره كه چيري خلك يې د شرابو څښنلو څخه منع نه كړل او نه يې د هغوی سره د ناراضي چلن وكړ او نه يې د هغوی پر خلاف د خپل نفرت او غصې اظهار وكړ نو يقينا د هغه شمېر به په كامل مؤمنانو كي نه وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### نبي ﷺ سر مبارك ته خضاب نه دی وركړی

﴿۴۲۷۹﴾: عَنْ ثَابِتٍ قَالَ سُئِلَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ خِضَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ثابت رضي الله عنه څخه روايت دی چي د حضرت انس رضي الله عنه څخه د رسول الله ﷺ د رنګ وركولو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْ شِئْتُ أَنْ أَعُدَّ شَمَطَاتٍ كُنَّ فِي رَأْسِهِ فَعَلْتُ وَقَالَ لَمْ

په باره كي پوښتنه وسوه، حضرت انس رضي الله عنه وويل: كه ما د نبي كريم ﷺ د سر مبارك سپين وربښتان شمېرل غوښتل نو هغه مي شمېرلای سوای (يعني د نبي كريم ﷺ په سر مبارك كي لږ وربښتان سپين وه رنګولو ته يې حاجت نه وو نو په دې وجه نبي كريم ﷺ خضاب نه وو لګولی)

يَخْتَضِبْ وزاد في رواية وَقَدْ اخْتَضَبَ أَبُو بَكْرٍ بِالْحِنَّاءِ وَالْكَتَمِ وَاخْتَضَبَ عُمَرُ بِالْحِنَّاءِ بَحْتًا. متفق عليه.

او د انس رضي الله عنه په يوه بل روايت كي دا الفاظ دي، حضرت ابوبكر رضي الله عنه په نكريزو او په وسمه رنګ كړی وو او حضرت عمر رض يوازي د نكروځو خضاب لګولي وو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۵۱، رقم: ۵۸۹۵. ومسلم ۴\۱۸۲۱، رقم: ۱۰۳.

**د لغاتو حل**: شمطات: جمع شمطة، بياض شعر الراس يخالطه سواده.

**تشريح** رسول الله ﷺ هيڅكله نكريزي نه دي لګولي: ددې مطلب دا دی چي رسول الله ﷺ په خپل سر مبارك كي هيڅكله نكريزي نه دي لګولي، په دغه صورت كي به دغه روايت د تېر سوي روايت خلاف نه وي چي په هغه كي پر ږېره مباركه باندي د نكريزو لګولو ذكر سوی دی، لكه چي مخته هم د حضرت ابن عمر رضي الله عنه روايت را روان دی، د نكريزو او وسمه يو ځای كولو په اړه يادونه مخكي تېره سوې ده.

## د ژړ رنګ استعمال

﴿۴۲۸۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ كَانَ يُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالصُّفْرَةِ حَتّٰى تَمْتَلِئَ ثِيَابُهُ

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه نقل دي چي هغه به خپله ږيره په ژړ رنګ سره رنګوله تردې پوري چي د هغه جامې په ژړي سوې،

مِنَ الصُّفْرَةِ فَقِيلَ لَهُ لِمَ تَصْبُغُ بِالصُّفْرَةِ قَالَ إِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د هغوی څخه پوښتنه وسوه چي په ژړ رنګ سره ولي ږيره رنګوې؟ هغه ورته وفرمايل: ما نبي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْبُغُ بِهَا وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْهَا وَقَدْ كَانَ يَصْبُغُ ثِيَابَهُ

كُلَّهَا حَتّٰى عِمَامَتَهُ. رواه ابوداؤد والنسائي.

کريم ﷺ په ژړ رنګ باندي ليدلي دی او نبي کريم ﷺ ته د ژړ رنګ څخه پرته بل زيات خوښ شی نه وو. نبي کريم ﷺ به خپلي ټولي جامې ژړي رنګولې تر دې چي لنګوټه هم. ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۳۳، رقم: ۴۰۶۴، والنسائي ۸\۱۴۰. رقم: ۵۰۸۰.

**تشريح**: د ژړ خضاب څخه مراد د ورس په ذريعه خضاب لګول دي، دا يو ډول واښه دی چي د زعفرانو مشابه دی، ډېر ځله د ورس سره زعفران هم ګډيږي.

په څرګنده دا معلوميږي چي د اول يصبغ بها څخه د ابن عمر رضی اللہ عنہ مراد دادی چي رسول الله ﷺ به په خپله ږيره مبارکه کي ژړ خضاب لګوی، ځيني حضراتو ويلي دي چي د وېښتانو رنګول مراد دي او د ځينو حضراتو د قول مطابق د جامو رنګول مراد دي، سيوطي رحمہ اللہ ويلي دي: دغه قول اشبه يعني صحيح دی چي د رسول الله ﷺ د وېښتانو رنګول منقول نه دي مګر ملا علي قاري رحمہ اللہ وايي چي دا خبره د صحت درجې ته رسيدلې ده چي رسول الله ﷺ په ګسم رنګ سوي او زعفراني جامو اغوستلو څخه منع فرمايلې ده نو بيا دا څرنګه ممکن ده چي ذکر سوې جمله د جامو پر ژړ رنګ باندي محمول سي، زياته صحيح خبره هغه ده کوم چي صاحب نهايه نقل کړې ده، ممتاز قول دادی چي کله خو رسول الله ﷺ وېښتان رنګول او زيات وختونه يې نه دي کړي، نو په راويانو کي هر يوه هغه څه بيان کړل چي ليدلي يې دي، په دې اعتبار سره هر راوي په خپل بيان کي رېښتونی دی.

ټولو جامو ته تر دې چي لنګوټې ته يې هم ژړ رنګ ورکوی: د دې څخه دا بالکل مراد نه

دى چي رسول الله ﷺ به په خاصه توګه جامو ته ژړ رنګ ورکوی او بيا به يې هغه اغوستلې ، محض دا څرګندول دي چي رسول الله ﷺ به کوم ژړ خضاب لګوی د هغه په اثر سره به يې جامې هم ژړې کيدلې .

﴿۴۲۸۱﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ فَأَخْرَجَتْ إِلَيْنَا شَعَرًا مِنْ شَعَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَخْضُوبًا . رواه البخاري

د عثمان بن عبد الله بن موهب رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د بي بي ام سلمې رضي الله عنها په خدمت کي حاضر سوم هغې د نبي کريم ﷺ يو ورېښته موږ ته را ښکاره کړې چي رنګ کړل سوی وو . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۵۲، رقم: ۵۸۹۷.

**تشريح**: ميرک رحمه الله وايي : ابن ماجه او احمد په خپل روايت کي د رنګين سره د نکريزو او وسمه الفاظ هم نقل کړي دي يعني هغه وېښتان مبارک به په نکريزو او وسمه سره رنګ سوي وه ، د بخاري چي کوم روايت نقل سوی دی هغه ډول يو روايت ترمذي هم په شمائل کي د حضرت انس رضي الله عنه څخه نقل کړی دی ، حضرت انس رضي الله عنه بيان وکړ چي ما د رسول الله ﷺ داسي وېښته مبارک ولېدی چي رنګين وو ، يعني د حضرت انس رضي الله عنه دغه روايت هم تېر سوی دی چي رسول الله ﷺ به نکريزي نه لګولې ، نو کېدای سي چي په کوم روايت کي هغه د رسول الله ﷺ د خضاب نفي کړې ده د هغه څخه مراد دا وي چي رسول الله ﷺ به زيات وختونه خضاب نه کوی او د کوم روايت څخه چي د خضاب اثبات کيږي هغه د اقل پر احوالو باندي محمول دی يعني کله نا کله به رسول الله ﷺ خضاب کوی، او دا ويل هم صحيح دي چي ددغه دواړو څخه يو روايت پر حقيقت مبني وي او دوهم پر مجاز محمول وي، يعني حقيقت خو دادی چي رسول الله ﷺ هيڅکله خضاب نه دی کړی مګر په ځينو وختو کي رسول الله ﷺ د سر درد لپاره پر خپل سر مبارک باندي نکريزي لګولي دي او د هغه رنګ اثر د رسول الله ﷺ په وېښتانو کي هم راغلی وي، يا دا چي هغه وېښته مبارک کوم چي حضرت انس رضي الله عنه ليدلی وو په خوشبويي کي اېښودل سوی وي او د هغه خوشبويي په اثر هغه داسي معلومېدی لکه چي خضاب سوی وي، په دې اعتبار سره حضرت انس رضي الله عنه هغه وېښته مبارک ته رنګين وويل، ملا علي قاري رحمه الله وايي: زما په نزد صحيح خبره داده چي د خضاب نفي پر دې محمول کړل سي چي رسول الله ﷺ د سپينو وېښتانو پټولو لپاره پر خپل سر مبارک باندي هيڅکله خضاب نه دی کړی او د کوم روايت څخه

چي د خضاب اثبات کيږي هغه پر دې محمول کړل سي چي رسول الله ﷺ د خپلي ږيري مبارکي هغه څو وېښتان خضاب کړي وي کوم چي سپين سوي وه ، د بخاري په روايت کي چي دا بيان سوى دى چي د بي بي ام سلمه رضي الله عنها سره د رسول الله ﷺ د ږيري مبارک يو وېښته وو چي پر هغه باندي د نکريزو او وسمه د خضاب اثر وو، نو پر دې باندي په شمائل کي نقل سوى د حضرت ابو هريره رضي الله عنه دغه مطلق روايت محمول کړل سي چي په هغه کي بيان سوى دى چي د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول چي رسول الله ﷺ خضاب لگوى؟ هغه وفرمايل هو .

## يو نر ښځې ي د ښار څخه وايستى

﴿۴۲۸۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أُتِيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمُخَنَّثٍ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي يو نر ګډى راوستل

قَدْ خَضَّبَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ بِالْحِنَّاءِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَالُ

سو چي خپل لاس او پښې يې په نکريزو باندي سره کړي وه ، نبي کريم ﷺ پوښتنه وکړه چي دده

هٰذَا قَالُوْا يَتَشَبَّهُ بِالنِّسَاءِ فَأَمَرَ بِهِ فَنُفِيَ إِلَى النَّقِيعِ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَلَا

نَقْتُلُهُ فَقَالَ إِنِّي نُهِيتُ عَنْ قَتْلِ الْمُصَلِّينَ. رواه ابوداؤد.

څه حالت دى ؟ اصحابو کرامو عرض وکړ ، دا نرګډى د ښځو مشابهت کوي نبي کريم ﷺ د ښاره څخه د هغه د ايستلو حکم ورکړ ، نو هغه د نقيع و ځاي ته ولېږل سو ، بيا و نبي کريم ﷺ ته عرض وکړل سو ايا موږ دى قتل کړو ؟ويې فرمايل: زه د لمونځ ګزاره د قتل څخه منعه سوى يم .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۲۴، رقم: ۴۹۲۸.

**تشريح**: په ښکاره دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د لمانځه په ذريعه د کنايې په توګه د هغه د اسلام ذکر وکړ، يعني رسول الله ﷺ دا څرګنده کړه چي هغه سړى په هر حال مسلمان دى ځکه د هغه د وژني حکم څرنګه ورکول کيداى سي، په لمانځه ويلو سره د اسلام مراد اخيستني بنياد دا هم دى چي په حقيقت کي لمونځ يو داسي عمل دى چي د اسلام د اظهار ذريعه ده ، که يو سړى لمونځ نه کوي نو هغه دا څرګندوي چي زما د اسلام سره هيڅ تعلق نسته ځکه دغه قول که يو مسلمان لمونځ نه کوي نو هغه دي ووژل سي، ځينو علماوو دغه قول پر ظاهري مفهوم محمول کړى دى .

## د نارينه لپاره د زعفرانو خوشبويي منع ده

﴿۴۲۸۳﴾: وَعَنِ الْوَلِيدِ بْنِ عُقْبَةَ قَالَ لَمَّا فَتَحَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت وليد بن عقبه رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ كله مكه فتحه كړه نو د مكې

مَكَّةَ جَعَلَ أَهْلُ مَكَّةَ يَأْتُونَهُ بِصِبْيَانِهِمْ فَيَدْعُو لَهُمْ بِالْبَرَكَةِ وَيَمْسَحُ

معظمې خلكو خپل كوچنيان د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضرېدل پيل كړه نبي كريم ﷺ د هغوى د كوچنيانو لپاره د بركت دعاوي كولې او د هغوى په سرونو باندي به يې خپل مبارك

رُءُوسَهُمْ قَالَ فَجِيءَ بِي إِلَيْهِ وَأَنَا مُخَلَّقٌ فَلَمْ يَمَسَّنِي مِنْ أَجْلِ الْخَلُوقِ. رواه ابوداؤد.

لاس را تېروى ، زه هم و نبي كريم ﷺ ته راوستل سوم چي زما په بدن باندي د زعفرانو خوشبويي وه نو د دغه خوشبو په خاطر نبي كريم ﷺ زما په سر لاس تير نه كړ . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۰۴، رقم: ۴۱۸۱.

**تشريح**: خلوق د ښځو خاصه خوشبويي ده، كه يو سړى دغه خوشبويي ولګوي نو ښځو مشابهت لازميږي ، ځكه نو د خلكو لپاره د خلوق استعمال منع دى .

## ويښتان ږمونځ كول او تيل پر لګول

﴿۴۲۸۴﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّهُ قَالَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِي

د حضرت قتاده رضي الله عنه څخه روايت دى چي هغه و رسول الله ﷺ ته عرض وكړ چي زما وريښتان تر

جُمَّةً أَفَأُرَجِّلُهَا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ وَأَكْرِمْهَا فَكَانَ أَبُو

اوږو پوري رسېدلي دي ايا زه دا ږمونځ كړم ؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل: د دې وريښتانو پالنه كوه (يعني ږمونځ او غوړوه يې)

قَتَادَةَ رُبَّمَا دَهَنَهَا فِي الْيَوْمِ مَرَّتَيْنِ من اجل قول رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ وَأَكْرِمْهَا . رواه مالك.

ابو قتاده ﷺ فرمايي ما په اكثره وخت په ورځ كي دوه واره وېښتان غوړول ځكه چي نبي كريم ﷺ دا فرمايلي وو چي او دا ړمونځوه او سالم يې ساته . مالك.

**تخريج**: موطا الامام مالك ۲\۹۴۹، رقم: ٦.

**تشريح**: په وېښتانو كي تېل لګول او زيات ړمونځول په كثرت سره اختيارول په هغه صورت كي ناخوښه او نه ستايل سوي دي كله چي د هغه مقصد محض ښكلا او زينت وي، او په هغه كي د بې ځايه پابندي څخه كار اخيستل كيږي مګر د حضرت ابو قتادهؓ په اړه چي څه نقل سوي دي د هغه نوعيت بالكل بېل وو . د هغه دغه عمل محض د رسول الله ﷺ د حكم پر ځاى راوړل او د منشاء نبوي ﷺ د تعميل لپاره وو، چي يقينا غوره او ښه به ورته ويل كيږي ، لكه څرنګه چي د حضرت انس ﷺ په اړه بيان سوى دى چي هغه د انس ﷺ وېښته پرې نه كړ چي هغه به رسول الله ﷺ نېول .

## د يهودو وضع مه اختياروئ

﴿۴۲۸۵﴾: وَعَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ حَسَّانٍ قَالَ دَخَلْنَا عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ فَحَدَّثَتْنِي

د حضرت حجاج بن حسان ﷺ څخه روايت دى چي موږ د حضرت انس بن مالك ﷺ ته ورغلو

أُخْتِي الْمُغِيرَةُ قَالَتْ وَأَنْتَ يَوْمَئِذٍ غُلَامٌ وَلَكَ قَرْنَانِ أَوْ قُصَّتَانِ فَمَسَحَ رَأْسَكَ

(زه هغه وخت كوچنى وم) زما خور بي بي مغيره د هغې ورځي واقعه ماته داسي بيان كړه چي ته په هغه ورځو كي هلك وې او ستا ورېښتانو دوې څونې وې او د تندي و لور ته زلفي پرتې وې ، انس بن مالك ﷺ ستا پر سر باندي يې لاس تېر كړ

وَبَرَّكَ عَلَيْكَ وَقَالَ احْلِقُوا هَذَيْنِ أَوْ قُصُّوهُمَا فَإِنَّ هَذَا زِيُّ الْيَهُودِ . رواه ابوداؤد.

او ستا لپاره يې د خير او بركت دعا وكړه او وه يې فرمايل: دا دواړي ور وخريه يا يې كوچني كړه ځكه دا د يهوديانو شكل دى . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۱۲، رقم: ۴۱۹۷.

**تشريح**: يا دوې زلفي پرتې وي: دلته راوي خپل شك څرګند كړى دى چي حضرت حجاج هغه وخت د قرنان لفظ ويلى وو كه د قصتان، قصتان په اصل كي د قصة تثنيه ده چي معنى د سر هغه

وېښتانو ته ده چي مخته پر تندي باندي پراته وي.

## د ښځو د سر خريلو منع

﴿۴۲۸۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَحْلِقَ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا. رواه النسائي.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د ښځي د سر خريلو څخه منعه کړېده. نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ۸/ ۱۳۰، رقم: ۵۰۴۹.

**تشريح**: د ښځو په اړه د سر وېښتانو هغه ارزښت دی کوم چي د سړي په اړه د ږېري دی لکه څرنګه چي نارينوو ته ږېره خريل حرام دي همدارنګه ښځو لره د سر خريل حرام دي.

## د سر او ږيري وېښتان سم کړئ

﴿۴۲۸۷﴾: وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

د حضرت عطاء بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په يوه مسجد کي وو، يو سړی

الْمَسْجِدِ فَدَخَلَ رَجُلٌ ثَائِرَ الرَّأْسِ وَاللِّحْيَةِ فَأَشَارَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

چي د هغه د سر او د ږيري ورېښتان بېر وو، نبي کريم ﷺ د هغه ولور ته په ګوته سره اشاره وکړه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ كَأَنَّهُ يَأْمُرُهُ بِإِصْلَاحِ شَعْرِهِ وَلِحْيَتِهِ فَفَعَلَ الرَّجُلُ ثُمَّ

، مطلب هغه ته يې حکم وکړ چي د سر او ږيري ورېښتان سم کړي، نو هغه ورېښتان سم کړه، وروسته د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو،

رَجَعَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَيْسَ هَذَا خَيْرًا مِنْ أَنْ يَأْتِيَ أَحَدُكُمْ ثَائِرَ الرَّأْسِ كَأَنَّهُ شَيْطَانٌ. رواه مالك.

نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: ايا دا (شکل او صورت) د هغه څخه بهتر نه دی چي په تاسو کي يو څوک بېر راسي لکه دی چي شيطان وي. مالک.

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲/ ۹۴۹، رقم: ۷.

## د کورونو غولي پاک ساتئ

﴿۴۲۸۸﴾: وَعَنِ ابْنِ الْمُسَيِّبِ سَمِعَ يَقُوْلُ إِنَّ اللّٰهَ طَيِّبٌ يُحِبُّ الطَّيِّبَ نَظِيفٌ

د حضرت ابن المسيب رضي الله عنه څخه روايت دی چي الله جل جلاله نظيف دی نظافت خوښوي

يُحِبُّ النَّظَافَةَ كَرِيمٌ يُحِبُّ الْكَرَمَ جَوَادٌ يُحِبُّ الْجُودَ فَنَظِّفُوا أُرَاهُ قَالَ

خداي تعالي پاک دي صفائي خوښوي کريم دي کريم سړی خوښوي ، سخي دی سخاوت خوښوي نو تاسو خپل کورونه پاک صفا ساتئ . د راوي بيان دی ، ابن مسيب وويل ،

أَفْنِيَتَكُمْ وَلَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ قَالَ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِمُهَاجِرِ بْنِ مِسْمَارٍ فَقَالَ

خپل د کورونو غولي پاک ساتئ او د يهودو سره مشابهت مه کوئ ، د راوي بيان دي چي د ابن

حَدَّثَنِيهِ عَامِرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ مِثْلَهُ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ نَظِّفُوا أَفْنِيَتَكُمْ . رواه الترمذي.

مسيب د دې قول ذکر ما مهاجر بن مسمار ته وکړ هغه وويل ، ما ته د ا حديث عامر بن سعد د خپل پلاره څخه او هغه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم څخه نقل کړی دی ، خو د هغه په روايت کي دا الفاظ دي ، هغوی وويل ، چي خپل غولي پاک ساتي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۰۳، رقم: ۲۷۹۹۱.

**تشريح**: الله تعالی پاک دی: يعني هغه د هرعيب ، نقصان، بدی او هر هغه شي څخه پاک او منزه دی کوم چي د شان الوهيت او شان ربوبيت خلاف دي، په (يحب الطيب) کي د طيب لفظ د طاء په زبر سره دی، مطلب يې دادی چي د الله تعالی په نزد ښه کړني او ښه کلام غوره دي يا د الله تعالی په نزد خوشبويي يو غوره شی دی او د دغه ټولو شيانو بنياد پاکي ده، نو کوم بنده چي د دغه شيانو په استعمالولو سره په ځان کي پاکي پيدا کوي نو الله تعالی هغه خوښوي او د هغه د عمل څخه خوشحاله کيږي ، په يوه نسخه کي د غه لفظ د طاء په زبر او ياء مشدده په زبر سره دی يعني طَيِّب ليکلی دی، په دغه صورت کي به هغه سړی مراد وي چي طيبات يعني د عقائدو او خيالاتو ښه وايي، ، د ژبي او بيان د پاکۍ او د اعمالو او اخلاقو د لوړتيا او د ښکو اوصافو حامل وي. د نظافة معنی چي په پاکي سره سوې ده د دې اصل معنی د ظاهر او باطن پاکي ده.

طيبي رحمة الله عليه وايي: د كورونو د غولي پاک ساتلو حكم په اصل كي د كرم او جود اختيارولو څخه كنايه ده يعني ددغه حكم څخه اصل مقصد دا تلقين كول دي چي په خپل ځان كي د وركړي، سخاوت او مېلمستيا صفتونه پيدا كړي ، څرګنده ده چي د كور پاكي ددغه صفت د پوره كېدو غوره ذريعه ده ، ځكه چي د كوم كور غولي پاک وي او د سراى د دېوالو څخه پاكي څرګنديږي نو په هغه كو ركي خلكو او مېلمنو ته د راتللو او هستوګني ترغيب وركول كيږي.

**برېتونه كوچني كول سنت ابراهيمي دی**

﴿۴۲۸۹﴾: وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ أَنَّهُ سَمِعَ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيِّبِ يَقُولُ كَانَ

د حضرت يحيى بن سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه د مسيب څخه دا اوريدلي دي چي

إِبْرَاهِيمُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلَ النَّاسِ ضَيَّفَ الضَّيْفَ وَأَوَّلَ النَّاسِ اخْتَتَنَ

ابراهيم خليل الله اولنی شخص وو چي هغه د مېلمه مېلمستيا وكړه او د ختنه (سنتي) رواج هم د هغه څخه شروع سوی دی

وَأَوَّلَ النَّاسِ قَصَّ الشَّارِبَ وَأَوَّلَ النَّاسِ رَأَى الشَّيْبَ فَقَالَ يَا رَبِّ مَا هَذَا فَقَالَ

او د برېتو ورېښته غچي كول هم د هغه څخه شروع سوي دي او هغه تر ټولو اولنی شخص دی چي په سپين ږير والي كي يې سپين ورېښته وليدي نو عرض يې وكړ اې الله! دا څه دي؟

اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى وَقَارٌ يَا إِبْرَاهِيمُ فَقَالَ يَا رَبِّ زِدْنِي وَقَارًا . رواه مالك .

خداي تعالى وفرمايل: اې ابراهيمه! دا عزت دی ، ابراهيم عليه السلام عرض وكړ اې پرودګاره! دا عزت مي نور هم زيات كړې . مالك

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\ ۹۲۲، رقم: ۴.

**تشريح**: سيوطي رحمة الله عليه د مؤطا په حاشيه كي د داسي نورو شيانو يادونه هم كړې ده چي د هغو پيل د حضرت ابراهيم عليه السلام څخه سوی دی، او هغه دادي: ۱: نوكان پرېكول، ۲: په سر كي لاره ايستل ۳: استره استعمالول، ۴: پرتوګ اغوستل، ۵: د نكريزو او وسمې خضاب لګول، ۶: پر منبر باندي خطبه ويل، ۷: د الله تعالى په لاره كي جهاد كول، ۸: د جنګ په مېدان كي د صف برابرول، ۹: د خلكو سره معانقه كول، ۱۰: ثريد (بنوروا) تيارول.

===========

# بَابُ التَّصَاوِيْرِ (د عكسونو بيان)

تصاوير د تصوير جمع ده چي معنی يې د عكس جوړولو ده، د لته د تصاوير څخه مراد د ساه لرونكي شيانو عكسونه دي چي پر پردو او نورو شيانو باندي جوړ سوي وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### سپی يا عكس

﴿۴۲۹۰﴾: عَنْ أَبِي طَلْحَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا تَصَاوِيرُ. متفق عليه

د حضرت ابو طلحه ﷜ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په كوم كور كي چي سپی يا تصويرونه وي و هغه كور ته ملائكي نه راځي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۸۰، رقم: ۵۹۴۹، ومسلم ۳\۱۶۶۵، رقم: ۸۳-۲۱۰۶.

**تشريح**: علماوو ليكلي دي چي دلته هغه عكسونه او سپيان مراد دي چي د هغه په كور كي ساتل حرام نه دي لكه هغه سپی چي د ښكار يا كښت وغيره د ساتني لپاره وي يا داسي عكسونه چي پر كوربچو او نورو شيانو باندي وي او د هغو سپكوالی او تر پښنو لاندي كيږي، په كور كي د داسي سپيانو يا داسي عكسونو موجودتيا د ملايكو د داخلېدو بنديز نه جوړېږي مګر دا مسئله محض د عكسونو د ساتلو يا استعمالولو ده ځكه چي عكس جوړل په هر صورت كي حرام دي كه هغه پر كوربچه باندي وي يا پر درهم، سكو او نوټو باندي وي، د ساه لرونكي شي عكس جوړونكی د يو سخت حرام عمل كونكی دی او په ګناه كبيره كي اخته كيږي، البته د ساه نه لرونكو شيانو عكسونه لكه درخته، غر او داسي نور شيان حرام نه دي.

ځيني حضرات وايي چي ذكر سوی حكم د عمومي نوعيت دی يعني په يو كور كي مطلق عكس او د سپي موجودتيا د ملائكو په داخلېدو كي خنډ جوړېږي كه څه هم سپيان او عكسونه داسي وي چي د هغه په كور كي ساتل حرام نه دي.

د ملائكو څخه مراد هغه ملائكي دي چي د بندګانو عملونه ليكي او د هغوی پر ساتنه باندي ماموري نه دي ځكه چي كومي ملائكي پر عملونو ليكلو او ساتنه كولو باندي ماموره

دي هغوى په هيڅ حال كي د انسان څخه نه بېلېږي.

## غير ضروري سپيان مړه كول

﴿۴۲۹۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ مَيْمُوْنَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابن عباس رضي الله عنه د بي بي ميموني رضي الله عنها څخه روايت كوي چي يوه ورځ نبي كريم ﷺ د

أَصْبَحَ يَوْمًا وَاجِمًا وَقَالَ إِنَّ جِبْرِيلَ كَانَ وَعَدَنِي أَنْ يَلْقَانِي اللَّيْلَةَ فَلَمْ يَلْقَنِي

سهار په وخت كي خاموش او غمگين ناست وو، نبي كريم ﷺ وفرمايل: نن شپه زما سره جبرائيل عليه السلام د ملاقات وعده كړې وه، ليكن ما سره يې ملاقات ونه كړ،

أَمَ وَاللهِ مَا أَخْلَفَنِي ثُمَّ وَقَعَ فِي نَفْسِهِ جِرْوُ كَلْبٍ تَحْتَ فُسْطَاطٍ لَه فَأَمَرَ بِهِ

قسم په خداي! جبرائيل عليه السلام هيڅكله زما سره وعده خلافي نه ده كړې، وروسته د نبي كريم ﷺ په زړه كي د سپي د هغه بچي خيال راغى چي د نبي كريم ﷺ د خيمې لاندي پروت وو، حكم يې

فَأُخْرِجَ ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِهِ مَاءً فَنَضَحَ مَكَانَهُ فَلَمَّا أَمْسَى لَقِيَهُ جِبْرِيلُ فَقَالَ لَقَدْ

وكړ، نو هغه يې ليري كړ، وروسته نبي كريم ﷺ او به واخيستلې او په كوم ځاي چي سپى پروت وو هغه ځاى يې پاک كړ، كله چي ماښام سو نو جبرائيل عليه السلام ورسره ملاقات وكړ، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل:

كُنْتَ وَعَدْتَنِي أَنْ تَلْقَانِي الْبَارِحَةَ قَالَ أَجَلْ وَلَكِنَّا لَا نَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ

پرون شپه تا زما سره د ملاقات وعده كړې وه، جبرائيل عليه السلام ورته وفرمايل: هو! ليكن موږ په هغه كور كي نه داخليږو په كوم ځاي كي چي سپى

وَلَا صُورَةٌ فَأَصْبَحَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ فَأَمَرَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ

يا تصوير وي. په دويمه ورځ په سهار كي نبي كريم ﷺ حكم وكړ، ټول سپي ووژنئ تر دې چي

حَتَّى إِنَّهُ يَأْمُرُ بِقَتْلِ كَلْبِ الْحَائِطِ الصَّغِيرِ وَيَتْرُكُ كَلْبَ الْحَائِطِ الْكَبِيرِ. رواه مسلم.

د کوچنيو باغونو د سپو د وژلو يې هم حکم ورکړ او د لويو باغونو سپي يې پرېښودل. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۳\ ۱٦٦۴، رقم: ۸۲– ۲۱۰۵.

**د لغاتو حل**: واجما: وهو السكوت من الحزن والغضب (د غم او خپګان له امله چوپتيا). الفسطاط: السرير.

## ټول عکسونه يې مات کړل

﴿۴۲۹۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَتْرُكُ فِي بَيْتِهِ شَيْئًا فِيهِ تَصَالِيبُ إِلَّا نَقَضَه. رواه البخاري.

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې نبي کريم ﷺ په خپل کور کې دا سې هيڅ شی پرې نه ښودی چې په هغه کې عکسونه وي، مګر هغه يې مات کړه. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۳۸۵، رقم: ۵۹۵۲.

**تشريح**: تصاليب د تصليب جمع ده چې معنی يې د صليب (دار) جوړولو ده، چې عيسايان يې برکت لپاره د ځان سره ايږدي او د هغه عبادت کوي په دې خيال چې حضرت عيسی عليه السلام يهوديانو په دار کړی وو، بيا الله تعالی هغه په ژوندي کولو سره را پورته کړ، نو ددغه دار عکسونه د هغوی په نزد يو مقدس مذهبي نښه ده، مګر دلته په حديث کې د تصاليب څخه مطلق د ساه لرونکو شيانو عکسونه مراد دي.

## په آخرت کې د عکس جوونکي عذاب

﴿۴۲۹۳﴾: وَعَنْهَا أَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيهَا تَصَاوِيرُ فَلَمَّا رَآهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې هغې يو بالښت رانيوي چې په هغه کې عکسونه وه، نبي کريم ﷺ چې هغه وليدی

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْبَابِ فَلَمْ يَدْخُلْهُ فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ

نو په دروازه کې ودرېدی او د ننه را نه غلی، ماته د نبي کريم ﷺ په مخ کې د ناراضي اثار په

قالت فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَتُوبُ إِلَى اللّٰهِ وَإِلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاذَا

سترګو سول، عرض مي وکړ، اې د الله جل جلاله رسوله! زما څخه د خداي تعالی او د هغه د رسول

أَذْنَبْتُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَالُ هَذِهِ النُّمْرُقَةِ قُلْتُ

ﷺ د مخالفت كولو څه ګناه سوې ده ؟نبي كريم ﷺ وفرمايل: دا بالبنت څنګه دى ؟ ما وويل

اشْتَرَيْتُهَا لَكَ لِتَقْعُدَ عَلَيْهَا وَتَوَسَّدَهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ما دا ستاسو د ناستي او ارام كولو لپاره رانيولي دى ، نبي كريم ﷺ وفرمايل: د دې عكسونو

إِنَّ أَصْحَابَ هَذِهِ الصُّوَرِ يعذبون يَوْمَ الْقِيَامَةِ وِيُقَالُ لَهُمْ أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ

جوړونكي ته به د قيامت په ورځ عذاب وركول سي او هغوى ته به وويل سي چي كوم شى تاسو جوړ كړى دى و هغه ته دي ساه وركړئ ،

وَقَالَ إِنَّ الْبَيْتَ الَّذِي فِيهِ الصُّوَرُ لَا تَدْخُلُهُ الْمَلَائِكَةُ. متفق عليه

بيا يې وفرمايل: په كوم كور كي چي عكسونه وي و هغه كور ته ملائكي نه داخليږي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۹۲، رقم: ۵۹۶۱، ومسلم ۳\۱۶۶۹، رقم: ۹۶- ۲۱۰۷.

**د لغاتو حل**: نمرقة: الوسادة الصغيرة (كوچنى بالبنت)

## ارايشي پردې څيرل

﴿۴۲۹۴﴾: وَعَنْهَا أَنَّهَا كَانَتْ قد اتَّخَذَتْ عَلَى سَهْوَةٍ لَهَا سِتْرًا فِيهِ تَمَاثِيلُ فَهَتَكَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاتَّخَذَتْ مِنْهُ نُمْرُقَتَيْنِ فَكَانَتَا فِي الْبَيْتِ يَجْلِسُ عَلَيْهِمَا . متفق عليه.

د بي بي عائشې ﷺ څخه روايت دى هغې د كور په تاخچه يوه پرده واچوله چي په هغه كي عكسونه وه ، نبي كريم ﷺ هغه پرده څيري كړه ، وروسته بي بي عائشې ﷺ د هغه ټوكر څخه دوه بالښتونه جوړ كړل چي په كور كي به رسول الله ﷺ پر هغو باندي په تكيه وهلو سره ناست وو .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۲۳، رقم: ۲۴۷۹، ومسلم ۳\۱۶۶۸، رقم: ۹۴- ۲۱۰۷.

**د لغاتو حل**: سهوة: كوة بين الدارين (تاخچه)

**تشريح**: دغه حديث په ښكاره د هغه حديث خلاف دی كوم چې تر دې مخكې تېر سوی دی ځكه چې د اول حديث څخه دا ثابتيږي چې پر بالښت باندي جوړ سوي عكسونه په كور كي د ملائكو د داخلېدو څخه منع كوي كه څه مهم د داسي عكسونو په كور كي ساتل حرام دي، په دغه صورت كي هغه دواړه بالښتونه چې پر هغو عكسونه وه د بي بي عائشې رضي الله عنها په كور كي څرنګه ايښودل كېدل؟ د دې جواب دادی چې هغه پر بالښت باندي كوم عكسونه وه هغه د ساه لرونكو شيانو نوه چې د هغو جوړول او ايښودل حرام دي او رسول الله ﷺ چې هغه پرده شكولې وه نو د هغې وجه هم پر هغه پرده باندي د تصويرو موجودتيا نه وه بلكه د هغې سبب دا وو چې پر دېوالو او نورو شيانو باندي بېله ضرورته پردې زړول د الله تعالى د منشاء خلاف دی ځكه چې الله تعالى دا نه دي فرمايلي چې ډبرو او خاورو ته جامې واغوستل سي لكه چې د راتلونكي حديث څخه به معلومه سي، او كه چيري هغه عكسونه د ساه لرونكو شيانو وه نو په دغه صورت كي به ويل كيږي چې كله د بالښت جوړولو لپاره هغه پردې څيري كړل سوې نو پر هغو چې كوم عسكونه وه د هغو سرونه پرېكړل سول ، ځيني حضرات وايي چې (هتک) يعني څيرل ، ددې معنى د هغه عكسونو د پرېكولو او ضائع كولو ده كوم چې پر هغه پرده باندي وه.

﴿۴۲۹۵﴾: وَعَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فِي غَزَاةٍ فَأَخَذْتُ نَمَطًا

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې نبي كريم ﷺ و يوې غزا ته ولاړ ما (د نبي كريم ﷺ

فَسَتَرْتُهُ عَلَى الْبَابِ فَلَمَّا قَدِمَ فَرَأَى النَّمَطَ فَجَذَبَهُ حَتَّى هَتَكَهُ ثُمَّ قَالَ إِنَّ اللهَ لَمْ يَأْمُرْنَا أَنْ نَكْسُوَ الْحِجَارَةَ وَالطِّينَ. متفق عليه.

څخه وروسته)يو ټوكر رانيوي ، پرده مي ور څخه جوړه كړه په دروازه مي واچوله ، كوم وخت چې نبي كريم ﷺ واپس راغی او هغه پرده يې وليدل نو را كش يې كړه او څيري يې كړه ، بيا يې وفرمايل: خداي تعالي و موږ ته دا حكم نه دي را كړی چې موږ كاڼو او خټو ته كالي ور اغوندو . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۸۶، رقم: ۵۹۵۴، ومسلم ۳\۱۶۶۶، رقم: ۸۷- ۲۱۰۷.

**تشريح**: نمط يو ډول ښه فرش او ټغر ته وايي چې د هغه څوكي نازكي او نرمي وي ، دا هودج پر كجاوه باندي هم اچول كيږي او پرده هم ځيني جوړيږي، كېدای سي چې دغه لفظ د نمد

معرب وي ، بي بي عائشې ﷞ به دغه تهوكر پر دروازه باندي د ښكلا لپاره زړولی وي ، كه چيري د پردې په غرض يې پر دروازه اچولی وي نو په دې باندي د عتاب كولو سوال نه پيدا كيږي، او ځيني حضراتو ليكلي دي چي پر هغه تهوكر باندي د آسانو عكسونه وه ځكه رسول الله ﷺ هغه ضائع كړل او هغه عكسونه يې خراب كړل مگر دا قول د حديث د سياق خلاف معلوميږي ځكه چي د حديث مضمون دا څرگندوي چي د رسول الله ﷺ هغه تهوكر څېرل پر هغه دروازه باندي د زړولو څخه منع كول د عكس په وجه نه وو بلكه پر دېوالو باندي د تهوكر اچولو د كراهت په وجه وو لكه چي د رسول الله ﷺ د ارشاد څخه هم ثابتيږي .

يحيى رحمة الله عليه وايي: پر دېوالو باندي د پردو اچولو منع د نهي تنزيهي په توگه ده ځكه چي د دغه شي د الله تعالى له خوا حكم نه كېدل پر منع باندي دلالت نه كوي، پاته سوه دا خبره چي بيا رسول الله ﷺ پر هغه پرده باندي د دومره ناخوښۍ اظهار ولي وكړ چي هغه يې څيري كړل، نو ددې وجه دا وه چي دغه شی د رسول الله ﷺ په نزد د اهل بيت د شان خلاف وو بيا هم دغه حديث پر دې دلالت كوي چي د كور پر دېوال وغيره باندي د پردو زړولو څخه دي منع وكړل سي او دا حديث ددې خبري هم دليل دی كه بد شی ولېدل سي نو هغه دي په خپل لاس خراب كړل سي او د هغه خلاف دي د غم او غصې اظهار وكړل سي .

## د عكس جوړونكي سزا

﴿۴۲۹۶﴾: وَعَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِينَ يُضَاهُونَ بِخَلْقِ اللَّهِ. متفق عليه.

د بي بي عائشې ﷞ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به هغه خلك په سخت عذاب كي وي چي هغوی د پيدائش په معامله كي د خداي تعالى سره مشابهت كړی وي (يعني عكسونه يې جوړ كړی وي) . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۸۶، رقم: ۴۹۵۴، ومسلم ۳\۱۶۶۸، رقم: ۹۲- ۲۱۰۷.

**تشريح**: مشابهت اختياروي : يعني صورت جوړول د الله تعالى كار دی ، كوم څوك چي عكس جوړوي هغه گويا خپل فعل د الله تعالى د فعل سره مشابه كوي، يا دا مطلب دی چي عكس جوړونكی هغه شی جوړوي چي د الله تعالى د تخليق مشابه وي، ابن ملك رحمة الله عليه وايي كه د مصور فعل د دغه عقيدې لاندي وي چي هغه د الله تعالى د فعل صورت گري مماثلت

کونکی وي نو هغه کافر کیږي او په دغه صورت کي ددغه حدیث مطلب به دا وي چي هغه ته به ددغه بد کفر په وجه د نورو کافرانو په نسبت زیات سخت عذاب ورکول کیږي او که هغه داسي عقیده نلري نو بیا د هغه په اړه به دغه حدیث پر تهدید باندي محمول وي.

﴿۴۲۹۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذَهَبَ يَخْلُقُ كَخَلْقِي فَلْيَخْلُقُوا ذَرَّةً أَوْ لِيَخْلُقُوا حَبَّةً أَوْ شَعِيرَةً. متفق عليه.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي چي خداي تعالی وفرمایل: د هغه کس څخه زیات څوک ظالم دی چي زما د پیدائش په شان جوړول کوي (یعني څه ډول شکلونه چي زه جوړوم هغه یې هم جوړوي ، هغه ته پکار ده که هغه د پیدا کولو دعوی لري نو زما په شان یو کوچنۍ ذره دي پیدا کړي یا یوه دانه یا اوربشه. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۸۶، رقم: ۴۹۵۴، ومسلم ۳\۱۶۶۸، رقم: ۹۲- ۲۱۰۷.

﴿۴۲۹۸﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا عندالله الْمُصَوِّرُونَ. متفق عليه.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي چي د خداي تعالی په نیزد به د سخت څخه سخت عذاب و عکسونو جوړونکو ته ورکړي. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۸۲، رقم: ۵۹۵۰، ومسلم ۳\۱۶۸۰، رقم: ۹۸- ۲۱۰۹.

**تشریح**. مطلب دادی چي الله تعالی کوم خلک په سخت عذاب کي اخته کوي په هغوی کي به مصور هم وي، ځینو علماوو لیکلي دي چي دغه وعید د هغه چا په حق کي دی چي د بتانو عکسونه ددې لپاره جوړوي چي د هغوی عبادت وکړل سي او داسي سړی به یقینا کافر وي، که هغه په سخت عذاب کي اخته کړل سي نو څه لیري خبره نه ده ، ځیني حضرات وایي چي کوم څوک د الله تعالی د مشابهت په نیت سره عکس جوړ کړي نو هغه هم کافر کیږي او د سخت

عذاب ورڼ دی ، او کوم څوک چې د دغه نیت څخه پرته عکس جوړوي نو هغه نه کافر کیږي بلکه فاسق به ورته ویل کیږي، او د هغه به همهغه حکم وي کوم چې د ګناه کونکي دی، پر دې خبره د ټولو علماوو اتفاق دی چې په حدیث کي د کوم عکس جوړنکي په اړه وعید بیان سوی دی د هغه څخه د ساه لرونکي شی عکس جوړونکی مراد دی نه د درختو او نورو شیانو عکس جوړونکی، ځکه چې په عامه توګه سره د مصور اطلاق پر ساه لرونکي باندي کیږي او د جماداتو او نباتاتو عکس جوړونکي ته نقاش ویل کیږي، مجاهد رحمة الله عليه د میوه دارو درختو عکس جوړولو ته هم مکروه ویلي دي، د نورو محققینو په نزد د غیر ساه لرونکي شي عکس جوړول د کراهت څخه خالی نه دي او په لهو و لعب او بې مقصده شیانو کي داخل دی .

﴿۴۲۹۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چې فرمایل یې

كُلُّ مُصَوِّرٍ فِي النَّارِ يَجْعَلُ لَهُ بِكُلِّ صُورَةٍ صَوَّرَهَا نَفْسًا فَتُعَذِّبُهُ فِي جَهَنَّمَ قَالَ

هر عکس جوړونکي به په اور کي و غورځول سي او د هغه د هر عکس په بدله کي به هغه څوک چې د هغه عکس یې جوړ کړي وي پیدا کړل سي او هغه (جوړونکي) ته به په دوږخ کي عذاب

ابْنُ عَبَّاسٍ فَإِنْ كُنْتَ لَا بُدَّ فَاعِلًا فَاصْنَعِ الشَّجَرَ وَمَا لَا رُوحَ فِيهِ. متفق عليه

ورکوي ، ابن عباس وایي که عکس جوړول ستا کار وي او ته دا کار خامخا کوې نو د درختي یا غیر ذي روح شي عکس جوړ کړه . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\۴۱۶، رقم: ۲۲۲۵، ومسلم ۳\۱۶۷۰، رقم: ۹۹- ۲۱۱۰.

**تشريح**: هسې خو هر ډول عکس جوړول ناجائز دی مګر اکثرو علماوو د انجونو لپاره ناوکۍ مستثنی کړي دي یعني دهغوی په نزد د انجونو لپاره ناوکۍ جوړول مباح دي مګر امام ملک رحمة الله عليه نارینوو ته د هغو رانېول مکروه ګرځولي دي او ځینو علماوو مذکوره اباحت منسوخ ګرځولی دی .

﴿۴۳۰۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ تَحَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي چې څوک داسي خوب بیان کړي

بِحُلْمٍ لَمْ يَرَهُ كُلِّفَ أَنْ يَعْقِدَ بَيْنَ شَعِيرَتَيْنِ وَلَنْ يَفْعَلَ وَمَنِ اسْتَمَعَ إِلَى

چي نه يې وي ليدلي (يعني د دروا غو خوب)هغه ته به وويل سي چي د دوو اوربشو په مينځ كي غوټه وركړي او هغه به هيڅ كله داسي نه سي كولاى او څوك چي د يو قوم خبرو ته په پټه غوږ

حَدِيثِ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ أَوْ يَفِرُّونَ مِنْهُ صُبَّ فِي أُذُنِهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

ونيسي او هغه قوم د هغه خبري اوربدل بد ګڼي يا نفرت ځيني كوي يا هغه خلک دده د غوږ نيولو په سبب بل ځاى ته تښتي (يعني چي دى زموږ خبري وا نه وري) نو د قيامت په ورځ به د هغه په غوږونو كي مس واچول سي

وَمَنْ صَوَّرَ صُورَةً عُذِّبَ وَكُلِّفَ أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا وَلَيْسَ بِنَافِخٍ. رواه البخاري.

او څوک چي (د يو ساه لرونكي) عكس جوړ كړي هغه به مجبور كړل سي چي په هغه كي روح واچوي او حال دا چي هغه به هيڅ كله روح نه سي په كښي اچولاى . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۲۷، رقم: ۷۰۴۲.

**د لغاتو حل**: الانک: هو الرصاص الابيض. (مس)

**تشريح**: چي هغه به يې هيڅكله نسي كولاى: ددې مطلب دادى چي هغه سړى به په عذاب اخته كړل سي او هغه ته به وويل سي چي هغه د اوربشو دوې دانې په جوړولو سره يو ځاى كړي او كله چي هغه داسي ونه كړلاى سي نو هغه به بيا په عذاب كي اخته كړل سي او همدارنګه به هغه ته عذاب وركول كيږي، د دروا غو خوب بيانونكى او د اوربشو دوې دانې په خپلو كي د يو ځاى كولو مناسبت دادى چي څرنګه يو سړى د خوب بې بنياده او درواغ خبري جوړوي همدارنګه به هغه ته وويل سي چي اوس د اوربشو دوې دانې يو ځاى كړئ ، څرګنده دي وي چي د دروا غو خوب بيانول كه څه هم د دروا غو يو ډول دى مګر دغه د دروا غو خوب بيانونكي ته به مطلق د درواغ ويلو په نسبت زيات سخت عذاب ځكه وركول كيږي چي په اصل كي د خوب تعلق د عالم غيب سره دى او رېښتونى خوب د اجزاء نبوت يو جز دى او همدارنګه د وحي د درجې حكم لري نو كوم څوک چي د دروا غو خوب بيان كړي هغه ګويا پر الله تعالى باندي درواغ وتړل او په دې كي هيڅ شک نسته چي پر الله تعالى باندي درواغ تړل د دروا غو تر ټولو سخت ډول دى ، ځيني حضرات وايي چي په حديث كي ذكر سوى وعيد د هغه چا په حق كي دى

چې د دروغو د خوب په ذریعه د نبوت یا ولایت دعوه کوي د مثال په توګه هغه داسې ووايي چې ما خوب لېدلی دی چې الله تعالی زه نبي کړی یم یا ولي کړی یم، او ما ته یې خبر راکړی دی چې د فلانی سړي بخښنه سوې ده یا فلاني سړی ملعون دی وغیره وغیره، یا داسې بیان وکړي چې رسول الله ﷺ ما ته په خوب کې فلانی فلانی حکم کړی دی حال دا چې په حقیقت کې هغه په خوب کې هیڅ نوي لیدلي.

د هغه سړي په غوږ کې به مس واچول سي: دا وعید د هغه سړي په حق کې دی چې د هغه خلکو خبري د چغل خوری او فتنې خپرولو په نیت اوري، ددې پر خلاف که چیري هغه د خلکو خبري ددې لپاره اوري که هغوی د خپلو هغه خبرو په ذریعه د فتنې او فساد فلان جوړوي نو هغوی دي منع کړي یا د هغوی د شر څخه خپل ځان یا نور خلک وساتي نو په دې کي څه پروا نسته.

## د نرد شیر بدوالی

﴿۴۳۰۱﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدَشِيرِ فَكَأَنَّمَا صَبَغَ يَدَهُ فِي لَحْمِ خِنْزِيرٍ وَدَمِهِ. رواه مسلم.

د حضرت بریده رضی الله عنه څخه روایت دی چاچې د نرد شیر (سطرنج) وکړی نو هغه لکه خپل لاسونه چې د خنزیر په غوښو او وینو رنګ کړل. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\۱۷۷۰، رقم: ۱۰-۲۲۶۰.

**تشریح**: نرد شېر یو ډول لوبه ده چې د فارس (ایران) یو پاچا شاه پورابن ارد شیرابن بابک ایجاد کړې وه، او د خنزیر غوښه او وینه نه یوازي دا چې نجس دي بلکه ددې څخه ډېر زیات نفرت هم کیږي ځکه په خاصه توګه ددې یادونه وسول چې خلک ددغه لوبي څخه بېزاره سي، څرګنده دي وي چې مطلق د نرد په ذریعه لوبه کول د ټولو علماوو په نزد حرام دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د جبرائیل علیه السلام کور ته نه تلل

﴿۴۳۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَانِي

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: ماته راغلی

جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام قَالَ أَتَيْتُكَ الْبَارِحَةَ فَلَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أَكُونَ دَخَلْتُ إِلَّا

جبرائيل عليه السلام او ويې فرمايل: پرون شپه زه ستاسو کره راغلی وم ليکن د ننه نه د رغلم چې په

أَنَّهُ كَانَ عَلَى الْبَابِ تَمَاثِيلُ وَكَانَ فِي الْبَيْتِ قِرَامُ سِتْرٍ فِيهِ تَمَاثِيلُ وَكَانَ فِي

دروازه کې عکسونه وه او په کور کې يوه نقش داره ټوکر وو چې د هغې څخه پرده جوړه سوې وه او په دروازه اچول سوې وه او په هغې کې عکسونه وه او ځکه داخل نه سوم چې په کور کې

الْبَيْتِ كَلْبٌ فَمُرْ بِرَأْسِ التِّمْثَالِ الَّذِي على باب الْبَيْتِ يُقْطَعُ فَيَصِيرُ كَهَيْئَةِ

سپی وو تاسو حکم وکړئ چې کوم عکسونه په دروازه دي (يعني د پردې پر سر) د هغوی سرونه دي پرې کړل سي، لپاره د دې چې د هغوی شکل

الشَّجَرَةِ وَمُرْ بِالسِّتْرِ فَلْيُقْطَعْ فَلْيُجْعَلْ وِسَادَتَيْنِ مَنْبُوذَتَيْنِ تُوطَآنِ وَمُرْ

د درختو په شان سي، بيا دا حکم وکړئ چې هغه دي پرې کړل سي د هغې څخه دي دوه بالښتونه جوړ سي چې پر فرش باندي پراته وي او د پښو لاندي راسي او حکم وکړئ

بِالْكَلْبِ فَلْيُخْرَجْ فَفَعَلَ رَسُولُ اللهِ ﷺ . رواه الترمذي وابوداؤد.

چې سپی دي د کوره څخه و شړل سي، نو نبي کريم ﷺ همدا سي وکړل. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۰۶، رقم: ۲۸۰۶، وابوداود ۴\۳۸۸، رقم: ۴۱۵۸.

**د لغاتو حل**: قِرام: الستر المنقش (نقش لرونکې پرده)

**تشريح**: په فتاوی قاضي خان کي ليکلي دي چې په داسي حالت کي لمونځ کول مکروه دي چې د مصلا مخته يا پر سربېره يا راسته او چپه خوا ته عکس موجود وي، يا د لمونځ کونکي پر جامو باندي عکس جوړ سوی وي مګر پر کوربچه باندي د عکس کېدو په اړه دوه قوله دي چې په هغو کي زيات صحيح قول دادی چې پر کوربچه يا فرش باندي عکس مکروه نه دی په شرط ددې چې پر هغه کوربچه يا فرش باندي لمونځ کيږي نو په هغه ځای کي دي سجده نه کوي چيري چې عکس وي، څرګنده دي وي چې دا مسئله په هغه صورت کي ده کله چې عکسونه لوی وي او لېدونکو ته بېله تکليف معلوميږي او که چيري عکسونه کوچني وي يا د هغوی سرونه پرې سوي وي نو په دې کي څه پروا نسته.

## د قیامت په ورځ درې دوږخیان

﴿۴۳۰۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَخْرُجُ عُنُقٌ مِنَ النَّارِ

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د قیامت په ورځ به یوه

يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَهَا عَيْنَانِ تُبْصِرَانِ وَأُذُنَانِ تَسْمَعَانِ وَلِسَانٌ يَنْطِقُ يَقُولُ إِنِّي

غاړه د دوږخ د د ننه څخه را ووځي چې دوې سترګې به یې وي، ګوري به، دوه غوږونه به یې وي او رېدل به کوي او ژبه به یې وي خبرې به په کوي، هغه غاړه به په خپلې ژبې سره دا وايي،

وُكِّلْتُ بِثَلَاثَةٍ بِكُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ وَبِكُلِّ مَنْ دَعَا مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ وَبِالْمُصَوِّرِينَ. رواه الترمذي.

زه په درو کسانو باندې مقرر سوی یم (یعني د دې لپاره چې دا درې کسان به د ځانه سره و دوږخ ته بیایم او په عذاب کې به یې اچوم) (۱)-یو تکبر کونکي او بغض او عناد کونکي. (۲)-او بل هغه څوک چې د الله جل جلاله څخه پرته د بل چا عبادت کوي او د هغه څخه کومک غواړي. (۳)-او هغه کسان چې عکسونه جوړوي. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي: ۴\ ۶۰۴، رقم: ۲۵۷۴.

## شراب، خمار، طنبل

﴿۴۳۰۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى حَرَّمَ الْخَمْرَ وَالْمَيْسِرَ وَالْكُوبَةَ وَقَالَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ قِيلَ الْكُوبَةُ الطَّبْلُ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: خدای تعالی شراب خوړل، خمار او کوبه (طنبل وهل) حرام ګرځولي دي او فرمایلي یې دي چې هر نشه لرونکي شی حرام دی، د ځینو بیان دي چې کوبه و ډول ته ویل کیږي. بیهقي

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۴\ ۲۸۲، رقم: ۵۱۱۶.

**تشریح**: د کوبه په معنی کي د علماوو درې قوله دي، یو خو نرد، دوهم بربط، او دریم طبل، لکه څرنګه چي مصنف د حدیث د یو راوي څخه نقل کړي دي ، د ډول وغیره په ډول طبل هم یو ډول باجه ده ، په حدیث کي هغه طبل مراد دی چي محض د لهو او لعب لپاره وي نه د اسلام د غازیانو طبل.

﴿۴۳۰۵﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د شراب ، خمار ،

وَالْكُوبَةِ وَالْغُبَيْرَاءِ، وَالْغُبَيْرَاءَ شَرَابٌ تَعْمَلُهُ الْحَبَشَةُ مِنَ الذُّرَّةِ يُقَالُ لَهُ

السُّكُرُكَةُ .رواه ابوداؤد.

کوبه او غبیرا څخه منعه کړې ده ، غبیرا یو ډول شراب دي چي د حبشې خلک یې د اوربشو څخه جوړوي او دې ته سکرکه ویل کیږي . ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۱۴\۸۹-۹۰، رقم: ۳۶۸۵.

**تشریح**: د غبیراء چي کوم تعریف بیان سوی دی هغه یا خو د ابن عمر رضي الله عنه څخه منقول دی یا بل راوي بیان کړی دی.

## د الله جل جلاله او رسول ﷺ نافرماني

﴿۴۳۰۶﴾ : وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدِ فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ وَرَسُولَهُ . رواه احمد وابوداؤد.

د ابو موسی اشعری رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چاچي په نرد (شطرنج) سره لوبې وکړې نو هغه د خداي جل جلاله او د هغه د رسول الله ﷺ نافرماني وکړه . احمد او ابوداؤد

**تخریج**: مسند الامام احمد ۱۴\۳۴۵، رقم: ۴۹۴۰، وابوداؤد: ۱۵\۲۳۰، رقم: ۴۹۳۸.

**تشریح**: په نرد سره لوبه کول د الله تعالی او د هغه د رسول د نافرمانۍ برابر دي چي دغه لوبه که وکړل سي نو حقیقتا خمار دی او که بېله بازۍ لګولو وکړل سي نو بیا هم صورتا خمار دی او دا مخکي بیان سوی دی چي په مطلق نرد سره لوبه کول حرام دي .

## كوتر بازي حرامه ده

﴿۴۳۰۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَتْبَعُ حَمَامَةً فَقَالَ شَيْطَانٌ يَتْبَعُ شَيْطَانَةً. رواه احمد و ابوداؤد وابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يو سړی و ليدی چي په كوترو پسي وو (يعني كوتري يې الوځولې) نبي كريم ﷺ وفرمايل: دا شيطان دی، په شيطاني پسې سوی دی. احمد، ابوداؤد، ابن ماجه او بيهقي

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\ ۳۴۵، وابوداود ۵\ ۲۳۱، رقم: ۴۹۴۰، وابن ماجه ۲\ ۱۲۳۸، رقم: ۳۷۶۵، والبيهقي في شعب الايمان ۵\ ۲۴۴، رقم: ۶۵۳۴.

**تشريح**: هغه سړي ته يې شيطان ځكه وفرمايل چي هغه د الله تعالی څخه ليري والي اختيار كړی وو او په لايعني او بې مقصده كار كي بوخت وو، او د هغه كوترو ته يې ځكه شيطان وويل چي هغوی هغه سړی په بازۍ او لهو ولعب كي په بوختولو سره د ذكر الهي او د دين د كارو څخه منع كړی وو، ددې څخه معلومه سوه چي كوتر بازي حرامه ده، نووي رحمه الله ليكلي دي چي د هګيو او بچيانو تر لاسه كولو لپاره د كوترو ساتل بېله كراهته جائز دي مګر د هغو الوځول مكروه دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د تصوير جوړونكي كسب

﴿۴۳۰۸﴾: عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ

د حضرت سعيد بن ابو الحسن رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د ابن عباس رضي الله عنه سره ناست وم چي

عَنْهُمَا إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا أَبْنَ عَبَّاسٍ إِنِّي رجل إِنَّمَا مَعِيشَتِي مِنْ صَنْعَةِ

يو سړی راغلی او ويل يې، اې ابن عباس! زه يو مزدور كاره سړی يم او زما كار د لاس دی زه

يَدِي وَإِنِّي أَصْنَعُ هَذِهِ التَّصَاوِيرَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَا أُحَدِّثُكَ إِلَّا مَا سَمِعْتُ

عکسونه جوړوم. ابن عباس ورته وفرمايل : زه تا ته هغه خبره وه نه کړم کومه چي ما د نبي کريم

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ صَوَّرَ صُورَةً فَإِنَّ اللّٰهَ مُعَذِّبُهُ حَتّٰى

ﷺ څخه اورېدلې ده، ما د نبي کريم ﷺ څخه دا اورېدلي دي، څوک چي يو عکس جوړ کړي بېشکه الله ﷻ عذاب ورکونکي دی ده ته ترڅو پوري چي

يَنْفُخَ فِيهَا الرُّوحَ وَلَيْسَ بِنَافِخٍ فِيهَا أَبَدًا فَرَبَا الرَّجُلُ رَبْوَةً شَدِيدَةً وَاصْفَرَّ

په هغه کي يې روح نه وي پوه کړې او هغه نفر به هيڅکله روح پکښي پوه نه کړي (په دې اورېدو سره) هغه سړي اوږده ساه وکښله او مخ يې ژړ سو،

وَجْهُهُ فَقَالَ وَيْحَكَ إِنْ أَبَيْتَ إِلَّا أَنْ تَصْنَعَ فَعَلَيْكَ بِهٰذَا الشَّجَرِ وَكُلِّ شَيْءٍ

لَيْسَ فِيهِ رُوحٌ. رواه البخاري.

ابن عباس رضي الله عنه ورته وفرمايل : پر تا باندي افسوس دی که ته نه منعه کيږې له جوړولو څخه يې نو د ونو عکسونه جوړوه او د هغو شيانو چي روح و نلري. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۱۶\۴، رقم: ۲۲۲۵.

## د کنيسه ذکر

﴿۴۳۰۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا اشْتَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ بَعْضُ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی کوم وخت چي نبي کريم ﷺ ناروغه سو نو د نبي کريم ﷺ

نِسَائِهِ كَنِيسَةً يُقَالُ لَهَا مَارِيَةُ فَكَانَتْ أُمُّ سَلَمَةَ وَأُمُّ حَبِيبَةَ أَتَتَا أَرْضَ

په بيبانو کي ځينو د کلېسا ذکر وکړ چي هغه کلېسا ته ماريه ويل کيږي (او په حبشه کي وه) او د نبي کريم ﷺ بيبيانو ام سلمه رضي الله عنها او ام حبيبه رضي الله عنها حبشې ته تللي وې

الْحَبَشَةِ فَذَكَرْنَا مِنْ حُسْنِهَا وَتَصَاوِيرَ فِيهَا فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ أُولٰئِكِ إِذَا

او دې دواړو بيبيانو دهغې کلېسا د ښايست او د هغې د عکسونو ذکر وکړ نبي کريم ﷺ خپل سر مبارک را پورته کړ او ويې فرمايل : په هغو کي چي

مَاتَ فِيهِمُ الرَّجُلُ الصَّالِحُ فَبَنَوْا عَلَى قَبْرِهِ مَسْجِدًا ثُمَّ صَوَّرُوا فِيهِ تِلْكَ الصُّوَرَ أُولَئِكِ شِرَارُ خَلْقِ اللّٰهِ. متفق عليه.

كوم نېك سړى مړ سي نو د هغه پر قبر باندي مسجد جوړ كړى او بيا په هغه كي د داسي نېكانو خلكو عكسونه جوړوي دا خلك په حقيقت كي د الله ﷻ بد ترين مخلوق دى. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۸۷، رقم: ۳۸۷۳، ومسلم ۱\۳۷۵، رقم: ۱۶- ۵۲۸.

**تشريح**: مطلب دادى چي پر قبرونو د عبادت ځايونه جوړول. او دهغوى قبرو خوا ته مخ كولو سره د عبادت كولو په وجه هغوى د الله تعالى په بدترين مخلوق كي شمېرل كيږي.

## تر ټولو سخت عذاب د چا دى

﴿۴۳۱۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَتَلَ نَبِيًّا أَوْ قَتَلَهُ نَبِيٌّ أَوْ قَتَلَ أَحَدَ وَالِدَيْهِ وَالْمُصَوِّرُوْنَ وَعَالِمٌ لَّمْ يَنْتَفِعْ بِعِلْمِهِ. رواه البيهقي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ چي كومو خلكو ته به د سخت څخه سخت عذاب وركول كيږي هغه به هغه خلک وي، كوم چا چي نبي (پېغمبر) قتل كړي وي يا يو نبي هغه په قتل رسولي وي يا په خپل مور او پلار كي يې يو په قتل رسولي وي او عكسونه جوړونكي او هغه عالم چي د هغه د علمه څخه و چا ته څه فائده نه وي رسېدلې. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۶\۱۹۷، رقم: ۷۸۸۸

**تشريح**: كوم څوک چي د جنگ په مېدان كي يو نبي قتل كړى وي د هغه په سخت عذاب كي اخته كېدل د يو بل روايت څخه ثابت دي چي په هغه كي فرمايل سوي دي چي (اشتد غضب الله على رجل يقتله رسول الله في سبيل الله) يعني د الله تعالى سخت ترين عذاب به پر هغه چا وي چي د الله تعالى په لار يعني جهاد كي قتل كړى وي ځكه چي د الله تعالى د رسول مقتول په اصل كي هغه سړى وي چي د الله تعالى د رسول د قتلولو اراده لري، د جهاد د قيد په ذريعه گويا هغه قيد مستثنى كړل سوى دى چي د حد او قصاص په توگه وي.

## د سطرنج لوبه

﴿۴۳۱۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ اَلشَّطْرَنْجُ هُوَ مَيْسِرُ الْأَعَاجِمِ. رواه البيهقي

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي سطرنج د عجميانو خمار دی. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\ ۲۴۱، رقم: ۶۵۱۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي کافران د سطرنج په ذريعه حقيقتا خمار کوي يا د سطرنج لوبه کول صورتا د هغوی د خمار مشابهت لري او د هغوی هر ډول مشابهت اختيارول منع دي.

## د سطرنج بدوالی

﴿۴۳۱۲﴾: وَعَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ أَبَا مُوْسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ لاَ يَلْعَبُ بِالشَّطْرَنْجِ إِلاَّ خَاطِئٌ. رواه البيهقي.

د حضرت ابن شهاب رضي الله عنه څخه روايت دی چي د ابوموسی اشعري رضي الله عنه بيان دی، سطرنج هغه سړی کوي کوم چي خطاکار او ګنهګاره وي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان في الموضوع السابق نفسه.

﴿۴۳۱۳﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ لَعِبِ الشَّطْرَنْجِ فَقَالَ هِيَ مِنَ الْبَاطِلِ وَلاَ يُحِبُّهُ اللّٰهُ الْبَاطِلَ. روى البيهقي الأحاديث الأربعة في شعب الإيمان.

د حضرت ابن شهاب رضي الله عنه څخه د سطرنج په هکله وپوښتل سوه، هغه وويل، دا لغوه او باطله لوبه ده او خداي تعالی لغو او باطل شی نه خوښوي. (بيهقي دا څلور احاديث په شعب الايمان کي نقل کړی دي).

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان في الموضع السابق نفسه.

**تشريح**: په هدايه کي ليکلي دي چي د رسول الله دغه ارشاد: کوم څوم چي سطرنج يا نرد لوبه وکړي هغه ګويا د خنزير په وينه کي خپل لاسونه ډوب کړل، په دې وجه نرد او سطرنج لوبه کول مکروه تحريمي دي، په جامع صغير کي دا حديث نقل سوی دی چي د سطرنج لوبه کونکی ملعون دی او کوم څوک چي په شوق سره د سطرنج لوبي ته وګوري هغه ګويا د خنزير غوښه

وخوړل ، په ځینو کتابو کي چي دا نقل سوي دي چي امام شافعي رحمة الله عليه د سطرنج لوبه په ځینو شرطو سره جائز گرځولې ده نو په نصاب الاحتسام کي د امام غزالي رحمة الله عليه څخه دا نقل سوي دي چي د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد هم دغه لوبه مکروه ده ، ددې څخه معلومه سوه چي امام شافعي رحمة الله عليه به مخکي ددې د جواز قائل وو مگر وروسته هغوی ددغه قول څخه رجوع وکړل، په مختار او نورو کتابو کي ليکلي دي چي همدارنگه ټولي لوبي مکروه دي .

## د سپي او پیشي فرق

﴿۴۳۱۴﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِيْ دَارَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ به د انصارو يو کور ته تشريف وړئ

قَوْمٍ مِّنَ الْأَنْصَارِ وَدُوْنَهُمْ دَارٌ فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِمْ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ تَأْتِيْ

حالانکه نبي کريم ﷺ ته نژدې نور کورونه هم وه ، په هغه همسايه گانو يا نژدې کورو والاؤ باندي د اخبره سخته تمام سوه ، هغوی عرض وکړ ، اې د الله رسوله ! تاسو ځئ

دَارَ فُلَانٍ وَلَا تَأْتِيْ دَارَنَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَنَّ فِيْ دَارِكُمْ كَلْبًا

د فلاني انصاري کره او زموږ کره نه راځئ نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : زه ستاسو و کورو ته ځکه نه درځم ، چي تاسو په خپلو کورونو کي سپي ساتلي دي ،

قَالُوْا إِنَّ فِيْ دَارِهِمْ سِنَّوْرًا فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ اَلسِّنَّوْرُ سَبُعٌ . رواه الدار قطني .

هغوی عرض وکړ، او د هغه په کور کي پيشي ده ، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : پيشي داسي درنده دئ چي نجاست نه لري . بيهقي .

**تخريج** : سنن الدار قطني ۱\ ۶۳، رقم: ۵.

========

بِسمِ اللہ الرَّحمٰنِ الرَّحِیم

# كِتَابُ الطِّبِّ وَالرُّقٰى

## (د طب او دم بيان)

طَب په عامه توګه د طاء په زبر سره مستعمل دی مګر سيوطي رحمة الله عليه وايي چي دغه لفظ د طاء په زور، زبر او پيش درې سره منقول دی، ددې معنی ده علاج کول او درملنه کول، ځيني وختونه دغه لفظ د طاء په زبر سره د سحر په معنی کي هم استعمال سوی دی ، په دې اعتبار سره مطلبوب هغه سړي ته وايي چي په هغه سحر (جادو) سوی وي .

د طب اړه د بدن (ظاهر) سره هم وي او د نفس (باطن) سره هم وي او د روغتيا د ساتني او نارو غيو څخه د دفع په ذريعه د بدن علاج ته بدني طب وايي او د باطني هلاکت او تباه کونکو افکارو او اعمالو پرهېزودو او ازالې په ذريعه د نفس علاج ته طب نفساني وايي، لکه څرنګه چي د طب دوه ډولونه دي همدارنګه د دواء هم دوه ډولونه دي يو خو جسماني او طبعي که هغه مفرداتو په شکل کي وي يا د مرکباتو په شکل کي وي ، او دوهم ډول روحاني او لساني چي د قرآن کريم او د قرآن کريم په حکم کي شامل د نورو شيانو په صورت کي دي، نبي کريم صلی الله علیه وسلم به د خپل امت د خلکو علاج او اصلاح لپاره ظاهري او طبعي دواوي هم اختيارولې او باطني او روحاني معالجه هم .

رُقی: د رقيه جمع ده چي معنی يې د دم ده ، د علماوو پر دې اتفاق دی چي د قرآني آياتو ، نقل سوو دعاوو او اسماء الهي په ذريعه دم کول جائز دی ، ددې څخه پرته د داسي دم په ذريعه هم جائز ده چي د هغه الفاظو او کلمو معنی معلومه وي او هغه د دين او شريعت مخالف نه وي ، د کوم دم الفاظ او کلمات چي د دين او شريعت د تعليماتو او احکامو پر خلاف وي د هغه په ذريعه د م کول قطعا جائز نه دي همدارنګه هغه اهل عزائم او تکثير چي په علم نجوم او د رمل په مرسته عمليات کوي او د حفظ ساعات او تعين اوقات په ډول شيان اختياروي د هغوی دغه طريقه هم د اهل ديانت او تقوا په نزد مکروه او حرامه ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### هره ناروغي دوا لري

﴿۴۳۱۵﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ دَاءً إِلَّا أَنْزَلَ لَهُ شِفَاءً . رواه البخاري.

د حضرت ابوهريره ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : خداي تعالی هيڅ يوه داسي ناروغي نه ده پيدا کړې چي د هغې لپاره شفاء (علاج او دوا) نه وي نازله کړې . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۳۴، رقم: ۵۶۷۸.

### ناروغي د خدای په حکم سره جوړيږي

﴿۴۳۱۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءٌ فَإِذَا أُصِيبَ دَوَاءُ الدَّاءِ بَرَأَ بِإِذْنِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ . رواه مسلم .

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د هري ناروغي لپاره دوا سته ، کله چي دوا د ناروغی موافق سي د خداي تعالی په حکم سره ناروغي ښه سي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴\۱۷۲۹، رقم: ۶۹- ۲۲۰۴.

**تشريح**. د الله ﷻ د حکم قيد ځکه لګول سوی دی چي دا ګمان ونسي چي د ناروغي څخه د شفاء اصل تعلق د دواء سره دی او ناروغ ته په صحت ورکولو کي علاج او معالجه حقيقي او مستقل بالذات مؤثر دي بلکه حقيقت دادی چي په اصل کي شفاء محض د الله تعالی پر اراده باندي موقوف ده ، دواء او علاج محض يو ظاهري ذريعه او وسيله ده ، يو ناروغ ته دواء هغه وخت ګټه کوي کله چي د الله تعالی حکم وسي ، په روايت حميدي کي ددې تفصيل داسي نقل سوی دی ، داسي ناروغي نسته چي د هغه علاج نه وي ، کله چي يو څوک ناروغ سي نو الله تعالی يوه ملائکه را استوي او د هغې سره يوه پرده وي ، هغه ملائکه هغه پرده د ناروغ د ناروغی او د دواء په مينځ کي حائله کوي چي د هغه نتيجه داسي چي ناروغ کومه دواء استعمالوي هغه نه پر لګيږي او شفاء نه تر لاسه کيږي تر دې چي د الله تعالی مشيت وسي چي

ناروغ ښه سي، نو هغه ملائکي ته حکم ورکړي چي د ناروغ او دواء په مینځ کي پرده دي پورته کړل سي ، ددې څخه وروسته چي ناروغ دواء وخوري نو الله تعالی د هغه دواء په ذریعه ناروغ ته شفاء ورکوي.

ددې څخه څرګنده سوه چي کله ناروغي لاحقه سي نو د هغه علاج او دواء کول مستحب دي، د صحابه کرامو او اکثرو علماوو دا مذهب دی او په دې سره د هغه حضراتو د نظر تردید هم کیږي چي د علاج او معالجه او دواء څخه انکار کوي، او وايي چي د هر شي په ډول ناروغي هم د قضاء او قدر تر اثر لاندي وي ځکه د يو ناروغ علاج بې ګټې دی، د جمهورو علماوو چي د علاج او معالجې قائل دي، دليل ذکر سوی حديث دی، او د هغوی عقيده داده چي بېله شکه د ناروغيو پيدا کونکی الله تعالی دی مګر ناروغيو د ازالې ذرائع پيدا کونکی هم الله تعالی دی او څرنګه چي ناروغ او ناروغي د قضاء او تقدير تابع دي همدارنګه علاج او معالجه هم د تقدير الهي څخه دي ، ددې مثال داسي دی لکه څرنګه چي د هر انسان د مرګ وخت بالکل يقيني دی د چا مرګ چي په کوم صورت کي ليکل سوی دی په هغه صورت کي به راځي مګر ددې سربېره د خپل ساتني او سلامتۍ ذرائع اختيارول او خپل ځان د يو ښېښي يا دښمن د حملې څخه خوندي کول د عاء کولو حکم ورکړل سوی دی يا د جنګ په مېدان کي د دين د دښمنانو د [illegible]ژني هدايت ورکړل سوی دی ، خلاصه دا چي د ځان او روغتيا د ساتني او سلامتۍ لپاره د [illegible]ءاو نورو شيانو په ډول اسباب او ذرائع اختيارول نه خود حکم الهي خلاف دي او نه د توکل [illegible]ف دي، لکه د خوراک په ذريعه لوږه دفع کول د توکل خلاف نه دی ، د رسول الله ﷺ څخه [illegible]يات توکل کونکی څوک کېدای سي چي رسول الله ﷺ سيد المتوکلين وو مګر ددې سربېره رسول الله ﷺ به علاج هم کوی او د ناروغۍ ليري کولو لپاره به يې ذرائع هم اختيارول.

## شفاء په درو شيانو کي

﴿۴۳۱۷﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشِّفَاءُ فِي ثَلَاثٍ فِي شَرْطَةِ مِحْجَمٍ أَوْ شَرْبَةِ عَسَلٍ أَوْ كَيَّةٍ بِنَارٍ وَأَنَا أَنْهَى أُمَّتِي عَنْ الْكَيِّ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : شفا په درو شيانو کي ده :(۱) په وينه کښلو.(۲) په شاتو خوړلو کي.(۳) په اور سره په داغ ورکولو کي ، ليکن زه

خپل امت په داغ سره د علاج کولو څخه منعه کوم . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۳٦، رقم: ۵٦۸۰.

**تشريح**: مِحجَم: د میم په زیر او د جیم په زور سره وینې کښلو ته وایي مګر دلته د دغه لفظ څخه ښکر مراد دی چي په هغه سره وینه کښل کیږي، شرطة : د شین په زور سره ښکر وهل، چي د هغه په ذریعه وینه کښل کیږي، نو في شرطة معجم، ترجمه به دا وي چي د ښکر په ذریعه په وینه کښلو کي شفاء ده .

د سفر السعادة د مصنف مطابق علماء وايي چي په دغه حديث کي د ټولو بدني ناروغيو علاج ته لارښوونه او اشاره ده ځکه چي مادي ناروغی یا خو دموي، صفراوي او یا سوداوي وي، که یو ناروغي دموي (یعني د ویني د فساد په وجه وي) نو د هغه علاج دادی چي هغه د بدن څخه وکښل سي چي د هغه صورت ښکر لګول دي او په پاته درو صورتو کي د ناروغی غوره علاج اسهال (نس ناسته دی) ، رسول الله ﷺ د عسلو په ذریعه مسهلاتو ته توجه وګرځول چي د اسهال لپاره د عسلو د یو غوره او معتدلي دواء کار ورکوي ، او په اور سره د داغلو په ذریعه دې ته اشاره سوې ده چي که چیري د ناروغی نوعیت داسي وي چي طبیب او معالج د هغه د ناروغی څخه عاجزه سي نو بیا په اور سره دي وداغل سي ځکه چي یو مغلظ باغي سي او د هغه ماده نه منقطع کیږي نو د هغه د انتقاع یوازنی ذریعه داغ ورکول دي ځکه ویل سوي دي چي : (آخر الدوا لکی) یعني آخري دواء داغل دي .

پاته سوه دا خبره چي داغ ورکول یو علاج دی نو رسول الله ﷺ د هغه منع ولي وفرمایل، ددې وجه داده چي عربو به داغلو ته دومره ازرښت ورکوی او د هغوی دا عقیده سوې وه چي ماده د ناروغی سبب وي د هغه د دفع لپاره داغ ورکول د یقیني درجې علاج دی نو د هغوی په نزد دا مشهوره وه چي آخر الواء لکی، څرګنده ده چي دا خبره د اسلامي عقیدې خلاف ده ځکه چي هیڅ علاج که هر څومره مجرب وي د یقین درجې ته نسي رسیدلای یوازي ظاهري سبب او ذریعه په پوهه کي راتللای سي ، یقیني شفاء خو یوازي د الله تعالی پر حکم موقوف ده نو رسول الله ﷺ د دغه فاسدي عقیدې تردید او خلق شرک خفي کي د اخته کېدو څخه د ساتني لپاره ددې منع وفرمایل، او دغه منع د نهي تنزیهي په توګه ده، که یو څوک داغل د ناروغی د دفع یو ظاهري سبب او ذریعه ګڼلو سره د علاج په توګه اختیار کړي او د الله تعالی څخه د شفاء امید ولري نو جائز دي ، ځیني علماء وايي چي د داغلو د منع تعلق د خطرې او تردد په وجه دی یعني

داسي صورت وي چي په داغلو سره د ګټي پر ځای د تاوان او هلاکت خطره او بیره وي نو بیا داغل نه دي پکار. په دغه مسئله کي د حدیثو ځینو شارحینو دا تفصیل بیان کړی دی چي د داغلو په اړه مختلف حدیثونه نقل سوي دي ، ځیني حدیثونه پر جواز باندي دلالت کوي او ځیني نهي ثابتوي، لکه ذکر سوی حدیث او نور حدیثونه، همدارنګه په ځینو حدیثو کي دادي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زه داغ ورکول نه خوښوم او په ځینو حدیثو کي پر داغ نه لګولو باندي مدح او تعریف سوی دی ، همدارنګه ددغه حدیثو د تعارض او تضاد لیري کولو لپاره او په هغه کي د مطابقت پیدا کولو لپاره علماوو دا لیکلي دي چي په کومو حدیثو کي د رسول الله ﷺ دا فعل منقول دی چي رسول الله ﷺ داغ ورکړ نو دا په اصولي توګه سره د داغلو پر جواز باندي دلالت کوي او کوم حدیثونه چي د رسول الله ﷺ د ناخوښۍ اظهار کوي هغه ددغه جواز خلاف نه دي ځکه چي ناخوښي پر عدم جواز باندي دلالت نه کوي ، داسي ډېر شیان دي چي رسول الله ﷺ نه خوښول مګر د نورو لپاره یې د هغه څخه منع نه فرمایل، همدارنګه په کومو حدیثو کي چي داغ نه ورکولو باندي مدح او تعریف منقول دي هغه هم پر عدم جواز باندي دلالت نه کوي ځکه چي د مدح او تعریف مقصد یوازي دا ظاهرول دي چي داغل نه اختیارول محض غوره او افضل دي نه دا چي ضروري دي، البته په کومو حدیثو کي چي دداغلو منع په صراحت سره نقل سوې ده نو هغه منع په اصل کي پر هغه صورت باندي محمول ده کله چي داغل اختیارول یا خو د ناروغۍ د سبب څخه پرته وي یا د ناروغۍ د دفع لپاره د هغه حاجت نه وي بلکه هغه ناروغي په بل علاج سره دفع کېدای سي او څرنګه چي مخکي ذکر سول چي دغه منع پر دې خبره باندي هم محمول ده چي دغه منع دداغلو په اصل کي د داغلو د ذکر سوي فاسدي عقیدې او شرک خفي کي د اخته کېدو څخه د ساتني لپاره ده او که داسي فاسده عقیده ونه درلودل سي نو دغه منع به نه وي ، ځیني حضرات وايي د رسول الله ﷺ د ځینو صحابه کرامو په اړه دداغلو حکم ورکول (لکه چي مخته به راسي)په دې وجه وو چي د هغه صحابه کرامو زخم ډېر خراب سوی وو او د ځینو اندامو د پرېکېدو په وجه په وینه تللو کي کمي نه کېدل او رسول الله ﷺ ته دا هم معلومه سوې وه چي په داغلو سره صحت یقیني دی ، خلاصه دا چي د یو اندام داغل یا سوځل مکروه دي مګر که چیري واقعي ضرورت وي او هوښیار طبیب دا ووایي چي ددغه ناروغي آخري علاج داغ ورکول دي نو بیا داغ ورکول به جائز وي .

## په داغ سره درملنه

﴿۴۳۱۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ رُمِيَ أُبَيٌّ يَوْمَ الْأَحْزَابِ عَلَى أَكْحَلِهِ فَكَوَاهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي د احزاب په غزا (د خندق په غزا) کي یوه ورځ د ابي بن کعب هفت اندام رګ په غشي ولګېدلې، رسول الله ﷺ ورته داغ ورکړ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۴\۱۷۳۰، رقم: ۷۴ – ۲۲۰۷.

﴿۴۳۱۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ رُمِيَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ فِي أَكْحَلِهِ فَحَسَمَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ بِمِشْقَصٍ ثُمَّ وَرِمَتْ فَحَسَمَهُ الثَّانِيَةَ. رواه مسلم

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي د سعد بن معاذ هفت اندام رګ په غشي ولګېدی رسول الله ﷺ په خپل مبارک لاس د هغه زخم ته داغ ورکړ، بیا د هغه په لاس کي پاړسوب راغی نو نبي کریم ﷺ د دویم وار لپاره داغ ورکړ. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۴\۱۷۳۱، رقم: ۷۵ – ۲۲۸.

**د لغاتو حل**: المِشقص: هو نصل السهم اذا کان طویل.

﴿۴۳۲۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ طَبِيبًا فَقَطَعَ مِنْهُ عِرْقًا ثُمَّ كَوَاهُ عَلَيْهِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ابی بن کعب ته طبیب ولیږی، طبیب د هغه وینه وکښل او بیا یې و هغه ته داغ ورکړ. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۴\۱۷۳۰، رقم: ۷۳ – ۲۲۰۷.

## د سیاه دانې خاصیت

﴿۴۳۲۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي

الْحَبَّةِ السَّوْدَاءِ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ إِلَّا السَّامَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَالسَّامُ الْمَوْتُ وَالْحَبَّةُ السَّوْدَاءُ الشُّونِيزُ . متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي هغه د نبي کريم ﷺ څخه دا اورېدلي دي ، چي په توره دانه کي د مرګ څخه پرته د هري ناروغۍ شفاء ده . ابن شهاب وويل :السام څخه مرګ او د توري دانې څخه کلونجي مراد ده . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۴۳، رقم: ۵۶۸۸، ومسلم ۳\۱۷۳۵، رقم: ۸۸- ۲۲۱۵.

**د لغاتو حل**: الشونيز: الكمون الاسود (تورې دانې)

**تشريح**: طيبي رحمة الله عليه وايي که څه هم د حديث په مفهوم کي عموميت دی چي کلونجي(توري دانې) ته د هري ناروغۍ دواء فرمايل سوي دي مګر کلونجي په خاصه توګه په هغه ناروغيو کي ګټور وي کوم چي رطوبت او بلغم کي پيدا کيږي ځکه کلونجي ماء يابس ، وچه او ګرمه وي ځکه هغه ناروغۍ دفع کوي کوم چي د هغه ضد وي ، ځيني حضرات وايي د حديث مفهوم پر عموميت باندي محمول دی يعني کلونجي په هره ناروغۍ کي ګټوره ده ، په دې توګه که په يو داسي دواء کي په خاصه اندازه او ترکيب سره ګډه کړل سي نو د هغه اثرات به څرګنديږي ، کرماني رحمة الله عليه ويلي دي: د حديث مفهوم عام دی ځکه په دغه حديث کي استثناء يوازي د مرګ سوې ده .

د سفر السعادت مصنف ليکلي دي چي د اکابرو او مشائخو د يو ډلي معمول وو چي هغوی به په خپلو ټولو ناروغيو کي کلونجي د دواء په توګه استعمالول همدارنګه ځينو حضراتو به په خپل ټولو ناروغيو کي عسل استعمالول او دهغوی د ښه عقيدې درلودلو په برکت به د هغوی ناروغۍ دفع کېدلې .

## په عسلو کي شفا

﴿۴۳۲۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د ابو سعيد خدری رضی الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو

وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ أَخِي اسْتَطْلَقَ بَطْنُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او و يې ويل: زما د ورور عملونه کيږي ، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل :

اسْقِهِ عَسَلًا فَسَقَاهُ ثُمَّ جَاءَهُ فَقَالَ إِنِّي سَقَيْتُهُ فَلَمْ يَزِدْهُ إِلَّا اسْتِطْلَاقًا فَقَالَ

په هغه شات وخوره، هغه ورباندي شات وخوړل، دوهم وار بيا راغلی او عرض يې وکړ، اې د الله رسوله! ما ورباندي شات وخوړل، عملونه يې لا زيات سول، نبي کريم ﷺ بيا د شاتو د

لَهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ جَاءَ الرَّابِعَةَ فَقَالَ اسْقِهِ عَسَلًا فَقَالَ لَقَدْ سَقَيْتُهُ فَلَمْ

خوړلو حکم ورکړ، درې واره داسي وسوه (يعني د عملو يې زيات شکايتونه وکړل او نبي کريم ﷺ همداسي ورته وفرمايل) په څلورم وار چي راغلی نو عرض يې وکړ، ما ورباندي شات

يَزِدْهُ إِلَّا اسْتِطْلَاقًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ اللهُ وَكَذَبَ بَطْنُ أَخِيكَ فَسَقَاهُ فَبَرَأَ. متفق عليه.

وخوړل، عملونه يې لا زيات سول، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: الله جل جلاله رښتيا فرمايلي دي (يعني په شاتو کي د انسانانو لپاره شفاء پرته ده) او ستا د ورور نس دروا غجن دی، په څلورم وار چي يې په هغه شات و خوړل، نو هغه ښه سو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۳۹، رقم: ۵۶۸۴، ومسلم ۴\۱۷۳۶، رقم: ۹۱- ۲۲۱۷.

**تشريح**: د يوې ناروغۍ په صورت کي د شاتو د استعمالولو يو خاص طريقه د حضرت علي رضي الله عنه څخه داسي نقل سوې ده چي کله يو سړی ناروغ سي نو هغه دي خپلي ښځي ته ووايي چي هغه دي د خپل مهر څخه څه مال ورکړي او بيا دي د هغه مال په ذريعه عسل رانيسي او عسل دي د باران په اوبو کي يو ځای کولو سره وڅښي انشاء الله تعالی بابرکته شفاء به تر لاسه کړي.

الله جل جلاله خو رښتيا فرمايلي دي: د دغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ دغه آيت کريمه (فيه شفاء للناس) ته اشاره کړې ده چي په هغه کي الله تعالی فرمايلي دي چي په عسلو کي د خلکو لپاره شفاء ده، يا دا چي الله تعالی د وحي په ذريعه رسول الله ﷺ ته ښوولي وه که هغه ناروغ عسل وڅښي نو د هغه نس ته به ارام تر لاسه سي او د نس ناستي ناروغي به يې ختمه سي، دا خبره رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذريعه بيان کړه چي کله الله تعالی دا ښودلي دي چي د عسلو په څښلو سره به هغه ته شفاء تر لاسه سي او د الله تعالی ښودل سوې خبره غير صحيح نسي کيدای نو په ناروغ باندي عسل وڅښه هغه ته به يقينا ګټه تر لاسه سي.

بيا رسول الله ﷺ وفرمايل ستا د ورور نس دروا غجن دی: په دغه ارشاد سره ګويا د

روغتیا په اړه د زنه کېدو علت بیان کړ چي ستا د ورور په نس کي یو تېنګه ماده جمع سوې ده چي د هغه په وجه د عسلو ورکړی مقدار نه کافي کیږي تر څو چي هغه ماده دباندي نه راووځي تر هغه وخته به ارام نه مومي، یا دا چي نس خطا کوي یعني په سمه توګه کار نه کوي او تر اوسه شفاء نه قبلوي کله چي سم کار پېل کړي او شفاء قبوله کړي نو نس ناسته به یې بنده سي، څرګنده دي وي چي عربو په خپل کلام کي اکثر لفظ د کذب یعني درواغ د خطا پر ځای استعمالوي لکه چي هغوی وايي د فلاني سړي غوږ خطا وکړه یعني هغه چي کومه خبره اورېدلې ده د هغه حقیقت ته نه دی رسیدلی نو هغوی داسي وايي : کذب سمعه، یعني د هغه غوږ درواغ وویل.

## په طب نبوي ﷺ او رواجي طب کي فرق

دلته دا خبره بیانول ضروري دي ، که څه هم علماوو تر خپله وسه په طب نبوي او اوسني رواج سوي طب کي د مطابقت او موافقت پیدا کولو هڅه کړې ده مګر حقیقت دادی چي په دواړو کي فرق خامخا موجود دی ځکه د سفر السعادت مصنف لیکلي دي چي طب نبوي ﷺ (په ظاهري توګه) د طبیبانو د قواعدو او اصولو سره څه نسبت نلري ځکه چي د طب نبوي ﷺ مصدر وحي الهي، قلب نبوت او کمال عقل دی، څرګنده ده چي کوم طب د وحي الهي په ذریعه حاصل سوی وي یا کوم علاج چي قلب نبوت او کمال عقل ښودلی وي د هغه کامیاب کېدل او د هغه په ذریعه شفاء تر لاسه کول د یقین حامل وي، ددې پر خلاف د طبیبانو او حکیمانو چي کوم طب دی او د هغه د اصولو او قواعدو مطابق چي کوم علاج کیږي د هغه کلیه کامیاب او افادیت بخش کېدل د یقیني درجې نه وي بلکه په هغه کي د غلطۍ او خطاء کېدو ګمان هم وي ځکه چي د طب بنیاد پر انساني ذهن او تجربه باندي دی په دې اعتبار سره دغه طب د طب نبوي برابر کېدای نسي چي د هغه بنیاد پر وحي الهي ، قلب نبوت او کمال عقل وي.

د طب نبوي او مروجه طب په مینځ کي دا فرق دی چي په ځینو وختو کي ځیني خلک په شک او شبه کي اچوي حال دا چي هغوی ویني چي رسول الله ﷺ د یو ناروغۍ داسي علاج تجویز فرمایلی دی چي د فن طب د اصولو او قواعدو خلاف دی نو هغوی ډول ډول اعتراضونه کوي حال دا چي هغوی باید دا حقیقت ومني چي هغوی د کوم طب د اصولو او قواعدو څخه خبره کوي هغه د انسان د خپل ذهن ، خپل عقل او تدبیر څخه دی ځکه نو په هغه کي غلطي او خطا کېدل او مقصد ته نه رسېدل ممکن دي، حال دا چي د طب نبوي مصدر وحي الهي او قلب

نبوت دی چي په هغه کي د خطا او غلطۍ امکان نسته ، رسول الله ﷺ چي د يو ناروغۍ کوم علاج تجويز فرمايلی دی د هغه په اړه دا خو کېدای سي چي زموږ ناقص علم او ذهن د هغه حقيقت ته ونه رسيږي مګر دا ممکن نه ده چي هغه علاج د ناروغۍ مطابق نه وي،د مثال په توګه دلته په حديث کي چي د کومي پېښي يادونه سوې ده د هغې اړوند ځيني طبيبان په سخته حيرانتيا او مشکل کي اخته سوي دي ځکه چي عسل د خپلو خواصو په اعتبار مسهل او د نس جاري کونکي دي نو د نس ناستي منع کولو لپاره د عسلو څښنلو حکم نبوي په ظاهره د طبيبانو د اصولو او قواعدو بالکل خلاف دی په دې وجه هغه طبيبان وايي چي وار د عسلو څښنلو څخه وروسته د نس ناستي زياتوب له دې کبله وو چي عسل نس ناسته پيدا کوي ، په دې باره کي خو يوه خبره دا کيږي چي دا بالکل د يو خاص نوعيت معامله وه چي په هغه کي د دواء د تاثير څخه زيات د رسول الله ﷺ د دعاء او اعجاز نبوي دخل وو ، په ظاهره عسل د ناروغ په ناروغۍ کي د زياتوب سبب وو مګر حقيقت دا وو چي د رسول الله ﷺ د دعاء په برکت او د رسول الله ﷺ په اعجاز سره هغه عسل د هغه سړي په حق کي شفاء ذريعه وګرځېدل او هغه ښه سو ، دا خبره که څه هم د حسن اعتقاد له نظره يو ښه تعبير او ترجماني ده چي مؤمنان مطمئن کولای سي او بيا هغوی دا ويلای سي چي محض پر دغه پېښه باندي په قياس کولو سره طب نبوي د مروج طب د اصولو او قواعدو متضاد نسي کېدای مګر ددې څخه پرته که په فني نقطه نظر سره هم د رسول الله ﷺ تجويز سوي علاج باندي پوره تحقيق او ژور نظر وکړل سي نو څرګنده به سي چي د رسول الله ﷺ ناروغ ته د عسلو څښنلو حکم ورکول د طبيبانو د اصولو او قواعدو خلاف نه وو ځکه چي د نس ناستي راتلل څرنګه چي د بد هضمۍ په وجه کيږي همدارنګه هغه فاسده ماده هم د نس ناستي کېدو سبب جوړيږي چي جمع کيږي نو کوم نس ناستي چي په معده کي د جمع کېدونکي فاسدي مادې په وجه راځي هغه بندول او د هغه مادې را ايستل ضروري وي او د دې غوره علاج عسل دي ، په خاصه توګه په ګرمو اوبو کي د عسلو يو ځای کولو سره څښنل ډېر ګټور دي چي هغه ماده دفع کوي او خارجوي،

نو هغه سړی چي د بدهضمۍ په وجه وو او د هغه په معده کي فاسده ماده هم جمع سوې وه د هغه لپاره غوره علاج دا وو چي د عسلو په څښنلو سره د هغه په معده کي جمع سوې فاسده ماده را وايستل سي ، نو رسول الله ﷺ هغه ته د عسلو څښنلو حکم وکړ تر دې چي د هغه فاسدي مادې څخه معده پاکه سوه نو هغه ښه سو ، په دې اړه دا خبره بايد په فکر کي وي چي په علاج کي ښه عقيده او د معالج پر تجويز باندي پوره اعتبار او باور بنيادي شی دی ، موږ په خپل

ورځني ژوند کي وينو که يو سړی د خپل طبيب يا ډاکټر په اړه په يو ډول شک او شبه کي اخته وي او د هغه سره يې بنه عقيده نه وي نو د هغه مزاج د معاجل هغه علاج نه قبلوي او د شفاء څخه محروم وي که څه هم هغه علاج کونکی د هر څومره لوړي درجې وي، ددې پر خلاف که هغه سړی په پوره يقين سره يو معمولي علاج وکړي نو هغه علاج د هغه لپاره ګټور سي ، ددې څخه معلومه سوه که يو سړی د طب نبوي په ذريعه خپل علاج کوي چي د هغه کاميابي يقيني ده او هغه ته ددغه علاج څخه ګټه نه وي نو ددې مطلب به دا وي چي د هغه په ايمان کي کوږوالی دی او هغه ته د يقين او عقيدې نعمت تر لاسه نه دی کوم څوک چي د يو ناروغۍ علاج د طب نبوي په ذريعه د کولو غوښتونکی وي نو هغه بايد خپل يقين او عقيده ټېنګه ولري او بيا په صدق محنت او اخلاص سره هغه علاج اختيار کړي که هغه د طب نبوي دغه بنيادي ضرورت پوره کړ نو هغه ته به يقينا ګټه تر لاسه سي ، دا حقيقت بالکل داسي دی لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي د باطني او روحاني ناروغيو او د فساد قلب او ذهن لپاره د شفاء کامل درجه لري نو کوم څوک چي قرآن کريم د اخلاص او خلوص په جذبه سره زده کوي او وايي ، د هغه په تعليماتو باندي په يقين سره عمل کوي نو د هغه زړه او روح ته يقينا شفاء تر لاسه کيږي ، ددې پر خلاف کوم څوک چي په عدم اخلاص او بې يقينۍ سره قرآن کريم زده کوي او وايي نو د هغه په باطن کي نوره زياته بدي او د هغه په زړه کي نور زيات فساد پيدا کيږي، له دې کبله ځيني حضرات د حديث الفاظ : (کذب بطن اخيک) د ناروغ پر عدم صدق او عدم خلوص باندي هم محمول کړی دی يعني ددغه حضراتو په نزد رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه دا څرګنده کړه چي ستا ورور په يقين او اخلاص سره عسل نه دي څښلي ځکه نو د ګټي پر ځای د هغه ناروغۍ زياته سوې ده.

## د قسط فائدې

﴿۴۲۲۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَمْثَلَ مَا تَدَاوَيْتُمْ بِهِ الْحِجَامَةُ وَالْقُسْطُ الْبَحْرِيُّ . متفق عليه.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په کومو شيانو باندي چي تاسو دوا کوئ نو په هغه کي تر ټولو بهترينه شی رګ وهل او بحری قسط (يو هندي دوا ده چي په هند کي (ګټ) ورته ويل کيږي چي دوه ډوله دی خوږ او تريخ) استعمالول. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۵۰، رقم: ۵۶۹۵۶، ومسلم ۱۳\۱۲۰۴، رقم: ۶۳ – ۱۵۷۷.

**تشریح**: قسط د یو بوټي نوم دی چي کوټ هم ورته وایي او ددواء لپاره استعمالیږي، طبیبانو ددغه بوټي ډیري ګټي لیکلي دي د مثال په توګه که چیري د نفاس والا ښځه ددغه بوټي دود واخلي نو بنده سوې فاسده وینه (لکه حیض) او بولي جاري کیږي ، دغه بوټی مسموم جراثیم لیري کوي ، دماغ ته قوت ورکوي ، اعضاء رئیسه او ځیګر ته قوت ورکوي ، په نارینه قوت کي تحریک پیدا کوي ، باد تحلیل کوي ، د دماغي ناروغیو لکه فالج، لقوه لپاره ګټور دی، د نس چینجیان راباسي ، د خلورمي ورځي تبي لپاره هم ګټور دی ، د زکام په حالت کي د هغه دود اخیستل یو غوره علاج دی ، د دغه بوټي په دود سره د سحر او وباء اثر هم ختمیږي .

مطلب دا چي د طب په کتابو کي ددغه بوټي ډېري زیاتي ګټي لیکلي دي ځکه دې ته تر ټولو غوره فرمایل سوي دي، څرګنده دي وي چي قسط پر دوه ډوله وي یو خو قسط بحري چي د هغه رنګ سپین وي او دوهم ته قسط هندي ویل کیږي چي د هغه رنګ تور وي، د دواړو خاصیت ګرم او خشک دی مګر بحري قسط د هندي قسط څخه غوره دی ځکه چي په دې کي ګرمي کمه وي.

## د کوچنیانو د حلق ناروغي

﴿۴۳۲۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُعَذِّبُوا صِبْيَانَكُمْ بِالْغَمْزِ مِنَ الْعُذْرَةِ وَعَلَيْكُمْ بِالْقُسْطِ. متفق علیه.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د عذر په ناروغي کي یعني د کوچنیانو د حلق په ناروغي کي تاسو په ګوتو سره د حلق په کښېکښلو سره و کوچنیانو ته تکلیف مه ورکوئ بلکه په قسط سره د هغوی علاج کوئ (یعني قُسط اوړه کړئ او د هغې اوبه په پزه کي وروا چوئ). بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۵۰، رقم: ۵۶۹۶، ومسلم ۱۳\۱۲۰۴، رقم: ۶۳ – ۱۵۷۷.

**تشریح**: عذره یوه ناروغي ده چي تي رودونکو کوچنیانو ته پېښیږي، ددې سبب د ویني جوش وي ، په عامه توګه میندي او تي ورکونکي ښځي ددغه ناروغۍ ددفع کولو لپاره د کوچنیانو په حلق کي په ګوته اچولو سره هغه کښېکاږي چي د هغه څخه توره وینه راوځي او کوچني ته ډېر زیات تکلیف وي ، رسول الله ﷺ په دغه طریقه سره د علاج کولو څخه منع وفرمایل او د دفعیه ناروغۍ لپاره یې قسط بطور تجویز کړ، په دغه ناروغۍ کي د قسط د استعمالولو

صورت دادی چي هغه په اوبو کي په ګډولو سره په پزه کي و څڅول سي چي هغه ته سحولا وايي دغه محلول د پزي په ذريعه عذره ته په رسېدو سره هغه ليري کوي، څرګنده دي وي چي د عذره د علاج لپاره د قسط تجويز د ځينو طبيبانو په نزد د حيرانۍ باعث دی ځکه چي د هغوی د وينا مطابق قسط ګرم دی او عذره هم د ګرمۍ په وجه کيږي په خاصه توګه په حجاز کي چي د هغه هواء ګرمه ده ځکه نو په دغه ناروغۍ کي به د قسط څه ګټه وي، ددې جواب دادی چي د عذره ماده په اصل کي هغه وينه ده چي پر هغه د بلغم غلبه وي يعني عذره د ويني او بلغم دواړو څخه جوړيږي مګر بلغم زيات وي او وينه کمه وي، د بلغم رطوبت د قسط ګرمي جذب کوي، ددې پر ځله د دواء ګټه بالخاصيت هم کيږي په دې اعتبار سره په عذره کي د قسط استعمال د حيرانتيا سبب نه دی، ددې څخه پرته يو جواب دا هم دی چي د عذره علاج د قسط په ذريعه کول د اعجاز نبوي په وجه دی چي په هغه کي عقل ته هيڅ دخل نسته.

## ذات الجنب

﴿۴۳۲۵﴾: وَعَنْ أُمِّ قَيْسٍ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَدْغَرْنَ

د بي بي ام قيس ﷝ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د حلق په ناروغي کي تاسو د

أَوْلَادَكُنَّ بِهٰذَا الْعِلَاقِ عَلَيْكُنَّ بِهٰذَا الْعُوْدِ الْهِنْدِيِّ فَإِنَّ فِيْهِ سَبْعَةَ أَشْفِيَةٍ

خپلو کوچنيانو ستونی ولي کښېکاږئ، تاسو په عود هندي سره د هغوی علاج کوئ، په عود هندي کي د اوو ناروغيو شفاء ده چي

مِنْهَا ذَاتُ الْجَنْبِ يُسْعَطُ مِنَ الْعُذْرَةِ وَيُلَدُّ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ. متفق عليه

په هغوی کي يو ذات الجنب (د تشي بريښ يا نمونيا) ده، د کوچنيانو په حلق کي عود هندي اچول کيږي او په ذات الجنب ناروغي کي په خوله کي د ننه اچول کيږي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۶۶، رقم: ۵۷۱۳، ومسلم ۴\۱۷۳۴، رقم: ۸۶- ۲۲۱۴.

**تشريح**: (تدغرن) مطلب دادی چي د عذره په ناروغۍ کي حلق د ګوتي په ذريعه کښېکښل، څرنګه چي کوچنيانو ته د حلق (ستوني) ناروغي وي نو ښځي د هغوی په حلق کي په ګوته اچولو سره هغه کښېکاږي، په دې اړه مخکي هم حديث تېر سوی دی چي رسول الله ﷺ ددغه تکليف ورکونکي علاج څخه منع فرمايلې ده او دلته هم رسول الله ﷺ د انکار په توګه وفرمايل

چي تاسو د خپلو کوچنیانو حلق په ګوتو سره ولي کښېکاږئ یعني ددغه طریقې څخه ځان ساتئ ، د اعلق معنی هم هغه ده کوم چي د دغر مطلب بیان سوی دی، په ځینو روایاتو کي د علاق پر ځای د اعلاق لفظ ذکر سوی دی مګر علماوو لیکلي دي چي دغه روایت اولی او اصوب دی . د اعلاق معنی هم هغه ده کوم چي د علق ده ، خلاصه دا چي رسول الله ﷺ ددې څخه منع فرمایلې ده چي په عذره کي د ګوتي په ذریعه علاج وکړل سي بلکه د عود هندي په ذریعه دي د هغه علاج وکړل سي او د هغه طریقه داده چي هغه دي په اوبو کي ګډ کړل سي او د کوچني په پزه کي دي وڅڅول سي ، په حدیث کي د عود هندي یادونه دا خبره څرګندوي چي په وروستني حدیث کي د قسط بحري څخه مراد دغه عود هندي دی مګر دا هم کېدای سي چي قسط هندي عود هندي ته فرمایل سوي وي لکه څرنګه چي ځیني حضراتو د هغه وضاحت په عود هندي سره کړی دی او دا خبره مخکي ښودل سوې ده چي ګټور خو دواړه دي مګر قسط بحري زیات ګټور دی .

ذات الجنب یوه ناروغي ده چي دوه صورتونه یې دي، یو دا چي په سینه کي پاړسوب پیدا سي ، دغه ناروغي که څه هم په عضلاتو کي پیدا کیږي مګر بیا د باطن څخه ظاهر ته راوځي او دغه صورت خطرناک دی ، ددغه ناروغۍ شمېر د هلاکونکو ناروغیو څخه کیږي، د ذات الجنب دوهم صورت دادی چي د ریاح غلیظه د بندېدو په وجه په بغل کي یو درد پیدا کیږي، دلته په حدیث کي چي د کوم ذات الجنب ذکر دی د هغه څخه مراد دغه دوهم صورت دی ځکه چي عود هندي د ریاحي ناروغیو دواء ده، رسول الله ﷺ په دغه ارشاد کي د اوو ناروغیو یادونه وفرمایل مګر نوم یې یوازي د دوو ناروغیو واخیست، د پاته پنځو ناروغیو په اړه یې سکوت وفرمایه ځکه چي دلته د هغه پنځو ناروغیو د وضاحت هیڅ اړتیا نه وه او دا هم کېدای سي چي هغه پنځه ناروغۍ داسي وي چي په عربو کي مشهوري وي او د هغو په اړه خلک خپله پوهیږي، او ددغه دوو ناروغیو په اړه د خلکو علم محدود وي ځکه رسول الله ﷺ یوازي د دوو ناروغیو نوم واخیست مګر په حدیث کي د اوو ناروغیو په ذکر سره دا نه لازمیږي چي به [illegible] کي دي د هغه اوو ناروغیو دواء وي ، د اوو څخه زیاتو ناروغیو لپاره ګټور نه وي بلکه حقیقت دادی چي ددغه دواء ګټه ډېره پراخه ده او په ډېرو ناروغیو کي استعمالیږي یعني په هغه کي ځیني ناروغۍ هغه دي چي د هغو مخکي بیان سو[illegible]ی مګر دا کیدای سي چي د اوو ناروغیو لپاره به دا ډېر ګټور وي ځکه هغه دلته ذکر سوي دي ، ددې څخه پرته ځیني حضرات دا هم وایي چي د اوو څخه مراد مخصوص عدد نه دی بلکه کثرت مراد دی ، د اهل عربو په کلام کي ډېر

ځله د اوو اطلاق پر زیاتو باندي کیږي.

## د تبي درملنه او اوبه

﴿۴۲۲۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ وَرَافِعِ ابْنِ خَدِيْجٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمَّى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَأَبْرِدُوهَا بِالْمَاءِ. متفق عليه.

د بي بي عائشه رضي الله عنها او حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي: تبه د دوږخ توبن دی په اوبو سره یې یخ کړئ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\٣٣٠، رقم: ٣٢٦٣، ومسلم ۴\ ۱۷۳۴، رقم: ۸٦- ۲۲۱۴.

**تشريح**: ځیني حضرات وایي: د ارشاد مقصد د تبي حرارت ته د دوږخ د اور سره مشابهت ورکول دي یعني تبي د دوږخ د اور د تاو یوه نمونه ده، ځیني حضرات وایي چي د حدیث الفاظ پر حقیقي معنی باندي محمول دي لکه څرنګه چي په باب المواقیت کي دا روایت تېر سوی دی او د ګرمۍ په موسم کي تاو او حرارت په اصل کي د دوږخ د توبن اثر دی نو کېدای سي چي د تبي په حرارت کي د دوږخ د توبن اثر وي، ددغه حدیث اصل مخاطب اهل حجاز دي ځکه چي د [illegible]کې او مدینې اوسیدونکو ته به په عامه توګه د لمر سختۍ، ګرمۍ کي د محنت او مشقت [illegible] او دهغوی د مزاج د ګرمۍ او تېزي په وجه هغوی ته تبي کېدلې نو کومه تبه چي د لمر [illegible]ارت او تیزي په لمر کي د زیات ګرځېدو او حرکت کولو په وجه وي نو ددغه علاج اوبه دي چي په یخو اوبو کي غوټه وخوري یا یخي اوبه پر بدن باندي واچول سي یا تبه په اوبو سره یخه کړل سي، ددې مراد دا هم کېدای سي چي په داسي تبه کي یخي دواوي په اوبو کي یو ځای کړل سي او استعمال سي او د ځینو حضرات مطابق ددې څخه دا هم مراد کېدای سي چي کوم چا ته تبه وي هغه دي په تږو باندي د الله جل جلاله لپاره اوبه وڅښښي چي د هغه په برکت سره به الله تعالی د هغه تبه رفع کړي.

## د دم کولو اجازه

﴿۴۲۲۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ رَخَّصَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرُّقْيَةِ مِنَ الْعَيْنِ وَالْحُمَةِ وَالنَّمْلَةِ. رواه مسلم.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د بد نظر (د لړم، مچۍ، غالبوزي او

داسي نورو چي د زهرو ډ که وي)او نمله (د تشي يا اړخ کي ننکئ)کي د دم کولو اجازت ورکړی دی (يعني د دعاګانو د لوستلو او پر هغه باندي د پوه کولو اجازت يې ورکړی دی). مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۷۲۵، رقم: ۵۸- ۲۱۹۶.

**د لغاتو حل**: الحُمَة: السم، ويطلق على ابرة العقرب. (نہبنں)

**تشريح**: د افسون څخه مراد هغه دم دی چي په هغه کي د شفاء تر لاسه کولو لپاره نقل سوي دعاوي او قرآني آياتونه ويل کيږي، بدنظر يو حقيقت دی چي ځينو په زهر سره تعبير کړی دی، ددغه حضراتو وينا ده لکه څرنګه چي الله تعالی د لړم چيچلو او د مار په خوله کي زهر ايښی دی همدارنګه د ځينو خلکو په سترګو کي هم زهر دي چي د هغوی نظر په کوم شي ولګيږي که هغه انسان وي يا مال ، مځکه ، باغ، حيوانان او نور شيان وي ، د بدنظر د دفع لپاره دعاء، تعويذ او دم نه يوازي دا چي جائز دی بلکه رسول الله ﷺ ددغه مقصد لپاره مختلفي دعاوي هم ښودلي دي چي د دعاوو په باب کي تېر سوي دي .

د چيچلو څخه مراد په زهرجن شي سره چيچل دي لکه د لړم وهل يا چيچل د مار چيچل هم په دغه حکم کي دي که لړم يو سړی وچيچي يا ماريې وچيچي نو د هغه د زهر کښته کولو غوره ذريعه دم دی .

نمله په اصل کي ميږي ته وايي مګر دلته هغه دانې مراد دي چي د سړي په بغل کي پيدا کيږي، کله دغه دانې د کوچنيو کوچنيو دانو په صورت کي وي چي پر پښتۍ سرېره وي ، په نمله کي انسان ته دا محسوس کيږي لکه چي مېږيان پکښي ګرځي ، او غالبا په دغه مناسبت سره دغه دانو ته نمله ويل سوي دي او که نمله د کوچنيو کوچنيو دانو په صورت کي وي نو په دې کي به وجه مشابهت دا وي چي هغه دانې د مېږيانو په ډول خپرې وي .

څرګنده دي وي چي د دم په ذريعه د هري ناروغۍ علاج کول هم جائز دي په دغه صورت کي به په خاصه توګه ددغه درو شيانو ذکر محض ددې لپاره سوی وي چي د نورو ناروغيو په نسبت په دغه درو ناروغيو کي د دم اثر زيات ګټور وي ، همدارنګه په کوم روايت کي چي د حصر په توګه دا فرمايل سوي دي چي دم يوازي په درو شيانو کي جائز دي ددې تاويل به هم دا وي چي ددې څخه پرته دا هم ويل کيدای سي چي د جاهليت په زمانه کي عربو چي د کومو الفاظو او کلماتو په ذريعه دم کوی د هغه څخه د پرهيز کولو په وجه رسول الله ﷺ د اسلام په پيل کي مسلمانان د دم څخه منع کړي وه بيا چي په دغه درو ناروغيو کي د دم کولو اجازه ورکړل

سول په شرط ددې چي په هغه دم کي مشرکانه الفاظ او کلمات نه وي تر دې چي وروسته دغه اجازه عام کړل سول چي په هره ناروغۍ کي په نقل سوو دعاوو، قرآني اياتو سره دم کېداى سي.

﴿۴۳۲۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نُسْتَرْقَى مِنَ الْعَيْنِ. متفق عليه.

د بي بي عائشې ﷞ څخه روايت دى چي نبي کريم ﷺ موږ ته حکم را کړى دى چي د بد نظر لپاره دم وکړو. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۹۹، رقم: ۵۷۳۸، ومسلم ۴\۱۷۲۵، رقم: ۵۶- ۲۱۹۵.

﴿۴۳۲۹﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى فِي بَيْتِهَا جَارِيَةً فِي وَجْهِهَا سَفْعَةٌ تعني صفرة فَقَالَ اسْتَرْقُوا لَهَا فَإِنَّ بِهَا النَّظْرَةَ. متفق عليه.

د بي بي ام سلمه ﷞ څخه روايت دى چي نبي کريم ﷺ د هغې په کور کي انجلۍ وليده چي مخ يې ژړ وو، نبي کريم ﷺ وفرمايل: په دې دم وکړي دا نظر سوې ده. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۹۹، رقم: ۵۷۳۹، ومسلم ۴\۱۷۲۵، رقم: ۵۹- ۲۱۹۷.

**تشريح**: د حديث د ظاهري مفهوم څخه عموميت څرګندېږي چي هغه انجلۍ نظر سوې ده که د يو انسان نظر وي يا د پيري نظر وي، مګر شارحينو وضاحت کړى دى چي پر هغه انجلۍ باندي د يو پيري بد نظر وو، د پيريانو نظر د نېزې د څوکي څخه هم تېره وي.

﴿۴۳۳۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرُّقَى فَجَاءَ

د حضرت جابر ﵁ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د جادو او افسون (جادو، دم) څخه منعه

آلُ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّهُ كَانَتْ عِنْدَنَا رُقْيَةٌ نَرْقِي بِهَا مِنَ

کړېده (د دې ممانعت څخه وروسته) د عمرو بن حزم د خاندان خلک راغلل او عرض يې وکړ، اې د الله رسوله! زموږ سره يو دم دى چي

الْعَقْرَبِ وَانت نَهَيْتَ عَنْ الرُّقَى فَعَرَضُوهَا عَلَيْهِ فَقَالَ مَا أَرَى بَأْسًا مَنْ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يَنْفَعَ أَخَاهُ فَلْيَنْفَعْهُ . رواه مسلم .

موږيې په لړم خوړلي باندي چف کوو، اوس تاسو د دم کولو څخه منعه فرمايلې ده (نو موږ څه وکړو؟) د دې څخه وروسته نبي کريم ﷺ ته هغوی هغه دم ور واوروئ نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: زه په دې دم کي څه ګناه نه وينم، په تاسو کي چي يو خپل ورور ته نفع رسولای سي، نو نفع ورته ورسوئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۷۲۶، رقم: ۶۳– ۲۱۹۹.

﴿۴۲۳۱﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ قَالَ كُنَّا نَرْقِي فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَقُلْنَا يَا

د حضرت عوف بن مالک اشجعي ﷛ څخه روايت دی چي د جاهليت په زمانه کي به موږ جادو کوئ (يعني د اسلام د راوړلو څخه مخکي) موږ وويل:

رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ تَرَى فِي ذَلِكَ فَقَالَ اعْرِضُوا عَلَيَّ رُقَاكُمْ لَا بَأْسَ بِالرُّقَى مَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ شِرْكٌ . رواه مسلم .

اې د الله رسوله! تاسو د دې دم په باره کي څه واياست؟ نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: تاسو ماته خپل دمونه وښياست، ترڅوپوري چي په دې دمونو کي شرک نه وي نو زه په دې کي څه ګناه نه وينم. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۱۷۲۷، رقم: ۶۴– ۲۲۰۰.

**تشريح** ترڅو چي په هغه کي شرک نه وي ...الخ: مطلب دا دی چي په کوم دم کي د پيريانو او شيطانانو نومونه او د هغوی څخه د مرستي غوښتل نه وي او د هغه مفهوم او معنی داسي نه وي چي هغه ته کفر لازميږي نو د هغه په ذريعه دم کولو کي څه پروا نسته ځکه علماو ويلي دي چي په داسي الفاظو او کلماتو باندي مشتمل دم په ذريعه دم کول جائز نه دی چي د هغه مفهوم او معنی معلوم نه وي البته ځيني داسي دمونه چي د هغو الفاظ او کلمات په صحيح روايت کي د شارع څخه نقل سوي وي او د هغو مفهوم او معنی څرګند نه وي نو د هغه په ذريعه دم کول جائز دي.

ځرګنده دي وي چي ځرنګه چي شيطان د ازل څخه په انساني دښمنۍ کي اخته دی همدارنګه جنات هم بالطبع د انسان سره عداوت لري او په دې اعتبار سره جنات او شيطانان په خپلو کي د يو بل دوستان وي ، کله چي پر يو انسان باندي د پيريانو سايه او اثر وي او د هغه اثر ليري کولو لپاره داسي دم ويل کيږي چي په هغه کي د شيطانانو نومونه او د هغوی څخه مرسته غوښتل وي نو جنات د هغه دم په منلو سره هغه انسان پرېږدي ، همدارنګه په ځينو وختو کي مارچيچلی سړی په اصل کي د جناتو تر اثر لاندي وي په دې توګه چي يو شرير پيری د مار په صورت کي يو انسان وچيچي يعني خلک دا ګڼي چي هغه په حقيقت کي مار چيچلی دی ، کله چي پر دغه سړي باندي دم وويل سي چي په هغه کي د شيطانانو نومونه وي نو هغه زهر چي په حقيقت کي د جن اثر وي د هغه سړي د بدن څخه زائل سي ، همدارنګه جنات او شيطانان دواړه د انسان د ګمراهۍ ذريعه جوړيږي، د ځينو علماوو پر دې خبره اجماع او اتفاق دی چي د کتاب الله او اسماء الله څخه پرته دم کول جائز نه دی ، تر ټولو زيات مهتم بالشان دم قرآن کريم دی ، د هغه هر لفظ او هره جمله د کائناتو انساني لپاره د تاثير او شفاء او برکت خزانه ده او د هغه ګټه يقيني ده او بيا په هغه کي هم ځيني سورتونه او آياتونه د دم زيات فضيلت لري لکه سورة فاتحه، معوذتين ، آيت الکرسي، او هغه آيت کريمه چي د الله تعالی په پناه غوښتني باندي مشتمل وي همدارنګه هغه دعاوي او عمليات هم افضل دي کوم چي په صحيح حديثو کي د رسول الله ﷺ څخه ثابت دي .

د سفر السعادت مصنف ليکلي دي : په حديث کي نقل سوي دي کله چي يو سړی خپل مال او اسباب وغيره يا پر کوچني باندي نظر ولويږي نو هغه ته ښه معلوم سي نو بايد چي ماشاء الله لاقوة الا بالله، ووايي ، همدارنګه د حضرت عثمان ﷛ په اړه نقل سوي دي چي هغه يو ډېر ښکلی ماشوم ولېدی نو وه يې فرمايل : دده په زنه کي لړ تور والی ولګوی چي نظر نسي .

## د شفاء اياتونه

د شيخ ابو القاسم قشيري ؒ څخه نقل سوي دي چي هغه وويل: يو وار زما زوی سخت ناروغ سو چي موږ ټول د هغه د ژوند څخه نا اميده سو ، په دغه وخت کي مي رسول الله ﷺ په خوب کي ولېدی ، رسول الله ﷺ ته مي د خپل زوی د ناروغۍ په اړه وويل، رسول الله ﷺ راته وفرمايل : ته د شفاء د آيت څخه ولي ناخبره يې؟ کله چي زه راويښ سوم نو د قرآن کريم څخه مي د شفاء آياتونه لټول پيل کړل، تر دې چي ما په قرآن کريم کي شپږ ځايه د شفاء آياتونه تر لاسه

کړل او هغه دادي :
۱: وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ،
۲: وَشِفَاء لِّمَا فِي الصُّدُورِ.
۳: يَخْرُجُ مِن بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاء لِلنَّاسِ.
۴: وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاء وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ.
۵: وَإِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِينِ.
۶: قُلْ هُوَ لِلَّذِينَ آمَنُوا هُدًى وَشِفَاء.

نو ما دغه آیاتونه ولیکل او په اوبو کې په خشتولو سره مې په کوچني وڅښل، په دې سره هغه دومره ژر روغ سو لکه چې دهغه بندي پښې خلاصي کړل سي، قاضي بیضاوي هم په خپل تفسیر کې د شفاء آیاتو ته اشاره کړې ده، همدارنګه سعد حلبي رحمه الله د تفسیر بیضاوي په حاشیه کې د دغه شفاء آیاتو په تعین کولو سره د ابو القاسم قشیري رحمه الله ذکر سوي آیاتونه نقل کړي دي مګر هغه الله تعالی په خوب کې ولیدی ددغه آیاتونه په ویلو سره پر ناروغ باندي په دم کولو او په چیني لوښي باندي په لیکلو سره او د هغه په پرېولو سره په ناروغ د څښلو ذکر کړی دی.

د شیخ تاج الدین سبکي رحمه الله څخه نقل سوي دي چې هغه وویل: ما ډېر مشائخ ولېدل چې هغوی به د نارغیو څخه د شفاء تر لاسه کولو لپاره دغه آیاتونه لیکل، پاته سوه دا خبره چې د شفاء د تر لاسه کولو لپاره ددغه آیاتونه یوازي ذکر سوي برخي ولیکل سي که پوره آیاتونه ولیکل سي، نو په دې اړه نقل کونکو چې د اکابرو او مشائخو کوم عمل لیدلی دی هغه یوازي مذکوره اجزاء لیکل کافي ګڼل سوي دي.

## بد نظر حقیقت دی

﴿۴۳۳۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعَيْنُ حَقٌّ فَلَوْ كَانَ شَيْءٌ سَابَقَ الْقَدَرَ سَبَقَتْهُ الْعَيْنُ وَإِذَا اسْتُغْسِلْتُمْ فَاغْسِلُوا. رواه مسلم.

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: نظر حق دی (یعني نظر کیږي خامخا) که څه شي په تقدیر کي مخته والي وړی وای نو نظر به وړلای (یعني که د تقدیر څخه شي بدلېدونکی وي نو هغه به نظر وای او کله چي ستاسو څخه د پرېوللو غوښتنه وسي نو تاسو یې پرېولئ). مسلم، (په هغه زمانه کي دا رواج وو، چي کوم سړی به نظر سو نو د عاین نظر کوني لاس، پښې او د نامه لاندي ځای په اوبو سره پرېولل کېدی او په هغو اوبو سره د هغه چا بدن پرېولل کېدی چي هغه به نظر سوی وو او هغه د شفاء سبب په ګڼل کېدی، نبي کریم ﷺ د دې اجازت ورکړی دی او فرمایلي یې دي، که ستاسو څخه ستاسو د اندامونو د پرېوللو سره او په نارو غه باندي د اچولو غوښتنه وسي نو تاسو دا مطالبه و منئ).

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۴\۱۷۱۹، رقم: ۴۲- ۲۱۸۸.

**تشریح**: نظر حق دی، د دې مطلب دادی چي د لیدونکي په نظر د یو شي ښه راتلل که هغه شی ساه لرونکی یعني انسان او حیوان وي یا غیر ساه لرونکی لکه مال او سامان وي، او بیا پر هغه شي باندي د لیدونکي د نظر اثر کېدل یو داسي ثابت سوی حقیقت دی چي د تقدیر الهي سره متعلق دی، الله تعالی د سحر او جادو په ډول د ځینو په نظر کي دا خاصیت ایښی دی چي کوم شي ته وګوري نو د هغه د هلاکت، تباهۍ او تاوان سبب ګرځي.

که پر تقدیر الهي باندي مخته کېدونکي یو شی وي ...الخ: د دې مطلب دادی چي د دغه کائناتو د هري لوی او کوچني شي مرکز او مصدر تقدیر الهي دی چي د لوی طاقت اثر او نفوذ د تقدیر الهي سره وابسته دی، یعني هیڅ شی هم د تقدیر د دائرې څخه د وتلو توان نلري که د مثال په توګه یو شی داسي توان ولري چي هغه د تقدیر د دائرې په ماتولو سره ووځي نو هغه به بد نظر وي چي هغه به تقدیر هم بدلوي او پر هغه به غالب راځي، یعني دغه خبره په شیانو کي د نظر د شدت تاثیر او د هغه تېز نفوذ بیانولو لپاره فرمایلي دي.

او کله چي ستاسو څخه د پرېوللو غوښتنه وکړل سي ...الخ: هغه وخت په عربو کي دا رواج وو چي کوم چا ته به بد نظر ولګېدی نو د هغه لاسونه، پښې او د نامه لاندي برخه به یې پرېولل او هغه اوبه به یې پر هغه سړي باندي اچولې څوک چي به نظر سوی وو او د دغه طریقه به یې د شفاء ذریعه ګڼل، د دې به تر ټولو ادنا ګټه دا وه چي په د دې سره به د ناروغ وهم لیري سو، رسول الله ﷺ د دې اجازه ورکړه او وه یې فرمایل که تاسو یو څوک نظر کړئ نو هغه و منئ، د بدن د اندامو د دغه طریقه به د دوهم فصل په پای کي راسي.

څرګنده دي وي چې د جمهورو علماوو مذهب دادی چې ساه لرونکی شی که هغه انسان وي یا حیوان او په مالو کي د نظر تاثیر او تاوان رسېدل ثابت دي ، حال دا چې ځیني خلک لکه معتزله او نور کسان له دې څخه منکر دي لکه څرنګه چې په مالو کي د دواء، صدقې او خیرات وغیره قائل نه دي ، ددغه خلکو وینا ده چې د کوم شي واقع کېدل په مقدر کي لیکل سوي وي په هغه کي د بل شي دخل نسته او په دې کي هیڅ شک هم نسته چې د تقدیر لیکل سوي هیڅ شی بدلولای نسي مګر دغه خلک په دې حقیقت نه پوهیږي چې د تقدیر د اسبابو سره اختلاف نسته ، د نظر تاثیر او سببیت په دې وجه دی چې الله تعالی په هغه کي یو ډول خاصیت ایښی دی چې هغه د هلاکت او تاوان سبب جوړیږي، ددې څخه پرته د علماوو د مذهب دلیل دغه ارشاد (العین الحق) دی ، کله چې شارع علیه السلام دا حقیقت څرګند کړی دی چې د نظر تاثیر حق دی نو ددغه عقیدې درلودل واجب او ضروري دي، پاته سوه دا خبره چې د نظر کېدو کیفیت او صورت څرنګه وي او ددې په وجه نظر سوي ته تاوان څرنګه رسیږي نو په دې اړه علماوو مفصل بحث کړی دی او لیکلي یې دي چې په دې اړه ځیني داسي خلکو چې د هغوی نظر په عامه توګه چا ته لګیږي ، بیان وکړ چې کله موږ ته یو شی ښه معلوم سي او موږ هغه ته وګورو نو داسي محسوس کیږي چې زموږ د سترګو څخه حرارت راوځي، ځیني حضرات وایي چې د نظر لګېدونکي د سترګو څخه یو خاص ډول حرارت سمیه راوځي چې په هواء کي مخلوط کیږي او هغه هواء بیا هغه نظر وهلي ته رسیږي نو د هغه د تاوان او هلاکت باعث جوړیږي څرنګه چې د ځینو پخوانیو محققینو مطابق د هغه مار د زهرو کیفیت وي چې محض د خپل نظر په ذریعه زهر منتقل کوي چې د هغه نظر پر چا ولګیږي نو هغه ته یې اثر رسیږي او هغه هلاکیږي، خلاصه دا چې نه لېدونکی شی د نظر لګېدونکي په نظر سره د غشي په ډول روانیږي او که یو داسي شي په مینځ کي نه وي چې هغه منع کړي نو هغه نظر هغه ته رسیږي او هغه په هلاکت کي اچوي او که منع کونکی یو شی په مینځ کي وي لکه حرز ، تعویذ ، دواء او داسي نور شیان نو هغه شی نظر وهونکي ته نه رسیږي او په هغه کي اثر نه کوي بلکه هغه حرز او تعویذ که قوي وي نو هغه شی نظر کونکي ته بېرته راګرځي لکه څرنګه چې د مقابل لوري سره سخت سپر وي نو د غشي وېشتونکي غشی د سپر سره په ټکر خوړلو بېرته ویشتونکي ته راځي ، څرنګه چې الله تعالی د ځینو خلکو په نظر کي ذکر سوی خاصیت او تاثیر پیدا کړی دی همدارنګه الله تعالی نفوس کامله یعني اهل الله او کاملینو ته هم ددغه بد نظر د دفع قوت ورکړی دی چې هغوی عامو خلکو ته د دعاء او تعویذ په ذریعه د بد نظر د اثراتو څخه په ساتنه کي مرسته وکړي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د هري ناروغۍ علاج سته

﴿۴۳۳۳﴾: عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ افَنَتَدَاوٰى قَالَ نَعَمْ يا عبادالله تَدَاوَوْا فَإِنَّ اللّٰهَ لَمْ يَضَعْ دَاءً إِلَّا وَضَعَ لَهُ شفاء غَيْرَ دَاءٍ وَاحِدٍ الْهَرَمُ . رواه احمد والترمذي وابوداؤد.

د حضرت اسامه بن شریک رضی الله عنه څخه روایت دی چي اصحابو کرامو وویل: اې د الله رسوله! ایا موږ په دوا سره علاج کوو ؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : هو! اې د خدای تعالی بندګانو دوا (او علاج) کوئ ، ځکه چي الله جل جلاله کومه ناروغي پیدا کړې ده د هغې لپاره یې شفاء (علاج او دوا) هم پیدا کړې ده ، خو د یوې ناروغۍ علاج یې نه دی پیدا کړی هغه سپین ږیروالی (بوډاتوب) دی . احمد ، ترمذي او ابوداؤد .

**تخریج**: مسند الامام احمد ۴\۲۷۸، رقم: ۲۰۳۸، وابوداود ۴\۱۹۲، رقم: ۳۸۵۵.

**تشريح**: اې د الله جل جلاله بندګانو! ، رسول الله ﷺ صحابهٔ کرام په دغه الفاظو سره مخاطب کړل یعني دې ته یې اشاره وکړه چي علاج او درملنه کول او د ناروغۍ لیري کولو لپاره ذرائع اختیارول د عبودیت او توکل خلاف نه دی په شرط ددې چي محض پر علاج باندي باور او اعتماد ونه کړل سي بلکه دواء او درملنه د شفاء یوازي یو ضروري سبب او ذریعه وګڼي او شافي حقیقي الله جل جلاله وګڼي.

### په ناروغ په زوره خوراک مه خورئ

﴿۴۳۳۴﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُكْرِهُوا مَرْضَاكُمْ عَلَى الطَّعَامِ فَإِنَّ اللّٰهَ يُطْعِمُهُمْ وَيَسْقِيهِمْ . رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب.

د حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په خپلو ناروغانو باندي په زوره سره خوراک مه کوئ ، ځکه چي خداي تعالی په هغوی باندي څه خوري او

ځیښني. ترمذي او ابن ماجه. ترمذي ویلي چي دا حدیث غریب دی.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۳۳٦، رقم: ۲۰۴۰، وابن ماجه ۲\۱۱۴۰، رقم: ۳۴۴۴.

**تشریح**: مطلب دادی که چیري ناروغ په یو خوراک او څښاک راضي نه وي نو هغه ته یې په زور مه ورکوئ او هغه شی که خوراک وي یا دواء وغیره.

د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي په حقیقت کي د الله تعالی ذات دی چي د انسان بدن ته قوت ور بخښي، دا په اصل کي د هغه مرستي د خوراک او څښاک په ډول شیانو د ګټي په صورت کي څرګندیږي، ګویا د یو حیوان ژوندی اوسېدل او هغه ته قوت او طاقت تر لاسه کېدل پر خوراک او څښاک باندي منحصر نه دی بلکه پر قدرت الهي باندي موقوف دی نو د نفس په یو شي کي د اخته کېدو په وجه که طبیعت خوراک او څښاک ته اماده نه وي نو د خوراک او څښاک په اړه زور کول نه دي پکار ځکه چي د طبیعت او خواهش څخه پرته خوراک او څښاک د ګټي پر ځان تاوان کوي او کوم چي ددې خبري تعلق دی چي د بدن او ځان د بقاء لپاره د نظام قدرت او عادات انساني لاندي یو ظاهري سبب او ذریعه کېدل پکار دي نو ددغه مقصد لپاره هغه رطوبت بدن کافي کیږي چي هغه د فقدان خوراک په صورت کي حرارت غزیزي تحلیل کولو سره د بقاء بدن او ځان ذریعه جوړوي.

## د سرخ باد علاج

﴿۴۳۳۵﴾: وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَوَى أَسْعَدَ بْنَ زُرَارَةَ مِنَ الشَّوْكَةِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د سعد بن زراره پر بدن د سرخ باد ناروغۍ (د دفعه کولو لپاره) داغ ورکړ. ترمذي ویلي چي دا حدیث غریب دی

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۳۴۱، رقم: ۲۰۵۰.

**د لغاتو حل**: الشوکة: حمرة تعلو الوجه والجسد (سرخ باد)

**تشریح**: داغ یې ورکړ: یعني رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک سره داغ ورکړ یا بل چا ته یې د داغلو حکم ورکړ، دا خبره څرګنده سوې نه ده چي د ذکر سوي ناروغۍ د علاج لپاره د حضرت سعد رضی الله عنه د بدن کومي برخي ته داغ ورکړل سوی وو.

## ذات الجنب

﴿۴۳۳٦﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ أَمَرَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَتَدَاوَى مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ بِالْقُسْطِ الْبَحْرِيِّ وَالزَّيْتِ. رواه الترمذي.

د حضرت زيد بن ارقم رضی اللہ عنہ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ حکم وکړ چي د ذات الجنب (نمونيا) علاج په بحري قسط او د. زيتون په تيلو سره کوئ. ترمذي، ذات الجنب: د تشي بريښ ته وايي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۵۵، رقم: ۲۰۲۷.

﴿۴۳۳۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْعَتُ الزَّيْتَ وَالْوَرْسَ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ. رواه الترمذي.

د حضرت زيد بن ارقم رضی اللہ عنہ څخه روايت دى چي نبي کريم ﷺ د ذات الجنب ناروغى لپاره دزيتون د تېل او ورس تعريف کړى دى. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۵۵، رقم: ۲۰۷۸.

**د لغاتو حل**: الورس: نبت اصفر يصبغ به. (يو ډول ژړ نبات)

**تشريح**: ورس يو ډول وابنه دي چي رنګ يې ژړ دى او ربښې يې د زعفرانو په ډول دي او د زعفرانو په ډول دغه وابنه هم د رنګولو لپاره په کار راځي، طبيبانو د مختلفو ناروغيو لپاره ددغه وابنو ډيري ګټې بيان کړي دي، په څرګنده معلوميږي چي د ذات الجنب د علاج لپاره ددغه دواړو شيانو استعمال د دواء په توګه يعني په خوله کي د څښولو په ذريعه وي.

## سنا ښه دوا ده

﴿۴۳۳۸﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ أَنَّ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَهَا بِمَ

د بي بي اسماء بنت عميس رضی اللہ عنہا څخه روايت دى چي نبي کريم ﷺ د هغې (بي بي اسماء رض څخه) پوښتنه وکړ، تاسو په کوم شی سره

تَسْتَمْشِينَ قَالَتْ بِالشُّبْرُمِ قَالَ حَارٌّ جَارٌّ قَالَتْ ثُمَّ اسْتَمْشَيْتُ بِالسَّنَا فَقَالَ

جلاب کوئ ؟ هغې (بي بي اسماء رض) وويل ، په شبرم سره ، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : دا ډېر گرم وي ، بي بي اسماء رض وايي ، بيا ما په سنا سره جلاب وکړل

النَّبِيُّ ﷺ لَوْ أَنَّ شَيْئًا كَانَ فِيهِ شِفَاءٌ مِنَ الْمَوْتِ لَكَانَ فِي السَّنَا. رواه الترمذي و ابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

نبي کريم ﷺ وفرمايل: که په کوم شی کي د مرگ څخه شفاء وای (يعني د مرگ علاج وای) نو هغه به سنا وای . ترمذي او ابن ماجه، په ترمذي کي دا حديث غريب دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۵۶، رقم: ۲۰۸۱، وابن ماجه ۲\۱۱۴۵، رقم: ۳۴۶۱.

**تشريح**: شبرم يو ډول وانبه دي چي د نس اپله کونکي دي، ځيني حضرات ويلي دي چي د شبرم څخه د هغه وانبو دانې مراد دي او د اسهال لپاره هغه دانې په اوبو کي اېشول کيږي او څښل کيږي، دواړه الفاظ (حار) د حاء په زور سره او د راء په تشديد سره دي لکه څرنگه چي د مشکوة شريف په اکثرو صحيح نسخو او اصل کتاب يعني ترمذي او ابن ماجه کي نقل سوي دي مگر ځينو حضراتو دوهم لفظ په جيم سره يعني جار نقل کړی دی او دغه لفظ جاريې د اول لفظ څخه وروسته د هغه مناسبت او هموزنه کېدو لپاره مهمل لفظ وايي لکه اوبه موبه ، او داسي نور، په هر حال رسول الله ﷺ د دغه جملې په ذريعه دا څرگنده کړه چي شبرم ډېر گرم دي او د اسهال لپاره ډېر زيات نس ناسته رامنځته کوي ځکه نو په دې کي احتياط شرط دی .

د حديث د آخري الفاظو په ذريعه د سنا فضيلت او تعريف د مبالغې په توگه بيان سوی دی او دا ښېبنه ده چي سنا په خاصه توگه سنا مکي ډېره عجيبه او نادره دواء ده چي د هغه گټې مشهوري دي ، او طبيبان يې په زياتو ناروغيو کي د شفاء ذريعه گڼي، د سنا تر ټولو لوی خاصيت دادی چي په دې کي هيڅ ډول تاوان او ضرر نسته ، د سنا په خاصيتونو کي يو ډېر ښه خاصيت دا هم دی چي د وسواس يعني سودائي توب لپاره ډېر گټور دی .

## په حرام شی سره درملنه مه کوئ

﴿۴۳۳۹﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ إِنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ الدَّاءَ وَالدَّوَاءَ وَجَعَلَ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءً فَتَدَاوَوْا وَلَا تَدَاوَوْا بِحَرَامٍ . رواه ابو داؤد.

د حضرت ابو درداء رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله جل جلاله ناروغي هم پيدا

کړې ده او د ناروغۍ دوا هم او د هري ناروغۍ لپاره یې یوه دوا مقرر کړې ده ، تاسو په دوائي سره (د ناروغۍ علاج کوئ) لیکن په حرام شي سره علاج مه کوئ (لکه شراب یا د خنزیر په غوښو یا وازګه حرام دي په دې سره علاج مه کوئ). ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۲۰۶\۴، رقم: ۳۸۷۴.

**تشریح**: د حرام شي څخه مراد شراب، خنزیر او هغه شیان دي کوم چي حرام ګرځول سوي دي، د علاج په توګه مطلق حرام شی او په خاصه توګه د شرابو اختیارولو حرمت او کراهت کي ډېر حدیثونه نقل سوي دي چي د هغو څخه یوازي د حرامو شیانو په ذریعه منع نه ثابتیږي بلکه دا هم څرګندیږي چي د داسي شیانو استعمال بالکل بې ګټي دی ځکه چي ددغه شیانو په ذریعه شفاء تر لاسه کول ممکن نه دي ، د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چي الله جل جلاله ستاسو شفاء په هغه شیانو کي نده ایښې کوم چي یې ستاسو لپاره حرام ګرځولي دي، همدارنګه منقول دي چي یو صحابي حضرت طارق جعفي رضی الله عنه د نبي کریم ﷺ څخه د شرابو څښلو په اړه پوښتنه وکړه ، نو رسول الله ﷺ هغه منع کړ او کله چي هغه وویل چي زه یې د دواء په توګه استعمالومنو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: شراب دواء نه ده بلکه هغه درد او ناروغي دي، او همدارنګه رسول الله ﷺ وفرمایل: (من تداوي بالخمر فلا شفا الله) یعني څوک چي د شرابو په ذریعه علاج کوي نو الله تعالی هغه ته شفاء نه ورکوي ، مګر په ځینو فقهي روایتو کي دا اجازه ورکړل سوې ده که د یو ناروغ په اړه د باور وړ او حاذق طبیب او معالجینو پر دې اتفاق سي چي د هغه علاج د شرابو څخه پرته په بل هیڅ نه کیږي نو هغه ناروغ د دواء په توګه شراب استعمالولای سي مګر دا خبره تقریبا ناممکن ده ځکه چي اول خو د باور وړ او حاذق طبیب تر لاسه کول او دوهم د هغه طبیب په دې خبره اتفاق کول چي ددغه ناروغۍ علاج یوازي پر شرابو باندي منحصر دی، اسان کار نه دی.

## په مردار شي سره درملنه مه کوي

﴿۴۳۴۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الدَّوَاءِ الْخَبِيثِ . رواه احمد وابوداؤد والترمذي وابن ماجة.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ په خبیثو (یعني نجسو او مردارو) دوا سره (علاج کول) منع کړی دي . احمد و ابوداؤد ، ترمذي او ابن ماجه

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲\ ۳۰۵، وابوداود ۴\ ۲۰۳، رقم: ۳۸۷۰، والترمذي ۴\ ۳۳۹، رقم: ۲۰۴۵، وابن ماجه ۲\ ۱۱۴۵، رقم: ۳۴۵۹.

**تشریح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د داسي دواء استعمالولو څخه منع فرمایلې ده کوم چي نجس، ناپاکه او حرامه وي، او یا د خبیث څخه هغه دواء مراد ده چي بدخونده وي چي د هغه د استعمال څخه طبیعت نفرت کوي نو داسي دواء هم غوره نه ګڼل کیږي ځکه چي کومه دواء طبیعت نه قبلوي د هغه ګټه کمه وي په دې اعتبار سره په حدیث کي د ذکر سوي نفرت تعلق به د نهي تنزیهي سره وي.

## د سر درد، د پښو درد

﴿۴۳۴۱﴾: وَعَنْ سَلْمَى خَادِمَةِ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ مَا كَانَ أَحَدٌ يَشْتَكِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعًا فِي رَأْسِهِ إِلَّا قَالَ احْتَجِمْ وَلَا وَجَعًا فِي رِجْلَيْهِ إِلَّا قَالَ اخْضِبْهُمَا. رواه ابوداؤد.

بي بي سلمی رضي الله عنها چي د نبي کریم ﷺ خادمه وه وايي، چا چي به د نبي کریم ﷺ په خدمت کي د سر د درد شکایت وکړ نو نبي کریم ﷺ به ورته د رګ وهلو (وينه تویولو) حکم ورکوی او چا چي به د پښو د درد شکایت کوی نو هغه ته به یې د نکریځو د لګولو حکم ورکوی. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\ ۱۹۴، رقم: ۳۹۴۸.

**تشریح**: دغه حدیث مطلق دی چي په دغه حکم کي نارینه او ښځي دواړه شامل دي مګر غوره داده چي نارینه یوازي د پښو پر تلو باندي د نکریزو لګولو اکتفاء وکړي او پر نوکانو لګولو څخه پرهېز وکړي، د ښځو د مشابهت څخه تر خپله وسه ځان ساتل پکار دي.

## د زخم درملنه

﴿۴۳۴۲﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ مَا كَانَ يَكُونُ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرْحَةٌ وَلَا نَكْبَةٌ إِلَّا أَمَرَنِي أَنْ أَضَعَ عَلَيْهَا الْحِنَّاءَ. رواه الترمذي.

بي بي سلمی رض چي د نبي کریم ﷺ خادمه وه وايي چي د نبي کریم ﷺ په بدن باندي چي به څه زخم پیدا سو (لکه د توري یا د چړې) یا کاڼي او ازغی سره به نبي کریم ﷺ زخمي سو نو

نبي کريم ﷺ به و ماته حکم راکوئ چي زه په هغه زخم باندي نکروځي ولګوم. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۴۳، رقم: ۲۰۵۴.

**د لغاتو حل**: نکبة: ای جراحة من حجر او شوک (زخم يا برېښ)

**تشريح**: د نکريزو تاثير يخ دی او د جلدي ناروغيو لپاره ګټور دی ځکه د هغه يخوالی د زخم ګرمي او سوزش ختموي.

## وينه کښل

﴿۴۳۴۳﴾: وَعَنْ أَبِي كَبْشَةَ الْأَنْمَارِيِّ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَحْتَجِمُ عَلَى هَامَتِهِ وَبَيْنَ كَتِفَيْهِ وَهُوَ يَقُوْلُ مَنْ أَهْرَاقَ مِنْ هَذِهِ الدِّمَاءِ فَلَا يَضُرُّهُ أَنْ لَا يَتَدَاوَى بِشَيْءٍ لِشَيْءٍ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت ابو کبشه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د خپل سر مبارک او د دواړو اوږو ترمينځ وينه کښل او فرمايل به يې، چي څوک د دې وينو څخه (د سر او د اوږو وينو څخه) څه وکاږي (يعني فاسده وينه) هغه که په يو ناروغي کي په دوا سره علاج و نکړي نو څه نقصان به ورته و نه رسوي. ابوداؤد او ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۹۵، رقم: ۳۸۵۹، وابن ماجه ۲\۱۱۵۲، رقم: ۳۴۸۴.

**تشريح**: کېدای سي چي کله به رسول الله ﷺ (د ويني کښلو لپاره) په سر کي ښکر لګولی وي او کله به يې د دواړو اوږو په مينځ کي، او دا هم کېدايسي چي په يوه وخت يې دواړه ځايه ښکر لګولی وي.

ددغه وينو څخه څه و باسئ: ددې څخه په ظاهره دا معلوميږي چي د ويني څخه مراد د ذکر سوو دوو اندامو وينه ده مګر دا هم کېدای سي چي مطلق فاسد وينه مراد وي يعني د بدن په کومه برخه کي چي فاسده وينه وي هغه بايد وکښل سي.

﴿۴۳۴۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ عَلَى وِرْكِهِ مِنْ وَثْءٍ كَانَ بِهِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د درد او برېښ په وجه د خپل تړتي څخه

ډک ښکر وینه وکښل. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۱۹۷، رقم: ۳۸۶۳..

**تشریح**: وثاء د واو په زبر او د ثاء په جزم سره، هغه درد او زخم ته وایي چې یو اندام ته د هغه هډوکي ماتېدو پرته ورسیږي چې زموږ په ژبه کې درد او برېښ ورته وایي.

﴿۴۳۴۵﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ حَدَّثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لَيْلَةِ أُسْرِيَ بِهِ أَنَّهُ لَمْ يَمُرَّ عَلَى مَلَإٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا أَمَرُوهُ أَنْ مُرْ أُمَّتَكَ بِالْحِجَامَةِ. رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د معراج د واقعې د اطلاع د ورکولو سره وفرمایل: نبي کریم ﷺ چې د ملائکو د کومې ټولۍ سره تېرېدی، هغوی به نبي کریم ﷺ ته دا عرض کوئ چې خپل امت ته د وینې کښلو حکم ورکړئ. ترمذي او ابن ماجه، په ترمذي کې دا حدیث حسن غریب دی..

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۳۴۲، رقم: ۲۰۵۲، وابن ماجه ۲\۱۱۵۱، رقم: ۳۴۷۹.

**تشریح**: د وینې کښلو دغه ارزښت او فضیلت له دې کبله دی چې د وینې د فساد په وجه ډېرې ناروغۍ پیدا کیږي چې هغو ته امراض دموي وایي، د امراض دموي تر ټولو لوی علاج وینه کښل دي او د وینې کښلو د نورو طریقو په نسبت ښکر لګول ځکه خوښ سوي دي چې هغه وینه د شاوخوا پوست څخه باسي، ټول طبیبان دا وایي چې په ګرمه هواء کې د اوسیدونکو لپاره د رګ وهلو په مقابله کې د ښکر وهل زیات ګټور دي ځکه چې د دغه خلکو وینه رقیقه وي چې د بدن پر سطح باندې راسي او څرګنده ده چې دغه وینه د ښکر په ذریعه کښل کیږي نه د رګ وهلو په ذریعه.

د امت څخه مراد هغه عرب دي کوم چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې موجود وه، د امت څخه د رسول الله ﷺ د قوم او وطن خلک مراد کېدای سي او دا هم ویل کیدای سي چې دلته د امت عام مفهوم مراد دی یعني د رسول الله ﷺ د ټول امت څخه هر هغه څوک مراد وي چې هغه ته د وینې کښلو اړتیا وي.

## د چنګوښي څخه دوا جوړول منع دي

﴿۴۳۴۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عُثْمَانَ أَنَّ طَبِيبًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ضِفْدَعٍ يَجْعَلُهَا فِي دَوَاءٍ فَنَهَاهُ النَّبِيُّ ﷺ عَنْ قَتْلِهَا. رواه ابوداؤد

د حضرت عبدالرحمن بن عثمان رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو طبيب د رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چي د چنګوښي (وازګه، وينه، يا غوښه) په دوا کي شامله سي نو څه حکم دی؟ نبي کريم ﷺ د چنګوښي د وژلو (او په دوا کي د ګډولو په سبب د حراموالي د چنګښي )څخه منعه وکړه. ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داود ۴\۲۰۳، رقم: ۳۸۷۱.

**تشريح:** د چنګوښي د وژلو څخه د منع کولو مطلب دادی چي چنګوښه وژل او بيا هغه په دواء کي استعمالولو څخه يې منع وفرمايل ، ددغه وضاحت څخه د سوال او جواب په مينځ کي مطابقت پيدا کيږي ، ددې خبري تائيد د هغه روايت څخه هم کيږي کوم چي په جامع کي نقل سوی دی چي : (نهي عن قتل الضفدع للدواء) يعني رسول الله ﷺ د دواء په توګه د چنګوښي وژلو څخه منع وفرمايل.

قاضي رحمة الله عليه وايي : د رسول الله ﷺ د چنګوښي وژلو څخه منع فرمايل کېدای سي په دې وجه وي چي رسول الله ﷺ د چنګوښي څخه د دواء جوړول مناسب ونه ګڼل او دغه مناسب نه ګڼل د چنګوښي د نجس او حرام کېدو په وجه وو چي د نجس او حرام شي په ذريعه علاج کول جائز نه دي ، او يا کېدای سي چي د چنګوښي څخه د طبيعت د نفرت په وجه يې منع فرمايلې وي او د کومو شيانو څخه چي طبيعت نفرت کوي هغه د دواء په توګه استعمالول بې ګټي دي ، او دا چي طبيب په چنګوښه کي کومي ګټي ليدلي دي نو د هغه په مقابله کي رسول الله ﷺ د هغه تاوانونه زيات ليدلي دي ځکه رسول الله ﷺ د هغه څخه د دواء جوړول مناسب ونه ګڼل.

## دويني کښل

﴿۴۳۴۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْتَجِمُ فِي الْأَخْدَعَيْنِ وَالْكَاهِلِ. رواه ابوداؤد و رواه الترمذي وابن ماجة وكان

يحجتم لسبع عشرة وتسع عشرة وأحدى وعشرين.

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د غاړي ولور ته د دوو رګونو او د اوږو په مينځ کي وينه کښل . ابوداؤد، او په ترمذي او ابن ماجه کي دا الفاظ زيات ليکل سوي دي چي نبي کريم ﷺ به په اوولسم، نولسم او يويشتم تاريخ وينه کښل.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۹۵، رقم: ۳۸۶۰، والترمذي ۴\۳۴۱، رقم: 2051، وابن ماجه ۲\۱۱۵۲، رقم: ۳۴۸۳.

## دويني کښلو ورځ

﴿۴۳۴۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْتَحِبُّ الْحِجَامَةَ لِسَبْعَ عَشَرَةَ وَتِسْعَ عَشَرَةَ وَإِحْدٰى وَعِشْرِيْنَ . رواه في شرح السنة

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په اوولسم، نولسم او يويشتم تاريخ وينه کښل مستحب بلل . شرح السنه

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\۱۵۰، رقم: ۳۲۳۵.

﴿۴۳۴۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنِ احْتَجَمَ لِسَبْعَ عَشْرَةَ وَتِسْعَ عَشْرَةَ وَإِحْدٰى وَعِشْرِيْنَ كَانَ شِفَاءً مِنْ كُلِّ دَاءٍ . رواه ابوداؤد

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي په اوولسم، نولسم او يويشتم تاريخ وينه کاږي هغه به د هري ناروغی څخه نجات پيدا کړي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۹۶، رقم: ۳۸۶۱.

﴿۴۳۵۰﴾: وَعَنْ كَبْشَةَ بِنْتُ أَبِي بَكْرَةَ إِنَّ أَبَاهَا كَانَ يَنْهَى أَهْلَهُ عَنِ الْحِجَامَةِ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ وَيَزْعُمُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ يَوْمُ الدَّمِ وَفِيْهِ سَاعَةٌ لَا يَرْقَأُ. رواه ابوداؤد.

د بي بي کبشه بنت ابي بکره ﷺ څخه روايت دی چي د هغې پلار به د سه شنبې په ورځ د ويني کنبلو څخه منعه کوله او ويل به يې ،نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي د سه شنبې د ورځ وينه د غلبې يا دوران ورځ ده او په دې ورځ کي يو داسي ساعت دی چي په هغه کي د ويني په کنبو سره بيا وينه نه بنديږي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۹۶، رقم: ۳۸۶۲.

﴿۴۳۵۱﴾: وَعَنِ الزُّهْرِيِّ مُرْسَلاً عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ احْتَجَمَ يَوْمَ الْأَرْبَعَاءِ أَوْ يَوْمَ السَّبْتِ فَأَصَابَهُ وَضَحٌ فَلاَ يَلُوْمَنَّ إِلاَّ نَفْسَهُ . رواه أحمد وأبو داود وقال : وقد أسند ولا يصح.

حضرت زهری رضی الله عنه مرسلا د نبي کريم ﷺ څخه نقل کونکي دی ، څوک چي د چهار شنبې يا د شنبې په ورځ وينه وکاږي او برص (برګی ،په وجود کي د سپينو داغونو مرض دی) سي نو هغه دي خپل ځان ملامت کړي . احمد او ابوداؤد،او ويل سوي دی چي دا حديث مسند هم نقل سوی دی خو داخبره صحيح نه ده .

**تخريج**: لم نجده عند الامام احمد وابي داود.

**تشريح**: که څه هم دغه دوهم روايت ته صحيح نه دي ويل سوي دي مګر ددې په ذريعه هغه مرسل حديث ته تقويت حاصليږي ، او مرسل حديث د حنفيه او نورو اصحابو په نزد حجت وي.

﴿۴۳۵۲﴾: وَعَنْهُ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ احْتَجَمَ أَوِ اطَّلٰى يَوْمَ السَّبْتِ أَوِ الْأَرْبَعَاءِ فَلاَ يَلُوْمَنَّ إِلاَّ نَفْسَهُ فِي الْوَضَحِ . رواه في شرح السنة .

حضرت زهری رضی الله عنه مرسلا د نبي کريم ﷺ څخه نقل کوي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل: څوک چي د چهار شنبې يا د شنبې په ورځ وينه وکاږي يا بدن مالش کړي که پيس سي نو پر خپل ځان دي بد وايي . شرح السنه

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\۱۵۱، رقم: ۳۲۳۵.

## کورنی، ټوټکه منع ده

﴿۴۳۵۳﴾: وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ رَأٰى فِيْ عُنُقِيْ

د حضرت عبد الله بن مسعود ﷛ د ښځي بي بي زينب (رض) څخه روايت دی چي عبد الله زما په غاړه کي تار پروت وليد

خَيْطًا فَقَالَ مَا هٰذَا ؟ فَقُلْتُ خَيْطٌ رُقِيَ لِيْ فِيْهِ قَالَتْ فَأَخَذَهُ فَقَطَعَهُ ثُمَّ قَالَ

او زما څخه يې پوښتنه وکړه دا څه شي دي؟ ما ورته وويل، دا تار دی چي په دې سره زما لپاره دم او چوف سوی دی (په دې اوربدو سره) عبد الله وويل:

أَنْتُمْ آلُ عَبْدِ اللّٰهِ الْأَغْنِيَاءُ عَنِ الشِّرْكِ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اې د عبد الله کور والا! تاسو د شرک څخه بالکل بې پروا ياست، ما د نبي کريم ﷺ څخه دا اوربدلي دي چي

يَقُوْلُ إِنَّ الرُّقٰى وَالتَّمَائِمَ وَالتِّوَلَةَ شِرْكٌ فَقُلْتُ لِمَ تَقُوْلُ هٰكذا لَقَدْ كَانَتْ عَيْنِيْ

فرمايل يې: جادو شرک دی، ما ورته وويل، دا ته څه وايې؟ زما سترګو به اوښکي تويولې او

تَقْذِفُ وَكُنْتُ أَخْتَلِفُ إِلٰى فُلَانٍ الْيَهُوْدِيِّ فَإِذَا رَقَاهَا سَكَنَتْ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ

زه به فلاني يهودي ته تلم، هغه يهودي به م کړلې نو ما ته به ارام راغلی، عبد الله وويل:

إِنَّمَا ذَاكَ عَمَلُ الشَّيْطَانِ كَانَ يَنْخُسُهَا بِيَدِهِ فَإِذَا رَقَاهَا كَفَّ عَنْهَا إِنَّمَا كَانَ

دا د شيطان کار دی، هغه به په خپل لاس سره ستا سترګه کنبېکنبل او کوم وخت چي به هغه دم ووايه نو کنبېکنبل به يې پرېښودل. (عبد الله وويل)

يَكْفِيكِ أَنْ تَقُوْلِيْ كَمَا كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ أَذْهِبِ الْبَأْسَ

تا ته صرف دا الفاظ کافي دي کوم وخت چي به نبي کريم ﷺ ويل: (هغه الفاظ دا دي)، اذهب

رَبَّ النَّاسِ اشْفِ أَنْتَ الشَّافِيْ لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا. رواه

ابوداؤد.

الباس رب الناس و اشف انت الشافي لا شفاء الا شفاءک شفاء لا یغادر سقما، ترجمه : بوځه سختي اې د خلکو ربه او شفا راکړه ته شفا ورکونکی یې بغیر ستا څخه بل څوک شفا ورکونکی نسته ستا شفا هیڅ مرض نه پریږدي . ابوداؤد .

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۲۱۲، رقم: ۳۸۸۳.

**د لغاتو حل**: التولة: نوع من السحر. (یو ډول جادو). تقذف: ترمی بها یهیج الوجع.

**تشریح**: تاسو د شرک څخه بې پرواه یاست : مطلب دادی چې الله ﷻ تاسو ته د ایمان او اسلام دولت درکړی دی او د کفر څخه یې لیري کړي یاست نو تا ته ددې اړتیا نسته چې ته د خپلو ناروغیو او تکلیفونو د ختمولو لپاره داسي کارونه او شیان اختیار کړې چې په کفر کي دي اخته کوي، حضرت عبدالله رضی الله عنه دا خبره ځکه وفرمایل چې په هغه زمانه کي د دم او تعویذ لپاره چي کوم دم کېدی هغه به پر مشرکانو مضامینو باندي مشتمل وو ، ملا علي قاري رحمه الله په دې اړه لیکلي دي چي دلته د شرک څخه مراد دغه عقیده درلودل دي چي دغه عمل (یعني دم وغیره) د ناروغۍ او ضرر د دفع کولو یو قوي سبب دی او په خپله په دې کي تاثیري طاقت دی په دغه صورت کي به دا شرک خفي وي او که چیري دا عقیده وي چي دغه شی بذات خود مؤثر حقیقي دی نو دې ته شرک جلي ویل کیږي .

کوم دم ته چي شرک ویل سوي دي د هغه څخه مراد هغه دم دی چي په هغه کي د بُتانو ، پریانو او شیطانانو نومان اخیستل کیږي چي پر کفریه کلمو او داسي شیانو باندي مشتمل وي کوم چي شریعت ناجائز ګرځولي دي او په دغه حکم کي هغه دم هم داخل دی چي د هغه معنی معلومه نه وي .

تمائم د تمیمه جمع ده او تمیمه هغه تعویذ ته وایي چي په غاړه کي اچول کیږي، دلته هغه تعویذ مراد دی چي په هغه کي د الله ﷻ اسماء، قرآني آیات او نقل سوي دعاوي نه وي .

تولة یو ډول تعویذ ته وایي چي د ښځي او سړي په مینځ کي د میني قائمولو لپاره د تار یا تعویذ په ذریعه کیږي .

ښله شکه دم، کوډي او تعویذ شرک دی: ددې مطلب دادی چي دغه ټول عملیات او کارونه هغه دي چي مشرکان یې کوي دغه شیان د شرک خفي یا شرک جلي په ضمن کي راځي لکه چي مخکي یې وضاحت سوی دی .

بلکه د شیطان کار وو، یعني ستا په سترګو کي چي کوم درد وو هغه حقیقتا درد نه وو بلکه د شیطان یو ضرر وو چي انسان پکښي اخته کوي.

## نشره د شیطان کار دی

﴿۴۳۵۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سُئِلَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النُّشْرَةِ فَقَالَ هُوَ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ څخه د نشره په هکله پوښتنه وسوه (نشره یو جادو دی چي د اسیب (درد ،تکلیف، صدمه نقصان، ضرر، ببره، خطره، د پیریانو اثر او د ښار د پیریانو غار) زده باندي ویل سوی وو) نبي کریم ﷺ وفرمایل: دا د شیطان کار دی. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۲۰۱، رقم: ۳۸٦۸.

**تشریح**: نشره یو ډول سفلي عمل دی چي د مېرګي وهلي لپاره کیږي، په قاموس کي دي چي نشره یو دم دی چي د هغه په ذریعه د لیوني او ناروغ علاج کیږي، خلاصه دا چي د نشره لفظ معنی د دم یا تعویذ ده، نو کوم نشره ته چي د شیطان کار ویل سوي دي د هغه څخه مراد هغه دم دی کوم چي پر اسماء الهي، قرآني ایاتو او نقل سوو دعاوو باندي مشتمل نوي بلکه د جاهلیت د زمانې د هغه عملیاتو څخه یو عمل وي چي د بُتانو او شیطانانو په نومو او د هغوی څخه پر مرسته غوښتني باندي مشتمل وي یا د هغه دم الفاظ به په عبراني ژبه وه چي د هغو معنی به معلومه نه وه.

## د بې پروا خلکو کار

﴿۴۳۵۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا أُبَالِي مَا أَتَيْتُ إِنْ أَنَا شَرِبْتُ تِرْيَاقًا أَوْ تَعَلَّقْتُ تَمِيمَةً أَوْ قُلْتُ الشِّعْرَ مِنْ قِبَلِ نَفْسِي. رواه ابوداؤد.

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي، زه د هیڅ عمل پروا نه کوم (یعني د څه عمل د کولو) یعني دا چي تاریاق و خورم، په غاړه کي منکه

(د جاهلیت د زمانې په ډول مرۍ یا هډوکي په غاړه کول) واچوم یا د خپل زړه (ارادې او قصد) سره شعر ووایم (یعني ماته د دې شیانو په عمل کي د راوستو ضرورت نسته). ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۲۰۱. رقم: ۳۸۶۹.

**تشریح**: مطلب دادی که چیري په دغه شیانو کي یو شی زما څخه وسي نو ددې به دا معنی وي چي زما شمېر به د هغه خلکو څخه وي کوم چي د هر عمل څخه بې پروا وي یعني هغوی د یو کار کولو په وخت کي دا نه ګوري چي ایا هغوی دا کار وکړي که یا ، او په نتیجه کي هغوی د نامشروع افعالو او حرکاتو څخه پرهېز کوي، یعني ددغه ارشاد څخه دا څرګندول مقصد دي چي دغه شیان اختیارول د هغه چا کار کېدای سي چي د نامناسب شیانو او غیر مشروع اعمالو اختیارولو غیرپابند او بې پروا وي.

د ذکر سوو شیانو استعمال رسول الله ﷺ ځکه بد وګڼی چي په تاریاقو کي د مارغوښه او شراب وي او دا شیان حرام دي ، ددې څخه معلومه سوه چي د کومو تاریاقو ترکیبي اجزاء پر حرامو شیانو مشتمل نه وي د هغو په استعمال کي څه پروا نسته که څه هم ځیني حضرات د حدیث مطلق مفهوم باندي د عمل کولو سره سم ددې ترک هم غوره ګرځولی دی همدارنګه تمیمه یعني دم څخه هغه شیان مراد دي چي د جاهلیت د زمانې خلکو به د دم او عملیاتو په من کي استعمالول ، نو داسي تعویذ وغیره چي پر اسماء الهي او آیات قرآني باندي مشتمل وي ددغه حکم څخه خارج دی بلکه د هغه مستحب کېدل ثابت دي او د هغه په برکت سره د ل مقصد یو امېد کېدای سي ، کوم چي د شعر او شاعرۍ تعلق دی نو د رسول الله ﷺ په د هغه بد کېدل د الله تعالی ددغه ارشاد (د ما علمناه الشعر وما ینبغي له) په وجه وو، رسول الله ﷺ خپله شعر نه وایه بلکه الله تعالی د شعر ویني څخه پاک کړی وو ، ځکه رسول الله ﷺ پر شعر ویلو باندي قادر نه وو او دا خبره ده چي د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه بېله ورېدو او بېله قصد او ارادې چي کومي جملې ادا کېدالې او د رسول الله ﷺ کلام چي د کوم صاحت او بلاغت څخه ډک وو هغه بذات خود د وصف شعر ویني څخه ډېر لوړ او اعلی وو، د رسول الله ﷺ په نزد د مطلق شعر ویل بد کېدل د رسول الله ﷺ د ذات مبارک سره مختص وو البته د رسول الله ﷺ څخه پرته د نورو خلکو لپاره د اشعارو ویل د نورو خبرو او کلام په ډول دي چي ښه مضامینو ته د اشعارو جامه اغوستل او صالح او پاک شعرونو په ویلو سره څرګندول ښه دي او خراب مضامین او بد خیالاتو باندي مشتمل شعرونه بد دي مګر دا خبره

ضروري ده چي په دغه صورت كي هم خپل باطن شعرونه ويلو ته متوجه كول په دې كي عمر ضائع كول او په دې كي دومره بوختيا او تفكر اختيارول چي په ديني چارو كي خنډ او تاوان پيدا سي كوم چي ضروري او واجب دي، يقينا بد به وي.

ابن ملک رحمة الله عليه د دغه حديث په وضاحت كي ويلي دي چي د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي شعر ويل، تارياک خوړل او په غاړه كي تعويذ اچول زما لپاره حرام دي البته د امت لپاره حرام نه دي، په شرط د دې چي د هغه شعر په ذريعه د يو مسلمان بدوينه ونه كړل سي او نه هغه اشعار د رواغ او پر خرابو خبروباندي مشتمل وي او نه هغه تعويذ د غير مشروع عملياتو سره اړوند وي، همدارنګه د امت په اړه هغه تارياک هم حرام نه دي چي په هغو كي يو حرام شی لكه د مار غوښه وغيره شامل نه وي.

## داغ لګول د توكل خلاف

﴿۴۳۵۶﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ قَالَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اكْتَوَى أَوْ اسْتَرْقَى فَقَدْ بَرِئَ مِنْ التَّوَكُّلِ. رواه احمد والترمذي و ابن ماجة.

د حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي داغ ولګوئ يا جادو ووايي هغه د توكل څخه خلاص دی (يعني په خداي تعالى باندي د باور څخه بيزاره دی). احمد، ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۲۴۹، رقم: ۲۰۵۵، وابن ماجه ۲\ ۱۱۵۴، رقم: ۳۴۸۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي د يو ناروغ د علاج لپاره د بدن پر يوه برخه باندي داغ لګول يا د يو ضرورت او اړتيا په صورت كي دم او تعويذ كول كه څه هم مباح دي مګر د توكل او اعتماد على الله چي كومه مرتبه او مقام دی هغه د دې څخه لوړ او بالا دی، الله جل جلاله فرمايي: (وعلى الله فليتوكل المؤمنين) نو په اسبابو او ذرائعو اختيارولو كي زياته بوختيا او مصروفيت د رب الارباب څخه د غافل كېدو دليل دی ځكه امام غزالي رحمة الله عليه ويلي دي: كه يو سړی يو ځای ته د تللو لپاره د خپل سرای دروازې په دوو قلفو سره بندي كړي يا يو قلف ور واچوي او بيا همسايه ته هم د سرای د ساتني لپاره ووايي نو هغه د توكل د دائرې څخه ووتی.

﴿۴۳۵۷﴾: وَعَنْ عِيسَى بْنِ حَمْزَةَ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُكَيْمٍ وَبِهِ

د عیسی بن حمزه رضي الله عنه څخه روایت دی چي زه عبد الله بن عکیم ته ورغلم، د هغه بدن د ناروغی

حُمْرَةٌ فَقُلْتُ أَلَا تُعَلِّقُ تَمِيمَةً فَقَالَ نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَعَلَّقَ شَيْئًا وُكِلَ إِلَيْهِ. رواه أبو داود

څخه سور وو، ما ورته وویل، ته تعویذ ولي نه اچوې؟ هغه راته وویل، موږ د خداي تعالی په واسطه د دې څخه پناه غواړو (ځکه چي) نبي کریم ﷺ وفرمایل: څوک چي یو شی واچوي یا یې وتړي هغه د هغه حواله کیږي. ابوداؤد

**تخریج**: لم نجده عند ابي داود.

**تشریح**: د طیبي رحمه الله د قول مطابق په څرګنده دا معلومیږي چي حضرت عبد الله رضي الله عنه د تعویذ اچولو څخه د الله جل جلاله پناه غوښتې وه ځکه چي هغه مقام توکل او رضا باندي فائز وو او هغه تعویذ اچول د توکل خلاف وګڼل که څه هم د نورو لپاره دا جائز دی.
د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي کوم څوک تعویذ اچوي یا تار په غاړه کوي او د دم وغیره عملیات کوي او دا عقیده لري چي دغه شیان ګټور دي او تاوان دفع کوي نو هغه پر دغه پربښو دل سو چي هغه شیانو ته وسپارل سي یعني هغه د الله تعالی د مرستي او اعانت څخه م کیږي او هغه شفاء نه تر لاسه کوي ځکه چي د ذات حق څخه پرته نه یو شی ګټه ورکوي تاوان رسوي، یعني د دغه ارشاد مقصد تفویض او توکل ته رغبت ورکول دي.

## د دم اثر

﴿۴۳۵۸﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد و رواه ابن ماجة عن بريدة.

د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: دم کول د نظر یا د زهر دار شی د چیچلو څخه پرته په هیڅ شی کي اثر نه کوي. احمد، ترمذي او ابوداؤد. او په ابن ماجه کي د حضرت برید رضي الله عنه څخه روایت کړی دی.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۴\۴۳۶، وابوداود ۴\۲۱۳، رقم: ۳۸۸۴، والترمذي ۴\۳۴۵، رقم: ۲۰۵۷.

﴿۴۳۵۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ أَوْ دَمٍ . رواه ابوداؤد.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :نظر يا د زهر دار حيوان چيچل يا وينه باندي (يعني د نکسير خون يا يوازی ويني رواني يا د ويني د فساد) څخه پرته دم پر بل شي اثر نه کوي . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۴\۲۱۴، رقم: ۳۸۸۹.

**تشريح**: تر دې مخکي په يوه حديث کي د دوو شيانو ذکر سوی دی او په دغه حديث کي د درو شيانو ذکر سوی دی، په دغه حديث کي د ويني لفظ زيات نقل سوی دی، علماوو د ويني څخه د نکسير (تر پزي وينه راتلل) مراد اخيستي دي او که لفظ د ويني ددې پر عمومي مفهوم باندي محمول کړل سي يعني داسي وويل سي چي د ويني څخه هغه ټولي ناروغی مراد دي چي د ويني په سبب سره لاحق کيږي که د هغه تعلق د ويني د فشار سره وي يا د ويني د فساد سره وي، نو دا به هم صحيح وي .

د ابوداؤد په يوه روايت کي د (الا في عين) پر ځای (الا في نفس) الفاظ نقل سوي دي مګر علماوو ويلي دي چي د نفس څخه مراد عين يعني نظر دی ، همدارنګه د اودم پر ځای اولدغة الفاظ منقول دي چي د هغه معنی په غابنو سره د چيچلو ده لکه څرنګه چي مار او داسي نور حيوانان د غابنو په ذريعه چيچل کوي ،

څرګنده دي وي چي دم کول او د عملياتو په ذريعه علاج کول د سر درد، د غابنونو درد په ډول د هري ناروغۍ لپاره ګټور دي ، ددې ثبوت د احاديثو څخه تر لاسه کيږي او د بخاري او مسلم په روايت کي نقل سوي دي چي کله رسول الله ﷺ ناروغ وو نو حضرت جبرائيل عليه السلام ورته راغلی او هغه وويل : (بسم الله ارقيک من کل داء يوذيک) نو په ذکر سوو حديثو کي د دم کولو اثر محض په درو شيانو کي منحصر کول په اصل کي د مبالغې په توګه دي او مراد دادی چي د نورو شيانو په نسبت په دغه درو شيانو کي دم کول زيات ګټور او غوره دی ، لکه څرنګه چي په عامه توګه سره خلک په دغه شيانو کي د عملياتو زياته برخه اخلي .

## نظر

﴿۴۳۶۰﴾: وَعَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ وَلَدَ جَعْفَرٍ تُسْرِعُ

د بي بي اسماء بنت عميس ﷞ څخه روایت دی چي ما وويل : اې د الله رسوله ! د جعفر طيار

إِلَيْهِمُ الْعَيْنُ أَفَأَسْتَرْقِي لَهُمْ قَالَ نَعَمْ فَإِنَّهُ لَوْ كَانَ شَيْءٌ سَابَقَ الْقَدَرَ

لَسَبَقَتْهُ الْعَيْنُ. رواه احمد والترمذي وابن ماجة.

﷞ اولاد ډېر ژر نظر کيږي ، ايا د دوی لپاره يو څه دم ووايم . نبي کريم ﷺ وفرمايل: هو که په تقدير کي څه شي مخته والي کړی وای نو هغه به نظر وای . احمد ، ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: مسند الامام احمد ۶\۴۳۸، رقم: ۲۰۵۹، وابن ماجه ۲\۱۱۶۰، رقم: ۳۵۱۰.

**تشريح**: عطاء ﷫ ليکلي دي : څرنګه چي ځيني نظر د حسد او خبث طبع په سبب تاوان او ضرر رسوي همدا رنګه ددې په مقابله کي د عارفينو او اهل الله نظر د اکسير په ډول ګټور کيږي چي د هغوی د هدايت يو نظر کافر مؤمن، فاسق صالح او جاهل عالم کوي .

﴿۴۳۶۱﴾: وَعَنِ الشِّفَاءِ بِنْتِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا عِنْدَ حَفْصَةَ فَقَالَ أَلَا تُعَلِّمِينَ هٰذِهِ رُقْيَةَ النَّمْلَةِ كَمَا عَلَّمْتِيهَا الْكِتَابَةَ. رواه ابوداؤد.

د بي بي شفاء بنت عبد الله څخه روايت دی چي زه د بي بي حفصې ﷞ سره ناسته وم چي نبي کريم ﷺ تشريف راوړ او ويې فرمايل ، ايا ته و حفصې رض ته داسي د (بريښ) (دم) نه ښيي لکه څنګه چي تا خط ليکل ور زده کړي دي. ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۲۱۵، رقم: ۳۸۸۷،

**تشريح**: شفاء، د عبد الله ابن شمس لور قريشي عدوي ده، ددې اصل نوم ليلى وو او شفاء يې لقب وو ، مګر دومره مشهور سول چي پر اصل نامه باندي هم غالب سول ، هغې د هجرت څخه مخکي اسلام قبول کړی وو ، د لوړي درجې عاقله ښځه وه ، نبي کريم ﷺ به کله ناکله د غرمې د ارام لپاره هغې ته تشريف وړی او هلته به يې ارام کوی ، هغې د رسول الله ﷺ د بسترې انتظام کړی وو چي د آرام په وخت کي به دغه شيان د رسول الله ﷺ په خدمت کي راسي .

د نمله په اړه مخکي هم ښودل سوي دي چي هغه دانو ته نمله وايي چي پر پښتیو باندي راخېږي او ډېر تکلیف رسوي، کوم څوک چي په دغه دانو اخته سي هغه ته داسي محسوس کېږي لکه چي د هغه دانو په ځای کي مېږيان ګرځي او غالبا د دغه مناسبت څخه دغه دانو ته نمله ويل کېږي، بي بي شفاء به په مکه کي د دغه نمله د دفع لپاره يو دم وايه ، کله چي هغې اسلام قبول کړ او رسول الله ﷺ هجرت وکړ مدينې ته نو دا هم هلته اوسېدل او رسول الله ﷺ ته يې عرض وکړ چي اې د الله رسوله ! ما به د جاهليت په زمانه کي د نمله د دفع لپاره يو دم کوی اوس غواړم چي هغه دم تاسو ته واوروم ، چي په دې باره کي ما ته حکم راکړئ چي ايا د دغه دم کول جائز دي که يا ؟ رسول الله ﷺ د هغه دم په اورېدو سره د هغه په ذريعه د دم کولو اجازه ورکړه بيا يې ورته وفرمايل چي دغه دم بي بي حفصې ته هم وښيه .

د رقيه نمله څخه مراد هغه کلمات دي چي د عربو په ښځو کي مشهوري وې چي هغوی به ورته رقيه نمله ويل، کنه نو د نمله چي کوم حقيقي دم وو هغه خو په اصل کي د خرافاتو يوه مجموعه وه چي د هغه د ويلو څخه رسول الله ﷺ منع فرمايلې ده ، څرګنده ده چي رسول الله ﷺ د هغه دم حکم ولي ورکړ او هغه مشهور کلمات چي د عربو ښځو به ورته رقيه نمله ويل هغه دادي : (العروس تنتعل و تختضب وتكعل وكل شئ تفتعل غير انها ولا نقصى الرجل) يعني ناوې بايد لاره وباسي او ښکلا وکړي ، لاسونه او پښې سره کړي ، رانجه ولګوي ، هغه خبره کوي مګر د خاوند نافرماني نه کوي .

ځيني حضرات وايي چي د رسول الله ﷺ شفاء ته دا ويل چي حفصې ته د نمله دم وښيه، دا په حقيقت کي د تعريض په توګه وو او د هغې يو خاص مقصد دا وو چي رسول الله ﷺ خپلو ښځو ته د يو راز خبره کړې وه مګر بي بي حفصې هغه څرګنده کړه ، د دې ذکر د قرآن کريم په سورة تحريم کي هم سوی دی ، رسول الله ﷺ شفاء ته د ذکر سوي ارشاد په فرمايلو سره بي بي حفصې ته نصيحت وکړ او هغه يې خبرداره کړه چي تا زما د راز په څرګندولو سره د خاوند نافرمانې کړې ده چي نه يوازي ستا د مقام او مرتبې خلاف خبره ده بلکه د وفا شعاري ښځي د هغه خصوصيت هم خلاف ده چي هغه د خاوند نافرماني کول نه خوښوي .

په يوه حديث کي ښځو ته د ليک ښوونې څخه منع نقل سوې ده ، رسول الله ﷺ وفرمايل : (لا تعلم الكتابة) ، د دې پر خلاف په دغه حديث کي د دې جواز ثابتېږي ، کېدای سي چي د دغه حديث تعلق د هغه وخت سره وي کله چي رسول الله ﷺ دغه منع نه وه فرمايلې ، يعني د منع حديث وروسته وي او دلته چي کوم حديث نقل سوی دی هغه مخکي وي ، ځيني حضرات په دې

اړه وايي چي د رسول الله ﷺ د ازواجو مطهراتو يو خاص حيثيت وو په دې وجه په ځينو احکامو او فضائلو کي هغوی هم خاص ساتل سوي دي، نو د منع تعلق د نورو ټولو ښځو سره دی او د هغوی په دغه فتنه کي اخته کېدل عين ممکن دي کوم چي د ذکر سوي منع بنياد دی، حال دا چي د ازواج مطهراتو په اړه داسي تصور هم نسو کيدای سي ځکه هغوی ته د ليک زده کولو اجازه وه.

خطابي رحمة الله عليه وايي دا حديث ددې دليل دی چي ښځو ته ليک ښودل مکروه دي او ملا علي قاري رحمة الله عليه ويلي دي: کېدای سي چي هغه وخت ښځو لره ليک زده کول جائز وه مګر په فتنه او فساد کي د اخته کېدو د بيري په وجه وروسته د ښځو لپاره جائز نه وي، ځيني حضرات وايي چي د ليک زده کولو ذکر سوی حکم يوازي د بي بي حفصې رضي الله عنها لپاره وو د نورو ښځو لپاره نه وو.

## د بد نظر يوه واقعه

﴿۴۳۶۲﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ قَالَ رَأَى عَامِرُ بْنُ رَبِيعَةَ

د ابو امامه بن سهل بن حنيف رضي الله عنه څخه روايت دی چي عامر بن ربيعه چي سهل بن حنيف په

سَهْلَ بْنَ حُنَيْفٍ يَغْتَسِلُ فَقَالَ مَا رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ وَلَا جِلْدَ مُخْبَأَةٍ فَلُبِطَ

غسل کولو باندي وليدی نو هغه وويل، قسم په خدای چي د نن ورځ پشان هيڅ ورځ ما نه ده ليدلې او نه د يوې پيغلي انجلۍ د بدن پوست مي د ده د پوست په شان ليدلي دی،

سَهْلٌ فَأُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ لَكَ فِي

د راوي بيان دی، د دې الفاظو د هغه د ژبي څخه په وتلو سره سهل بن حنيف پر ځمکه را ولوېدی وروسته هغه پورته کړل سو او د نبي کريم ﷺ په خدمت کي يې حاضر کړ او عرض وسو اې د الله رسوله! ايا تاسو به

سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ وَاللَّهِ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ فَقَالَ هَلْ تَتَّهِمُونَ لَهُ أَحَدًا قَالُوا نَتَّهِمُ

د سهل د علاج و لور ته توجه وکړئ؟ قسم په خدای نن دی خپل سر هم نه سي پورته کولای، نبي کريم ﷺ وفرمايل: ستاسو په چا باندي ګمان دئ چي هغه نظر کړی دی، خلکو وويل: زموږ

عَامِرَ بْنَ رَبِيعَةَ قَالَ فَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامِرًا فَتَغَيَّظَ

خیال دئ چي عامر بن ربیعه نظر کړی دی ، د راوي بیان دی چي نبي کریم ﷺ عامر بن ربیعه را وغوښت او هغه ته یې سخت الفاظ وویل ،

عَلَيْهِ وَقَالَ عَلَامَ يَقْتُلُ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ أَلَّا بَرَّكْتَ اغْتَسِلْ لَهُ فَغَسَلَ عَامِرٌ

بیا یې وفرمایل: په تاسو کي ولي یو څوک مسلمان قتلوي ؟ تا ولي ورته د برکت دعا و نه کړه ؟ بیا یې و هغه ته وفرمایل: اوس ته خپل اندامونه په اوبو سره پرېوله (او په سهل باندي هغه اوبه پنا کړه) عامر

وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ وَمِرْفَقَيْهِ وَرُكْبَتَيْهِ وَأَطْرَافَ رِجْلَيْهِ وَدَاخِلَةَ إِزَارِهِ فِي قَدَحٍ ثُمَّ

خپل مخ ، لاسونه ، څنګلي ، پښې د پښو د ګوتي بندونه او د نامه لاندي عضوه پرېوله ، او په

صُبَّ عَلَيْهِ فَرَاحَ مَعَ النَّاسِ لَيْسَ لَهُ بَأْسٌ. رواه في شرح السنة و رواه مالك

و في روايته قال ان العين حق توضا له فتوضا له.

یوه کاسه کي یې هغه اوبه راټولي کړې او بیا یې هغه اوبه په سهل باندي پنا کړې ، سهل په دې کار سره د خلکو سره روان سو او څه تکلیف ورته پاته نه سو. شرح السنه ،او د مالک په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي نبي کریم ﷺ و عامر ته وفرمایل: نظر حق دی ته د سهل لپاره اودس وکړه نو هغه اودس وکړ او اوبه یې په نظر سوی باندي پنا کړې .

**تخریج**: موطا الامام مالک ۲\۹۳۹، رقم: ۲، والبغوي في شرح السنة ۱۲\ ۱۶۴، رقم: ۳۲۴۵.

**د لغاتو حل**: مخباة: هي الجارية لم تتزوج بعد (ستی )

**تشریح**: نووي رحمه الله وايي : د علماوو په نزد د نظر سوي لپاره د نظر کونکي د اوداسه صورت دادی چي د کوم چا په اړه دا تحقیق وي چي هغه نظر کړی دی نو د هغه مخته دي په یو لوښي وغیره کي اوبه راوړل سي او لوښی دي پر ځمکه نه ایږدي بیا نظر کونکی دی د هغه لوښي څخه یوه لپه اوبه واخلي او خوله دي په پرېولي او هغه اوبه دي په لوښي کي واچوي بیا دي اوبه واخلي مخ دي په پرېولي ، بیا دي په چپه لاس کي اوبه واخلي او راسته ټوټه دي پریولي او په راسته لاس دي اوبه واخلي او چپه لاس دي پرېولي ، د تلي او ټوټې په مینځ کي چي کوم ځای دی هغه دي نه پرېولي ، بیا دي راسته پښه او د هغه وروسته دي چپه پښه پریولي بیا دي همدا رنګه راسته کونډه او بیا چپه کونډه پریولي په پای کي دي د پرتاګه دننه د نامه لاندي

بدن پرېولي او د غه تول اندامونه دي په هغه لوښي کي پرېولي ، د دغه اندامونو د پرېوللو څخه وروسته دي هغه اوبه پر نظر سوي کس باندي د شا له خوا پر سر واچول سي ، څرګنده دي وي چي داسي علاج کول د اسرار او حکم سره تعلق لري چي د عقل او پوهي د رسېدو څخه وتلی دی نو په دې اړه عقلي بحث کول بې ګټي دی .

مارزي رحمة الله علیه ويلي دي : د ذکر سوو اندامو د پرېوللو حکم د وجوب په توګه دی، نظر کونکی سړی په داسي کولو باندي مجبوره کېدای سي چي هغه د نظر سوي کس لپاره په ذکر سوې طريقه سره او دس وکړي ، او د دغه حکم خلاف ورزي کول د انسانيت څخه ليري خبره ده ، په خاصه توګه په داسي صورت کي کله چي د نظر سوي کس د هلاکېدو بېره وي .

قاضي عياض رحمة الله علیه ويلي دي: کوم څوک چي د نظر کولو په اړه مشهور او معروف سي نو د هغه څخه ځان ساتئ او د هغه مخته د نه راتلو احتياط لازم دی ، او د هيواد د پاچا لپاره مناسب ده چي داسي سړی د خلکو په مينځ کي د تلو راتلو څخه منع کړي او پر هغه دا پابندي ولګوي چي هغه دي په خپل کور کي دننه اوسيږي، د کور څخه دباندي دي نه راوځي، که هغه سړی اړ او فقير وي نو د بيت المال څخه د ګزارې په اندازه تنخواه به ورته ټاکل کيږي ، خلاصه دا چي د داسي سړي ضرر د جزامي د ضرر څخه هم زيات سخت دی نو په دې اړه احتياط کول لازم دی .

امام نووي رحمة الله علیه د دغه قول تائيد کړی دی او وايي دا څه چي بيان سوي دي بالکل صحيح دي ځکه چي په دې اړه په علماوو کي د هيڅا اختلاف زموږ په علم کي نسته .

## پناه غوښتل

﴿۴۳۶۳﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدری رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به

يَتَعَوَّذُ مِنَ الْجَانِّ وَعَيْنِ الْإِنْسَانِ حَتَّى نَزَلَتِ الْمُعَوِّذَتَانِ فَلَمَّا نَزَلَتَا أَخَذَ بِهِمَا

د پېريانو او د انسانانو د نظر څخه پناه غوښتله ، تر دې پوري چي معوذتين يعني سورة قل اعوذ برب الفلق او سورة قل اعوذ برب الناس نازل سوه کله چي دا سورتونه نازل سوه نو نبي کريم ﷺ به د دې په ذريعه پناه غوښتله

وَتَرَكَ مَا سِوَاهُمَا . رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث

غريب حسن.

او د نوزو شيانو په ذريعه باندي پناه غوښتل يې پرېښودل. ترمذي او ابن ماجه. په ترمذي كي دا حديث حسن غريب دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۴۵، رقم: ۲۰۵۸، وابن ماجه ۲\۱۱۶۱، رقم: ۳۵۱۱.

## مغربون د انسان سره پيرى

﴿۴۳۶۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ ﷺ هَلْ رُئِيَ فِيكُمُ الْمُغَرِّبُونَ قُلْتُ وَمَا الْمُغَرِّبُونَ قَالَ الَّذِينَ يَشْتَرِكُ فِيهِمُ الْجِنُّ. رواه ابوداؤد و ذكر حديث ابن عباس خير ماتداويتم في باب الترجل.

د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روايت دى چي نبي كريم ﷺ و ماته وفرمايل: ايا په تاسو كي مغربون ليدل سوي دي؟ ما وويل: مغربون څه شي دي؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل: مغربون هغه خلك دي چي پېريان په كښي شريكيږي . ابوداؤد، د ابن عباس رضي الله عنه حديث : خير ماتداويتم په باب الترجل كي بيان سوى دى. (په حديث شريف كي راځي كه انسان د خپلي كوروالا سره جماع كوي او د جماع په وخت كي د خداي تعالى نوم وا نه خلي يعني دا دعا و نه وايي بسم الله جنبنا الشيطان و جنب الشيطان ما رزقتنا نو شيطان خپل بدن د هغه سره يو ځاى كوي او د هغه د ښځي سره جماع كوي. د بي بي سره د كورولي په وخت كي بسم الله الرحمن الرحيم ويل پكار دي او د شيطان څخه د خداي تعالى په نامه پناه غوښتل پكار ده).

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۳۳، رقم: ۵۱۷۰.

**تشريح**: په حديث كي راغلي دي كه يو سړى د خپلي ښځي سره د كوروالي كولو په وخت كي د الله جل جلاله ذكر و نه كړي يعني دغه دعاء و نه وايي : (بسم الله اللهم جنبنا الشيطان و جنب الشيطان ما رزقتنا)، نو پر هغه شيطان اثر كوي، په دې توګه چي شيطان د هغه د بدن سره خپل بدن او د هغه د ستر سره خپل ستر يو ځاى كوي او د هغه ښځي سره كوروالي كوي، داسي شيطان د هغه سړي نطفه او د هغه په كېدونكي اولاد كي ګډيږي، لكه څرنګه چي په قرآن كي هم فرمايل سوي دي : (وشاركهم في الاموال والاولاد)، د دې څخه معلومه سوه چي د مغربون معنى هغه خلك

دي چي د کوروالي په وخت کي د الله ﷻ د ذکر څخه مخ اړوي او خپل نفس د ذکر څخه ليري کوي، يا هغوی د جماع په وخت کي د الله ﷻ د ذکر څخه غفلت اختياروي يعني د زوجيت په وظيفه کي شيطان خپل شريک ګرځوي او په پيدا کېدونکي د خپل جنس څخه ليري کوي او په خپل نسل کي پردی، وينه ګډوي، د جماع وخت د غفلت وخت وي ځکه په دغه وخت کي احتياط او هوښياري اختيارولو سره د الله ﷻ ذکر يعني ذکر سوې دعاء ويلو سره بېداره او سيدل پکار دي کنه نو اعوذبالله او بسم الله دي خامخا وايي، چي د دغه بلا او فتنې څخه خوندي سي، ځرګنده دي وي چي د نن سبا په بچيانو کي چي عامه بې لاره، فتنې او فساد لېدل کيږي د هغه سبب د دغه حديث په رڼا کي بالکل ځرګند دی چي خلک په عامه توګه سره ذکر سوې دعاء هېره کړې ده او د هغه نتيجه داسي چي پيدا کېدونکی نسل په پوره توګه سره د شيطان اثرات ښکار وي. ځيني حضرات وايي چي د شيطان د ګډون مطلب دادی چي شيطان هغه خلک زنا ته راغب کوي او د هغوی په نظر کي بدکاري ښه وراندي کوي چي د هغه په وجه هغوی په دغه بدۍ کي اخته کېدو سره د هغه خلکو ښځي زنا ته مائله کوي او هغوی د پرديو خلکو سر ملوث کوي او د هغه په نتيجه کي نالائق اولاد پيدا کيږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د معدې جوړښت

﴿۴۳۶۵﴾: عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمِعْدَةُ حَوْضُ الْبَدَنِ وَالْعُرُوْقُ إِلَيْهَا وَارِدَةٌ فَإِذَا صَحَّتِ الْمِعْدَةُ صَدَرَتِ الْعُرُوْقُ بِالصِّحَةِ وَإِذَا فَسَدَتِ الْمِعْدَةُ صَدَرَتِ الْعُرُوْقُ بِالسَّقَمِ. رواه البيهقي.

د حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: معده د بدن حوض دی او د بدن رګونه د حوض په لور راځي يعني د انساني بدن د اعضاؤ رګونه و دې حوض ته تړلي دي، کله چي معده صحيح وي نو دا رګونه د بدن صحت قائم ساتلو لپاره د معدې څخه روغ مواد حاصلوي او کله چي معده خرابه وي نو رګونه خراب مواد په حاصلولو سره د ناروغۍ سبب ګرځي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٥\٦٦، رقم: ٥٧٩٦.

**تشریح**: مطلب دادی چي د انسان بدن او د هغه د معدې په مينځ کي هغه نسبت دی کوم چي د اوبو د تالاب او د درختي په مينځ کي دی، څرنګه چي د يو تالاب غاړه يا په اوبو کي ولاړه درخته د خپل رګ او ريښو په ذريعه د اوبو څخه لنډبل تر لاسه کوي همدارنګه د انسان بدن د مختلفو رګونو په ذريعه د خپل معدې څخه د صحت او طاقت لنډبل تر لاسه کوي، که اوبه پاکي او خوږې وي نو هغه د درختي د تازګي او ښه نما سبب جوړيږي او که اوبه خيرني او ترخې وي نو هغه د درختي د مړې کېدو او وچېدو سبب جوړيږي .

صحيح خبره داده که چيري حديث شريف پر طب نبوي باندي محمول کړل سي نو په دغه صورت کي به د ذکر سوي ارشاد خلاصه دا وي چي د انسان اقوال او افعال د هغه د خوراک مطابق وي که د يو سړي په نس کي حرام خوراک داخليږي نو د هغه د بدن د اندامو څخه به حرام افعال او اقوال صادريږي ، همدارنګه که د يو سړي په نس کي د خوراک څېښناک پالتو او غير مناسب شيان وي نو د هغه د بدن هر اندام به فضول او غير مناسب افعال صادروي، ددې پر خلاف د کوم سړي په نس کي چي حلال او پاک خوراک وي نو د هغه د اندامو او بدن څخه به صالح او پاک اعمال صادريږي ، يعني د انسان خوراک د هغه د افعالو تخم دی او افعال د نما په درجه کي دي او د هغه په نس کي چي څرنګه خوراک وي د هغه د اندامو څخه به هم هغسي افعال څرګنديږي لکه چي ويل سوي دي : (کل اناء يترشح بما فيه) يعني د هر لوښي څخه هغه شی څڅيږي کوم چي په هغه کي دننه وي، ځکه نو الله ﷻ فرمايي : (کلو من الطيبات واعملوا صالحا)، او د رسول الله ﷺ ارشاد دی : (من نبت لحمه من سحت فالنار اولی به) .

ځينو محدثينو ددغه حديث په اړه کلام کړی دی او ځينو موضوع ګرځولی دی، او وايي چي لا اصل له، يعني ددغه حديث اصل نسته، مګر حقيقت دادی چي ددغه حديث په اړه دا ويل چي باطل دی او اصل يې نسته غير صحيح خبره ده ځکه چي د تعدد طرق په سبب او د طبراني او بيهقي د روايت په وجه دې ته تقويت تر لاسه کيږي او په دې وجه دغه حديث ته بېله شکه حسن يا ضعيف ويل کيدای سي .

## د لړم چيچلو درملنه

﴿۴۳۶۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ بَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ يُّصَلِّيْ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه شپه رسول الله ﷺ لمونځ کوی چي

فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ فَلَدَغَتْهُ عَقْرِبٌ فَنَاوَلَهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

خپل لاس مبارک يې پر مځکه کېښېښودی نو يوه لړم وچيچی، نو نبي کريم ﷺ هغه په چپلکه

وَسَلَّمَ بِنَعْلِهِ فَقَتَلَهَا فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ لَعَنَ اللهُ الْعَقْرَبَ مَا تَدَعُ مُصَلِّيًا وَلَا

وهلو سره ووژی، بيا چي نبي کريم ﷺ د لمانځه څخه فارغه سو نو يې وفرمايل: پر لړم دې د خداي تعالی لعنت وي، نه لمونځ ګزاره پرېږدي او نه

غَيْرَهُ أَوْ نَبِيًّا وَغَيْرَهُ ثُمَّ دَعَا بِمِلْحٍ وَّمَاءٍ فَجَعَلَهُ فِيْ إِنَاءٍ ثُمَّ جَعَلَ يَصُبُّهُ عَلَى

بې لمانځه يا دايې وفرمايل: چي نه نبي پرېږدي او نه غير نبي، د دې څخه وروسته نبي کريم ﷺ مالګه او اوبه را وغوښتلې او په يوه لوښي کي يې دواړه واچول او په هغه کي به يې خپله

إِصْبَعِهِ حَيْثُ لَدَغَتْهُ وَيَمْسَحُهَا وَيُعَوِّذُهَا بِالْمُعَوِّذَتَيْنِ. رواهما البيهقي في شعب الإيمان.

ګوته مبارکه لنده کوله او پر مورېل به يې، وروسته يې قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس و لوستل او پر هغه يې چف کړل. دا دواړه حديثونه په بيهقي په شعب الايمان کي روايت سوي دي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\۵۱۸، رقم: ۲۵۷۵.

## د نبي ﷺ په ويښته برکت

﴿۴۳۶۷﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ أَرْسَلَنِي أَهْلِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ

د حضرت عثمان بن عبد الله بن موهب رحمه الله څخه روايت دی چي زما مېرمني و ماته يوه پياله راکړه چي بي بي ام سلمه رضي الله عنها ته يې ولېږم،

بِقَدَحٍ مِنْ مَاءٍ وَكَانَ إِذَا أَصَابَ الْإِنْسَانَ عَيْنٌ أَوْ شَيْءٌ بَعَثَ إِلَيْهَا مِخْضَبَهُ

رواج دا وو چي کله به څوک نظر سو يا څه ناروغي به سوه نو بي بي ام سلمه رضي الله عنها ته به د اوبو يوه پياله لېږل کېده،

فَأَخْرَجَتْ مِنْ شَعْرِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَتْ تُمْسِكُهُ فِيْ جُلْجُلٍ

ام سلمې ﷞ به د نبي كريم ﷺ وربښته مبارك راكښې چې د سپينو زرو په يوه نلكه كې بند وو او هغه وربښته به يې په اوبو كې اچوى او حركت به يې وركوى او وروسته به يې هغه اوبه په ناروغه باندې څښنلې ، د راوي بيان دى ،

مِنْ فِضَّةٍ فَخَضْخَضَتْهُ لَهُ فَشَرِبَ مِنْهُ قَالَ فَاطَّلَعْتُ فِي الْجُلْجُلِ فَرَأَيْتُ شَعَرَاتٍ حُمْرَاءَ . رواه البخاري.

ما د سپينو زرو په هغه نلكه كې وكتل نو په هغه كې د نبي كريم ﷺ څو سره وربښتان مباركان وه . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۵۲، رقم: ۵۸۹٦.

**تشريح**:طيبي ﷫ وايي : دلته د سپينو زرو استعمال د وېښته مبارك د تعظيم لپاره وو، لكه څرنگه چې پر كعبه شريفه باندې د ريشمو ټوكر اچول كيږي، او كوم چې د هغه وېښتانو د سوروالي تعلق دى نو كېداى سي چې وېښته مبارك په خلقي توگه سور وو ، دا هم كېداى سي چې هغه په نكريزو وهل سوى وي چې د هغه په وجه هغه سور وو، يا هغه په خوشبويي كې اېښودل سوى وي څكه د هغه خوشبويي په وجه د هغه رنگ متغير سوى وي او هغه سور معلومېدى .

## د پوڅكۍ خواص

﴿۴۳٦۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوهريره ﷜ څخه روايت دى چې د رسول الله ﷺ د اصحابو څخه يو كس

قَالُوا لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَمْأَةُ جُدَرِيُّ الْأَرْضِ فَقَالَ رسول

رسول الله ﷺ ته وويل: پوڅكۍ د مځكې چيچك دى ، نبي كريم ﷺ وفرمايل:

الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ وَالْعَجْوَةُ مِنَ

پوڅكۍ د من د قسم څخه دى او د هغې اوبه د ستر گو لپاره شفاء ده او عجوه خرما د جنت خرما

الْجَنَّةِ وَهِيَ شِفَاءٌ مِنَ السُّمِّ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَأَخَذْتُ ثَلَاثَةَ أَكْمُؤٍ أَوْ خَمْسًا أَوْ

ده او په دې کي د زهرو څخه د شفاء خاصيت دی، د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي ما درې، پنځه يا اووه پوڅکۍ واخستلې

سَبْعًا فَعَصَرْتُهُنَّ وَجَعَلْتُ مَاءَهُنَّ فِيْ قَارُوْرَةٍ وَكَحَلْتُ بِهِ جَارِيَةً لِيْ عَمْشَاءَ فَبَرَأَتْ . رواه الترمذي وقال : هذا حديث حسن .

او د هغوی اوبه مي و نښتېښلې او د هغو د اوبو څخه مي يو بوتل ډک کړ بيا ما د يوې مينزي په سترګو کي هغه اوبه رانجه کړلې نو هغه ښه سوه . ترمذي ويلي چي دا حديث حسن دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۵۱، رقم: ۲۰۶۸.

**د لغاتو حل**: العمش: ضعف في الرؤية مع سيلان الماء.

**تشريح**: پوڅکۍ د مڼکي چيچک دی: مطلب دادی چي څرنګه د چيچک دانې په اصل کي په بدن کي پيدا کېدونکي ناقص فضلات وي چي د پوست څخه راوځي همدارنګه پوڅکۍ هم د مڼکي فضله مواد دي چي د مڼکي څخه راوځي، صحابه کرامو دغه خبره د پوڅکۍ د بدوالي په توګه وکړه مګر رسول الله ﷺ د هغوی د خيال رد کولو لپاره د پوڅکۍ فضيلت او د هغه ګټې بيان کړې چي پوڅکۍ د من څخه دي، يعني دا هم د الله تعالی د نعمتونو څخه يو نعمت دی چي هغه خپلو بندګانو ته د احسان په توګه ورکړي دي، دهغه د ترلاسه کولو لپاره نه خو د مڼکي غارولو ضرورت وي او نه د اوبو ورکولو ضرورت وي بلکه دا په خپله د مڼکي څخه پيدا کيږي او د ډېرو خلکو د خوراک ضرورت پوره کوي .

ځيني حضرات وايي چي رسول الله ﷺ ددغه جملې په ذريعه پوڅکۍ ته د من سره مشابهت ورکړ چي د حضرت موسی علیه السلام پر قوم به نازلېدل، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي څرنګه د حضرت موسی علیه السلام پر قوم باندي بېله محنته او تکليفه من نازلېدی همدارنګه دغه پوڅکۍ هم د تخم د محنت او تکليف څخه پرته د مڼکي څخه راوځي ، دغه قول زيات صحيح دی ځکه چي په يوه روايت کي دا فرمايل سوي دي چي : (الكماة من المن والمن من الجنة) يعني پوڅکۍ د من څخه دي او من د جنت د نعمتونو څخه يو نعمت دی .

او د هغه اوبه د سترګو لپاره شفاء دي: په دې باره کي امام نووي رحمه الله ليکلي دي چي د ځينو علماوو په نزد محض د پوڅکۍ اوبه د سترګو لپاره شفاء دي، او ځيني حضرات دا وايي

چي د هغه اوبه په هغه صورت کي شفاء ورکوي کله چي په هغه کي د سترګو د ناروغيو مطابق نوري دواوي يو ځای کړل سي او د ځينو په نزد دا تفصيل دی که چيري د سترګو ګرمی ته يخوالی رسول وي يعني سترګي د ګرمی په وجه خوږيږي نو يوازي د هغه اوبه ګټوري دي کنه نو په نورو صورتو کي د هغه اوبه د نورو دواوو سره په يوځای کولو په سترګو کي اچول ګټور دي، مګر صحيح خبره داده چي په هر صورت کي د هغه اوبه په سترګو کي اچول ګټور دي، د ځينو مشائخو په اړه نقل سوي دي چي د هغوی بنائي بالکل له منځه تللې وه مګر هغوی د رسول الله ﷺ پر ارشاد په باور کولو سره په خپلو سترګو کي محض د پوځکۍ اوبه اچول پېل کړل نو الله جل جلاله د هغوی دښه عقيدې او د رسول الله ﷺ د ارشاد په برکت د هغوی سترګو ته کامله شفاء ورکړل.

## د شاتو فضيلت

﴿۴۳۶۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَعِقَ الْعَسَلَ ثَلَاثَ غَدَوَاتٍ كُلَّ شَهْرٍ لَمْ يُصِبْهُ عَظِيمٌ مِنَ الْبَلَاءِ. رواه ابن ماجة والبيهقي

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي په هره مياشت کي درې ورځي د سهار په وخت شات وخوري نو هغه بيا په هيڅ يو لوئ مصيبت او بلا کي نه مبتلا کيږي. ابن ماجه او بيهقي.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۱۴۲، رقم: ۳۴۵۰، والبيهقي في شعب الايمان ۵\۹۷، رقم: ۵۹۳۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي د شاتو په برکت او خاصيت سره لوی مصيبت او بلا دفع کيږي که هغه د يو سختي ناروغی په صورت کي وي يا په بل صورت کي وي.

د سفر السعادت مصنف ليکلي دي: نبي کريم ﷺ به هره ورځ په يوه پياله کي عسل د اوبو سره په يو ځای کولو څښنل، علماوو ليکلي دي چي د عسلو په اوبو کي يو ځای کول او څښنل د روغتيا د ساتني لپاره هغه نعمت تر لاسه کيږي چي د هغه په معرفت عارفين ښه پوهيږي، د عسلو بې شمېره ګټي او خواص دي، چي د هغو په وجه د طبيبانو دا تحقيق او فيصله ده چي عسل ښله شکه يو داسي نعمت الهي دی چي د هغه بدل هيڅ شی نسي کيدای، د جالينوس وينا ده چي په خاصه توګه د ناروغانو لپاره د عسلو څخه غوره هيڅ شی نسته، طبيبان وايي چي په نهاره د عسلو څښنل يا څټل بلغم ليري کوي، معده پاکوي، فضلات ليري کوي، معتدې ته په

اعتدال سره ګرمي رسوي ، ددې څخه پرته هر ډول رياح (بادونه) زائل کوي ، بولي، حيض او شيدې جاري کوې ، د مثانې او ګردې ډبرې ماتوي او رطوبت دفع کوي .

﴿۴۳۷۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ بِالشِّفَاءَيْنِ الْعَسَلِ وَالْقُرْآنِ. رواهما ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان وقال والصحيح ان الخبر موقوف على ابن مسعود.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دوه صحت ورکونکي شيان په ځان باندي لازم کړئ (يعني د هغوی استعمال خامخا کوئ)(۱)- عسل (۲)- قران، دا دواړه حديثونه ابن ماجه او بيهقي په شعب الايمان کي روايت کړی دي او ويلي يې دي چي اصل خبره داده چي اخير حديث پر حضرت ابن مسعود رضي الله عنه باندي موقوف دی .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۱۴۲، رقم: ۳۴۵۲، والبيهقي في شعب الايمان ۲\۵۱۹، رقم: ۲۵۸۱

**تشريح**: د عسلو دغه فضيلت ځکه دی چي په دې کي شفاء کېدل د قرآن کريم څخه ثابت دي، لکه څرنګه چي الله تعالی فرمايلي دي : (فيه شفاء للناس) يعني په دغه (عسلو) کي د خلکو لپاره شفاء ده، او خپله قرآن کريم هم د انساني کائناتو لپاره شفاء او رحمت دی لکه چي الله تعالی فرمايلي دي : (هدی وشفاء لما في الصدور) يعني دغه قرآن د زړونو د ناروغيو لپاره هدايت او شفاء دی، مګر په دغه دواړو کي فرق دادی چي عسل خو محض د ظاهري ناروغيو لپاره شفاء دي او قرآن کريم د ظاهر او باطن يعني بدن او روح دواړو ناروغيو لپاره شفاء دی، ځکه چي د قرآن کريم په اړه هدی و شفاء فرمايل سوي دي .

## بې ضرورته پر سر دويني کښلو اثر

﴿۴۳۷۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ كَبْشَةَ الْأَنْمَارِيِّ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ

د حضرت ابو کبشه انماری رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د يوه زهر لرونکي پسه د

عَلٰى هَامَتِهِ مِنَ الشَّاةِ الْمَسْمُوْمَةِ قَالَ مَعْمَرٌ فَاحْتَجَمْتُ أَنَا مِنْ غَيْرِ سَمٍّ

غوښي په وجه په خپل سر مبارک کي (د وينو د کښلو په خاطر) رګ ولګوی .د دې حديث د يو راوي ((معمر)) بيان دی زما په بدن کي د د زهرو څه اثر نه وو

كَذٰلِكَ فِيْ يَافُوْخِيْ فَذَهَبَ حُسْنُ الْحِفْظِ عَنِّيْ حَتّٰى كُنْتُ أُلَقَّنُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ فِيْ الصَّلَاةِ. رواه رزين.

مگر ما په خپل سر کي رگ وواهه چي په هغه سره زما حافظه ولاړه تر دې پوري چي ما ته په لمانځه کي الحمد لله ويل کېدل (بل چا به راته ويل). رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د دې ځخه معلومه سوه چي د يو علت او سبب ځخه پرته د سر ځخه وينه کښل ضروري گرځول او پر سر باندي ښکر لگول او وينه کښل قوت حافظه ته د تاوان رسولو سبب دی.

**دويني کښلو ورځ**

﴿۴۳۷۲﴾: وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ يَا نَافِعُ تَبَيَّغَ بِيَ الدَّمُ فَأْتِنِي بِحَجَّامٍ

د حضرت نافع رضي الله عنه ځخه روايت دی چي ابن عمر رضي الله عنه وويل: اې نافع! زما په بدن کي وينه جوش کوي، ته وينه کښونکی را وغواړه

وَاجْعَلْهُ شَابًّا وَلَا تَجْعَلْهُ شَيْخًا وَلَا صَبِيًّا قَالَ وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ سَمِعْتُ رَسُولَ

ليکن ځوان را وله، کوچنی يا سپين ږيری مه راوله، د نافع بيان دی د دې ځخه وروسته ابن عمر رضي الله عنه وويل: ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ځخه دا اورېدلي دي

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْحِجَامَةُ عَلَى الرِّيقِ أَمْثَلُ وَهِيَ تَزِيدُ فِي الْعَقْلِ

چي فرمايل يې: وينه کښل په نهاره زيات بهتره دي، په دې سره عقل قوي کيږي

وَتَزِيدُ فِي الْحِفْظِ وَتَزِيدُ الْحَافِظَ حِفْظًا فَمَنْ كَانَ مُحْتَجِمًا فَيَوْمَ الْخَمِيسِ

او حافظه په تېزيږي او د چا حافظه چي ښه وي د هغه حافظه قوي کيږي، نو څوک چي وينه کښل غواړي نو هغه دي د خداي تعالى نوم واخلي (بسم الله الرحمن الرحيم) او د پنجشنبې په

عَلَى اسْمِ اللّٰهِ وَاجْتَنِبُوا الْحِجَامَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَيَوْمَ السَّبْتِ وَيَوْمَ الْأَحَدِ

ورځ دي وينه وکاږي او د جمعې، شنبې او د يکشنبې په ورځو کي دي وينه نه کاږي، بيا دي د

وَاحْتَجِمُوا يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالثُّلَاثَاءِ وَاجْتَنِبُوا الْحِجَامَةَ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ فَإِنَّهُ

دوشنبې او سه شنبې په ورځو کې د يې و کاږي او د چهار شنبې په ورځ دي وينه نه کاږي

الْيَوْمُ الَّذِي أُصِيبَ فِيهِ أَيُّوبُ بِالْبَلَاءِ وَمَا يَبْدُو جُذَامٌ وَلَا بَرَصٌ إِلَّا فِي يَوْمِ الْأَرْبِعَاءِ أَوْ لَيْلَةِ الْأَرْبِعَاءِ. رواه ابن ماجة.

ځکه چې د چهار شنبې ورځ هغه ورځ ده چې په هغه کې حضرت ايوب عليه السلام په مصيبت کې اخته سو. او د جذام او پيس ناروغي د چار شنبې په ورځ يا شپه باندي ښکاره کيږي. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۱۵۳، رقم: ۳۴۸۷.

**تشريح**: چې په هغه کې حضرت ايوب عليه السلام په مصيبت اخته سو، ددې څخه په ظاهره دا معلوميږي چې د حضرت ايوب عليه السلام په مصيبت کې اخته کېدل له دې کبله وو چې هغه د چارشنبې په ورځ وينه کښلې وه او کوم چې ددې خبري تعلق دی نو مفسرينو د هغه په مصيبت کې د اخته کېدو نور هم اسباب بيان کړي دي، نو کېدای سي چې د هغه اسبابو څخه يو سبب دا هم وي، علماوو ليکلي دي چې په دوهم فصل کې د بي بي کبشه رضي الله عنها بنت ابي بکر چې کوم روايت تېر سوی دی د هغه څخه دا ثابتيږي چې د سه شنبې په ورځ وينه کښل مناسب نه دي حال دا چې دلته د هغه پر خلاف بيان سوی دی نو ددغه دواړو روايتو په مينځ کې دا تضاد ددغه قول په ذريعه ليري کېدای سي که چيري د بي بي کبشه رضي الله عنها روايت صحيح ومنل سي نو دلته په نقل سوي روايت کې به د سه شنبې څخه مراد هغه سه شنبه وي کوم چې د مياشتي په اووه لسم تاريخ واقع کيږي لکه څرنګه چې د راتلونکي روايت څخه هم څرګنديږي.

د روايت د آخري الفاظو په ذريعه چې کوم حصر بيان سوی دی چې د جزام ناروغي يوازي د چارشنبې په ورځ يا د چار شنبې په شپه کې پيدا کيږي نو دغه حصر د اکثر په اعتبار او د مبالغې په توګه دی.

﴿۴۳۷۳﴾: وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت معقل بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:

اَلْحِجَامَةُ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ لِسَبْعَ عَشَرَةَ مِنَ الشَّهْرِ دَوَاءٌ لِدَاءِ السَّنَةِ. رواه

رزين. رواه حرب بن إسماعيل الكرماني صاحب أحمد وليس إسناده بذاك هكذا في المنتقى وروى رزين نحوه عن أبي هريرة.

د سې شنبې په ورځ په اوولسم تاريخ وينه كښل د كالو سر د ناروغيو دوا ده . رزين، امام احمد بن حنبل رح مصاحب حرب بن اسماعيل كرماني روايت و كړ ، د دې حديث اسناد قابل اعتماد نه دی . په (المنتقیٰ) كي دا سي د رزين او نورو د حضرت ابو هريره ﷺ څخه داسي روايت و كړ .

**تخريج**: نيل الاوطار شرح منتقى الاخبار ۸\۲۰۸، رقم: ٦.

**تشريح**: د سه شنبې په ورځ دويني كښلو په اړه مختلف روايتونه نقل سوي دي ځكه نو غوره او مناسب داده چي د سه شنبې په ورځ د ويني كښلو څخه پرهېز وكړل سي تر څو چي سخته اړتيا رامنځته نسي .

## د سحر (جادو) احكام

په دغه باب كي د دم، تعويذ او داسي نورو شيانو اړوند احكام او مسائل بيان سوي دي، اوس كله چي باب ختميږي نو اړينه ده چي په دغه مناسبت سره د سحر او جادو احكام او اقسامو ته ناڅه تفصيل وكړل سي ، ددې لپاره په خاصه توگه د شاه عبدالعزيز محدث دهلوي رحمه الله منقولات منتخب سوي دي چي هغه د آيت كريمه : (واتبعوا ما تتلوا الشياطين) سره سم د سحر اقسام او احكام په وضاحت كي بيان كړي دي، ددغه معقولاتو او فرموداتو ترجمه او خلاصه او ددې په رڼا كي څو نوري خبري هم نقل كيږي .

بايد پوه سو چي د سحر د حكم مختلف صورتونه دي كه چيري سحر كونكى يو داسي قول او فعل اختيار كړي چي د كفر موجب وي لكه د بُتانو، پيريانو او ارواح خبيثه نومونه يې په داسي تعظيم او صفت سره ذكر كړي وي چي هغه يوازي د رب العزت شان وي د مثال په توگه ددغه بتانو وغيره لپاره عموم علم ، قدرت ، تصرف او غيب داني وغيره ثابت كړي وي يا د غير الله لپاره يې ذبح كړې وي يا غير الله ته يې سجده كړې وي ، او داسي نور، نو داسي سحر به بېله شكه كفر وي او هغه سحر كونكى به مرتد گرځول كيږي، همدارنگه كوم څوک چي د خپل يو مطلب د تر لاسه كولو لپاره داسي سحر زده كړی وي نو هغه هم كافر كيږي نو پر هغه به د ارتداد احكام نافذ كيږي كه هغه سړی وي نو درې ورځي وخت به وركول كيږي كه په درو ورځو كي هغه صحيح توبه ونه كړل نو هغه دي ووژل سي او د هغه مړی دي وغورځول سي ، د مسلمان په

ډول دي د هغه كفن او ښخول نه كيږي او نه دي هغه د مسلمانانو په هديره كي ښخيږي، او نه فاتحه ، درود او صدقاتو په ذريعه هغه ته ثواب ور رسيږي، او كه هغه ښځه وي نو د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب مطابق هغه ته د نارينوو په ډول د درو ورځو وخت وركولو څخه وروسته دي قتل كړل سي حال دا چي د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد ښځه دي د تل لپاره بندي كړل سي تر څو چي هغه توبه نصوح ونه كړي او كه په سحر كي يو داسي قول او فعل نه وي چي د ارتداد كفر موجب وي مگر سحر كونكى دډې دعوا وكړي چي زه د خپل دغه جادو په ذريعه هغه كار كولاى سم كوم چي الله جل جلاله يې كوي د مثال په توگه انسان د حيوان په شكل بدلولاى سم ، يا لرگي ډبري او ډبري لرگي گرځولاى سم ، يا داسي كار كولاى سم چي پيغمبر يې كولاى سي او د هغه د معجزو په ډول زه هم معجزه ښودلاى سم ، د مثال په توگه زه په هواء كي الوتلاى سم يا د يوې مياشتي مسافت په يوه گړي كي كولاى سم نو هغه هم ددغه دعوې په وجه مرتد او كافر گرځي نه د نفس سحر په سبب، كه هغه داسي ووايي چي زما په عملياتو كي يو خاصيت او هغه دا چي زه د خپل عمل او جادو په ذريعه يو ساه لرونكى شى وژلاى سم ، يا يو ناروغ روغ كولاى سم ، يا زه د خلكو خيالاتو ښه او بد جوړولاى سم نو دهغه دغه سحر به د درواغ ويلو او د فسق اختيارولو په حكم كي وي او هغه سحر كونكى به فاسق او كاذب وي، او كه چيري هغه د خپل دغه عمل په ذريعه يو بې گناه څوک هلاک كړي نو هغه ته دي د قزاق او قاتل په ډول د مرگ سزا په وركولو سره قتل كړل سي ځكه چي هغه د خپل دغه عمل په ذريعه فتنه او فساد خپرونكى او د بې خلكو په هلاكت كي اچونكى دى ، په دې اړه به د ساحر او ساحرې په مينځ كي هيڅ فرق نه كيږي .

په يوه روايت كي د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه څخه دا منقول دي چي د كوم سړي په اړه دا معلومه سي چي هغه سحر كوي او د اقرار او تنبيه په ذريعه دا خبره ثابته سي نو هغه بايد ووژل سي ، هغه ته د توبې ويلو او وخت وركولو اړتيا نسته ، كه چيري هغه ووايي چي زه سحر پرېږدم او توبه كوم نو د هغه خبره دي نه منل كيږي ، مگر كه چيري داسي ووايي چي ما مخكي سحر كوى مگر د يو وخت څخه مي دغه كار پرې ايښى دى نو د هغه دغه قول دي قبول كړل سي او هغه دي معاف كړل سي .

امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي : كه يو سړى سحر وكړي او د هغه د سحر په وجه سحر زده مړ سو نو د ساحر څخه جواب طلب كول پكار دي كه هغه اقرار وكړي چي ما په دغه سړي سحر كړى وو او زما اكثر سحر په اكثرو وختو كي سړى وژني نو پر هغه به قصاص وي او كه داسي ووايي چي

ما په دغه سړي سحر کړی وو او زما سحر کله څوک وژني او کله یې نه وژني نو دغه قتل به د شبه عمد په حکم کې وي او پر هغه به د شبه عمد احکام جاري کیږي او که هغه داسي ووایي چې ما په بل چا سحر کړی وو مگر ناڅاپه د هغه سړی نوم هم هغه وو کوم چې د دغه سړي وو یا هغه پر هغه ځای تېر سي چیري چې د هغه بل چا لپاره سحر سوی وو او په دې وجه د هغه اثر پر دغه سړي وسو او هلاک سو نو دا به د قتل خطا په حکم کې وي او پر هغه ساحر به د قتل خطاء احکام جاري کیږي.

دلته یو سوال پیدا کیږي چې په اکثرو ذهنو کې اندېښنه پیدا کیږي او هغه دا چې خرق عادت افعال چې محض په قدرت الهي سره صادریږي اکثر د اولیاء الله په ذریعه څرگندیږي لکه تقلیب اعیان، تبدیل صورت یا دا ډول هغه افعال چې د پیغمبرانو د معجزو مشابه وي لکه مړي ژوندي کول یا د لیري سفر په یوه گړي کې پرې کول، ددې څخه پرته د اولیاء الله څخه داسي نور هم ډېر شیان ثابت دي چې هغوی د اولیاء الله په مناقبو کې لیکلي دي، که چیري افعال الهي غیر الله ته منسوب کول کفر وي نو د اولیاء الله څخه صادرېدونکي د خرق عادت افعال په صورت کې هم کفر لازمېدل پکار دي او که دا وویل سي چې د اولیاء الله څخه کوم خارق العادت فعل صادریږي نو هغه په حقیقت کې د هغوی فعل نه وي بلکه د الله تعالی قدرت او دهغه په حکم سره وي، او اولیاء الله د هغه فعل د صادر کېدو یو ظاهري سبب او ذریعه وي نه حقیقي فاعل، بلکه ددې څخه پرته دعاء، تعویذ کونکی او عاملین چې د خپلو عملیاتو او دعاوو په ذریعه د ساحرانو په ډول څومره محیر العقول کارونه کوي.

او همدارنگه هغوی په پوره توگه د ساحرانو مشابه وي نو دهغوی پر افعالو هم د کفر اطلاق ولي نه کیږي او د هغوی او ساحرانو په مینځ کې فرق ولي کیږي؟ ددې جواب دادی چې خارق العادت افعال د معجزاتو مشابه وي که څه هم بل ډول وي ټول د الله تعالی په قدرت کې دي او د هغه په ارادې او حکم سره او د هغه په پیدا کولو سره صادریږي، په دې اعتبار سره د اولیاء الله په لاس ظاهرېدونکي خرق عادت افعال او د ساحرانو څخه صادرېدونکي خارق العادت افعالو کې هیڅ فرق نسته ځکه چې د اولیاء الله څخه کوم شیان د کرامت په صورت کې صادریږي هغه هم یوازې د الله تعالی په حکم او ارادې سره پیدا کیږي، مگر په دغه دواړو صورتو کې چې کوم فرق دی او د کوم فرق په وجه چې د کفر او عدم کفر حکم لگیږي هغه دادی چې اولیاء الله یا دعاء او عاملینو ددغه افعالو نسبت غیر الله ته نه کوي بلکه د الله تعالی قدرت یا د هغه اسماوو ته یې کوي ځکه پر هغوی د کفر او شرک اطلاق نه کیږي، حال دا چې ساحران دغه

افعال غیر الله یعني ارواح خبیثه ، بتانو وغیره ته کوي ځکه هغوی دغه افعال په خپل واک او خپل حکم کي کښي، او د هغه افعالو په عوض کي مزدوري اخلي ، د دغه پیریانو او بتانو په نامه د نذر او قرباني کولو مطالبه کوي او ښکاره ده چي دغه شیان شرک او کفر لازموي، ددې مثال داسي دی لکه چا ته بچی ورکول ، په رزق کي پراخي تر لاسه کېدل او د ناروغی څخه شفاء تر لاسه کول او داسي نور کارونه د الله تعالی افعال دي او د هغه د حکم او ارادې لاندي دي مګر ګمراه خلک ددې نسبت ارواح خبیثه ، پیرانو او فقیرانو ته کوي او وايي چي موږ د فلاني پیري څخه زوی غوښتی وو نو هغه موږ ته راکړ ، موږ د فلاني په نامه نذر منلی وو نو هغه موږ ته په رزق کي پراختیا راکړل او موږ فلاني بزرګ او فقیر ته خواست کړی وو او ددې مقصد لپاره د هغه پر مزار مو نذر کړی وي نو هغه موږ ته شفاء راکړه، یعني د هغوی په نزد ددغه شیانو ورکونکی الله تعالی نه دی بلکه غیر الله دی، نو داسي خلک کافر کیږي ، ددې پر خلاف الله منونکي او د هغه پر احکامو باندي عمل کونکي خلک ددغه شیانو لپاره جائز ذرائع او اسباب لکه دعاء، تعویذ، دم یا علاج مرسته اخلي نو هغوی ته په خپل مقصد کي کامیابي تر لاسه کیږئ نو ددغه امورو نسبت الله تعالی ته کوي او دا عقیده لري چي موږ ته کوم شی تر لاسه سوی دی هغه د الله تعالی له لوري راکړل سوی دی ، مګر د هغه په تر لاسه کېدو کي د اسماء الهي، دعاوو او تعویذ تاثیر یا د دواء خواص د یو ظاهري سبب او ذریعې درجه لري ، له دې کبله د هغوی په ایمان کي څه خلل نه پیدا کیږي .

# د سحر تعریف او حقیقت

دلته دا ښودل اړین دي چي د سحر تعریف او حقیقت څه شي دی؟ او د سحر کوم ډول د کفر سبب دی ، کوم د فسق سبب دی او کوم ډول مباح دی؟ یعني په شریعت کي جائز دی، ددې تفصیل که څه هم اوږد دی مګر په اجمالي توګه باید په دې پوه سو چي د سحر حقیقت او تعریف دادی چي د دعاوو او اسماء الهي د عملیاتو وغیره په ذریعه د الله تعالی څخه مرسته او اعانت تر لاسه کولو پر ځای د خفیه اسباب مزاولت (یعني دمخفي طاقتونو بندګي او د هغوی د تسخیر په ذریعه خوارق عادات او افعال عجیبه باندي قدرت تر لاسه کول . او د هغه خوارق عادات او افعال عجیبه نسبت قادر مطلق (الله جل جلاله) ته د کولو پر ځای غیر الله ته کوي، او په عالم کي اسباب خفیه پر څو ډوله دي، ځکه د سحر هم ډولونه متعدد دي چي هغه په داسي ډول فهمول کېدای سي چي هغه خفیه سبب یا خو د روحانیت تاثیر دی یا د جسمانیت تاثیر ، بیا

روحانیت یا خو کلیه مطلق دی لکه کواکب او افلاک یا د عناصرو روحانیت یا هغه روحانیت جزیه خاصه دی لکه امراض او د جن او شیاطینو روحانیت، او هغه ارواح چي د انساني بدن څخه راوځي او د هغه په مسخر کولو سره د خپل مقصد لپاره استعمالیږي ، کوم چي د جسمانیت تعلق دی نو هغه یا خو ترکیب او د اجتماع د کیفیاتو د سبب څخه تاثیر کوي چي د هغه څخه عجیب او غریب خبري ځرګندیږي یا د خواصو د سبب څخه تاثیر کوي یعني د هغوی صورت نوعیه د یو ترکیب او اجتماع کیفیات د توسط څخه پرته په خپله تاثیر کوي لکه ځرنګه چي آهن روبا او سپنه راکشوي .

پاته سوه دا خبره چي هغه روحانیت یعني هغه پټ او مخفي طاقتونو څخه مناسبت ځرنګه تر لاسه کیږي او د هغوی تاثیر ځرنګه مائل کیږي نو ددې مختلفي طریقې دي ، ځیني خلک په یو ځو خاصو شرطو سره د هغه روحانیت نوم اخلي او د مقصد د تر لاسه کولو لپاره هغوی ته ملتجي کیږي ، ځیني خلک د هغه د عکس په جوړولو سره د هغه په وړاندي نذر مني او هغه کار کوي چي هغوی ته خوښ وي، یا په خاصه طریقه او خاصو شرطو سره ځیني حروف او الفاظ بېله د ترکیب د لحاظ څخه وایي چي د هغه په ذریعه هغوی دغه روحونه د یو روح لویې یا داسي عجیب او غریب کار ته اشاره کوي چي د هغه څخه کله نا کله سوی وي او د هغه په وجه عام او خاص د هغه په مدح او ثناء کي رطب اللسان سوي وي، خلاصه دا چي د سحر کولو مختلف عملیات او مختلف صورتونه دي او د هغه عملیاتو او صورتونو په نتیجه کي د سحر مقصد او ډېر ډولونه مخته راځي مګر کوم قسمونه چي زیات مشهور دي هغه یو څو دي او په هغو کي لومړی ډول چي تر ټولو لوی ګڼل کیږي د کلدانیانو او بابل سحر دی، او د هغه د باطل کولو لپاره حضرت ابراهیم عليه السلام را استول سوی وو ، ددغه سحر د علم اصل د هاروت او ماروت څخه را روان دی، ویل کیږي چي د بابل خلکو د هاروت او ماروت څخه ددغه سحر علم او طریقه زده کول او بیا یې د هغه په ذریعه خپل مقصد تر لاسه کوی، او په هغه کي یې مختلف تحقیق او تجربې کړي وې او دغه علم یې ډېر پراخ کړی وو ، همدارنګه کلدانیان چي په بابل کي اوسېدل ددغه علم تر لاسه کولو لپاره مختلف تکلیفونه او هڅي کولې او ددې په ذریعه یې نوي شیان پیدا کول .

د تاریخ په معتبرو کتابو کي لیکلي دي چي د بابل حکیمانو او ددغه فن ماهرینو د نمرود په زمانه کي په خپل ښار بابل کي چي د نمرود دار السلطنت وو ددغه سحر په ذریعه داسي شېږ حیرانونکي طلسمات جوړ کړي وه چي د هغو حقیقت او کیفیات د انساني پوهي او ذهن څخه

لور وو، لومړی طلسم دا وو چي هغوی د مسي يوه هيلۍ جوړه کړې وه چي ښار ته به يې د ناخوښه او مضرو کسانو د داخلېدو خبر ورکوی، کله چي به د بل هيواد څخه يو جاسوس، دښمن، غل يا بل ناخوښه کس داخل سو نو د هغه هيلۍ څخه به يو خاص آواز راوتی، د ښار ټول خلک به د هغه آواز په اورېدو سره د هغه په مقصد پوه سول او هغه جاسوس وغيره به يې ونيوی

دوهم طلسم دا وو چي هغوی يوه نغاره جوړه کړې وه، ددې لپاره چي کله به په ښار کي د يو سړي څخه يو شی ورک سو نو هغه به نغاره ووهل چي د هغه په نتيجه کي به د هغه نغارې څخه داسي آواز وتی چي ستا فلانی شی په فلاني ځای کي دی، نو د پلټني څخه وروسته به هغه شی په هغه ځای کي تر لاسه سو.

دريم طلسم دا وو چي هغوی د ورک سوي سړي د پلټني لپاره يوه هنداره جوړه کړې وه، کله چي به په ښار کي د يو چا د کور څخه يو سړی غائب سو نو هغه به هنداري ته راغلی او په هغه کي به يې د خپل ورک سوي کس حال کتی، که چيري هغه ورک سوی کس به په يو ښار کي وو يا په ځنګل وغيره کي وو، همدارنګه هغه ناروغ وو، روغ وو يا مفلس وو يا شتمن وو، خلاصه دا چي هغه به په کوم ځای کي او په کوم حال کي وو هغه حال او ځای به په هنداره کي څرګندېدی.

څلورم طلسم دا وو چي هغوی حوض جوړ کړی وو چي د هغه پر غاړه به د کال په پېل کي يو جشن جوړېدی، د ښار ټول سرداران او معزز کسان به د خپل خوښي د څښناک په اخيستلو سره د هغه حوض پر غاړه يو ځای کېدل او کوم چا چي به د ځان سره کوم څښناک راوړی وو هغه به يې په هغه حوض کي غورځوی، بيا به ساقيانو د هغه حوض پر غاړه باندي په درېدو سره په خلکو څښښل پېل کړل او د هغه حوض څخه به يې را کښل او ورکول يې نو هر سړي ته به هغه خوښ څښناک تر لاسه کېدی کوم چي به يې د ځان سره راوړی وو.

پنځم طلسم دا وو چي هغوی د خلکو د جګړې ختمولو لپاره يو تالاب جوړ کړی وو، کله چي به د دوو کسانو په مينځ کي يوه جګړه رامنځته سوه او دا به نه معلومېدل چي کوم يو پر حق دی او کوم يو ناحقه دی، نو دواړه کسان به د هغه تالاب غاړې ته راتلل او بيا به په هغه کي لوېدل نو کوم سړی چي به پر حق وو د هغه تالاب او به د هغه د نامه تر لاندي پوري راتللې او هغه به نه غرقېدی او کوم سړی چي به پر حق نه وو نو او به د هغه سړي پر سر راغلې او هغه به يې ډوب کړ، مګر کله چي به هغه د مخالف کس حق ومنی او خپل د درواغو دعوه به يې پرېښودل نو بيا به د غرقېدو څخه وژغورل سو.

شپږم طلسم دا وو چي هغوی د نمرود د ماڼۍ په مېدان کي يوه درخته لګولې وه چي د هغه په

سایه کي به د دربار خلک ناست وو، د خلکو شمېر چي به څومره زیاتېدی په هغه اندازه به سایه هم زیاتېدل، تر دې که چیري شمېر به یو لک ته ورسیدی نو سایه به هم زیاتېدل او که چیري د دغه شمېر څخه بهٔ یو سړی هم زیات سو نو بیا به سایه بالکل ختمېدل او ټول خلک به په لمر کي ناست پاته سول، ویل کیږي چي په دې اړه نه یوازي د بابل خلکو برخه اخیستل بلکه د هغوی پاچا نمرود هم په دې کي ډېره برخه درلودل او د دغه علم یې پوره سرپرستي کول، ویل کیږي چي د سحر دغه ډول تر ټولو زیات سخت او مشکل دی، مگر که یو سړی د سخت تکلیف او ریاضت څخه وروسته د دې حقیقت ته ورسیږي او په دغه فن پوه سي نو بیا هغه ته دومره طاقت او قدرت تر لاسه کیږئ چي هغه د انسان عادت مخالف امورو ظاهرولو او د انساني عاداتو موافق امورو منع کولو باندي هم قادر کیږي. د مثال په توگه هغه د هغه ناروغیو علاج هم کولای سي چي د هغه د معالجې څخه د دنیا طبیبان عاجزه وي د مثال په توگه ابرص، جزام او داسي نور، ځکه چي داسي سړی د روحانیاتو یعني طاقتونو په ذریعه تدابیر او عمل کوي او طبیب د جسمانیت په ذریعه تدبیر کوي.

کله چي حضرت ابراهیم علیه السلام پیدا سو او الله تعالی پر هغه باندي د اجسامو او ارواحو ټول حقیقتونه څرگندل کړل او هغه هر جسم او روح د قادر مطلق تر قدرت لاندي مجبور او بې کسه ولېدل نو د ټولو څخه په مخ گرځولو سره ذات واحد حقیقي ته متوجه سول لکه څرنگه چي الله تعال ید قرآن کریم په سورة انعام کي فرمایي: (وَكَذَٰلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ ........ وَمَا أَنَاْ مِنَ الْمُشْرِكِينَ).

ژباړه: موږ په داسي توگه ابراهیم (علیه السلام) ته د اسمانو او مځکي مخلوقات وښودل چي هغه عارف سي او د کامل یقین کونکو څخه سي بیا چي د شپې تیاره پر هغه خپره سوه نو یو ستوری یې ولېدی نو هغه وویل دا زما رب دی بیا چي هغه ډوب سو نو هغه وویل زه غروب کېدونکي سره محبت نه کوم، بیا چي ځلانده سپوږمۍ یې ولېدل نو هغه وویل دغه زما رب دی، بیا چي هغه ډوبه سوه نو هغه وویل که زما رب ما ته هدایت ونه کړي نو زه به په گمراهانو خلکو کي سم، بیا چي کله ځلانده لمر یې ولېدی نو هغه وویل دا زما رب دی دا تر ټولو لوی دی، بیا چي کله هغه هم ډوب سو نو هغه وویل: اې قومه! بېله شکه زه ستاسو د شرک څخه بېزاره یم زه خپل رخ هغه ذات ته کوم چي هغه اسمانونه او مځکه پیدا کړي دي او زه د شرک کونکو څخه نه یم.

څرگنده دي وي چي د سحر کوم ډول مخکي ذکر سوی دی هغه خاص کفر او شرک محض

دی ځکه چي د دغه سحر علم تر لاسه کول د پنځلسو شرطونو پر پابندي موقوف دی، چي په هغو کي تر ټولو لومړی او بنیادي شرط دادی چي ارواح عالم الغیب او احوال قلب خبردار ومنل سي او په هغوی د عجز او جهل ګمان هیڅکله ونه کړل سي کنه نو بیا به هغه ارواح د هغه خبره بالکل نه مني او مقصد ته به یې نه رسوي.

د کواکبو او سیاراتو روحانیت یعني د هغوی د قوتونو د مرستي تر لاسه کولو او د هغوی تاثیر متوجه کولو لپاره چي کومه طریقه بیانیږي هغه داده چي مخکي د روحانیت قمر تاثیر ددغه الفاظ د ورد په ذریعه متوجه کوي: (ایها الملک الکریم والسید الرحیم مرسل الرحمة ومنزل النعمة) او د عطارد تاثیر او متوجه کېدو او تر خپل اثر لاندي راوستلو لپاره ددغه الفاظو ورد کیږي: (کل ما حصل لي من السحر فهو منک وکل ما یندفع من الشر مني فهو منک). د نورو کواکبو (ستورو) او سیاراتو څخه د مرستي تر لاسه کولو او د هغوی د تاثیر متوجه کولو لپاره چي کومو الفاظ مرسته اخیستل کیږي هغه هم پر دې قیاس کیدای سي، ښکنده ده چي داسي عقیده درلودل کوم چي ددغه الفاظو څخه څرګندیږي او داسي الفاظ د ژبي څخه وتل د عقیده توحید، اسلامي تعلیماتو او ملت حنفي خلاف دي.

د سحر دوهم ډول هغه دی چي په هغه کي جنات او شیاطین مسخر کیږي او د هغوی څخه مرسته اخیستلو مقصد تر لاسه کیږي، دغه ډول سهل الحصول هم دی او کثیر الرواج هم دی، جناتو او شیاطینو په دغه تسخیر کي چي د کوم شیانو اختیارول ضروري دي په هغو کي د ځینو خاصو الفاظو او اعمالو په ذریعه د هغوی سره د تعلق پیدا کولو څخه پرته د هغوی تابعداري کول، د هغوی په نامه نذر کول، د هغوی خوښه خوشبویي وغیره د هغوی د راتلو پر ځایو اېښودل، چیري چي د هغوی راتلل تصور وي هلته د لاس په جوړ کولو سره کښېښستل او هغوی په خپل وړاندي موجود ګڼلو سره هغوی ته زاري کول او هغوی ته د حاجت التجا کول او داسي نور خاص اعمال دي، او ددغه ټولو شیانو څخه صریح کفر لازمیږي.

د سحر دریم ډول هغه دی چي په هغه کي هغه انساني ارواح مسخر کیږي چي هغوی بدن پرې ایښی وي، ددغه ډول اختیارولو لپاره تر ټولو وړاندي ددې خبري ضرورت وي چي د یو داسي مړ انسان معلومات وکړل سي چي قوي الجثه او قوي القلب تېر سوی وي، بیا دځینو خاصو عملیاتو او خاصو الفاظو د ورد په ذریعه د لوی جناتو ذکر او دهغوی ډېر زیات تعظیم او توقیر باندي مشتمل مضامین دي، هغه ارواح خپلي خوا ته متوجه کیږي نو د هغه الفاظو او عملیات په زور سره او د نذر اېښودو په ذریعه هغه روح داسي په خپل واک او اختیار کي

راوستل کیږي چې د غلام او نوکر په ډول هغه ته چې کوم حکم ورکول کیږي هغه تر سره کوي، دغه عمل هم کفر لازموي یا کفر ته نژدې دی او اغلب داده چې داسې ارواح چې په دغه سفلي او شهواني عملیاتو په ذریعه متوجه کیږئ په اصل کې د هغه انسانانو ارواح دي چې د کفر، شرک، فسق او خبث په حالت کې مړه سي نو دغه عمل په سحر کې د خباثت مخالفت هم لازمیږي.

د سحر څلورم ډول هغه دی چې په هغه کې د ځینو جناتو د ارواحو په ذریعه د یو سړي په خیالاتو او تصوراتو کې خلل اچوي او د هغه ذهن فاسد کوي چې هغه ته د حقیقت د خلاف څه معلومیږي یا هغه د خپل صورت هائله متخیله څخه بیریږي یا غیر واقعي شیان واقعي ګڼل پیل کړي، د سحر دغه ډول ته نظر بندي یا خیال بندي وایي، ځینو مفسرینو د آیت کریمه: (یخیل الیه من سحرهم انها تسعی) سره سم ویلي دي چې د فرعون د ساحرانو سحر دغه ډول وو چې د حضرت موسی علیه السلام ورسره واسطه راغلې وه، د حضرت موسی علیه السلام په خیال کې هغه ټول لرګي او رسۍ ماران معلومېدل چې د فرعون جادوګرانو د هغه د بیرولو لپاره د هغه په مخکې اچولي وه، همدا رنګه که چیري سحر د نبي د معجزې په مقابله کې وي چې د هغه د نبوت دلیل او شهادت ختم کړل سي نو د حرام او ګناه کبیره په حکم کې به وي او که د هغه نظر بندۍ مقصد یو سړي په دوکه کې اچول وي یا د یو سړي عزت او ابرو یا د هغه په مال کې خباثت کول وي نو د ګناه کبیره په حکم کې به وي، د دې څخه معلومه سوه که چیري د سحر دغه ډول که څه هم بنفسه کفر نه دی مګر د یو سړي پر خیالاتو او تصوراتو باندي د اثر لپاره، یا داسې به وو وایو چې د هغه د نظر بندۍ د کامیابه کېدو لپاره د جناتو د ارواحو څخه مرسته غوښتل یا التجا کول ضروري وي نو په دې سره کفر لازمیږي په شرط د دې چې په هغه مرسته او اسماوو کې د هغه جناتو د ومره زیات تعظیم او توقیر وکړل سي چې د توحید د عقیدې خلاف وي.

د سحر پنځم ډول هغه دی چې په هغه کې انسان خپله د خپل خیال او د حواس خمسه قوتونه په دماغ کې په یو ځای کولو سره کمال یکسوئي پیدا کولو سره یو داسې قوت او قدرت تر لاسه کوي چې د هغه په ذریعه هغه خیال چې د هغه په قوت متخیله کې وي (او د هغه تر لاسه کول غواړي) په مشکل کولو سره مخته راولي او د بدني طول او عرض او عمق حدودو او قیوداتو څخه د ازادۍ تر لاسه کولو سره د سمریزم په طاقت سره شعبده ښیي او په یوه نظر سره دوه متصل شیان په متصل کولو سره ښیي او دوه بېل بېل شیان په یو ځای کولو سره ښیي، د سحر د دغه ډول هم اوس نوم او نښان نسته مګر په پخوا زمانه کې په هندوستان کې په ځینو پخوانیو قومو کې دا ډول سحر ډېر رواج وو، د دغه ډول سحر د تر لاسه کولو لپاره د نورو ډېرو شرطو

سره سره دوه تر ټولو زيات ضروري او اهم شرطونه په خوراک او څښناک کي بالکل کمي او د خلکو څخه بېلوالي اختيارول دی، په دې باره کي شرعي حکم دا دی که چيري ددغه سحر په ذريعه د يو مباح شي تر لاسه کول مقصد وي لکه د دوو زناکارو په مينځ کي بېلوالي راوستل يا د يو ظالم وژل نو د سحر دغه ډول به جائز وي او که د يو منع شي تر لاسه کول مقصد وي لکه د ښځي او خاوند په مينځ کي بېلوالی راوستل يا يو معصوم انسان هلاکول نو بيا دغه ډول سحر به هم حرام وي.

د سحر شپږم قسم هغه دی چي د دواوو يا مخفي شيانو په معلومولو سره د هغه په ذريعه عجيب او غريب شيان ښودل کيږي، او عام خلک ددغه مخفي خواصو څخه بې علمه وي، ځکه اکثر فقيران او پيران په خپلو حېلو سره خلک پر ځان عاشق کوي، د مثال په توګه يو سړی دا غواړي چي زه په خلکو کي د خپل کرامت څرګندولو لپاره خپل ګوتي ځلانده کړم نو د هغه طريقه داسي اختياروي چي لږ سره نوره په کابلۍ سورکه کي په خشتولو سره د هغه سره لږ د درياب ځګ يو ځای کړل سي او بيا ګوتو ته د هغه ليپ ورکړل سي او کوم ځای چي ليپ ورکړل سي هلته رال وڅخول سي اوس د خلکو په يو داسي مجلس کي چيري چي شمع يا څراغ لګيږي هغه ګوته د څراغ د رڼا په وړاندي راځي نو هغه ګوته به ځلانده سي او نه سوځي.

د سحر اووم ډول هغه دی چي په هغو کي د ايجاد سوو عجيب او غريب آلاتو په مرسته ځينو شيانو ته په ترکيب ورکولو سره حيرانونکي کارونه تر سره کيږي، هغه آلات اېجادول په عامه توګه په مختلفو علومو او فنو کي پر تعمق او تحقيق باندي منحصر وي، ويل کيږي چي د فرعون د ساحرانو جادوګري په نظر بندۍ او شعبده بازۍ سره داسي فني مهارت وو چي نن سبا سائنسي ايجادات هم په دغه ډول کي شاملېدای سي.

د سحر اتم ډول هغه دی چي په هغه کي د لاس د صفائي په ذريعه مختلف کارونه ښودل کيږي او خلک ورته حيرانيږي، د سحر په دغه ډول کي د لاس د سرعت سره يو څو خاص پټ حرکات هم وي.

د سحر دغه درې آخري ډولونه نه خو کفر دي او نه حرام دي مګر که چيري د يو حرام کار د تر لاسه کولو لپاره ذريعه وګرځول سي نو بيا د حرمت حکم ثابتيږي.

څرګنده دي وي چي د سحر کوم اته ډولونه بيان سوي دي دا يوازي په لفظي اعتبار دي ځکه چي په عربي ژبه کي سحر يعني جادو هر هغه شي ته وايي کوم چي محير العقول (د عقل حيرانونکي) وي او د هغه سبب د نظرو څخه پټ وي، که د سحر يا جادو اصطلاحي او حرفي

مفهوم او د هغه د مشهور تعريف او حقيقت اعتبار وكړل سي نو په اصولي توګه د سحر درې
ډوله دي يو خو هغه سحر چي په هغه كي د كواكبو او سياراتو د قوتونو څخه مرسته اخيستني
سره محير العقول طلسمات څرګند كړل سي ، دوهم هغه سحر چي په هغه كي د جنات ، شياطين
او مړه انسانانو د ارواحو په تسخر كولو سره حاجت روايي وكړل سي، دريم هغه سحر چي په
هغه كي خپل خيال او د حواس خمسه قوتونه په دماغ كي په جمع كولو سره د نظر بندۍ كمال تر
لاسه كړل سي .

## د سحر بدل څه شي دی ؟

په دې خبره پوهېدل ضروري دي چي د دغه امت اذكياء او عارفين د سحر په ذكر سوو ډولو
كي د اكثر په اصلاح كولو سره او د هغو د بنياد څخه د كفر او شرک غلاظتونه ليري كولو سره
هغه يې د عمليات په صورت كي وړاندي كړي دي چي د هغو څخه مختلف روحاني او بدني
ګټې تر لاسه كېداى سي، د سحر د اول ډول اصلاح دعوت علوي دی، دا هغه عمل دی چي په
هغه كي ملائكه علويه د اسماء الهي او ايات قرآني په مرسته سره مسخر كيږي، د دوهم ډول
اصلاح عزائم او دعوت سفلي دی ، په دغه عمل كي د مځكي مؤكلات او جنات مسخر كيږي
مګر په دغه تسخير كي هم نه د كفر او شرک آميزش وي او نه د غير الله تعظيم او توقير وي،
بلكه دغه جنات او شياطين د حكم او تسلط په ذريعه مسخر كيږي ، د دريم ډول اصلاح هغه
عمليات دي چي د هغو په ذريعه د صالحانو او اولياء الله ارواح طيبه سره ربط او تعلق پيدا
كيږي او په عامه توګه د داسي بزرګانو دغه عمليات اختيارولو سره خپل او د مخلوق خدا په
مقاصد او حوائجو كي ګټه تر لاسه كوي، د دغه عملياتو بناد طهارت، پاكي، تلاوت قرآن،
اوراد او وظائف او هغه ارواحو ته د صدقو او خيراتو ثواب رسولو باندي دی،

د پنځم ډول اصلاح عقد همت دی چي د لوړي درجې مشائخ او صوفيان يې د مشكلاتو د
حل لپاره اختياروي چي په هغو كي بنيادي كار و څخه بې خبري پيدا كولو سره او خپل فكر او
خيال په يو ځاى كولو سره د اسماء الهي څخه د يو پاک اسم په غور او فكر كي د استغراق درجه
تر لاسه كوي ، د شپږم ډول اصلاح هغه عمليات وي چي په هغو كي آيات قراني او د اسماء الهي
په خواصو كي په تحقيق او پلټني كولو سره په هغه خاص تركيب او شرطو سره يا د هغوی د
اعداد په صورت كي نقشونه او تعويذونه ليكل كيږي، يا د دعاوو په ذريعه دم كيږي لكه
څرنګه چي د نقش او تعويذاتو او اورادو په كتابو كي د دې تفصيل ليكلی دی . -

خلاصه دا چي په سحر کي کومه خرابي ده هغه محض له دې کبله ده چي د هغه بنیاد کفر، شرک ، د کواکب (ستورو) ، سیاراتو ، جناتو ، شیاطینو او ارواح خبیثه پر تاثیر باندي اعتقاد دی او د هغه څخه ګټه تر لاسه کول پر دې موقوف وي چي غیر الله ته د مرستي او اعانت التجاء وکړل سي او هغوی حاجت پوره کونکي وګڼل سي، او پر اسبابو او ذرائعو باندي داسي اعتماد وکړل سي ، مسبب یعني د الله تعالی قدرت بالکل پرېښودل سي او کله چي د خرابۍ دغه وجه بالکل لیري سي نو بیا د اصل حرمت او حلت مدار پر اغراض او مقاصدو باندي وي که د یو نیک او مباح مقصد لپاره وي نو د سحر او عملیاتو په طاقت سره ګټه تر لاسه کول به جائز وي او که مقصد یو خراب شی او ناجائز کارو سره اړوند وي نو په دغه صورت کي به د سحر د طاقت څخه ګټه تر لاسه کول ناجائز وي .

## کوم علم چي ګټه رسونکی نه وي د هغه څخه ځان ساتل هوښیاري ده

شاه عبدالعزیز رحمۃ اللہ علیہ د دغه آیت کریمه (واتبعوا ما تتلو الشیاطین ..... ما لا یضرهم ولا ینفعهم ) په تفسیر کي لیکي چي یهودیانو به دغه دواړه ډول سحر زده کولو باندي اکتفاء نه کول کوم چي ډېر بد او قبیح دی بلکه هغوی به خپل وختونه او خپل صلاحیتونه د نورو داسي علومو په تر لاسه کولو کي هم صرف کول چي د علم شریعت او وحي الهي څخه د لیري کېدو ذریعه او سبب جوړېږي نو هغوی به داسي علوم زده کول چي د هغوی لپاره به تاوان کونکي وه ، څه هم نورو ته تاوان نه رسوي او هغوی ته خپله هم ګټه نه تر لاسه کېدل ، نو د هوښیارۍ او عقل تقاضا داده چي انسان د هر هغه علم او فن څخه ځان وساتي چي د ګټي پر ځای یوتاوان رسونکي وي ، ځرګنده دي وي چي د هر سړي په اړه د یو علم بد او معیوب کېدل د درو جهتو څخه د یو جهت په سبب وي ، یو خو دا چي د هغه علم څخه خپل ځان ته یا نورو ته د خوف رسولو بېره وي لکه د سحر او طلسماتو علم، د نجوم علم هم په دې کي داخل دی ځکه چي د دې په ذریعه اکثر خلک د عقیدې په ګمراهۍ کي په اخته کېدو سره خپل اخروي تاوان کوي ، کله چي هغوی د مځکي او کواکب په خپلو ربط ویني او علم نجوم هغوی ته ښیي چي د مځکي پر کره باندي راتلونکي تغیرات او واقعات د اجرام فلکي حرکت او سکون او د سیاراتو د چلېدو تر اثر لاندي وي نو د هغوی په ذهن کي دا خبره کښیني چي په عالم کي کومه حادثه او تغیر رامنځته سوی دی هغه د فلاني ستوري ، فلاني برج او د فلاني درجې د تاثیر په سبب دی ، په دا ډول هغوی د خپلو مقاصدو د تر لاسه کولو امېد یا د مقصد د فوت کېدو له بیري څخه ستورو

او د هغوی بروج او منازل وابسته کوي يعني هغوی دا عقیده جوړوي که فلانی ستوری فلانی برج او فلاني منزل کي داخل سي نو زموږ فلاني مطلب به تر لاسه سي او که فلانی ستوری په فلاني برج کي داخل سي نو زموږ فلان مطلب به تر لاسه نسي ، یعني د هغوی توجه د الله تعالی څخه لیري کیږي چي د هري کټي او تاوان حقیقي مالک دی او د هغوی پر زړه یوه داسي پرده لویږي چي هغوی د نظر الي الله څخه منع کوي .

دوهم دا که چيري هغه علم په خپله تاوان رسونکی نه وي مګر د هغه تر لاسه کونکی دعوه ګر د هغه حقائقو او نکاتو او د هغه باریک او مخفي کونجونو پوري د خپل عدم صلاحیت او عدم استعداد په وجه نسي رسیدای نو څرګنده ده چي داسي سړی چي د علم حقائق او دقائقو ته رسېدل تر لاسه نه کړي نو د هغه علم فاضل او ماهر کېدو څخه پاته سو مګر په جهل مرکب کي خامخا اخته کیږي ځکه د بې صلاحیته خلکو د اسرار او رموز الهیه احکام شرعیه په باره کي بحث او تمحیص کول، د زیاتو فلسفیانو په علومو کي وخت ضائع کول، قضا او قدر ، صبر او اختیار په مسئلو کي تحقیق او پلټنه کول د مسئله توحید وجودي او شهودي پر لاره تلل او د ځینو صحابه کراسو په مینځ کي چي کوم نزاعات او خصومات پیدا سوي وه هغه د علم او تحقیق په نامه څېړل او په هغه پسي لګېدل ، او داسي نور شیان دي چي د ذکر سوو علم په زمره کي شمېرل کیږي، همدارنګه د شعر او شاعرۍ فن علم نه ګڼل کیږي ځکه چي د شعر او شاعرۍ بنیاد د حسن مضامین او ناپاکه خیالاتو او تصوراتو باندي وي او دغه شی د عوامو په حق کي چي د هغوی زړه او دماغ د نفساني خواهشاتو او جذباتو څخه ډک وي ، زهرجن تاثیر لري او په ټولو چارو کي د تخیل پردازۍ او مبالغې ملکه پیدا کوي .

دریم دا چي د شریعت سره په اړوند علوم محموده کي بې ځایه فکر او تعمق وکړل سي او په دې کي د افراط او تفریط څخه کار واخیستل سي لکه د عقائدو او توحید په علومو کي باریکۍ را ایستل او نور شرعي علوم او قواعدو کي د عقل او منطلق غیر موزون او غیر ضروري نکتې وکړل سي او په فقهي احکامو او مسائلو کي بې ځایه لټون کولو سره بې اصل حیلې او نادر روایات او اقوال بیان کړل سي همدارنګه د سلوک او ریاضت په علم کي داسي اصول او قواعد او اعمال او اشغال داخلول چي د جوګیانو وغیره طریقه ده ، یا د عوت اسماء الهي او نورو عملیاتو کي د سحر او طلسماتو اصول او قواعد ګډول یا د انبیاء علیهم السلام په قصو او حالاتو کي د یهودو او روافضو په ډول د معاندینو د دروا غو قصې او روایات اورول یا هغه بیانول چي هغه عقائد وغیره هم په دغه حکم کي شامل دي .

خلاصه دا چي د علم کوم ډولونه بیان سول د هغو متوقع ګټي خلکو ته نه رسیږي بلکه د هغوی لپاره تاواني وي ، یهودیانو به په عامه توګه دا ډول بې مقصده او بې ګټي علومو کي بوخت او مصروف وو او د اصل علومو محموده څخه يې مخ ګرځولی وو .

============

## بَابُ الْفَالِ وَالطِّيْرَةِ (د ښه او بد فال بیان)

فال په اصل کي مطلق شګون ته وایي مګر په عامه توګه د دغه لفظ استعمال د ښه فال په معنی کي استعمالیږي ، د نېک فال مطلب دادی چي د یو ښه خبري اوریدل یا یو ښه شي ته کتل چي د هغه څخه د خپل مقصد تر لاسه کېدو توقع پیدا سي ، د مثال په توګه یو سړی ناروغ وي او په دغه تردد کي وي چي روغ به سم که یا ، په دغه حالت کي هغه واوري چي څوک یا سالم وایي ، یا یو سړی د جنګ په میدان کي وي او د یو چا سره يې ملاقات وسو چي د هغه نوم ظفرخان یا فتح علي وو ، یا د مثال په توګه یو سړی د یو شي غوښتونکی وي یا د هغه څخه یو شی ورک سوی وي او د هغه پلټنه کوي نو په دغه دوران کي د هغه غوږ ته یا واجد آواز راسي ، ځیني حضرات وایي چي کله لفظ د فال په بدۍ سره هم استعمالیږي لکه چي ویل کیږي چي فلانی شي واقع کېدل خراب فال دی یا د ژبي څخه خرابه خبره را ایستل بد فالي ده .

طیرة : د تطیر (یعني بدفالۍ اخیستلو) مصدر دی لکه څرنګه چي خیره د تخیر مصدر دی ، ددغه دوو الفاظو څخه پرته د بل یو لفظ مصدر پر دغه وزن نه راځي ، د طیره استعمال یوازي د بدفالۍ په مفهوم دی مګر ځیني حضراتو دلته مطلق فال یعني د شګون په معنی کي اخیستی دی که هغه ښه فال وي یا بد فال وي .

د تطیر اصل او د هغه وجه تسمیه داده چي د جاهلیت په زمانه کي عربو دا ډول فال اخیستی چي کله به يې یو کار کوی ، یا په سفر به تلل نو یو مرغه یا هوسی به يې وشړل ، که چیري هغه به راسته خوا ته ولاړل نو دا بهٔ يې مبارک ګڼی او نېک فال به يې اخیستی او بیا به يې هغه کار پیل کوی ، یا به په سفر روانېدی ، او که چیري هغه مرغه یا هوسی به چپه خوا ته ولاړی نو هغه به يې بد ګڼی او د هغه کار څخه بهٔ منع کېدی .

څرګنده دي وي چي د ښکار هغه حیوان ته سنوح یا سانع وایي چي د چپې خوا څخه راسته خوا ته ولاړ سي او د ښکار هغه حیوان چي د راسته خوا څخه چپه خوا ته ځي هغه ته بروح یا بارح وایي ، عربو به سنوح ښه او بروح بد ګڼی .

دا خبره دي په ذهن کي وي چي ښه فال اخیستل محمود او مستحسن بلکه مستحب دی او تطیر یعني بد فال نیول بد او منع دی، نبي کریم ﷺ به ډېر زیات په خاصه توګه د خلکو په نومو او ځایو سره ښه فال اخیستی، په دغه دواړو کي فرق په دې وجه دی چي په ښه فال کي اطمینان او خوښي تر لاسه کیږئ، دوهم د الله تعالی په رحم او کرم سره د نیکۍ امید پیدا کیږئ او په زړه کي د ښېګړي خیال راځي، او د امید خیال په هر حالت کي د بنده لپاره غوره دی که څه هم د هغه مراد پوره نسي، او بد فالي ځکه منع او بد ده چي په هغه کي رنځ او تردد پیدا کیږي، د الله تعالی د رحم او کرم څخه امید قطع کیږي او د نا امیدۍ احساس او په اندېښنو کي اخته کیږي، څرګنده دي وي چي دغه شیان شرعا بد او منع هم دي او د عقل خلاف هم دي، حال دا چي هغه څه کیږي کوم چي الله تعالی یې غواړي.

په هر حال په دغه باب کي هغه حدیثونه نقل کیږي چي د فال وغیره سره اړوند وي او د هغو تحقیق پوره بیان سوی دی، د مشکوة مؤلف په دغه باب کي هغه حدیثونه نقل کړي دي چي په هغو کي د عدوی، هامه او دا ډول نورو شیانو ذکر دی او دا ټول هم د تطیر یعني بد فالۍ د مفهوم حامل او د هغه په حکم کي داخل دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### بد فال منع دی

﴿۴۳۷﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا طِيَرَةَ وَخَيْرُهَا الْفَأْلُ قَالُوا وَمَا الْفَأْلُ قَالَ الْكَلِمَةُ الصَّالِحَةُ يَسْمَعُهَا أَحَدُكُمْ. متفق علیه.

د حضرت ابوهریره ﷺ څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي چي بد شګون (فال) هیڅ شی نه دی، بهترینه شی ښه فال دی، اصحابو وویل: فال څه ته وایي؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: هغه ښه کلمه چي په تاسو کي یې څوک د چا څخه واوري یا په څه ذریعه سره یې واوري. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۱۲، رقم: ۵۷۵۴، ومسلم ۱۴\۱۷۴۵، رقم: ۱۱۰-۲۲۲۳.

**تشریح**: بد فالي بې حقیقته شی دی: ددې مطلب دا دی چي د ګټي تر لاسه کولو یا د تاوان په

دفع کي د بدفالۍ هيڅ دخل نسته او نه شريعت د اعتبار سبب ګرځولی دی، داسي عقيده درلودل نه دي پکار ځکه چي هغه څه کيږي چي د قادر مطلق (الله تعالی) مرضي وي ځکه د بد فالۍ په اخيستلو سره ځان په بېره، اندېښنه او نااميدۍ کي ولي اخته کړل سي، طيره يعني د بدفالۍ نفي کولو او د منع ظاهرولو څخه وروسته رسول الله ﷺ د فال تعريف وکړي او وه يې فرمايل: د طيره غوره صورت ښه فال دی يعني په حديث کي طيره د مطلق فال نيولو په معنی کي استعمال سوی دی مګر دلته يو سوال پيدا کيږي او هغه دا چي د حديث د عبارت څخه په ښکاره ډول معلوميږي چي ښه فال نيول غوره دي او بدفالي هم په څه ناڅه درجه کي ښه شی دی، حال دا چي په حقيقت کي بدفالي ښه شی نه دی، ددې جواب دادی چي په دغه عبارت کي لفظ د خير په اصل کي د به مفهوم کي دی نه د غوره په معنی کي، لکه څرنګه چي دغه جمله ده: (والاخرة خير وابقى واصحاب الجنة خير)، يو جواب دا هم دی چي دغه ارشاد په اصل کي د عربو پر ګمان او اعتقاد باندي مبني دی چي هغوی بدفالي هم ښه ګڼل يا دا چي ددغه عبارت بنياد دادی چي د طيره ښه کېدل بالفرض که ممکن هم وي نو فال به تر دې غوره شی وای.

هغه ښه کلمه ...الخ: مطلب دادی که يو سړي ته داسي جمله واورول سي چي په هغه سره د هغه په زړه کي د خپل مطلب او مقصد تر لاسه کېدو اميد پيدا سي او هغه دغه لفظ يا جمله په حق اړه ښه وګڼي لکه يو سړی خپل ورک سوی شی لټوي چي هغه دغه اواز واوري يا واجد، يا سړي لار غلطه کړې وي او د هغه په لټه کي سرګردانه وي چي د هغه په غوږ کي د يوې خوا څخه دغه اواز راسي يا راشد.

## يو څو بې اثره خبري

﴿۴۳۷۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ وَلَا هَامَةَ وَلَا صَفَرَ وَفِرَّ مِنَ الْمَجْذُومِ كَمَا تَفِرُّ مِنَ الْأَسَدِ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تجاوز د مرض (د يو ناروغ څخه بل روغ سړي ته مرض نقليدل) نسته، بدشګون (بدفال) نسته، هامه او صفره نسته (د فال دپاره ولو نه دي) او تاسو د جذامي څخه داسي تښتئ څرنګه چي خلک د زمري څخه تښتي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۱۵۸، رقم: ۵۷۰۷.

**د لغاتو حل**: صفر: هي حية في البطن، وقيل: انهم كانوا يتشاءمون بدخول شهر صفر.

**تشریح**: دغه خیال چې د یوه سړي ناروغي بل سړي ته نقل کیږي د جاهلیت د زمانې یادګار دی ، عربو به ویل که یو سړی د ناروغ په څنګ کې کښېني یا د هغه سره خوراک او څښاک وکړي نو د هغه ناروغي ده ته هم ورځي ، علماء لیکي په عامه توګه د طبیبانو په نزد اووه ناروغۍ داسې دي چې د یوه شخص بل ته نقل کیږي او هغه دادي : ۱: جذام ، ۲: خارش، ۳: چیچک، ۴: دانې چې پر بدن راوخیژي ۵: ګنده دهني، ۶: رمد (د سترګو ناروغي چې په هغه سره سترګې سرې سي یعني د سترګو خوږوالی)، ۷: وبائي ناروغۍ .

نو شارع د داسې خیال په رد کولو سره څرګنده کړه چې د ناروغۍ د یوه شخص په بل کې سرایت کول څه حقیقت نلري بلکه ددې تعلق د نظام قدرت او د قادر مطلق د مرضي سره دی لکه څرنګه چې لومړی سړی ناروغ سوی دی همدارنګه دوهم سړی هم په هغه ناروغۍ اخته کېدای سي ، پاته سوه دا خبره چې د ټولو ناروغیو په اړه د یو بل ته تلو تردید سوی دی نو بیا د جذام د ناروغۍ څخه د تیښتې حکم ولې ورکړل سو ، او همدارنګه خپله ددغه حدیث په مفهوم کې تضاد معلومیږي، نو ددې جواب به انشاء الله د فصل په پای کې نقل کړل سي.

د بدفالۍ په اړه مخکې بیان سوی دی ، (هاما) ددې اصل معنی د سر ده مګر دلته ددغه لفظ څخه یو خاص حیوان مراد دی چې، عربو د ګمان مطابق د مړي د هډوکو څخه پیدا کیږي او په هواء کیږي، د جاهلیت په زمانه کې عربو دا هم ویل که یو سړي قتل کړل سي نو د هغه مقتول د سر څخه یو حیوان چې هغه ته هامه وایي راوځي او هر وخت دا فریاد کوي چې ما ته اوبه راکړئ اوبه راکړئ ، یا هغه د قاتل څخه د بدلې اخیستلو هڅه کوي تر دې چې قاتل په خپل مرګ سره یا د بل چا په قتلولو سره مړ سي نو هغه مرغه په الوتلو سره ورک سي .

ځینو خلکو به ویل چې خپله د مقتول روح د هغه حیوان شکل اختیاروي او فریاد کوي چې د قاتل څخه بدله واخیستل سي ، کله چې هغه د قاتل څخه بدله واخلي نو هغه مرغه ورک سي ، شارع دغه عقیده هم باطله وګرځول او وه یې فرمایل چې ددې هیڅ حقیقت نسته .

ځیني خلک دا هم وایي چې د هامه څخه مراد مرغه دی چې کله هغه پر یو کور کښیني نو هغه کور بربادیږي، یا د هغه کور څخه یو څوک مړ سي، رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذریعه دغه عقیده باطله کړل او څرګنده دي وي چې تطیر د بدفالۍ اخیستلو په حکم کې دي چې یو منع کار دی .

د صفر په وضاحت کې ډېر قولونه بیان سوي دي، ځیني حضرات وایي چې ددې څخه د محرم وروسته میاشت مراد ده چې صفر ورته وایي، د کمزوري عقیدې خلک دغه میاشت

منحوسه گڼي او وايي چي په دغه مياشت كي د آفاتو او پېښو نزول كيږي ځكه ددغه ارشاد په ذريعه دا عقيده باطله وګرځول سوه.

ځيني حضرات وايي چي عربو به ويل: د هر انسان په نس كي يو مار وي چي هغه ته صفر ويل كيږي د هغوی د ګمان مطابق چي نس خالي وي او لوږه وي نو هغه مار چيچل كوي او تكليف رسوي، د هغوی وينا وه چي د لوږي په وخت كي په نس كي يو خاص ډول تكليف محسوس كيږي هغه ددغه مار په سبب وي او د هغه اثرات په يو بل كي سرايت كوي، نووي رحمة الله عليه د مسلم په تشريح كي ليكلي دي چي د ځينو خلكو د ګمان مطابق صفر هغه چينجيانو ته وايي كوم چي په نس كي وي او د لوږي په وخت كي چيچل كوي، ډېر ځله د هغه په سبب د سړي رنګ ژړ سي تر دې چي هلاک هم سي دا ټول بې اصله خبري دي چي په شريعت كي هيڅ اعتبار نلري.

## ساري ناروغي نسته

﴿۴۳۷۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَدْوَى وَلَا هَامَةَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ناروغه كېدل هامه او

وَلَا صَفَرَ فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَمَا بَالُ الْإِبِلِ تَكُونُ فِي الرَّمْلِ كَأَنَّهَا

صفر هيڅ شی نه دی، يوه اعرابي وويل: اې د الله جل جلاله رسوله! د اوښانو څه حال دی هغوی په ريګستان كي داسي او سيږي لكه څنګه چي

الظِّبَاءُ فَيُخَالِطُهَا الْبَعِيرُ الْأَجْرَبُ فَيُجْرِبُهَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنْ أَعْدَى الْأَوَّلَ. رواه البخاري

هوسۍ، بيا په هغوی كي يو پمن اوښ راسي او نور اوښان پمن كړي، نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د ټولو څخه اولنی اوښ چا پمن كړی. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۴۱، رقم: ۵۷۷۰.

﴿۴۳۷۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَدْوَى وَلَا هَامَةَ وَلَا نَوْءَ وَلَا صَفَرَ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تجاوز د مرض نسته، هامه (د يو مرغه نوم دى عربو عقيده درلوده چي دا هامه د مړي د هډوکو څخه پيدا کيږي او هميشه د اوبه راکړئ چغي وهي) نسته، او نه ځاى د ستورو (د ستورو د منازلو په حساب د باران اټکل) نسته، او نه صفر . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۷۴۴، رقم: ۱۰۶- ۲۲۲۰.

**د لغاتو حل**: نَوء: اى طلوع نجم و غروب ما يقابله، وكانوا يعتقدون انه لا بد منه عند مطر او ريح.

**تشريح**: د نوء مطلب دى د يو ستوري لوېدل او د بل را ختل ، د عربو په خيال کي باران کېدل يا نه کېدل د ستورو ددغه طلوع او غروب په اثر وي، لکه څرنګه چي پر علم نجوم باندي عقيده لرونکي خلک وايي چي د باران تعلق د ستورو سره دى که فلاني ستورى په فلاني تاريخ راولويږي او په دغه تاريخو کي باران وسي نو د باران په مياشتو کي به په فلاني او فلاني تاريخو کي باران کيږي .

په نهل کي ليکلي دي چي د نوء جمع نواء ده چي د هغه معنى د قمر د منازل ده او هغه منازل اته ويشت دي، د قرآن کريم آيت : (والقمر قدرناه منازل) کي دغه منازلو ته اشاره سوې ده، عربو به د باران اورېدل دغه منازلو ته منسوب کول ، دهغوى وينا وه چي کله سپوږمۍ فلاني او فلاني منازل ته راسي نو باران يقينا کيږي ، يعني د هغوى په نزد د سپوږمۍ هغه منازلو ته راتلل د باران کېدو علت او دمؤثر حقيقي درجه لري، نو شارع دغه عقيده باطل وګرځول او څرګنده يې کړه چي باران اورېدل محض پر حکم الهي باندي منحصر دى ، مګر څرګنده دي وي چي ددغه نفي او ابطال تعلق د هغه صورت سره دى کله چي د تاثير علت اعتقادي وي مګر که چيري په منازلو کي د سپوږمۍ راتلل د نزول باران يو ظاهري سبب وګڼل سي يعني دا عقيده وي چي الله تعالى هغه وخت باران اوروي کله چي سپوږمۍ خپل منزل ته راسي او هغه وخت د علت درجه نه لري بلکه محض د يو ظاهري سبب درجه لري، الله تعالى پر دې قادر دى چي د هغه وخت څخه مخکي يا وروسته هم باران و اوروي او که وغواړي نو هغه وخت به هم باران ونه اوروي نو دغه عقيده نه د کفر په دائره کي راځي او نه دې ته باطل ويل کيږي، که څه هم امام نووي رحمه الله وايي چي دغه عقيده هم د کفر سبب دى ځکه چي د باران د نزول مياشت او هغه د منازلو سره متعلق کول د کافرانو شعار دى ، دوهم دا چي ذکر سوى صورت که څه هم عليت عقيده نه څرګندوي مګر موهم عليت خو يقيني دى ، په دې اړه زيات صحيح قول دادى چي په

حديث كي ذكر سوې منع مطلق ده چي ددې تعلق د عليت عقيدې سره هم دى او د هغه صورت سره هم دى چي په هغه كي سپوږمۍ او د هغه منازل محض يو ظاهري سبب وګڼل سي ځكه چي اول خو ددغه ارشاد مقصد د عقيدې د ګمراهۍ او فساد سدباب دى، دوهم داسي هيڅ حديث نقل سوى نه دى چي د هغه څخه جواز په يو صورت كي ثابت وي.

خلاصه دا چي كله باران وسي نو داسي دي نه وايي چي د فلاني منازل څخه باران سوى دى بلكه داسي دي وايي چي د الله تعالى په فضل او كرم سره باران سوى دى.

﴿۴۳۷۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا عَدْوَى وَلَا صَفَرَ وَلَا غُولَ. رواه مسلم

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دى چي ناروغي پيدا كېدل، صفر او د صحراؤ بلا هيڅ نسته. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۷۴۴، رقم: ۱۰۷- ۲۲۲۲.

**د لغاتو حل**: غُول: احد الغيلان، وهي جنس من الجن والشيطاطين. (بلاوي)

**تشريح**: د غول جمع غيلان دى، د جناتو او شياطينو يو ډول او جنس ته وايي، د عربو دا خيال وو چي په ځنګلو كي غول په مختلفو صورتو او شكلو كي خلكو ته ښكاره كېږي او دهغوى لاره غلطوي او هلاكوي يې، رسول الله ﷺ دغه خيال باطل وګرځوى او وه يې فرمايل چي غول هيڅ شى هم نه دى.

## جذامي

﴿۴۳۷۹﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ فِي وَفْدِ ثَقِيفٍ رَجُلٌ مَجْذُومٌ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا قَدْ بَايَعْنَاكَ فَارْجِعْ. رواه مسلم.

حضرت عمرو بن شريد د خپل پلاره څخه روايت كوي چي د ثقيف په جماعت كي يو جذامي وو هغه د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو، بيعت كول يې غوښتل، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: موږ ستا بيعت قبول كړى دى، ته بيرته ولاړ سه. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۷۵۲، رقم: ۱۲۶- ۲۲۳۱.

**تشريح**: د جذامي سره په يو ځاى كېدو كي د پرهيز په اړه يو دغه حديث دى او دوهم حديث هغه دى چي په هغه كي فرمايل سوي دي چي د جذامي څخه داسي تښتئ لكه څرنګه چي د زمري څخه تښتئ، ددغه دواړو حديثو څخه دا ثابتيږي چي د جذامي د ملګرتيا او ناستي څخه ځان ساتل پكار دي، حال دا چي هغه حديث ددې برعكس دى چي په هغه كي فرمايل سوي دي چي د يوې ناروغى بل ته نقل كېدل هيڅ حقيقت نه لري، څرګنده ده چي دغه دواړي خبري بالكل مخالف دي، ددغه تضاد ليري كولو لپاره او ددغه حديثو په مينځ كي د مطابقت پيدا كولو لپاره د علماوو ډېر قولونه نقل سوي دي، شيخ ابن حجر عسقلاني رحمة الله عليه په شرح نخبه كي ليكلي دي : د حديثو ددغه تضاد ليري كولو لپاره تر ټولو غوره قول دا دى چي په كوم حديث كي عدوي يعني ساري كېدو نفي سوې ده د هغه حكم د خپل عموم او اطلاق سره قائم او باقي دى او د هغه خلكو مخالطت او مجالست كوم چي د جذام په ډول ناروغيو كي اخته وي د هغوى د ناروغ كېدو سبب هيڅكله نه وي او كوم چي د احاديثو تعلق دى چي د جذامي څخه پرهيز كول ظاهر وي نو د هغه مقصد محض د وهم او وسوسې بندول دي چي هيڅوك د شرك په لمن كي ونه لويږي ، كه يو څوک د جذامي سره ملګرتيا او ناسته وكړي او بيا په دغه دوران كي د الله تعالى دغه حكم وسو چي هغه سړى هم په جذام كي اخته سو نو ليري خبره نه ده چي هغه په دغه وهم او عقيده كي اخته سي چي زه ددغه جذامي د مخالطت او مجالست په وجه په دغه ناروغى اخته سوم، نو رسول الله ﷺ خلك ددغه وهم څخه د ساتني لپاره چي د كفر او شرك حد ته ونه رسيږي د جزامي څخه د پرهيز كولو حكم وكړ ، همدا وجه ده چي رسول الله ﷺ خپل ذات مبارک ددغه حكم څخه مستثنى كړ چي رسول الله ﷺ د توكل او اعتقاد على الله پر لوړه مرتبه باندي فائز وو ، چي د هغه په وجه په ذكر سوي وهم او ګمان كي د اخته كېدو تصور هم نسو كېداى، يوه ورځ رسول الله ﷺ د يوه جذامي لاس نيولى د ځان سره راوست او بيا يې د هغه سره ډوډى وخوړل ، خلاصه دا چي د جزامي څخه د پرهيز كولو حكم د هغه چا لپاره دى چي هغه په ځان كي د صدق او يقين طاقت نلري او ددې خبري بېره وي كه هغه د جذامي مخالطت او مجالست په دوران كي په دغه ناروغى اخته سي نو ددغه وهم د ګمان په ښكاره كېدو سره به په شرک خفي كي اخته سي .

كرماني رحمة الله عليه ويلي دي: دا چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي د ناروغى يو بل ته د نقل كېدو حقيقت نسته، نو د جذامي ناروغي ددې څخه مستثنى ده ، نووي رحمة الله عليه وايي : په جزام

كي يو خاص ډول بدبويي وي ، كه يو سړى د جذامي سره ناسته ولاړه، خوراك او څښاك زيات اختيار كړي نو هغه بويي يې متاثر كوي او ناروغ كوي يې ، لكه څرنګه چي يو سړى داسي خوراك وخوري يا په داسي بوى كي ومو ښلي چي د هغه د مزاج او طبيعت موافق نه وي يا د هغه مضر كېدل څرګند وي نو هغه سړى متاثر كيږي او په ډول ډول ناروغيو كي اخته كيږي، كه څه هم دغه شيان محض يو ظاهري ذريعه او سبب وي مګر په حقيقت كي هغه ناروغي د الله تعالى په حكم سره لاحق كيږي ، په دې اعتبار سره د جذامي شخه پرهيز د طب له نظره وي نه د ناروغۍ يو بل ته د نقل كېدو په وجه .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### ښه فال اخيستل

﴿۴۳۸۰﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَفَاءَلُ وَلاَ يَتَطَيَّرُ وَكَانَ يُحِبُّ الْاِسْمَ الْحَسَنَ . رواه في شرح السنة.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به فال (ښه فال) كوى او بد فال به نه كوى او ښه نوم به يې خوښوى . شرح السنه

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\۱۷۵، رقم: ۳۲۵۴.

### بدفالي شرک دى

﴿۴۳۸۱﴾: وَعَنْ قَطَنِ بْنِ قَبِيصَةَ عَنْ أَبِيهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعِيَافَةُ وَالطَّرْقُ وَالطِّيَرَةُ مِنَ الْجِبْتِ. رواه ابوداؤد.

حضرت قطن بن قبيصه رضي الله عنه د خپل پلار ه څخه روايت كوي چي نبي كريم ﷺ وفرمايل: د مرغه په هوا كول د فال په ډول يا د يوه مرغه څخه فال اخيستل يا د هغه په اوربدو سره ډبري ويشتل(د فال د اخستلو لپاره) او بد شګون (بد فال اخيستل)دا ټول د شرک څخه دى . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۲۲۸، رقم: ۳۹۰۷.

**د لغاتو حل**: العِيافة: وهو الضرب بالحصى الذي تفعله النساء.

**تشريح**: عيفة د مرغانو په ذريعه د فال نيولو يو صورت دى چي په هغه كي مرغه په خاصه توګه

په هواء کولو سره د هغه د آواز په ذریعه نیک فالي یا بد فالي کیږي، په مخکي زمانه کي په عربو کي دا ډېر زیات رواج وو او عیافت داني یو ځانګړی فن ګڼل کېدی، په دې کي په عامه توګه د مرغانو د نوم اعتبار وي د مثال په توکه د عقاب (باز) په ذریعه عقوبت ، د غراب (تپوس) په ذریعه غربت، او د هد هد (ملا چرګک)په ذریعه د هدایت فال اخیستل کېدی، په طیره او عیافه کي فرق دادی چي د طیره په مفهوم کي عمومیت دی که د یو مرغه په ذریعه بدفالي وکړل سي یا د یو بل حیوان په ذریعه ، او د عیافه استعمال په خاصه توګه د یو مرغه د آواز په ذریعه د نېک فالی او بدفالی کولو په مفهوم کي دی، په نهایه کي لیکلي دي چي د عیافه معنی د مرغه په ډېره ویشتل او الوځل دي، او د هغه نوم د هغه اواز او د هغه د الوتلو او تېرېدو په ذریعه فال کیږي .

طرق ډېرو غورځولو ته وایي، د فال اخیستلو یو دا صورت هم وو په تېره زمانه کي په خاصه توګه د عربو په ښځو کي .

جبت د سحر په معنی کي دی ، ځیني حضرات وایي چي د جبت معنی د هر هغه شي ده چي په هغه کي خیره وي یا د هغه شي د الله تعالی څخه پرته عبادت وکړل سي یعني شرک او د ځینو حضراتو په نزد جبت د شیطان کار ته وایي .

د حدیث مطلب دادی چي دغه ټول شیان یعني بدفالي کول د مرغانو د آواز په ذریعه او په ډېرو غورځولو سره فال اخیستل په سحر کي داخل دي او دا ټول د شرک کارونه دي ، صحیح خبره داده چي دغه ټول شیان شیطاني کارونه دي .

﴿۴۳۸۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

قَالَ الطِّيَرَةُ شِرْكٌ قاله ثَلَاثًا وَمَا مِنَّا إِلَّا وَلَكِنَّ اللّٰهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ . رواه

بد شګون اخیستل شرک دی ، او دا الفاظ نبي کریم ﷺ درې واره وویل : او په موږ کي چي د چا په زړه کي چي شګون یا بدل فال نه څه تردد یا خلجان پیدا سي نو پر خداي تعالی باندي توکل سره هغه لیري کیږي .

ابوداؤد والترمذي، قَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يَقُولُ كَانَ سُلَيْمَانُ

ابو داؤد او ترمذي .او امام بخاري رحمۃ اللہ علیہ. وايي ، سليمان بن حرب دا بيان كړى دى چي د دې

بْنُ حَرْبٍ يَقُوْلُ فِيْ هٰذَا الْحَدِيْثِ وَمَا مِنَّا إِلاَّ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ هٰذَا عِنْدِيْ قَوْلُ ابْنُ مَسْعُوْدٍ.

حديث اخيري جمله : چي په موږ كي د چا په زړه كي چي الخ دا د رسول الله ﷺ قول نه دى ، دا د ابن مسعود قول دى

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۲۳۰، رقم: ۳۹۱۰، والترمذي ۷\۱۳۷، رقم: ۱۶۱۴.

**تشريح**: بد فال نيول شرک دى، ددې مطلب دادى چي دغه كار د مشركانو د طريقو او عاداتو څخه دى او د شرک خفي سبب دى، مګر كه چيري دا عقيده وي چي داسي به وي نو هغه فال به بېله شكه او شبهې د كفر په حكم كي وي .

## د جذامي سره خوراک

﴿۴۳۸۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ بِيَدِ مَجْذُوْمٍ فَوضعها مَعَهُ فِي الْقَصْعَةِ ثُمَّ قَالَ كُلْ ثِقَةً بِاللّٰهِ وَتَوَكُّلًا عَلَى اللّٰهِ . رواه ابن ماجة

حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د يو جذامي لاس و نيوى او هغه يې (خوراک لپاره) په خپله كاسه كي شريک كړ او ويې فرمايل : ته خوره ، زه په الله جل جلالہ باندي توكل لرم (چي ستا د ناروغى په ما باندي څه اثر نه كوي). ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۱۷۲، رقم: ۳۵۴۲.

**تشريح**: په دغه حديث كي دې ته شاره ده چي د توكل او يقين مرتبې تر لاسه كېدو څخه وروسته د جذامي څخه تبنتېدل او د هغه د ځان څخه ليري كول ضروري نه دي .

## بدفالي نسته

﴿۴۳۸۴﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا هَامَةَ وَلَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ وَإِنْ تَكُنْ الطِّيَرَةُ فِيْ شَيْءٍ فَفِي الدار الْفَرَسِ وَالْمَرْأَةِ . رواه ابوداؤد.

د حضرت سعد بن مالک رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هامه نا روغي لګېدل او بد شګون نسته که بد فالي وي نو هغه به په کور ، اس او ښځه کي وي . ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۲۳٦\۴، رقم: ۳۹۲۱.

**تشریح**: د طیره یعني بدفالی په اړه مختلف حدیثونه نقل سوي دي ، د کومو حدیثو څخه چي د طیره د اثراتو نفي او په هغه د اعتبار کولو یا په هغه د اعتقاد درلودلو نهي او منع ثابتیږي هغه زیات دي ، د ځینو حدیثو څخه د ښځي، آس او په کور کي د طیره ثبوت د یقیني الفاظو په ذریعه مفهوم کیږي لکه څرنګه چي د بخاري او مسلم روایت دی : (انما الشؤم في ثلاث الفرس، والمراة والدار) یعني په دې کي څه شک نسته چي په دغه درو شیانو کي نحوست دی په کور، آس او ښځه کي، په یوه روایت کي هغه د رې شیان مځکه، خادم او آس بیان سوي دي، په ځینو حدیثو کي په دغه درو شیانو کي د طیره د ثبوت الفاظ د شرط په ذریعه مفهوم کیږي لکه چي مخکي په نقل سوي حدیث کي یا دا ډول نورو حدیثو کي دي، که بدفالي او نحوست یو شی وي نو په دغه درو شیانو کي به وي، د ځینو حدیثو څخه د نورو ټولو شیانو په ډول په دغه درو شیانو کي هم د نحوست انکار مفهوم کیږي لکه چي د ابن ابي ملیکه روایت دی چي هغه د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه نقل کړی دی ، او په ځینو حدیثو کي دا فرمایل سوي دي چي په دغه درو شیانو کي د نحوست عقېده درلودل د جاهلیت د زمانې د بې بنیاده عقیدو او خیالاتو څخه دي، خلاصه دا چي په دې اړه د مختلف مفهوم روایتونه نقل سوي دي ، نو ددغه ټولو په مینځ کي د مطابقت وجه او ددغه ټولو د مقصد خلاصه داده چي تطیر یعني بدفالي نه کول او یو شی منحوس ګڼل بالکل بې اصله خبره ده که چیري دا ومنل سي چي په ځینو شیانو کي نحوست دی نو کوم شیان چي داسي وي چي د خپل ځینو حیثیتو په اعتبار ددې وړ وي چي په هغه کي د نحوست کېدو ګمان کېدای سي او هغه د نحوست مواقع او محل ګرځول کېدای سي نو دا خبره داسي ده لکه څرنګه چي په یوه روایت کي فرمایل سوي دي : (لو کان شئ سابق القدر لسبقه العین) یعني که یو شی پر تقدیر سبقت وړونکی وای نو هغه به بد نظر وای .

قاضي رحمة الله علیه هم داسي خبره کړې ده ، هغه وایي : په حدیث کي لومړی د طیره انکار کول او د هغه څخه وروسته دغه شرعیه جمله (که په یو شي کي بدفالي وای نو په کور، ښځه او آس کي به وای) راوړل پر دې دلالت کوي چي تطیر یعني د بدفالی د نحوست انکار په دې مفهوم کي دی که د نحوست وجود او ثبوت وای نو په دغه درو شیانو کي به وای ځکه چي دغه درې

شیان د نحوست موقع او محل کېدای سي، مګر کله چي په دغه درو شیانو کي هم د نحوست څه وجود نسته نو دې مطلب دادی چي نحوست بالکل وجود نه لري.

ځیني حضرات وایي که چیري په دغه شیانو کي د نحوست وجود مفهوم کیږي نو په دې معنی کي که ښځه اوږد ژبه، بې حیاء او بدکاره وي یا د هغې ماشومان نه پیدا کیږي یا د خپل خاوند نافرماني کوي، یا مکروه صورته او بدشکله وي نو په دې اعتبار سره هغې ته منحوسه ویل کیدای سي، په کور کي نحوست په دې معنی دی چي هغه کور تنګ او تاریک وي، د هغه همسایه خراب وي او د هغه هواء ناسمه وي، همدارنګه په آس کي د نحوست مطلب دادی چي هغه آس سرکښه او شریر وي، ډېر خوراک کوي مګر په تللو کي سست وي، د خصوصیاتو په اعتبار کم وي مګر د قیمت په اعتبار ګران وي او د مالک ضروریات او اړتیاوي نه پوره کوي، پر آس باندي خادم هم قیاس کیدای سي.

ځیني حضرات وایي چي د نحوست څخه شرعي او طبعي کراهت او ناخوښي مراد ده، په دې اعتبار سره د شوم او تطیر نفي خو پر عموم او حقیقت باندي محمول وي مګر حقیقت دادی چي هیڅ شی هم داسي نسته چي په هغه کي د نحوست وجود وي مګر په کومو حدیثو کي چي په ځینو شیانو کي نحوست کېدل مفهوم کیږي په هغو کي د نحوست څخه مراد د هغه شیانو په طبعي توګه یا د یو شرعي بدوالي په وجه ناخوښي ده.

## ښه نومونه ښه فال

﴿۴۳۸۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعْجِبُهُ إِذَا خَرَجَ لِحَاجَةٍ أَنْ يَسْمَعَ يَا رَاشِدُ يَا نَجِيحُ. رواه الترمذي.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د څه ضرورت لپاره بهر راووت نو نبي کریم ﷺ به دا خوښوله چي د چا د ژبي څخه دا الفاظ واوري اې راشده! (اې په سیده لاره باندي تلونکې) اې نجیح! (اې د مقصد تر لاسه کونکې). ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۱۳۸، رقم: ۱۶۱۶.

﴿۴۳۸۶﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَتَطَيَّرُ مِنْ شَيْءٍ

د حضرت بریده رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د هیڅ شی څخه بد فال نه اخیستل او

فَإِذَا بَعَثَ عَامِلًا سَأَلَ عَنْ اسْمِهِ فَإِذَا أَعْجَبَهُ اسْمُهُ فَرِحَ بِهِ وَرُئِيَ بِشْرُ ذَلِكَ فِي

کله چي به يې يو عامل (حاکم) چيري ليږی نو د هغه څخه به يې د هغه د نامه پوښتنه کوله که د هغه نوم به ښه وو نو نبي کريم ﷺ به په هغه سره خوشحاله سو او خوشحالي به د نبي کريم ﷺ د

وَجْهِهِ وَإِنْ كَرِهَ اسْمَهُ رُئِيَ كَرَاهِيَةُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ وَإِذَا دَخَلَ قَرْيَةً سَأَلَ عَنْ

مخ مبارک څخه څرګندېده او که د هغه نوم به بد وو نو د نبي کريم ﷺ د مخ مبارک څخه به ناخوښي معلومېده او کله چي نبي کريم ﷺ و يوې ابادۍ ته داخلېدی

اسْمِهَا فَإِنْ أَعْجَبَهُ اسْمُهَا فَرِحَ وَرُئِيَ بِشْرُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ وَإِنْ كَرِهَ اسْمَهَا رُئِيَ كَرَاهِيَةُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ. رواه ابوداؤد.

نو د هغې نوم به يې پوښتی که د هغې نوم به ورباندي ښه ولګېدی نو د خوشحالی علامه به د نبي کريم ﷺ د مخ مبارک څخه ظاهرېده او که چيري د هغې ابادی نوم به بد وو نو د ناخوښی اثار به يې پر مخ مبارک ښکارېدل. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۲۳٦، رقم: ۳۹۲۰.

**تشريح**: د يو بد نامه په اورېدو سره ناخوښي کول تطير (بدفالي) نه دی، تطير به په هغه صورت کي وای کله چي رسول الله ﷺ د نامه په اورېدو سره خپل کار يا خپل سفر پرېښودلای وای، لکه څرنګه چي د بدفالی په صورت کي کيږي، بيا هم د يوې سيمي خراب او بد نامه په اورېدو سره د رسول الله ﷺ د مخ مبارک څخه د ناخوښی اثرات څرګندېدل، ځکه چي د طبيعت د ښه والي او بدوالي څخه متاثر کېدل او د هغه په نتيجه کي د خوښی او ناخوښی څرګندول يوه فطري خبره ده.

ابن ملک رحمه الله وايي: د دغه حديث څخه معلومه سوه چي د خپل اولاد يا خادم لپاره ښه نوم اختيارول سنت دي ځکه چي ډېر واره خراب نوم د تقدير موافق کيږئ او د هغه نتائج د بدو اثراتو حامل کيږي، د مثال په توګه يو څوک د خپل زوی نوم خسار کښېږدي نو کيدای سي چي يو وخت هغه سړی يا د هغه زوی د تقدير الهي سره سم په خساره کي اخته سي او د هغه په نتيجه کي خلک دا وګڼي چي د هغه په خساره کي اخته کېدل د هغه د نامه په وجه دي او خبره تر دې پوري ورسيږي چي خلک هغه منحوس ګڼل پيل کړي او د هغه ملګرتيا پرېږدي.

## په کور کي بې برکتي

﴿۴۳۸۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا كُنَّا فِي دَارٍ كَثِيرٌ فِيهَا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه سړي وويل: اې د الله جل جلاله رسوله! موږ په يو کور کي اوسېدلو زموږ د کور د وګړو تعداد زيات وو

عَدَدُنَا وَأَمْوَالُنَا فَتَحَوَّلْنَا إِلَى دَارٍ أُخْرَى فَقَلَّ فِيهَا عَدَدُنَا وَقَلَّتْ فِيهَا أَمْوَالُنَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَرُوهَا ذَمِيمَةً. رواه ابوداؤد.

او مال هم را سره زيات وو بيا موږ هغه کور پرېښودئ او بل کور ته ولاړو، په دې کور کي زموږ د وګړو تعداد هم کم سو او مال مو هم کم سو، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: دا کور پرېږدئ دا سپېره (منحوس) دی. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\۲۳۸، رقم: ۳۹۲۴.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د هغه ځای پرېښودو حکم د هغه ځای د منحوس ګڼلو په وجه نه وو بلکه د هغه ځای آب او هواء ښه نه وه، ځکه رسول الله ﷺ دا غوره وګڼل چي هغوی دغه ځای پرېږدي.

خطابي رحمه الله وايي: رسول الله ﷺ هغه خلکو ته د ځای پرېښودو حکم ددې لپاره ورکړ چي د هغوی په زړونو کي دا خبره ناسته وه چي د ټولو تاوانو بنياد دغه ځای دی که موږ په دغه ځای کی نه اوسيدلای نو زموږ په خلکو کي به کمي نه راتللای او نه به مو په مال او سامان کي تاوان کېدی، نو رسول الله ﷺ د هغه ځای د پرېښودو حکم ورکول غوره وګڼل چي د هغوی د غلط خيال او وهم تصور ختم سي او هغوی په شرک خفي اخته نسي.

## د خرابي هواوالا منطقه

﴿۴۳۸۸﴾: وَعَنْ يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بَحِيرٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ فَرْوَةَ بْنَ

د حضرت يحيى بن عبدالله بن بحير رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما ته يوه سړی بيان وکړ چي هغه د فروه بن مسيک څخه دا اورېدلي وو چي

مُسَيْكٍ يَقُولُ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ عِنْدَنَا أَرْضٌ يُقَالُ لَهَا أَبْيَنَ هِيَ أَرْضُ رِيفِنَا

ما وويل: اې د الله ﷻ رسوله! زموږ سره يوه مځکه ده چې د هغې نوم ((ابين)) دی، دا مځکه زموږ د کښت د غلې مځکه ده (يعني د غلې منډۍ ده چې دلته مال جمع کوو او نورو ښارونو ته

وَمِيرَتِنَا وَإِنَّهَا وَبَاؤُهَا شَدِيدٌ فَقَالَ دَعْهَا عَنْكَ فَإِنَّ مِنَ الْقَرَفِ التَّلَفَ. رواه ابو داؤد.

يې لېږو) ليکن د دې و بائي مرض سخت دی (يعني دلته د وبا ناروغي زياته ده) نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: د اپرېږدۍ ځکه چې د بلا (مصيبت) په نيزدېکت سره هلاکت راځئ (يعني په دا مځکه کې د اوسېدو سره د ځان د ضائع کېدو ويره ده. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\۲۳۸، رقم: ۳۹۲۳.

**د لغاتو حل**: الميرة: وهي الطعام ونحوه مما يجلب للبيع. القرف: ملابسة الداء ومداناة المرض.

**تشريح**: طيبي رحمة الله عليه وايي: د هغه مځکې د پرېښودو حکم د عدوي په وجه نه وو بلکه د اصول طب له کبله وو، ځکه چې د هغه ځای آب او هواء غير موافق وه او دا څرګنده ده چې د آب او هواء ښه او موافق کېدل د روغتيا د ساتنې بنياد او د بدن د روغتيا او سلامتۍ لپاره ضروري سبب دی، د دې برعکس د آب او هواء ناموافق کېدل د روغتيا لپاره ډېر مضر او د نارغيو او هلاکت سبب وي.

په څرګنده دا معلومېږي چې کوم حضرات د دې خبرې ويونکي دي چې د وباء د ځای څخه بايد تېښته وسي، نو هغوی کېدای سي د دغه حديث د مضمون څخه استدلال کوي، د دغه حضراتو مطابق هغه سړي رسول الله ﷺ ته د وباء شکايت وکړ چې په دغه مځکه کې وباوي خپرېږي، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه مځکه پرېږدۍ او د هغه ځای څخه ولاړ سئ، ځکه چې د وبائي ناروغيو قربت او مخالطت د هلاکت باعث وي، حال دا چې په حقيقت کې د دغه حديث څخه ذکر سوی استدلال قطعا غير موزون دی ځکه چې دا حديث د دغه صورت سره متعلق نه دی چې هلته وباء خپره سوې وه او رسول الله ﷺ د هغه ځای څخه تېښته جائز وګرځول، بلکه د هغه سړي د شکايت تعلق په اصل کې د دې سره وو چې هغه مځکه داسې ده چې هلته وباوي خپرېږي يعني هغه سړي هغه مځکه منحوسه او مکروه وګڼل نو د هغه د باطني احوالو د کمزورۍ په وجه هغه ته د دغه اجازه ورکول غوره وګڼل سول چې هغه دغه مځکه پرېږدي او د هغه ځای څخه ولاړ سي تر څو هغه د بدې عقيدې او شرک خفي ښکار نسي.

د وباء د ځای په مسئله کي د علماوو مختلف اقوال او مباحث دي، مګر کوم صورت چي علماوو زيات غوره ګرځولی دی او په هغه عمل کول پکار دي هغه دادی چي د واقع کېدو څخه مخکي پرهېز وکړل سي او د واقع کېدو څخه وروسته د صبر او رضا لاره اختيار کړل سي که د يو ښار په ابادۍ کي يو داسي وبائي ناروغي خپره سي نو هلته موجود خلکو ته د هغه ښار څخه تېښته ناروا ده بلکه هلته په پاته کېدو سره دي توبه او استغفار کوي، او د هغه وباء د دفع لپاره دي د الله تعالی څخه دعاء وغواړي لکه څرنګه چي د صحيح حديثو څخه ثابته ده ، په بخاري، مسلم او نورو کتابو کي هغه حديثونه موجود دي چي په هغو کي د وباء وهلي سيمي څخه د وتلو او د وباء څخه د تېښتي منع او په داسي وخت کي د صبر او اثبات لار اختيارولو ترغيب او تعريف منقول دی .

څرګنده دي وي چي د وباء څخه تېښته جائز ګرځولو حضراتو د دغه حديث څخه استدلال کول هسي هم غير مناسب دي چي دغه حديث ابوداؤد نقل کړی دی. او کوم حديث چي د تېښتي څخه منع ثابتوي هغه بخاري او مسلم نقل کړی دی لکه چي مخکي ذکر سو، نو دغه حديث د بخاري او مسلم د احاديثو معارض نسي کېدای ، ددې څخه پرته دا حقيقت هم دی چي د علماوو او محققينو مطابق فروه ابن مسيک يو کثير الروايت صحابي نه دی بلکه د هغه څخه يا دوه حديثونه نقل سوي دي، او هغه هم يو داسي راوي روايت کړي دي چي مجهول دی، تر چي د هغه نوم هم پوره معلوم نه دی بلکه د يحيی بن عبدالله بن بحير په اړه هم اختلاف دی .

خلاصه دا چي د وباء د بيري څخه تېښته بېله شکه او شبهې منع او معصيت دی او که څوک په دې عقيده سره وتښتي که دلته پاته سم او د صبر او ثبات لاره اختيار کړم نو يقينا د وباء په ښکار کېدو سره به مړ سم او که د دغه ځای څخه ولاړم سم نو خلاص به سم نو داسي سړی به نه يوازي د تېښتي د معصيت مرتکب وي بلکه د دغه فاسدي عقيدې په وجه به کافر هم سي، د دغه عقيدې څخه پرته تېښته کونکی به ګناه کار وي، د وباء څخه د بيري تېښته ، د زلزلې راتلو يا اور لګېدو په صورت کي د کور څخه وتل پر تېښتي باندي قياس کول يوه مهمله خبره ده ځکه چي اول خو دا قياس د نص خلاف دی ، دوهم که چيري زلزله راسي نو د کور د چپه کېدو او په سرا ی کي د اور لګېدو په صورت کي په کور کي پاته کېدل په يقيني توګه د هلاکت او تباهۍ سبب دی لکه چي په عامه توګه لېدل کيږي ، ددې پر خلاف د وباء څخه د تېښتي په صورت کي مړ کېدل يقيني نه وي بلکه مشکوک او موهوم وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د بد فالي دفع

﴿۴۳۸۹﴾: عَنْ عُرْوَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ ذُكِرَتِ الطِّيَرَةُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عروه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د نبي کریم ﷺ په حضور کي د بد فال ذکر

وَسَلَّمَ فَقَالَ أَحْسَنُهَا الْفَأْلُ وَلَا تَرُدُّ مُسْلِمًا فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مَا يَكْرَهُ

وکړ، نبي کریم ﷺ وفرمایل: ښه شی ښه فال دی، او یو مسلمان دي د هغه د مقصد او ارادې څخه نه راګرځي، کله چي په تاسو کي یو څوک داسي شی ووینې چي هغه بد ګڼي

فَلْيَقُلْ اللَّهُمَّ لَا يَأْتِي بِالْحَسَنَاتِ إِلَّا أَنْتَ وَلَا يَدْفَعُ السَّيِّئَاتِ إِلَّا أَنْتَ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ. رواه ابوداؤد.

نو دا کلمات دي ووایي: اللهم لا یاتی ..... الا بالله. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۲۳۵، رقم: ۳۹۱۹.

=========

## بَابُ الْكَهَانَةِ (د فال ویلو بیان)

په صراح کي لیکلي دي چي کهانت فال ګوئي ته وایي او ددغه فال ګوئي کسب او کار ته کهانت ویل کیږي، همدارنګه فال ویونکي ته کاهن وایي، طیبي رحمه الله وایي: کاهن هغه سړي ته وایي چي د راتلونکو پېښو او حوادثو خبر ورکوي او د علم غیب دعوه کوي.

د رسول الله ﷺ د پیغمبرۍ څخه مخکي په عربو کي د کهانت ډېر رواج وو، عربو به د کاهنانو پر ښودلو خبرو باندي یقین او باور کوی، په هغو کي ځینو کاهنانو به دغه دعوه کول چي کوم جنات آسمان ته ځي هغوی د هغه ځای خبري موږ ته ښیي، دغه خبره د روایت څخه هم ثابته ده چي د بعثت نبوي څخه مخکي شیطانان به په غلا اسمان ته تلل او هلته به یې په دنیا کي د راتلونکي پېښو چي د هغه یادونه به ملائکو کول یا د الله تعالی له خوا څخه چي کوم احکام به

ملائکو ته ورکول کېدل هغه به شیطانانو په پټه اورېدل او بیا مځکي ته په راتللو سره د خپل ځان څخه د ځینو خبرو په اضافه کولو سره به یې خپلو تابعدارانو ته ښودلې، هغه خلکو به د غه ټولي خبري صحیح ګڼلي او د هغو په ذریعه به یې پر عربو باندي د خپل غیب پوهی علم ځرګندوی مګر د رسول الله ﷺ د پیغمبری څخه وروسته چي شیطانان اسمان ته د تللو څخه منع کړل سول نو دا لړی ختمه سوه او د کهانت کار هم پای ته ورسیدی.

د کهانت په ډول یو شی عرافت هم وو، ځینو خلکو به د ځینو خاصو شیانو او علامو په ذریعه د پټو شیانو خبر ورکوی لکه په رمل باندي د پوهېدونکو خلکو په ډول هغوی به هم دا ښودل چي د غلا مال په کوم ځای کي دی یا ورک سړی چیري دی او داسي نور، داسي خلکو ته عراف ویل کېدل، په ځینو ځایو کي د کاهن اطلاق پر عراف او منجم باندي هم کیږي، علماء لیکي چي د کهانت، رمل او نجوم علم حرام دی، او د هغه زده کول او په هغه عمل کول شریعت قطعا روا کړي نه دي ځکه د دغه علومو په ذریعه ګټلی مال هم حرام دی او اخیستونکی او ورکونکی دواړه ګناه کار دي، کوم خلک چي په دنیوي توګه یا په دیني توګه د مخلوق او د هغوی پر هدایت باندي مامور دي پر هغوی لازم دي چي هغوی خلک په دغه شیانو کي د اخته کېدو څخه منع کړي او کوم خلک چي په دې کي اخته دي د هغوی خبرداری وکړي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### کاهن، فالګر او رمل ته مه نژدې کیږئ

﴿۴۳۹۰﴾: عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أُمُورًا كُنَّا نَصْنَعُهَا

د حضرت معاویه بن حکم رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما وویل: اې د الله رسوله! موږ به د جاهلیت په زمانه کي څو کارونه کول،

فِي الْجَاهِلِيَّةِ كُنَّا نَأْتِي الْكُهَّانَ قَالَ فَلَا تَأْتُوا الْكُهَّانَ قَالَ قُلْتُ كُنَّا نَتَطَيَّرُ قَالَ

یعني دا چي موږ به کاهنانو ته تلو (او د هغوی څخه به مو د غیب د خبرو پوښتنه کوله) نبي کریم ﷺ وفرمایل: اوس تاسو کاهنانو ته مه ورځئ، بیا ما وویل: موږ به فال کتئ، نبي کریم

ذَاكَ شَيْءٌ يَجِدُهُ أَحَدُكُمْ فِي نَفْسِهِ فَلَا يَصُدَّنَّكُمْ قَالَ قُلْتُ وَمِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّونَ

ﷺ وفرمایل: دا یو داسي شی دی چي هر څوک یې په خپل زړه کي پیدا کړي (یعني هر څوک

چي د فال خيال كوي ) خو دا خيال دي تاسو د څه كار څخه ونه باسي ، بيا ما وويل: په موږ كي به ځينو خلكو خط (ليكى) را كاږي (يعني د رمل ، د ترويت يو علم چي د كرښو ، ټكو او اعدادو په ذريعه د غيب خبري او د بني ادم د قسمت حال بيانوي) كار كوي ،

خطا قَالَ كَانَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ يَخُطُّ فَمَنْ وَافَقَ خَطَّهُ فَذَاكَ . رواه مسلم .

نبي كريم ﷺ وفرمايل: يو نبي (د خداي تعالى په حكم سره) ليكي راكښلې د چا خط چي د هغه موافق راسي هغه رشتيا دى . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۷۴۸\۴، رقم: ۱۲۱– ۲۲۲۷.

**تشريح**: په حديث كي چي د كوم نبي ذكر سوى دى د هغه څخه حضرت دانيال عليه السلام يا د ځينو حضراتو د قول مطابق حضرت ادريس عليه السلام مراد دى، د حديث د آخري برخي مطلب دادى چي د كرښو او خطو كښلو علم چي رمل ورته ويل كيږي په اصل كي د دغه نبي څخه جاري سوى وو چي اوس د خپل حقيقي اصولو او قواعدو په اعتبار معدوم سوى دى ، كه اوس هم يو څوك دغه علم د خپلو خصوصياتو او شرائطو سره پيژني كوم چي هغه نبي وضع كړى وو او د هغه كرښو او خطو كښل بالكل هم هغسي وي لكه څرنګه چي هغه نبي كول نو په دغه صورت كي به د علم څخه كټه اخيستل مباح وي مګر دا خبره ثابته ده چي دغه علم د خپل اصل په اعتبار د دنيا څخه پورته سوى دى او هيڅوک په هغه د پوهېدو قدرت نلري چي هغه نبي به څه ډول كرښي او خطونه كښل ځكه اوس د دغه علم زده كول او په هغه عمل كول حرام او منع دي ، د دې وضاحت په باب ما لايجوز من العمل في الصلوة كي هم تېر سو يدى .

### د كاهن خبري

﴿۴۳۹۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَأَلَ أُنَاسٌ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ

د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روايت دى چي ځينو خلكو د نبي كريم ﷺ څخه د كاهنانو په باره كي

الْكُهَّانِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسُوا بِشَيْءٍ قَالُوا يَا

وپوښتل (چي د دوى خبري د اعتماد او باور وړ دي او كه څنګه؟) نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل :دا هيڅ نه دي خلكو وويل: اې

رَسُولَ اللّٰهِ فَإِنَّهُمْ يُحَدِّثُونَ أَحْيَانًا بِالشَّيْءِ يَكُونُ حَقًّا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

د الله رسوله ! ځيني وخت هغوی داسي خبري کوي چي هغه ريښتني وي ، نبي کريم ﷺ ورته

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ يَخْطَفُهَا الْجِنِّيُّ فَيَقُرُّهَا فِي أُذُنِ وَلِيِّهِ

قَرَّ الدَّجَاجَةِ فَيَخْلِطُونَ فِيهَا أَكْثَرَ مِنْ مِائَةِ كَذْبَةٍ. متفق عليه.

وفرمايل : هغه کلمه حق ده چي پيريان او شيطان يې را غلا کړي او د خپل دوست په غوږ کي يې داسي و غورځوي ځنګه چي يو چرګ د بل چرګ و غوږ ته اذان رسوي ، وروسته هغه کاهن په هغه رښتيا کلمه کي د سلو څخه زياتي درواغجني خبري شاملي کړي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۹۵، رقم: ۶۲۱۳، ومسلم ۴\۱۷۵۰، رقم: ۱۲۳– ۲۲۲۸.

**تشريح**: هغه خبره حق وي چي پيری يې راوتښتوي، ددې مطلب دادی چي کاهنانو ته ځيني خبري يا ځيني شيان صحيح ثابتيږي ، د هغه وجه دا وي چي کله د الله تعالی له خوا يو حکم د وحي په ذريعه ملائکو ته راځي يا په لوح محفوظ کي يوه خبره پر ملائکو باندي منکشف کيږي نو په يو طريقه سره جنات او شياطين هغه خبره د ملائکو څخه اوري او هغه د خلکو په غوږو کي پوکي کوم چي د هغه جناتو او شياطينو پيروان وي، يعني هغه کاهن او بيا هغه کاهن په هغه خبره کي په سوونو درواغ خبري يو ځای کړي او خلکو ته يې وايي ،

ځينو حضراتو د (يقرها في اذن وليه قر الدجاجة) معنی دا بيان کړې ده چي څرنګه چرګ د خپلي چرګي سره د جفتي کولو په وخت کي داسي مني پکښي اچوي چي چا ته نه معلوميږي همدارنګه هغه جن هم هغه آسماني خبره د خپل پيروانو په غوږو کي په داسي ډول اچوي چي د هغه څخه پرته نورو خلکو ته د هغه علم نه وي .

﴿۴۳۹۲﴾ : وَعَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ الْمَلَائِكَةَ

د بي بي عائشې ؓ څخه روايت دی چي ما د نبي کريم ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي د ملائيکو

تَنْزِلُ فِي الْعَنَانِ وَهُوَ السَّحَابُ فَتَذْكُرُ الْأَمْرَ قُضِيَ فِي السَّمَاءِ فَتَسْتَرِقُ

يوه ډله په وريځ کي را کښته سي او په خپلو کي د کارونو ذکر سره کوي چي د خدای تعالی په نيزد ليکل سوي وي (يعني کوم کارونه چي واقع کېدونکي وي او په تقدير کي ليکل سوي

الشَّيَاطِينُ السَّمْعَ فَتَسْمَعُهُ فَتُوحِيهِ إِلَى الْكُهَّانِ فَيَكْذِبُونَ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ

مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ. رواه البخاري.

وي) شيطانان د هغوی د خبرو د اوربدو لپاره غوږ نيسي ، کله چي د هغوی څخه خبري واوري نو د کاهنانو په غوږونو کي ورواچوي بيا کاهنان په هغوی کي د ځانه څخه سل نوري د دروا غو خبري اچوي او خلکو ته يې بيانوي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٠۴، رقم: ۲۲۱۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي کاهن کومي خبري بيانوي په هغو کي هغه خبره هم وي چي هغوی ته د شيطان په ذريعه معلومه سوې وي او هغه شياطينو هغه خبره د ملائکو څخه په غلا اوربدلې وي او هغه خبره په هر صورت واقع کيږي، همدارنګه د کاهنانو ځيني خبري د حقيقت او واقعت مطابق کيږي مګر دا خبره بايد په ذهن کي وي چي هغه کاهن په هغه خبره کي د خپل ځان له خوا په سوونو دروا غ خبري هم يو ځای کوي او د هغوی ښودل سوي خبرو باندي دروا غ غالب وي، ځکه شريعت د هغه کاهنانو څخه د استفاده کونکو او د هغوی خبرو ته توجه ورکول منع کړل او وه يې فرمايل چي د هغوی خبري هيڅ حقيقت نه لري .

## نجومي او کاهن

﴿۴۳۹۳﴾: وَعَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَتَى عَرَّافًا فَسَأَلَهُ عَنْ شَيْءٍ لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلَاةٌ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً. رواه مسلم.

د بي بي حفصې رضي الله عنها څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ وفرمايل: څوک چي و کاهن او نجومي ته ورسي او د هغه څخه د يوه شی پوښتنه وکړي، د هغه د څلوېښتو شپو پوري لمونځونه نه قبليږي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۷۵۱، رقم: ۱۲۵- ۲۲۳۰.

**تشريح**: يعني دا د هغه چا په اړه سخت تاواني او د بدبختی علامه ده چي د هغه لمونځ چي په عباداتو کي تر ټولو غوره او افضل عمل دی ،نامقبول سي، يا دا مراد دی چي کله د هغه سړي لمونځ نه قبليږي نو نور اعمال يې په طريقه اولی نه قبليږي او د لمانځه نه قبلېدو څخه مراد دادی چي هغه ته د لمونځو ثواب نه تر لاسه کيږي که څه هم د هغه د ذمې څخه فرض ادا سي او پر هغه د لمونځو قضا نه واجبيږي ، په حديث کي که څه هم د اربعين ليلة الفاظ دي يعني يوازي

د شپې ذکر سوی دی مګر په حقیقت کي د ورځي او شپې دواړو لمونځونه مراد دي ځکه چي د عربو د کلام دا هم طرز دی چي په الفاظو کي يوازي د ورځي يا د شپې ذکر وي مګر مراد شپه او ورځ دواړه وي.

**باران د الله ﷻ په فضل کيږي**

﴿۴۳۹۴﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ قَالَ صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د زيد بن خالد جهنی رضي الله عنه څخه روايت دی چي په حديبيه کي نبي کريم ﷺ و موږ ته د سهار

وَسَلَّمَ صَلَاةَ الصُّبْحِ بِالْحُدَيْبِيَةِ عَلَى إِثْرِ سَمَاءٍ كَانَتْ مِنَ اللَّيْلَةِ فَلَمَّا انْصَرَفَ

لمونځ راکړ او د شپې باران سوی وو، د لمانځه د فارغه کيدو وروسته نبي کريم ﷺ موږ ته

أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ هَلْ تَدْرُونَ مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ

متوجه سو او ويې فرمايل: تاسو پوهېږئ چي ستا سو پروردګار (په دې وخت) څه فرمايلي دي، اصحابو کرامو وويل: الله ﷻ او د هغه رسول الله ﷺ بنه پوهيږي.

قَالَ أَصْبَحَ مِنْ عِبَادِي مُؤْمِنٌ بِي وَكَافِرٌ فَأَمَّا مَنْ قَالَ مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللّٰهِ

نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: الله ﷻ فرمايلي دي، زما بندګانو نن په داسي حال کي سبا کړ چي ځينو په ما ايمان راوړ او ځينو کفر (د خداي تعالی څخه انکار) وکړ، چاچي دا وويل چي پر موږ د خدای تعالی په فضل

وَرَحْمَتِهِ فَذَلِكَ مُؤْمِنٌ بِي وَكَافِرٌ بِالْكَوْكَبِ وَأَمَّا مَنْ قَالَ بِنَوْءِ كَذَا وَكَذَا فَذَلِكَ كَافِرٌ بِي وَمُؤْمِنٌ بِالْكَوْكَبِ. متفق عليه.

او کرم سره باران وسو هغه خو پر ما باندي ايمان راوړ او د ستورو د اثر څخه منکر سو او چا چي دا وويل چي د فلاني ستوري د راختو او د لويدو سره باران وسو هغه کافر سو، يعني زما څخه منکر سو او په ستورو يې ايمان راوړ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۳۳۳، رقم: ۸۴۶، ومسلم ۱\۸۳، رقم: ۱۲۵-۷۱.

**تشريح**: کوم څوک چي دا عقيده لري چي په باران اوريدو کي د ستورو د تاثير دخل دی يعني

ستوري باران اوروي يا ستوري داسي اثرات مرتب كوي چي په هغه سره اوبه اوريږي ، لكه ځرنګه چي د جاهليت د زمانې د خلكو عقيده وه نو داسي سړی كافر كيږي مګر كه چيري دغه عقيده داسي وي چي باران په اصل كي د الله تعالى په حكم سره او د هغه په فضل او كرم سره اوريږي او د ستورو طلوع او غروب وغيره د باران يو علامه ده او ددغه شيانو په بنياد د باران كېدو ګمان كېدای سي نو دا كفر نه دی مګر صحيح خبره داده چي داسي خيال او عقيده درلودل هم مكروه تنزيهي دي .

﴿۴۳۹۵﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ بَرَكَةٍ إِلَّا أَصْبَحَ فَرِيقٌ مِنَ النَّاسِ بِهَا كَافِرِينَ يُنْزِلُ اللّٰهُ الْغَيْثَ فَيَقُولُونَ بِكَوْكَبِ كَذَا وَكَذَا . رواه مسلم .

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي خداي تعالى د آسمان څخه بركت نازلوي نو د انسانانو يوه ډله د هغې په ذريعه په كفر كي مبتلا سي (يعني د خداي تعالى څخه انكار كوي) خداي تعالى باران كوي او ځيني خلك دا وايي چي د فلاني فلاني ستوري د اثر څخه باران وسو . مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم ۱\ ۸۴، رقم: ۱۲۶– ۷۲.

**تشريح**: كه څه هم صحيح خبره داده چي د بركت څخه مراد باران دی او دغه عبارت : وينزل الغيث ...الخ: د مخكني عبارت او بركت د لفظ وضاحت دی چي د بركت څخه عام يعني هر ډول بركت مراد دی او د (وينزل الغيث...الخ) په ذريعه د نزول بركت يو مثال او د هغه يو خاص صورت بيانول مقصد دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي　　(دوهم فصل)

### نجوم او جادو

﴿۴۳۹۶﴾ : عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اقْتَبَسَ عِلْمًا مِنَ النُّجُومِ اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِنَ السِّحْرِ زَادَ مَا زَادَ . رواه احمد

وابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د نجوم د علم څخه یوه برخه زده کړي ، هغه لکه د جادو یوه برخه چي یې زده کړه او که د دې څخه زیات حاصل کړي نو زیات جادو یې حاصل کړ . احمد ، ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۱\۳۱۱، وابوداود ۴\۲۲۶، رقم: ۳۹۰۵، وابن ماجه ۲\۱۲۲۸، رقم: ۳۷۲۶.

**تشریح**: علم نجوم ته د سحر سره تشبیه ورکړل سوې ده چي د نجوم علم زده کول داسي دی لکه څرنگه چي یو څوک د جادو علم زده کوي او ددې مشابهت په وجه د علم نجوم خرابي څرگندول دي، په دې اعتبار سره پر علم نجوم باندي عمل کونکي د جادوگرانو او کاهنانو څخه یو فرد دی چي د شریعت خلاف کارونه اختیاروي او د غیب ښوونې دعوه کوي.

## د کاهن مشابهت

﴿۴۳۹۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَتَى كَاهِنًا فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ أَوْ أَتَى امْرَأَتَهُ حَائِضًا أَوْ أَتَى امْرَأَتَهُ فِي دُبُرِهَا فَقَدْ بَرِئَ مِمَّا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ. رواه احمد وابوداؤد.

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي و نجوم گر ته ولاړ سي او د هغه بیان ریښتني و بولي یا یو څوک چي د ښځي سره په حیض حالت کي جماع وکړي یا څوک چي د ښځي سره د لویو بولو په ځای کي جماع وکړي ، هغه د هغه شی څخه منکر او بېزاره سو کوم چي پر محمد ﷺ باندي نازل سوي دي . احمد او ابوداؤد.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲\۴۰۸، وابوداود ۴\۲۲۵، رقم: ۳۹۰۴.

**تشریح**: بېزاره سو : مطلب دادی چي هغه کافر سو مگر دا پر هغه صورت باندي محمول دی کله چي هغه حلال وگڼي ، د حلال نه گڼلو په صورت کي دغه ارشاد ددغه شیانو سخته خرابي او زیات ارزښت بیانوي او ددغه سختي خرابۍ اختیارونکی به په شدت سره خبردار کولو او بېرولو باندي محمول وي.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

## د كاهن او نجومي خبري

﴿۴۳۹۸﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَضَى اللّٰهُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله جل جلاله چي په اسمان كي

الْأَمْرَ فِي السَّمَاءِ ضَرَبَتْ الْمَلَائِكَةُ بِأَجْنِحَتِهَا خُضْعَانًا لِقَوْلِهِ كَأَنَّهُ سِلْسِلَةٌ

كوم حكم جاري كوي نو ملائكه د هغه كلام څخه داسي بيريږي چي وزرونه يې د خداى جل جلاله د بيري څخه رپېږدي او دا حكم د هغه ځنځير د اواز په شان وي

عَلَى صَفْوَانٍ فَإِذَا {فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ قَالُوا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا} لِلَّذِي قَالَ

چي هغه پر صفا كاڼي را كشيږي (يعني د خداي تعالى ارشاد او حكم رباني د ځنځير د اواز په شان وي) بيا چي د ملائكو د زړونو څخه خوف او ويره ليري سي نو د كښتني درجې ملائكه د مقربو ملائكو څخه وپوښتي ستا سو پروردګار څه وفرمايل؟ هغوى وايي څه چي زموږ

{ الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ} فسمعها مسترقوا السَّمْعِ وَمُسْتَرِقُو السَّمْعِ

پروردګار وفرمايل هغه ټوله حق دي يا هغه ارشاد خداوندي ونبا يا ست او بيا وايي د الله جل جلاله ذات لوى او برتر دي هغه خبري چي د ملائكو په مينځ كي كيږي هغه پيريان يا شيطانان واوري

هَكَذَا بَعْضُهُ فَوْقَ بَعْضٍ وَوَصَفَ سُفْيَانُ بِكَفِّهِ فَحَرَفَهَا وَبَدَّدَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ

چي داسي خبرو ته يې غوږ نيولي وي او ځيني د ځينو څخه لوړ وي او سفيان د هغه وصف پر خپل ورغوي وكړي نو خپل ګوتي يې خلاصي كړلې (يعني دا پېريان لږ لږ فاصله باندي سلسله

فَيَسْمَعُ الْكَلِمَةَ فَيُلْقِيهَا إِلَى مَنْ تَحْتَهُ ثُمَّ يُلْقِيهَا الْآخَرُ إِلَى مَنْ تَحْتَهُ حَتَّى

وار ولاړ وي پورته و لاندي ته خبر رسوي او هغه بيا د ځان و كښته پيري يا شيطان ته تردې چي

يُلْقِيَهَا عَلَى لِسَانِ السَّاحِرِ أَوْ الْكَاهِنِ فَرُبَّمَا أَدْرَكَ الشِّهَابُ قَبْلَ أَنْ يُلْقِيَهَا

اخيري پيرى هغه خبر د جادوګر او كاهن و ژبي ته رسوي او د دې پيريانو د وهلو او زغلولو لپاره د

اسمانه څخه په شعلې باندې ویشتل کیږي، کله خو دا شعلې د خبر د رسولو څخه مخکې هغوی ونیسي

وَرُبَّمَا أَلْقَاهَا قَبْلَ أَنْ يُدْرِكَهُ فَيَكْذِبُ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ فَيُقَالُ أَلَيْسَ قَدْ

او کله د شعلې د رسېدو څخه مخکې شیطان دا خبر ورسوي، کوم وخت چې دا خبر ساحر یا کاهن ته ورسوي نو د هغه خبر سره سل نور دروغ پورې کړي او کله چې هغه ته وویل سي چې تا

قَالَ لَنَا يَوْمَ كَذَا وَكَذَا كَذَا وَكَذَا فَيُصَدَّقُ بِتِلْكَ الْكَلِمَةِ الَّتِي سَمِعَتْ مِنْ السَّمَاءِ. رواه البخاري.

فلانی فلانی خبره کړې وه هغه خو دروغ ثابته سوه نو په دې خبره سره د هغه د رېښتني تائید کیږي چې هغه ته د اسمان څخه حاصله سوې وه او پېریانو ورته رسولې وه. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۸\۵۳۷، رقم: ۴۸۰۰.

**د لغاتو حل**: الصفوان: الحجر الاملس. صرفها: ای ففرج کفه (لاس یې خلاص کړ)

**تشریح**: په حدیث کې هغه صورت بیان سوی دی چې کاهنانو ته د غیب خبرو رسېدو سبب جوړېږي، په دې سره د حدیث په آخر کې د هغه گمراهۍ ذکر سوی دی چې کله د کاهن ښودل سوي خبري زیاتي دروغ ثابتېږي او خلک دروغجن ګڼي نو هغه خلک چې د کاهن په رېښتیا خبرو عقیده لري او د باطن په گمراهۍ کې اخته دي د کاهن ټولي خبري نظر انداز کوي او یوازي د هغه خبري په حواله ورکولو سره د هغه د رېښتوني خبري ثابتولو هڅه کوي، کوم چې جنات او شیاطین د ملائکو څخه په غلا اوري او کاهن ته یې را رسوي، دغه صورت د نجومیانو په اړه هم کیږي، کله چې هغوی په سوونو خبري ښیي او په هغو کې یو خبره ناڅاپه صحیح ثابته سي نو هغه دنیا دار خلک چې دهغوی په باطن کې ګمراهي او کوږوالی وي د هغه یوې خبري په وجه د نجومیانو معتقد کیږي.

مخته د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما یو روایت راځي چې په هغه کې په څرګنده کاهن ته ساحر فرمایل سوي دي، په دې اعتبار سره د حدیث دغه الفاظ: (علی لسان الساحر او الکاهن) کې د ساحر څخه مراد کاهن دی، په دغه صورت کې د او حرف به د راوي د شک د اظهار لپاره وي یعني دا ویل کیږي چې راوي د خپل شک اظهار کړی دی چې دلته د ساحر لفظ فرمایل سوی دی که د کاهن، او که دا خبره په نظر کې وي چې ساحر د غیب خبري نه ښیي او په دې اعتبار سره

دلته د ساحر لفظ پر خپل حقيقي معنی باندي محمول کېدای نسي نو دا به ويل کيږي چي د ساحر څخه مراد نجومي دی لکه څرنګه چي په يوه روايت کي فرمايل سوي دي : (المنجم ساحر) يعني نجومي ساحر دی، په دغه صورت کي به : (الساحر والکاهن) کي د او حرف د تنويع لپاره وي .

پاته سوه دا خبره چي په غلا سره په اسمان کي دا خلېدو او د ملائکو خبري اورېدونکي جن او شياطين د تبنتولو لپاره چي کله شغلې ويشتل کيږي او هغه شغلې هغه جن او شيطان رانيسي نو د هغه حشر څه کيږي، ځيني حضرات وايي چي هغه جن يا شيطان د هغه شغلو په وجه وسوځي او ختم سي ، ځيني حضرات وايي چي هغوی په سوځېدو سره نه ختميږي بلکه په شغلو سوځلو سره په سخت تکليف سي او بيرته ژوندي راسي .

## ويشتونکي ستوري

﴿۴۳۹۹﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اَخْبَرَنِي رَجُلٌ مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس ﷠ څخه روايت دی چي د اصحابو څخه يو کس ما ته بيان وکړ

وَسَلَّمَ مِنَ الْاَنْصَارِ اَنَّهُمْ بَيْنَهُمْ جُلُوسٌ لَيْلَةً مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

چي انصاري وو چي هغوی د رسول الله ﷺ سره يوه شپه ناست وه

وَسَلَّمَ رُمِيَ بِنَجْمٍ وَاسْتَنَارَ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاكُنْتُمْ

په دې وخت کي يو ستوری وويشتل سو او رڼا يې خپره سوه نبي کريم ﷺ وفرمايل : د

تَقُولُونَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ إِذَا رُمِيَ بِمِثْلِ هٰذَا قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ كُنَّا نَقُولُ وُلِدَ

جاهليت په زمانه کي چي به کله دا سي يو ستوری وويشتل سو نو تاسو به څه ويل؟ اصحابو کرامو وويل: چي د حقيقت حال الله ﷻ او د هغه و رسول الله ﷺ ته معلوم دی، موږ خو به دا

اللَّيْلَةَ رَجُلٌ عَظِيمٌ وَمَاتَ رَجُلٌ عَظِيمٌ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ويل چي نن يو لوی کس پيدا سوی دی يا نن ورځ يو لوی کس مړ سوی دی . نبي کريم ﷺ

فَإِنَّهَا لَا يُرْمَى بِهَا لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ وَلٰكِنْ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى اسْمُهُ إِذَا قَضَى

وفرمايل: ستوری نه د چا په مرګ ويشتل کيږي او نه د چا په پيدا ئښت بلکه زموږ پروردګار چي د هغه نوم برکتناک دی کله چي د څه حکم نافذ کوي

أَمْرًا سَبَّحَ حَمَلَةُ الْعَرْشِ ثُمَّ سَبَّحَ أَهْلُ السَّمَاءِ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ حَتَّى يَبْلُغَ التَّسْبِيحُ

نو د عرش الهی پورته کونکي ملائکي تسبیح وايي (یعني سبحان الله ، سبحان الله) بیا د اسمان ملائکي تسبیح وايي چي د عرش الهي پورته کونکي ملائکو ته نیزدې وي تردې چي د

أَهْلَ هَذِهِ السَّمَاءِ الدُّنْيَا ثُمَّ قَالَ الَّذِينَ يَلُونَ حَمَلَةَ الْعَرْشِ لِحَمَلَةِ الْعَرْشِ مَاذَا

هغوی د تسبیح اواز د دنیا و اسمان ته راسي بیا هغه ملائکي چي د عرش د پورته کونکو ملائکو نژدې وي

قَالَ رَبُّكُمْ فَيُخْبِرُونَهُمْ مَا قَالَ فَيَسْتَخْبِرُ بَعْضُ أَهْلِ السَّمَاوَاتِ بَعْضًا حَتَّى

د هغوی څخه پوښتنه وکړي چي ستاسو پروردګار څه وویل ؟ هغوی د هغه څخه خبر کړي وروسته هغه خبره د هغوی څخه نوري ملائکي و پوښتي او د هغوی څخه بیا نوري تردې پوري

يَبْلُغَ الْخَبَرُ هَذِهِ السَّمَاءَ الدُّنْيَا فيخطف الْجِنُّ السَّمْعَ فَيَقْذِفُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ

چي دا سلسله و لاندي اسمان ته راورسیږي وروسته هغه خبر هغه پیریان او شیطانان واوري کوم چي یې غوږ نیولي وي د داسي خبرو منتظر وي او د خپلو دوستانو و غوږونو ته یې ور

وَيُرْمَوْنَ بِهِ فَمَا جَاءُوا بِهِ عَلَى وَجْهِهِ فَهُوَ حَقٌّ وَلَكِنَّهُمْ يَقْرِفُونَ فِيهِ وَيَزِيدُونَ .

رواه مسلم .

رسوي او ویشتل کیږي دوی ،غرض دا چي دا خبر داسي کاهنانو او جادوګرانو ته ورسیږي لیکن دا خلک په هغه کي درواغ شاملوي او د یوې خبري څخه نوري ډیري خبري جوړوي . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۷۵۰/۱۴، رقم: ۱۲۴- ۲۲۲۹.

**د لغاتو حل**: یقرفون: ای یکذبون (درواغ وايي).

## ستوري د څه لپاره پیدا سوي دي

﴿۴۴۰۰﴾: وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ خَلَقَ اللهُ تعالی هَذِهِ النُّجُومَ لِثَلَاثٍ جَعَلَهَا زِينَةً

د حضرت قتاده رحمه الله څخه روایت دی چي الله جل جلاله دا ستوري د درو خبرو لپاره پیدا کړي دي .

لِلسَّمَاءِ وَرُجُومًا لِلشَّيَاطِينِ وَعَلَامَاتٍ يُهْتَدَى بِهَا فَمَنْ تَأَوَّلَ فِيهَا بِغَيْرِ ذَلِكَ

(۱)- يو خو اسمان ته د ښائست ورکولو لپاره .(۲)-د پيريانو او شيطانانو د ويشتلو لپاره .(۳)-او دريم د علامو لپاره چي په دې سره خلک لاره پيدا کوي ، چا چي د دې درو

أَخْطَأَ وَأَضَاعَ نَصِيبَهُ وَتَكَلَّفَ مَا لَا عِلْمَ لَهُ بِهِ . رواه البخاري. وفي رواية

فائدو څخه پرته د بلې فائدې لپاره بيان کړ هغه غلطي وکړه ، د خپل عمر حصه يې ضائع کړه او په هغه شی کي يې تکلف وکړ چي په هغه کي ورته علم نه وي. بخاري ، او د رزين په روايت کي

رزين تكلف مالا يعنيه ومالا علم له به وما عجز عن علمه الأنبياء والملائكة وعن الربيع مثله وزاد والله ما جعل الله في نجم حياة أحد ولا رزقه ولا موته وإنما يفترون على الله الكذب ويتعللون بالنجوم .

دا الفاظ زيات دي چي د هغه شي تکلف يې وکړ چي هغه ته هيڅ فائده نه رسيږي او په هغه شي کي يې تکلف وکړ چي علم يې پکښي نسته چي د هغه د علم څخه انبياء (پيغمبران) او ملائکي عاجزه دي (نو دوی به ورباندي څه پوه سي) د ربيع راوي څخه هم داسي روايت نقل دی او په هغه کي دا الفاظ زيات دي په خداي تعالی دي مي قسم وي چي الله ﷻ په ستورو کي نه خو د چا ژوند ټاکلی دی نه د چا مرګ او نه د چا رزق ، دا خلک په خداي تعالی باندي درواغ وايي چي ستوري د وجود او عدم علت (سبب ، وجه) ګرځوي .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۹۵۱٦،

**تشريح** : خپله برخه يې ضائع کړل: مطلب دا دی چي هغه خپل ځان په پالتو او بې کاره کارو کي اخته کړ چي د هغه ګټه نه په دنيا کي تر لاسه کيږئ او نه په آخرت کي تر لاسه کېدونکې ده، همدارنګه هغه د خپل قريب د عمر قيمتي برخه ضائع کړل .

### نجومي ساحر دی

﴿۴۴۰۱﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اقْتَبَسَ بَابًا مِنْ عِلْمِ النُّجُومِ لِغَيْرِ مَا ذَكَرَ اللهُ فَقَدِ اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِّنَ السِّحْرِ الْمُنَجِّمُ كَاهِنٌ وَّالْكَاهِنُ سَاحِرٌ وَّالسَّاحِرُ كَافِرٌ . رواه رزين.

د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : چاچې د نجوم د علم يوه برخه زده کړه د هغه څخه پرته چې د هغه ذکر الله جل جلاله کړی دی نو هغه د جادو يوه حصه زده کړه او نجومي (يعني د ستورو په علم پوهېدونکي) کاهن دی او کاهن جادوګر دی او جادوګر کافر دی . رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چې نجوم، کهانت او سحر دغه ټول شيان د يوه جنس دی او د ټولو يو حکم دی او دغه ټول د کافرانو او بې دينو خلکو کارونه دي .

## باران خدای جل جلاله کوي

﴿۴۴۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ أَمْسَكَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ الْقَطْرَ عَنْ عِبَادِهِ خَمْسَ سِنِينَ ثُمَّ أَرْسَلَهُ لَأَصْبَحَتْ طَائِفَةٌ مِنَ النَّاسِ كَافِرِينَ يَقُولُونَ سُقِينَا بِنَوْءِ الْمِجْدَحِ. رواه النسائي.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : که الله جل جلاله د خپلو بندګانو څخه پنځه کاله باران ودروي او بيا باران وکړي نو د خلکو څخه يوه ډله کافران به د خداي تعالی څخه په انکار کولو سره ووايي چې د مجدح(يعني منزل قمر) په وجه پر موږ باندي باران وسو . نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۳\۱۶۵، رقم: ۱۵۲۶.

**د لغاتو حل**: المِجدح: نجم من النجوم (يو ستوری).

**تشريح**: مِجدح: د ميم په زېر، د جيم په جزم او د دال په زور سره د عربو په نزد د سپوږمۍ د منازلو څخه يو منزل دی ، د جاهليت په زمانه کي به عربو دغه منزل د باران اورېدو سبب ګرځوی ، دا خبره مخکي هم ښودل سوې ده چې د ستورو راختل او لوېدل او د سپوږمۍ منازل د باران اورېدو حقيقي سبب ګڼل کفر دی .

==========

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيم

# كِتَابُ الرُّؤْيَا

## (د خوبونو بيان)

د خوب معنى ده هغه خبره چي انسان يې په خوب كي ويني، تحقيق كوونكي وايي: خوب پر درې ډوله دي: يو خو محض خيال چي ټوله ورځ پر زړه، دماغ او ذهن باندي چي كومي خبري خپرې سوي وي هغه په خوب كي په مشكل كېدو سره څرګندي سي، دوهم ډول خوب هغه دى چي د شيطاني اثراتو عكاس وي لكه څرنګه چي په عامه توګه بېرونكي خوبونه لېدل كيږي، او دريم ډول هغه خوب دى چي د الله تعالى له لوري زيري او غوره والى څرګندوي، د خوب دغه دريم ډول ته (رؤيا صالحه) وايي، او ددې حقيقت د علماوو او اهل سنت په نزد دادى چي الله تعالى د بېده سړي په زړه كي د علوم معرفت د ادراكاتو او احساساتو نور پيدا كوي، لكه څرنګه چي هغه د وېښ سړي زړه د علوم او معرفت د ادراكاتو او احساساتو په رڼا سره منور كوي، او الله تعالى ښېله شكه پر دې قادر دى ځكه چي نه خو بيداري په قلب انساني كي د نور بصيرت د پېداكېدو ذريعه ده او نه خوب ددې څخه مانع دى، څرګنده دي وي چي بېده سړى په خپل خوب كي د كومو خبرو ادراک او احساس كوي او كوم شيان چي د هغه نور بصيرت ويني هغه په اصل كي د واقع كېدونكو شيانو علامه او اشاره وي او دغه علامه او اشاره د تعبير بنياد جوړېږئ كله دغه علامه او اشاره دومره واضحه وي چي عام انساني ذهن د هغه مراد بيانولاى سي لكه څرنګه چي د وريځي په لېدو سره د باران وجود ته ذهن خپله ورځي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د مسلمان ښه خوب

﴿۴۴۰۳﴾: عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَبْقَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د نبوت د اثارو څخه هيڅ

مِنَ النُّبُوَّةِ إِلَّا الْمُبَشِّرَاتُ قَالُوا وَمَا الْمُبَشِّرَاتُ قَالَ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ. رواه

**البخاري و زاد مالك برواية عطاء بن يسار يراها الرجل المسلم او ترى له.**

پاته نه دي پرته دمبشراتو څخه (يعني نبوت به زما وروسته ختم سي او د راتلونکو واقعاتو د معلومولو هيڅ ذريعه به پرته د مبشراتو څخه پاته نسي) اصحابو كرامو وويل: چي مبشرات و څه ته ويل كيږي ؟ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : ښه خوبونه (يعني زيری وركونكي خوبونه) . بخاري او مالک په دې روايت كي چي د عطاء بن يسار رحمه الله څخه نقل دی دا الفاظ زيات ليکلي چي نبي كريم ﷺ د ښه خوب وروسته دا الفاظ وفرمايل: هغه ښه خوب چي مسلمان يې د ځان لپارهويني يا د هغه لپاره يې بل څوک ويني ..

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۳۷۵، رقم: ۶۹۹۰.

**تشريح**: مُبشرات : د ميم په پيښ او د باء په زور سره د بشارت څخه مشتق دی چي د هغه معنی د زيري ده، په عربي كي د بشارت لفظ په عامه توګه د خير په سياق كي راځي مګر كله د شر سره هم استعماليږي ، همدارنګه د رؤياء اطلاق په عامه توګه پر نېک خوب باندي كيږي او خراب خوب ته حُلم وايي، مګر دغه فرق او تخصيص شرعي نه دی ، د لغت په اعتبار رؤياء مطلق خوب ته وايي، دلته په حديث كي هم د رؤياء لفظ مطلق د خوب په معنی كي استعمال سوی دی او كه دا وويل سي چي د رؤياء څخه نېک خوب مراد دی نو په دغه صورت كي به ويل كيږي چي د لفظ صالحه ذكر محض د لفظ رؤياء د وضاحت او تشريح لپاره دی، يا دا چي صالحه په اصل كي د صادقه په معنی كي دی چي د روياء صالحه څخه مراد هغه نېک خوب دی چي ريښتونی يعني د واقع مطابق وي، په لومړۍ معنی كي يعني لفظ د صالحه د روياء وضاحت او تشريح ګرځول زيات صحيح او د مبشراتو د معنی موافق دی ځکه چي د نېک خوب مطلب نيک خبر دی او بشارت هم كليه يا په عامه توګه زړه او دماغ خوشحاله كونكی وي كه څه هم د طيبي رحمه الله د قول مطابق په بشارت كي د صدق هم اعتبار وي مګر د حديث سياق د دې متقاضي دی چي دوهمه معنی مراد واخيستل سي ځکه چي په حديث كي خوب ته د نبوت يو جز ويل سوي دي او په نبوت كي د ريښتوني خبر اعتبار دی كه څه هم هغه خوشحاله كونكی وي يا بېرونكی وي ، په دغه صورت كي به ويل كيږي چي د لفظ مبشرات استعمال د تغليب لپاره دی يا دا چي مبشرات پر خپل مطلق معنی يعني مخبرات باندي محمول دی .

## د ښه خوب فضیلت

﴿۴۴۰۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ. متفق علیه.

د حضرت انس ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ښه خوب د نبوت د شپږ څلوېښتو برخو څخه یوه برخه ده. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۳۷۳، رقم: ۶۹۸۸، ومسلم ۴\۱۷۷۴، رقم: ۸-۲۲۶۳.

**تشریح**: څرګنده خبره داده چي دلته د رویاء صالحه څخه مراد صادقه دی یعني هغه نېک خوب چي رېښتیا هم وي، دلته یو سوال پیدا کېږي او هغه دا چي، د یو شي یو برخه د هغه شي څخه بېله نه وي بلکه د هغه سره وي په دې اعتبار به ویل کېږي چي کله نبوت باقي نه دی پاته سوی نو د هغه نبوت جز یعني رویا صالحه څرنګه باقي کیدای سي، ددې جواب دادی چي ددغه ارشاد معنی داده چي رویاء صالحه د علم نبوت د اجزاوو او برخو څخه یو برخه ده او څرګنده ده چي علم نبوت پاته دی که څه هم نبوت باقي نه دی، یعني په دغه حدیث کي د ذکر سوو الفاظو په ذریعه د رویاء صالحه فضیلت او منقبت بیان سوی دی چي نېک خوب د نبوت عکس دی که څه هم د هغه لېدونکی نبي نه وي، لکه چي په یو حدیث کي فرمایل سوي دي چي نېکي، حلم او میانه روي د نبوت څخه دي، د شپږ څلوېښت د شمېر د خاصوالي په اړه علماوو مختلفي خبري لیکلي دي، مګر صحیح خبره داده چي نه یوازې ددغه بلکه د نورو ډېرو شیانو لکه د لمانځه د رکعتو، تسبیحاتو او نورو په اړه چي کوم شمېر مشروع او مذکور دی د هغه د علت او حقیقت علم شارح ته معلوم دی، په یو بل روایت کي د شپږ څلوېښت پر ځای شپږ ویشت او په یوه روایت کي شپږ اویا او په یوه روایت کي څلیرویشت عدد مذکور دی، ددې څخه دا ثابتېږي چي په هیڅ روایت کي یو خاص عدد مراد نه دی بلکه محض زیاتوالی مراد دی.

## نبي ﷺ په خوب کي لیدل

﴿۴۴۰۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ رَآنِي فِي الْمَنَامِ فَقَدْ رَآنِي فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَتَمَثَّلُ فِي صُوْرَتِي. متفق علیه.

د حضرت ابوهریره ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي په خوب کي زه

ولیدم هغه (په حقیقت کي)زه ولیدم ځکه چي شیطان زما شکل او صورت نه سي اختیارولای .
بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۰۲، رقم: ۱۱۰، ومسلم ۴\۱۷۷۴، رقم: ۱۰– ۲۲۶۶.

**تشریح**: مطلب دادی چي کوم چا زه په خوب کي ولېدلم نو لکه هغه چي زه په وېښه ولېدلم مگر ددې دا مطلب نه دی چي پر هغه سړي باندي هغه احکام عائد کیږي کوم چي په حقیقت کي د رسول الله ﷺ د لېدو په صورت کي کیږي یعني نه خو داسي سړي ته صحابي ویل کیږي او نه په هغه شي عمل کول به د هغه لپاره ضروري وي چي هغه په خپل خوب کي د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي وي ، ځیني حضرات وایي چي رسول الله ﷺ دغه حدیث د خپلي زمانې د خلکو لپاره فرمایلی دی چي زما په زمانه کي کوم څوک ما په خوب کي ویني هغه ته به الله تعالی د هجرت کول توفیق ورکړي چي هغه به په راتلو سره زما سره یو ځای سي، یا دا مراد دی چي هغه به په آخرت کي زما لېدنه وکړي ، ځیني حضرات وایي چي دغه ارشاد په معنی د اخبار دی مطلب دا چي کوم څوک ما په خوب کي ویني هغه ته خبر ورکړئ چي د هغه خوب حقیقي او رېښتونی دی او اضغاث احلام نه دي، ځکه چي شیطان زما صورت نسي اختیارولای یعني د هغه دومره توان نسته چي هغه یو چا ته په خوب کي راسي او د هغه په فکر کي دا خبره واچوي زه رسول الله ﷺ یم او همدارنگه په رسول الله ﷺ پسي درواغ وتړي .

ځیني محققینو لیکلي دي چي شیطان د الله تعالی د ذات په اړه درواغ بنودلای سي یعني لېدونکی په دې فکر او وسوسه کي اخته کولای سي چي دا د الله تعالی صورت دی مگر د رسول الله ﷺ صورت هیڅکله نسي جوړولای او نه په رسول الله ﷺ پسي درواغ تړلای سي، ځکه چي رسول الله ﷺ د هدایت مظهر دی او شیطان لعین د ضلالت او گمراهی مظهر دی او د هدایت او ضلالت په مینځ کي د اوبو او د اور نسبت دی چي دواړه د یو بل ضد دي ، ددې پر خلاف د الله تعالی ذات د صفات هدایت او اضلال او صفات متضاده جامع دی، ددې څخه پرته صفت الوهیت داسي صفت دی چي د هغه په مخلوقاتو کي دعوه کول صریح البطلان دی او محل اشتباه نه دی حال دا چي وصف نبوت ددې درجې صفت نه دی ، همدا وجه ده که یو سړی د الوهیت دعوه وکړي نو د هغه څخه خارق عادات صادرېدلای سي او که یو سړي د نبوت دعوه وکړي نو د هغه څخه د معجزې څرگندېدل ممکن نه دي .

﴿۴۴۰۶﴾: وَعَنْ اَبِي قَتَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ رَآنِي فَقَدْ رَأَى الْحَقَّ. متفق عليه.

د حضرت ابو قتاده ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي زه په خوب کي ولیدم هغه حق ولیدل یعني ریښتني خوب یې ولیدی او زه یې ولیدم. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۳۷۳، رقم: ۶۹۹۶، ومسلم ۱۴\۱۷۷۶، رقم: ۱۱– ۲۲۶۷.

**تشریح**: څرګنده دي وي چي د دغه مضمون حدیثونه په ډېرو طریقو او سندو سره نقل سوي دي، او پر دې خبره دلالت کوي چي کوم څوک رسول الله ﷺ په خوب کي ویني نو هغه په حقیقت کي رسول الله ﷺ ولېدی، دا د رسول الله ﷺ په ځانګړتیاوو کي شمېرل کیږي او اعجاز نبوي ګرځول سوی دی البته د علماوو په نزد په دې خبره کي اختلاف دی چي د دغه حدیثونو تعلق د رسول الله ﷺ په کوم صورت او حلیه کي د لېدو دی، ځیني حضرات وایي چي د دغه حدیثونو تعلق د هغه سړي سره دی چي په خپل خوب کي رسول الله ﷺ په هغه خاص صورت او حلیه کي ویني چي په هغه سره رسول الله ﷺ متصف دی، ځینو حضراتو په دې کي پراختیا کړې ده او ویلي یې دي چي رسول الله ﷺ په هغه شکل او صورت کي ویني چي ټول عمر د رسول الله ﷺ سره متعلق وو یعني که د ځوانۍ په شکل کي یې ویني او که د پاخه عمر په شکل کي او که د آخري عمر په صورت کي یې ویني، ځینو حضراتو دغه دائره محدوده کړې ده او وایي چي رسول الله ﷺ په هغه شکل کي د لېدو اعتبار دی کوم چي د رسول الله ﷺ د عمر په آخري برخه کي وو او په هغه شکل کي رسول الله ﷺ له دنیا څخه تشریف وړی دی، تر دې چي هغه حضراتو د رسول الله ﷺ د هغه سپینو وېښتانو د لېدو هم اعتبار کړی دی چي د رسول الله ﷺ په سر مبارک او ږیره مبارکه کي وه او په شمېر کي شلو ته هم رسیدلي نه وه.

نقل سوي دي چي کله به محمد ابن سیرین رحمه الله (د خوبو د تعبیر په فن کي امام وو) ته یو سړی راغلی او دا بیان به یې وکړ چي ما رسول الله ﷺ په خوب کي لیدلی دی، نو هغه به پوښتنه ځیني کول چي وښیه! تا رسول الله ﷺ په کوم شکل او صورت کي لیدلی دی، که چیري هغه سړي به د رسول الله ﷺ هغه شکل بیان کړ کوم چي د رسول الله ﷺ سره خاص وو نو ابن سیرین رحمه الله به ورته ویل: ولاړ سه تا رسول الله ﷺ په خوب کي نه دی لیدلی.

په دې اړه امام نووي رحمه الله وایي: کوم څوک چي رسول الله ﷺ په خوب کي ویني نو هغه

په هر صورت كي رسول الله ﷺ په خوب كي ليدلى دى، كه هغه يې په هغه خاص صورت كي ويني كوم چي د رسول الله ﷺ په اړه نقل سوى دى يا په بل شكل كي يې ويني، ځكه چي د شكل مختلف كېدل د ذات مختلف كېدل ضروري نه ګرځوي، ددې ځخه پرته دا هم بايد په ذهن كي وي چي په شكل كي د اختلاف تعلق د اختلاف او تفاوت تعلق د خوب لېدونكي د ايمان د كمال او نقصان ځخه هم كېداى سي يعني كوم ځوك چي په خوب كي رسول الله ﷺ په ښه شكل او صورت كي ويني نو دا به د هغه د كامل ايمان او عقيدې علامه وګرځول سي او كوم ځوك چي ددې پر خلاف ويني نو دا به د هغه د ايمان د كمزورۍ او د عقيدې د فساد علامه وګرځول سي، همدارنګه كه يو ځوك رسول الله ﷺ په سپين ږېرتوب كي ويني او يو سړى يې زلمى ويني او يو سړى يې خوشحاله ويني او يو سړى يې غمجن ويني نو دغه ټول حالتونه به دخوب لېدونكي د ايمان د احوالو پر فرق باندي مبني وي چي كوم ځوك د كومي درجې ايمان لري هغه به رسول الله ﷺ د هغه درجې په صورت كي ويني، په دې اعتبار سره رسول الله ﷺ په خوب كي لېدل د خپل ايماني احوالو پېژندو يو معيار دى، نو دغه شى د سالكين طريقت لپاره د يو كټوري قاعدې حيثيت لري چي د هغه په ذريعه د خپل باطن حالت پېژندو سره د هغه اصلاح وكړي، پر دې باندي په قياس كولو سره ځينو علماوو دا هم ليكلي دي چي كوم ځوك په خوب كي د رسول الله ﷺ يو ارشاد واوري نو د هغه دي د حديث او سنتو سره تقابل وكړي كه هغه ارشاد د حديث او سنت موافق وي نو هغه يقينا حق دى او كه موافق نوي نو دادي وګڼي چي دا زما د ذهن او سامعې خلل دى نو په خوب كي د رسول الله ﷺ ذات او د رسول الله ﷺ ارشاد لېدل او اورېدل حق دي كه صورت مبارك او ارشادات مقدسه كي تفاوت او مخالفت معلوم سي نو بايد پوه سي چي دا به د خوب لېدونكي د كوتاهۍ په اعتبار وي.

د شيخ علي متقي رحمة الله عليه ځخه نقل سوي دي چي يو فقير په خوب كي ولېدل چي رسول الله ﷺ هغه ته د شراب ځښلو لپاره وفرمايل، ددغه خوب په وجه د هغه په ذهن كي سخت تشويش پيدا سو، هغه د تشويش دفع كولو لپاره علماوو ته رجوع وكړه او د هغوى ځخه يې پوښتنه وكړه چي ددغه خوب حقيقت څه شي دى؟ هر عالم مختلف تعبير ورته بيان كړ، په دغه وخت كي دغه مسئله د حديثو يو عالم شيخ محمد ابن عراة رحمة الله عليه ته راغلل چي باعمله عالم او ډېر متبع سنت وو، هغه وفرمايل: اصل خبره دا نه ده لكه ځرنګه چي هغه اوريدلې ده بلكه د هغه ذهن او سامعه د خلل او انتشار ښكار سوې ده، په حقيقت كي رسول الله ﷺ داسي ورته فرمايلي دي چي: (لا تشرب الخمر) يعني شراب هيځكله مه ځښه، مګر هغه دغه جمله داسي واورېده

چي : (اشرب الخمر) يعني شراب وڅښنه .

﴿۴۴۰۷﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ رَآنِي فِي الْمَنَامِ فَسَيَرَانِي فِي الْيَقْظَةِ وَلَا يَتَمَثَّلُ الشَّيْطَانُ بِي. متفق عليه.

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي په خوب كي زه وليدم هغه به ژر د بيدارى په حالت كي ما ووينى او شيطان زما شكل نه سي اختيارولاى . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۳۸۳، رقم: ۶۹۹۳، ومسلم ۱۴\۱۷۷۵، رقم: ۱۱- ۲۲۶۶.

**تشريح**: دد غه حديث تعلق د رسول الله ﷺ د زمانې سره دى، چي كوم څوک په خوب كي رسول الله ﷺ ووينى نو هغه ته به الله تعالى دا توفيق وركړي چي هغه په وېښه كي هم د رسول الله ﷺ په لېدنه مشرف سي ، يعني د رسول الله ﷺ په خدمت كي به حاضر سي او اسلام به قبول كړي، يا د ارشاد مطلب دادى چي څوک ما په خوب كي ووينى نو په آخرت كي به هغه په وېښه سره هم ما ووينى .

### ښه يا خراب خوب

﴿۴۴۰۸﴾ : وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّؤْيَا

د حضرت ابو قتاده ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الصَّالِحَةُ مِنَ اللّٰهِ وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مَا يُحِبُّ فَلَا

ښه خوب د الله ﷻ له خوا وي او بد خوب د شيطان له جانبه دى ، څوک چي ښه خوب ووينى هغه دي يوازي و هغه چاته بيان كړي

يُحَدِّثْ بِهِ إِلَّا مَنْ يُحِبُّ وَإِذَا رَأَى مَا يَكْرَهُ فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللّٰهِ مِنْ شَرِّهَا وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَلْيَتْفِلْ ثَلَاثًا وَلَا يُحَدِّثْ بِهَا أَحَدًا فَإِنَّهَا لَنْ تَضُرَّهُ . متفق عليه.

چي د هغه سره يې محبت وي او څوک چي بد خوب ووينى نو هغه دي د خداي تعالى په ذريعه د بدئ څخه پناه وغواړي او د شيطان څخه دي هم د خداي تعالى په ذريعه پناه وغواړي او درې

واره دي و چپه لور ته توکي او چا ته دي هغه خوب نه بیانوي لپاره د دې چي هغه خوب درته نقصان و نه رسوي . بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۳۳۸۱، رقم: ۳۲۹۲، ومسلم ۴\۱۷۷۲، رقم: ۱۱- ۲۲۶۱.

**تشریح**: خراب خوب د شیطان له لوري وي : ددې مطلب دادی چي که څه هم ښه او بد دواړه خوبونه الله تعالی پیدا کړي دي او لیدونکی یې د الله تعالی له خواویني مگر خراب خوب د شیطاني اثراتو عکس وي او د هغه خوب څخه انسان ته پریشاني کیږي ځکه په هغه کي شیطان ته ډېره خوشحالي تر لاسه کیږي، خلاصه دا چي ښه خوب خو د الله تعالی له لوري بنده ته زیری وي چي هغه بنده خوشحاله سي او د هغه ، هغه خوب د الله تعالی سره د هغه د ښه چلن او امید باعث او د الله تعالی په شکر کي د زیاتوب سبب وګرځي، حال دا چي غمجن او پرېشانه کونکی خوب ، درواغ خوب د شیطاني اثراتو څخه وي چي د هغه څخه د شیطان مقصد دا وي چي هغه مسلمان غمجن او پرېشانه کړي، چي په هغه سره د بدګمانۍ او ناامیدۍ ښکار سي .

هغه خوب هغه ته تاوان نه رسوي: مطلب دادی چي څرنګه الله تعالی صدقه او خیرات او د مال ساتنه او برکت د بلاوو د دفع سبب جوړ کړی دی همدارنګه هغه مذکوره شیان یعني د الله تعالی مرسته غوښتل درې ځله چپه خوا ته توکل او چا ته نه بیانول د خراب خوب د مضرو اثراتو څخه د سلامتۍ سبب ګرځول سوی دی .

## کله چي خراب خوب ویني

﴿۴۴۰۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَى أَحَدُكُمُ الرُّؤْيَا يَكْرَهُهَا فَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ ثَلَاثًا وَلْيَسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ ثَلَاثًا وَلْيَتَحَوَّلْ عَنْ جَنْبِهِ الَّذِي كَانَ عَلَيْهِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کي چي څوک خراب خوب ویني هغه ته پکار ده چي چپه طرف ته درې واره توکي او د خداي تعالی په ذریعه دي د شیطان څخه درې واره پناه و غواړی او خپل اړخ دي بدل کړي چي پر کوم یې خوب لیدلی وي . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\۱۷۷۲، رقم: ۵- ۲۲۶۲.

**تشریح**: د تله د توکلو لپاره د بصق لفظ استعمال سوی دی، حال دا چي په مخکني حدیث کي

د تفل لفظ ذکر سوی دی، د مفهوم او مطلب په اعتبار دواړه الفاظ یو ډول دي مګر په دواړو کي لږ فرق دادی چي د تفل معنی د خولي څخه توکل دي او د بصق معنی د خولي د ننه څخه توکل دي په داسي توګه چي د حلق څخه هم راووځي، د خولي څخه راوتلي ناړو ته بصاق وایي او مزاق هم ورته وایي ددې څخه څرګنده سوه چي د توکلو په اړه لومړی درجه د بصق ده ددې څخه وروسته تفل دی ، د تفل څخه وروسته تفث دی چي د هغه معنی په شونډانو سره توکل دي، او ددې څخه وروسته نفخ دی چي هغه محض پوکلو ته وایي، د مسلم په یوه روایت کي د فلیبصق پر ځای د فلینفث لفظ نقل سو دی او په دغه حدیث کي چپه خوا ته دتوکلو حکم ورکړل سوی دی حال دا چي په مخکني حدیث کي مطلق د توکلو حکم دی، همدارنګه په دغه حدیث د څنګ بدلولو حکم هم ورکړل سوی دی ، علماوو لیکلي دي چي دخوب په اثراتو او کیفیاتو کي د تغیر او تبدیلی لپاره دغه شیان ډېر تاثیر لري .

## دخوبو تعبیر

﴿۴۴۱۰﴾: وَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اقْتَرَبَ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چي کله زمانه نیزدې سي د

الزَّمَانُ لَمْ يَكَدْ يَكْذِبُ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ وَرُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِيْنَ

مؤمن خوب به دروغ نه وي ځکه چي د مؤمن خوب د نبوت د شپږڅلوېښتو برخو څخه یوه برخه

جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ وَمَا كَانَ مِنَ النُّبُوَّةِ فَإِنَّهُ لَا يَكْذِبُ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ سِيْرِيْنَ وَأَنَا

ده ، کوم شی چي د نبوت د اجزاؤ څخه وي هغه هیڅکله دروغ کېدای نه سي . د محمد بن سیرین قول دی :زه

أَقُوْلُ الرُّؤْيَا ثَلَاثٌ حَدِيْثُ النَّفْسِ وَتَخْوِيْفُ الشَّيْطَانِ وَبُشْرٰى مِنَ اللّٰهِ فَمَنْ

وایم چي خوب پر درې ډوله دی : (۱)- یو خو انساني خیال دی .(۲)- د شیطان وېرول.(۳)- د خدای تعالی له لوري بشارت ، نو څوک چي

رَأٰى شَيْئًا يَكْرَهُهُ فَلَا يَقُصَّهُ عَلٰى أَحَدٍ وَلْيَقُمْ فَلْيُصَلِّ قَالَ وَكَانَ يَكْرَهُ الْغُلَّ فِي

خراب خوب ویني هغه دي و چا ته نه بیانوي(او دخراب خوب د لېدو څخه وروسته) ولاړ دي

سي او لمونځ دي وکړي (يعني د نفل لمونځ څومره چي ممکن وي). د ابن سيرين رح بيان دی

النَّوْمِ وَكَانَ يُعْجِبُهُمُ الْقَيْدُ وَيُقَالُ الْقَيْدُ ثَبَاتٌ فِي الدِّينِ . متفق عليه .قال

چي نبي کريم ﷺ په خوب کي طوق ليدل بد ګڼل او قيد يعني په پښو کي بيړۍ پرتې ليدل به يې ښه ګڼل او ويل کيږي (يعني د خوب د تعبيرو د ماهرانو قول دی) چي د قيد معنی ده په دين کي ثابت قدمي . بخاري او مسلم. او په

البخاري رواه قَتَادَةُ وَيُونُسُ وَهِشَامٌ وَأَبُو هِلَالٍ عَنْ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ

بخاري کي دا حديث د قتاده رضي الله عنه، يونس رضي الله عنه ، هشيم رضي الله عنه او ابو هلال رضي الله عنه د ابن سيرين رضي الله عنه څخه او هغوی د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت کړی دی .

وَقَالَ يُونُسُ لَا أَحْسِبُهُ إِلَّا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْقَيْدِ وقال مسلم

يونس وويل ، زما په خيال د قيد په اړه د نبي کريم ﷺ څخه روايت سوی دی . او د مسلم بيان

لَا أَدْرِيْ هُوَ فِي الْحَدِيْثِ أَمْ قَالَهُ بْنُ سِيْرِيْنَ وَفِيْ رِوَايَةٍ نَحْوَهُ وَأَدْرَجَ فِي الْحَدِيْثِ قَوْلَهُ وَأَكْرَهُ الْغُلَّ إِلَى تَمَامِ الْكَلَامِ.

دی چي ما ته نه ده معلومه چي دا د حديث برخه ده يا د ابن سيرين رضي الله عنه قول دی او په يوه روايت کي هم داسي دي او ما په حديث کي د هغه قول : و اکره الغل څخه تر اخيره پوري درج کړی دی .په دې حديث کي (( د زما نه نيزدې کېدو)) څلور معناوي دي :(۱)- يو خو قرب قيامت يعني کوم وخت چي د قيامت وخت راسي .(۲)- دويمه معنی يې داده چي د مرګ زمانه نيزدې سي .(۳)-دريمه معنی يې داده چي هغه موسم چي په هغه کي شپه او ورځ برابره سي په دې موقع مزاج د اعتدال وي .(۴)- د زمانې د نيزدې کېدو څلورمه معنی داده ، کله چي مياشته د ورځو په شان سي او هغه د امام مهدي عليه السلام زمانه ده چي د عيش په وجه به زمانه تېرېدونکې نه معلوميږي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۰۴،رقم: ۷۰۱۷، ومسلم ۴\۱۷۷۳، رقم: ۶- ۲۲۶۳.

**تشريح**: کله چي زمانه نژدې سي: د دې درې معناوي بيانيږي ، يوه دا چي د زمانې نژدې کېدو څخه مراد د قيامت د نژدې کېدو آخري زمانه ده لکه څرنګه چي په يو بل حديث کي په صراحت

سره بيان سوی دی چي په آخره زمانه کي (يعني قيامت ته نژدې) به د مؤمن خوب دروا غ نه وي، دوهم دا چي د زمانې د نژدې کېدو څخه مراد د مرګ د زمانې نژدې کېدل دي يعني د کوم مؤمن د مرګ زمانه چي نژدې کيږي نو دهغه خوب دروا غ نه وي، دغه معنی شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه د خپل ځينو مشائخو څخه نقل کړې ده ، دريم دا چي ددې څخه مراد هغه ورځي دي چي په هغو کي ورځي او شپې برابري وي ، په کومه زمانه کي چي ورځي او شپې برابري وي نو په هغو کي انساني مزاج پر اعتدال باندي وي او د ذاهن او فکر صلاحيتونه په سلامتۍ او روغتيا سره کار کوي ، په داسي ورځو کي ليدونکی خوب د ذهني او جسماني خلل او انتشار څخه خوندي او زيات رېښتيا وي، څلورم دا چي د زمانې د نژدې کېدو څخه مراد هغه زمانه ده چي کال د مياشت په ډول ، مياشت د اونۍ په ډول، اونۍ د ورځي په ډول او ورځ د ساعت په ډول تېريږي، علماوو ليکلي دي چي داسي زمانه به د حضرت امام مهدي عليه السلام په دور کي راځي، ځکه چي هغه وخت به د حضرت امام مهدي عليه السلام د عدل او انصاف په وجه ټول خلک آرام، بې فکره او خوشحاله وي، او څرګنده ده چي د بې فکرۍ او هوسايي ورځ په ډېره تيزي سره تېريږي که څه هم هغه هر څومره اوږده زمانه وي، نو د حضرت امام مهدي عليه السلام په زمانه کي به هم خوب صحيح او رېښتونی دی ځکه چي هغه به د راستۍ زمانه وي ، په يوه حديث کي دا هم فرمايل سوي دي چي کوم څوک دومره زيات راست وي نو دهغه خوب به هغومره زيات رېښتونی وي.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ارشاد څخه د مطلق خوب رېښتيا کېدل او د هغه توصيف او فضيلت څرګنديږي ځکه د خوب د ډولونو بيانولو لپاره د محمد ابن سيرين رحمة الله عليه يو قول نقل کړل سو چي په هغه کي دې ته اشاره ده چي د خوب هر ډول رېښتيا نه وي او نه د تعبير وړ وي، بلکه دخوب يوازي هغه ډول د تعبير وړ او رېښتونی وي چي هغه د الله تعالی له لوري زيری او د راتلونکو پېښو خبر او علامه ګرځول کيږي.

ابن سيرين رحمة الله عليه چي د خوب کوم درې ډولونه بيان کړي دي په هغو کي لومړی ډول د نفس خيال دی يعني انسان چي ټوله ورځ په کومو کارو کي بوخت وي او د هغه پر زړه او دماغ باندي چي کومي خبري پرتې وي هغه د شپې د خوب په شکل کي ويني، د مثال په توګه يو سړی په خپل کسب او کاروبار کي بوخت وي او د هغه ذهن او خيال د هغه خبرو په فکر کي وي چي د هغه کسب او کاروبار اړوند وي نو په خوب کي هغه ته هغه شيان معلوميږي ، يا يو سړی د خپل

محبوب په فکر کي وي او د هغه په ذهن کي هر وخت د محبوب سايه وي نو د هغه د خوب په دنيا کي هم محبوب خپور وي ، خلاصه دا چي په ويښه کي د انسان پر ذهن باندي کوم شي زيات خپور وي هغه ته په خوب کي هم هغه شي معلوميږي نو د داسي خوب هيڅ اعتبار نسته .

دوهم ډول بېرونکي خوب دی، دغه خوب په اصل کي د شيطاني اثراتو عکس وي ، شيطان د ازل څخه د انسان دښمن دی او څرنګه چي هغه په ويښه کي د انسان د ګمراه کولو او پرېشانه کولو هڅه کوي همدارنګه د خوب په حالت کي هم انسان ارام ته نه پرېږدي، هغه انسان په خوب کي د پرېشانه کولو او بېرولو ډول ډول حربي استعمالوي کله خو هغه په بېرونکي شکل کي په نظر راځي چي په هغه سره خوب لېدونکي ډېر په بېره کي سي ، او کله داسي خوب ورته ښيي چي په هغه کي خوب ليدونکي ته خپل ژوند ختمېدونکي معلوميږي لکه هغه چي ويني چي زما سر پرېکړل سو او داسي نور، همدارنګه په خوب کي احتلام کېدل چي د غسل موجب وي او ډېر ځله د هغه په وجه لمونځ قضا سي ، د لومړي ډول په شان دغه ډول خوب هم بې اعتبار تعبير ور نه دی .

د خوب دريم ډول هغه دی چي هغه ته د الله تعالی له لوري زيری ويل سوي دي، الله تعالی په خپلو بندګانو کي چا ته چي غواړي په خوب کي زيری ورکوي او د هغه په زړه کي د اشارې او علامې په توګه هغه شيان په مشکّل کولو سره ښيي کوم چي کېدونکي وي، يا د هغه تعلق د مؤمن د روحاني او قلبي طمانيت سره وي هغه بنده خوشحاله کوي او په طلب حق کي تازګي محسوس کوي ، او د الله تعالی سره حسن اعتقاد او اميد پيدا کوي ، د خوب دغه ډول چي د اعتبار او تعبير ور دی او ددې فضيلت او تعريف په حديثو کي بيان سوی دی .

نو هغه دي چا ته نه بيانوي: ددې مطلب دادی چي داسي خوب بې اعتباره دی او ددې هيڅ تعبير نسته نو د هغه چا ته بيانول عبث او بې ګټې دی ، ددې څخه پرته يوه بله خبره دا هم ده چي کله دا ډول خوب يو چا ته بيان کړل سي او اورېدونکي د ظاهري حالت سره سم د هغه خوب تعبير وکړي نو د هغه په وجه په فاسد وهم کي اخته کېدل او بدفالي نيول لازميږي او د زړه او دماغ د مختلفو انديښنو او وسوسو څخه پرېشانه کيږي، ددې څخه پرته د خوب په واقع کېدو کي خوب ته يو خاص تاثير حاصل دی چي خوب اورېدونکي کوم تعبير ورکوي د الله تعالی په حکم سره هم هغسي واقع کيږي .

قال وکان يکره الغل ...الخ: په دغه الفاظو کي د قال او کان د ضميرو په اړه شارحينو د حديث څو احتماله ليکلي دي، يو خو دا چي د قال ضمير محمد ابن سيرين ته راجع دی لکه

ځرنګه چي مخکنی عبارت : قال محمد بن سيرين...الخ، څخه دا مفهوم اخيستل کيږي، او په دې وجه د کان يکره ضميرونه رسول الله ﷺ ته راجع وي، په دغه صورت کي د ذکر سوې جملې معنی به هم هغه وي کوم چي په ژباړه کي تېره سول، يعني محمد ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي: چي رسول الله ﷺ دا خبره ښه نه ګڼل چي يو سړی په خوب کي دا ووينې چي د هغه په غاړه کي طوق اچول سوی دی ځکه چي په غاړه کي طوق اچول د دوږخيانو صفت دی لکه ځرنګه چي فرمايل سوي دي : (اذا الاغلال في اعناقهم)، دوهم احتمال دادی چي د قال ضمير خو ابن سيرين رحمة الله عليه ته راجع دی او د کان يکره ضميرونه حضرت ابوهريره رضي الله عنه ته راجع دي، په دغه صورت کي به معنی دا وي چي ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي ابوهريره رضي الله عنه دا خبره ښه نه ګڼل چي يو سړی دي په خوب کي دا ووينې چي د هغه په غاړه کي طوق اچول سوی وي، د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دا ښه نه ګڼل يا خو په دې وجه وو چي هغه به د رسول الله ﷺ څخه همداسي اورېدلي وي يا د خپل اجتهاد په وجه وو، دريم احتمال دادی چي د قال ضمير هغه راوي ته راجع دی چي هغه دغه حديث د حضرت ابن سيرين رحمة الله عليه څخه نقل کړی دی او د کان يکره ضميرونه حضرت ابن سيرين رحمة الله عليه ته راجع دي، يعني ابن سيرين رحمة الله عليه په خوب کي په غاړه کي طوق لېدل ښه نه ګڼل، دغه دريم احتمال يو ډول ترجيح لري ځکه چي ابن سيرين رحمة الله عليه د خوب د تعبير په فن کي امام ګڼل کيږي او د هغه څخه داسي ډېر قولونه نقل سوي دي.

او د بند لېدل به يې خوښول: يعني که يو څوک په خوب کي ووينې چي د هغه په پښو کي زولنې اچول سوي دي او هغه بندي سوي دی نو دغه خوب به يې ښه ګڼی، بخاري په دغه جمله کي د جمع صيغه يعني لفظ د يعجبهم نقل کړی دی، نو د ضميرو په اړه مخکي نقل سوو احتمالاتو کي د لومړي احتمال په وجه د يعجبهم ضمير به رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ته راجع وي، د دوهم احتمال په وجه به حضرت ابوهريره رضي الله عنه ته او د هغه تابعينو ته راجع وي او د دريم احتمال په وجه به حضرت ابن سيرين رحمة الله عليه او د هغه زمانې تعبير کوونکو علماوو ته راجع وي، په خوب کي د ځان بندي لېدل ځکه ښه دي چي دا په اصل کي د ګناهونو، ګمراهۍ او خرابۍ څخه د منع کېدو او پر ديني احکامو او طاعاتو باندي دثابت قدمۍ علامه ده، لکه ځرنګه چي په دغه روايت کي فرمايل سوي دي : (و يقال القيد ثبات في الدين)، ويل کيږي چي د بند مطلب پر دين باندي ثابت قدمه کېدل دي، مګر ځرګنده دې وي چي دغه تعبير د اهل دين او طاعت د نسبت سره دی يعني کوم څوک چي د ديني ژوند حامل او پر عباداتو او طاعاتو باندي عامل وي او هغه په خوب کي خپل ځان بندي ووينې نو د هغه لپاره ذکر سوی تعبير دی

ځکه د خوب د تعبیر ماهرینو لیکلي دي که یو ناروغ یا بندي یا مسافر یا بل څوک مصیبت زده سړی په خوب کي ویني چي زما په پښو کي زولنې دي نو د هغه په اړه به د خوب تعبیر دا وي چي هغه به پر خپل باندي قائم وي ، همدارنګه که یو څوک یو خوب په دوو مختلفو حالاتو سره ویني نو د هغه تعبیر به د هغوی د حالت مطابق بېل بېل وي ، د مثال په توګه یو تجار دا خوب ویني چي هغه د خپل سامان په اخیستلو سره په کښتۍ کي ناست دی او هواء د کښتۍ موافق چلیږي نو د هغه په اړه به خوب د تاوان او ضرر څخه د سلامتیا او په تجارت کي د ګټي علامه وي او که دغه خوب یو سالک طریقت ویني نو د هغه په اړه به دغه خوب د شریعت د اتباع او مرتبې ته د رسیدو علامه ګرځول کیږي .

## بېرونکی خوب

﴿۴۴۱۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي یو صحرائي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او

رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ كَأَنَّ رَأْسِي قُطِعَ قَالَ فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ

وه یې ویل: چي ما په خوب کي و لیدل چي زما سر پرې سوی دی (په دې اورېدو سره نبي کریم ﷺ مسکي سو او وېې فرمایل :

إِذَا لَعِبَ الشَّيْطَانُ بِأَحَدِكُمْ فِي مَنَامِهِ فَلَا يُحَدِّثْ بِهِ النَّاسَ. رواه مسلم.

کله چي شیطان په خوب کي د چا سره لوبي کوي نو هغه دي هغه خوب و خلکو ته نه بیانوي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۷۷۷، رقم: ۱۶– ۲۲۶۸.

**تشریح**: لکه رسول الله ﷺ چي صحرائي ته وفرمایل چي ستا خوب اضغاث احلام دی او دا ډول نه دی چي په هغه کي د انسان سره شیطان لوبي کوي چي هغه پرېشانه کوي ، داسي خوب باید پټ کړل سي او خلکو ته بیان نه کړل سي .

یحیی رحمه الله وایي : کېدای سي رسول الله ﷺ ته به د وحي په ذریعه دا معلومه سوې وي چي دغه خوب اضغاث احلام دی او د شیطاني اثراتو عکس دی کنه د اهل تعبیر په نزد د دغه خوب تعبیر زوال نعمت ، د قوم څخه بېلوالی او همدارنګه د نورو شیانو په شکل کي ځرګندیږي .

## د نبي کريم ﷺ خوب ليدل

﴿۴۴۱۲﴾: وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

رَأَيْتُ ذَاتَ لَيْلَةٍ فِيمَا يَرَى النَّائِمُ كَأَنَّا فِي دَارِ عُقْبَةَ بْنِ رَافِعٍ فَأُتِينَا بِرُطَبٍ

ما د شپې خوب و ليدی چي زه او زما اصحاب د عقبه بن رافع په کوړ کي ناست يو بيا زموږ مخته تازه خرماوي راوړل سي چي

مِنْ رُطَبِ ابْنِ طَابٍ فَأَوَّلْتُ الرِّفْعَةَ لَنَا فِي الدُّنْيَا وَالْعَاقِبَةَ فِي الْآخِرَةِ وَأَنَّ دِينَنَا قَدْ طَابَ. رواه مسلم.

رطب بن طاب ورته ويل کيږي ما د دې خوب تعبير وکړ چي په دنيا کي به زموږ لپاره لوړ والي او عظمت وي او په اخيرت کي به خير او دا چي زموږ دين ښه دی . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۱۷۷۹، رقم: ۱۸– ۲۲۷۰.

**تشريح**: په ذکر سوي تعبير کي رسول الله ﷺ د نومونو الفاظ بنياد وګرځول په دې توګه چي د رفعت تعبير رسول الله ﷺ د رافع څخه واخيست او د عاقبت تعبير يې د عقبه څخه واخيست او د طاب (يعني ښه دی) تعبير يې د رطب ابن طاب څخه واخيست، نو دا عادت وو چي رسول الله ﷺ به د نومونو د الفاظو په ذريعه د تفاول په طريقه او د تاويل د مقصد مفهوم ترلاسه کوی او دا خبره محض د تعبير خوب سره مخصوص نه وه بلکه په وېښه کي او په ورځني ژوند کي هم د هغه په ذريعه به يې نېک فال اخيستی لکه څرنګه چي نقل سوي دي چي کله رسول الله ﷺ د مکې مکرمې څخه هجرت کوی او مدينې منورې ته روان سو نو په لاره کي يو سړی برېده اسلمي يې د څو سپرو کسانو سره ولېدی چي د مکې قريشو د رسول الله ﷺ په نېولو او مکې ته بېرته را وستلو باندي مامور کړل سوی وو، او هغه ته يې د انعام په توګه سل اوښان ټاکلي وه، رسول الله ﷺ د هغه په لېدو سره پوښتنه ځيني وکړه چي ته څوک يې ؟ او ستا نوم څه شي دی؟ هغه وويل: برېده، رسول الله ﷺ چي دا واورېدل (نو د لفظ برېده څخه په نېک فال اخيستلو سره يې) حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ته وفرمايل : قد بردا امرنا، يعني زموږ معامله يخه سوه (چي دښمن به کامياب نسي) .

## د هجرت متعلق خوب

﴿۴۴۱۳﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ

د حضرت ابو موسی رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ و فرمایل: ما په خوب کي ولیدل

أَنِّي أُهَاجِرُ مِنْ مَكَّةَ إِلَى أَرْضٍ بِهَا نَخْلٌ فَذَهَبَ وَهَلِي إِلَى أَنَّهَا الْيَمَامَةُ أَوْ هَجَرُ

چي زه د مکې څخه یو داسي علاقې ته هجرت کوم چي په هغه کي خرماوي دي ، په دې تعبیر کي زما خیال سو (چي کوم ځای ته زه هجرت کوم هغه ښار ((یمامه)) یا هجر دي او په حقیقت

فَإِذَا هِيَ الْمَدِينَةُ يَثْرِبُ وَرَأَيْتُ فِي رُؤْيَايَ هَذِهِ أَنِّي هَزَزْتُ سَيْفًا فَانْقَطَعَ صَدْرُهُ

کي هغه مدینه و ختله چي د هغې اولنی نوم یثرب دی ، په دې خوب کي ما ولیدل چي زه توري ته حرکت ورکوم او د هغې توري لوړه برخه ماته سوی ده ،

فَإِذَا هُوَ مَا أُصِيبَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ أُحُدٍ ثُمَّ هَزَزْتُهُ بِأُخْرَى فَعَادَ أَحْسَنَ

تعبیر دا و ختی چي د احد په غزا کي و مسلمانانو ته تکلیف و رسېدی ، بیا ما په خوب کي چي ما و توري ته بیا حرکت ورکړ نو توره په خپل اصلي حالت کي سوه بلکه د هغه څخه

كَانَ فَإِذَا هُوَ مَا جَاءَ اللّٰهُ بِهِ مِنَ الْفَتْحِ وَاجْتِمَاعِ الْمُؤْمِنِينَ. متفق عليه.

ښه سوه ، د دې تعبیر هغه فتحه وه چي خدای تعالی (په مکه کي) راکړه یا صلحه حدیبیه (چي په هغه کي د مسلمانانو اجتماع وسوه) بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۶۲۷\۱۶، رقم: ۳۶۲۲، ومسلم ۱۴\۱۷۷۹، رقم: ۲۰- ۲۲۷۲.

**د لغاتو حل**: وهلي: ای وهمي (زما وهم و بېره)

**تشریح**: جزیره عرب (نجد او حجاز) هغه سیمه ده چي د جبل طویق جنوب لویدیځ خوا ته خپره ده او اوس د نجد په سیمه کي شامله ده، چي یمامه ورته ویل کیږي، دغه ډېره شنه او ښکلې سیمه وه او په دې کي د خرماوو لوی کښت وو، په اوسنی زمانه کي یمامه د یو کوچني کلي په صورت کي د سعوي عرب په دار السلطنت ریاض او الالم په مینځ کي دی ، هجر هم د یمامه سره متصل په ختیځ کي یو کلی وو ، دلته هم خرماوي ډېري وې.

د جاهلیت په زمانه کي د مدینې نوم یثرب وو ، رسول الله ﷺ چي د مکې څخه هجرت وکړ

او مدينې ته راغلی نو ددغه ځای نوم يې مدينه، اطابه او طيبه کښېښود، مګر مشهوره مدينه سوه، رسول الله ﷺ دغه مقدس ښار ته د يثرب ويلو څخه منع وفرمايل ځکه چي يثرب په اصل کي د ثرب بالتحريک څخه مشتق دی چي د هغه معنی د فتنې او فساد ده، کوم چي ددې خبري تعلق دی چي خپله رسول الله ﷺ په دغه حديث کي يا په نورو حديثو کي ددغه ښار لپاره د هغه پخوانی نوم يثرب ولي استعمالوی، نو ددې وجه يا خو داده چي دغه حديثونه د مذکوره منع څخه مخکي دي يا دغه منع د نهي تنزيهي په توګه ده ځکه رسول الله ﷺ به دبيان جواز لپاره کله کله پخوانی نوم هم استعمالوی، يا دا چي د هجرت په پېل کي په عامه توګه خلک ددغه نوي نوم څخه خبر نه وه ځکه رسول الله ﷺ د هغوی د ناخبرتيا لپاره پخوانی نوم هم ذکر کوی او دغه آخري احتمال زيات صحيح معلومېږي، په قرآن کريم کي چي فرمايل سوي دي: (يا اهل يثرب لا مقام لکم ...الخ) نو دا د منافقينو وينا بيان سوې ده ځکه په دې اړه سوال نه پيدا کيږي.

## د يو خوب تعبير

﴿۴۴۱۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا اَنَا

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه بيده وم چي د ټولي نړۍ

نَائِمٌ أُتِيتُ بِخَزَائِنِ الْأَرْضِ فَوُضِعَ فِي كَفِّي سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ فَكَبُرَا عَلَيَّ

خزانې زما ومخته پېش سوې او وروسته بيا زما په لاس کي د سرو زرو دوه باهوګان کښېښودل سوه، پر ما باندي دا بده ولګېدل يعني د هغې زما په لاسونو کي کېدل پر ما ګرانه تمامه سوه او

فَأُوحِيَ إِلَيَّ أَنِ انْفُخْهُمَا فَنَفَخْتُهُمَا فَذَهَبَا فَأَوَّلْتُهُمَا الْكَذَّابَيْنِ اللَّذَيْنِ أَنَا

وروسته ماته وحي وسوې چي دا باهوګان پوه کړه نو ما هغه پوه کړل او هغه باهوګان والوتل، ما د دې خوب دا تعبير وکړ چي زه د

بَيْنَهُمَا صَاحِبَ صَنْعَاءَ وَصَاحِبَ الْيَمَامَةِ. متفق عليه. و في رواية يقال

دوو دروغجنو مدعيانو نبوت په مېنځ کي يم يعني يو خو د صنعاء اوسېدونکي دی او د ويم ديمامه. بخاري او مسلم او په يوه بل روايت کي دا الفاظ هم دي چي په هغوي کي يو

احدهما مسيلمة صاحب اليمامة والعنسي صاحب صنعاء ولم اجد هذه

الرواية في الصحيحين و ذكر صاحب الجامع عن الترمذي.

((مسيلمه د يمامه اوسېدونكي دى او بل عنسي د صنعا اوسيدونكى )) په صحيحين كي دا روايت نه پيدا كيږي ليكن صاحب الجامع دا د ترمذي څخه نقل كړى دى .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۸۹، رقم: ۴۳۷۵، ومسلم ۴\۱۷۸۱، رقم: ۲۲- ۲۲۷۴.

**تشريح**: د مځكي خزانې، يعني د مځكي د خزانو كلياني زما مخته كښېښودل سوې او ځيني حضرات وايي چي د رسول الله ﷺ وړاندي په حقيقت كي خزانې راوړل سوې ، د خزانو په ذريعه دا زيرى وركړل سو چي تاسو او ستاسو د امت خلک به د مځكي پر مخ باندي خپل تسلط قائم كړي او د دنيا د خزانو مالكان به سي او ستاسو امت او ستاسو شريعت به په څلور كونجه دنيا كي خپور سي .

صنعاء، د يمن يو مشهور ښار دى چي د هغه د سردار نوم اسود عنسي وو ، هغه د رسول الله ﷺ په زمانه كي د پيغمبرۍ دعوه كړې ده ، كله چي رسول الله ﷺ د وفات په ناروغۍ كي پروت وو نو حضرت فيروز ديلمي رضي الله عنه اسود عنسي قتل كړ ، رسول الله ﷺ ته چي ددې خبر وركړل سو نو رسول الله ﷺ وفرمايل: فاز فيروز، يعني فيروز فائز المرام سو ، د اسود عنسي په دول د يمايمه اوسيدونكي مسيلمه كذاب هم د نبوت دعوه كړې وه هغه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت په زمانه كي حضرت وحشي رضي الله عنه قتل كړى وو ، دا هغه وحشي دى چي د اسلام قبلولو څخه مخكي د احد په غزا كي يې حضرت امير حمزه رضي الله عنه په شهادت رسولى وو .

د كړى څخه د دوو درواغجنو په اړه د تعبير اخيستلو وجه علماوو دا ليكلې ده چي كړى په اصل كي د ښځيو سره مشابهت لري چي هغه د بنديان په لاسونو كي اچول كيږي، نو هغه دواړه كذاب چي د نبوت په دعوه كولو سره د رسول الله ﷺ مقابلې ته راغلي وه د بنديانو مشابه سول چي د هغوى د لاسو كړى د كړيو په صورت كي د رسول الله ﷺ په لاس مبارک كي وې، چي رسول الله ﷺ هغه دواړه لاسونه په كړيو كي اچولي او نيولي وه، پاته سوه دا خبره چي ددغه تعبير سره سم د سرو زرو كړى ولي وښودل سوې ، او د اوسپني كړى ولي ونه ښودل سوې چي د هغوى زيات مناسب وي ، نو په دې كي هم په اصل كي يوه نكته ده او هغه دا چي د سرو زرو كړى په ښودلو سره اشاره وكړل سوه چي دغه درواغجنان د دنيا عزت او زيب او زينت په بوختيا كي ډوبه اخته دي او دا چي د هغوى مردود او مجرم كېدل ډومره ډرګند او دهغوى نوعيت ډومره سنګين دى .

﴿۴۴۱۵﴾: وَعَنْ أُمِّ الْعَلَاءِ الْاَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ رَأَيْتُ لِعُثْمَانَ ابن مظعون فِي النَّوْمِ عَيْنًا تَجْرِي فقصصتها على رسول الله صلى الله عليه وسلم فَقَالَ ذَاكِ عَمَلُهُ يَجْرِي لَهُ. رواه البخاري.

د بي بي ام العلاء انصاريه ﷺ څخه روايت دی چي ما په خوب کي د عثمان بن مظعون لپاره (چي مهاجر مجاهد وو)او د(اسلامي)لښکر چوکيداري يې کوله يوه جاري چينه وليده ، نبي کريم ﷺ ته مي دا خوب بيان کړ نو نبي کريم ﷺ وفرمايل: دا د عمل ثواب دی چی هغه لپاره جاري سوی دی يعني د هغه د دې عمل ثواب به همېشه جاري وي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۱۰،رقم: ۷۰۱۸.

**تشريح**: عثمان ابن مظعون ﷺ يو جليل القدر او قديم الاسلام صحابی دی، په مهاجرينو کي د لوی فضيلت خاوند وو، د جنګ په ميدان کي يې د جانباز مجاهد حيثيت درلودی ، د هغه يو لوی فضيلت دا هم وو چي رسول الله ﷺ هغه په مرابط يعني د جنګ په ميدان کي د اسلامي لښکر او د سرحد ساتونکی ټاکلی وو، په شريعت کي د مرابط ډېر زيات فضائل نقل سوي دي په هغو کي يو فضيلت دا هم دی چي مرابط کله وفات کيږئ نو د هغه عمل صالح تر قيامته پوري زياتيږي ، رسول الله ﷺ د ذکر سوي خوب دا تعبير بيان کړ چي هغه چينه په اصل کي د هغه عمل صالح دی او څرنګه چي هغه چينه جاري ده همدارنګه د هغه د عمل ثواب هم جاري دی چي تر قيامته پوري به هغه ته رسيږي .

## د عالم برزخ متعلق د نبي کريم ﷺ خوب

﴿۴۴۱۶﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى

د سمره بن جندب ﷺ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ دا عادت وو چي د سهار لمونځ به يې

أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَقَالَ مَنْ رَأَى مِنْكُمُ اللَّيْلَةَ رُؤْيَا قَالَ فَإِنْ رَأَى أَحَدٌ قَصَّهَا

وکړ نو زموږ و لور ته به يې مخ کړ او پوښتنه به يې کوله چي په تاسو کي نن شپه چا خوب ليدلی دی ؟ د راوي بيان دی چي په موږ کي به چا خوب ليدلي وو هغه به يې نبي کريم ﷺ ته

فَيَقُولُ مَا شَاءَ اللّٰهُ فَسَأَلَنَا يَوْمًا فَقَالَ هَلْ رَأَى أَحَدٌ مِنْكُمْ رُؤْيَا قُلْنَا لَا قَالَ

بیان کړ نو نبي کریم ﷺ به ویل ماشاء الله، یوه ورځ نبي کریم ﷺ وفرمایل: په تاسو کي چا خوب لیدلي دی ؟ موږ وویل: نه، نبي کریم ﷺ وفرمایل:

لَكِنِّي رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ رَجُلَيْنِ أَتَيَانِي فَأَخَذَا بِيَدِي فَأَخْرَجَانِي إِلَى الْأَرْضِ الْمُقَدَّسَةِ

مګر نن شپه ما خوب لیدلي دی چي دوه کسان ماته راغله، زما دواړه لاسونه یې په خپلو لاسونو کي و نیول او زه یې ارض مقدس ته بوتلم (یعني شام ته)

فَإِذَا رَجُلٌ جَالِسٌ وَرَجُلٌ قَائِمٌ بِيَدِهِ كَلُّوبٌ مِنْ حَدِيدٍ يُدْخِلُه فِي شِدْقِهِ فيشقه

هلته ما ولیدل چي یو سړی ناست دی او د یوه بل سړی په لاس کي د اوسپني یو انبور نیولی ولاړ دی، دا سړی د ناست سړی په خوله کي انبور او هغه د خولې د کونج څخه بیا تر څټ پوري

حَتَّى يَبْلُغَ قَفَاهُ ثُمَّ يَفْعَلُ بِشِدْقِهِ الْآخَرِ مِثْلَ ذَلِكَ وَيَلْتَئِمُ شِدْقُهُ هَذَا فَيَعُودُ

څیري بیا هغه دویم طرف د خولې کونج ته ځي او هغه هم څیروي، اولنی کونج صحیح سي او بیا هغه د هغه کونج طرف ته راځي

فَيَصْنَعُ مِثْلَهُ قُلْتُ مَا هَذَا قَالَا انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتَّى أَتَيْنَا عَلَى رَجُلٍ مُضْطَجِعٍ

او هغه څیري په دې دوران کي د ویم کونج ښه سي او هغه بیا هغه څیري، ما د هغه خلکو څخه پوښتنه وکړه دا څه دي؟ هغوی راته وویل، مخته تشریف یوسه نو موږ مخته روان سولو تر څو چي زه یوه سړي ته ورسېدم چي پر مخی پروت دی

عَلَى قَفَاهُ وَرَجُلٌ قَائِمٌ عَلَى رَأْسِهِ بِفِهْرٍ أَوْ صَخْرَةٍ فَيَشْدَخُ بِهِ رَأْسَهُ فَإِذَا ضَرَبَهُ

او یو سړی د هغه سرته یوه دومره لویه ډبره اخیستې ولاړ وو چي د هغه په لاس کي نه ځائېدل یا نبي کریم ﷺ داسي وفرمایل: چي یوه لویه ډبره اخیستی ولاړ وو چي په هغه سره یې په مځکه باندي د هغه سړي سر چیتوی کله چي ډبره د هغه پر سر ولګېده

تَدَهْدَهَ الْحَجَرُ فَانْطَلَقَ إِلَيْهِ لِيَأْخُذَهُ فَلَا يَرْجِعُ إِلَى هَذَا حَتَّى يَلْتَئِمَ رَأْسُهُ وَعَادَ

نو هغه ډبره به په ګېډو لیري ولاړه بیا به د هغه کاني د راوړلو لپاره تلی هغه به یې لا راوړې نه وه په دې جریان کي به د هغه سر داسي جوړ سوی وو لکه پخوا او هغه به بیا په دې ډبره سره

رَأْسُهُ كَمَا كَانَ فَعَادَ إِلَيْهِ فَضَرَبَهُ فَقُلْتُ مَا هَذَا قَالَا انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتَّى أَتَيْنَا

وويشتل سو ، دا سلسله جاري وه ما پوښتنه وکړه چي دا څه معامله ده؟ هغه سړی راته وويل ، مخته تشريف يوسئ ، نو موږ پر مخ ولاړو تر دې پوري چي يوې کندې ته ورسېدو

إِلَى ثَقْبٍ مِثْلِ التَّنُّورِ أَعْلَاهُ ضَيِّقٌ وَأَسْفَلُهُ وَاسِعٌ يَتَوَقَّدُ تَحْتَهُ نَارًا فَإِذَا ارْتَفَعَتْ

چي د تنور په شان وه يعني سريې تنګ وو دننه پراخ وه په هغه کي اور بلېدی ، کله چي به د هغې کندي اور تيز سو

ارْتَفَعُوا حَتَّى كَادَ أَنْ يَخْرُجُوا مِنْهَا فَإِذَا خَمَدَتْ رَجَعُوا فِيهَا وَفِيهَا رِجَالٌ وَنِسَاءٌ

نو خلک چي په اور کي دننه وه په شعلو سره راپورته کېدل تر دې پوري چي د کندي څخه به را ختلو ته نيزدې وه او کله چي به د شعلو اور کم سو نو هغه خلک به بيرته لاندي و غورځېدل ، په دې اور کي ډېر خلک او ښځي وې

عُرَاةٌ فَقُلْتُ مَنْ هَذَا قَالَا انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتَّى أَتَيْنَا عَلَى نَهَرٍ مِنْ دَمٍ فِيهِ رَجُلٌ

او ټول لوڅ وه ، ما پوښتنه وکړه چي دا څه دي ؟ هغو دوو کسانو راته وويل ، چي مخته تشريف يوسئ ، نو موږ و مخته ولاړو او يوې ويالې ته ورسېدو چي د وينو څخه ډکه وه د هغې په نس

قَائِمٌ عَلَى وَسَطِ النَّهَرِ وَعَلَى شَطِّ النَّهَرِ رَجُلٌ بَيْنَ يَدَيْهِ حِجَارَةٌ فَأَقْبَلَ الرَّجُلُ

کي يو سړی ولاړ وو او د ويالې پر غاړه يو سړی وو چي مخته يې کاڼي پراته وه کله چي هغه سړی چي د ويالې په نس کي ولاړ وو غاړې ته د راوتلو په نيت را مخته سو

الَّذِي فِي النَّهَرِ فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ رَمَى الرَّجُلُ بِحَجَرٍ فِي فِيهِ فَرَدَّهُ حَيْثُ كَانَ

نو هغه سړی چي پر غاړه ولاړ وو هغه د وياله د نس سړی به يې پر خوله په کاڼو سره وويشتی نو هغه به بيرته و خپل ځای ته ولاړ ،

فَجَعَلَ كُلَّمَا جَاءَ لِيَخْرُجَ رَمَى فِي فِيهِ بِحَجَرٍ فَيَرْجِعُ كَمَا كَانَ فَقُلْتُ مَا هَذَا قَالَا

په وياله کي د دننه سړی چي به د راوتلو اراده وکړه نو غاړې والا سړی به پر خوله په کاڼو ويشتی او هغه به خپل ځای ته بيرته تلی ، ما پوښتنه وکړه چي دا څه معامله ده ؟ هغو دوو

كسانو راته وويل چي

انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتَّى انْتَهَيْنَا إِلَى رَوْضَةٍ خَضْرَاءَ فِيهَا شَجَرَةٌ عَظِيمَةٌ وَفِي أَصْلِهَا

پر مخ ځه، نو موږ مخته ولاړو تر دې پورې چې موږ یوه شنه باغ ته ورسېدو، په هغه باغ کې یوه لویه ونه وه چې د هغې لاندې

شَيْخٌ وَصِبْيَانٌ وَإِذَا رَجُلٌ قَرِيبٌ مِنَ الشَّجَرَةِ بَيْنَ يَدَيْهِ نَارٌ يُوقِدُهَا فَصَعِدَا بِي

یو زوړ سړی او څو هلکان ناست وه درختي ته نزدې یو بل کس وو چې د هغه و مخته اور بلېدی او هغه یې تیزوی، هغه دوه کسان چې زما سره وه زه یې د درختي سر ته بوتلم

فِي الشَّجَرَةِ فَأَدْخَلَانِي دَارًا وَّسَطَ الشَّجَرَةِ لَمْ أَرَ قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهَا فِيهَا رِجَالٌ

او په یوه داسي ځای کي یې داخل کړم چې د ونې بالکل په مینځ کي واقع وو، دا ځای دومره ښائسته وو چې ما دومره ښائسته ځای نه وو لیدلی، په دې ځای کي څو

شُيُوخٌ وَشَبَابٌ وَنِسَاءٌ وَصِبْيَانٌ ثُمَّ أَخْرَجَانِي مِنْهَا فَصَعِدَا بِي الشَّجَرَةَ فَأَدْخَلَانِي

سپین ږیري، ځوانان، ښځي او هلکان وه بیا هغو دوو کسانو زه را وایستلم او و یوې درختي ته یې بوتلم او په یوه داسي کور کي یې داخل کړم

دَارًا هِيَ أَحْسَنُ وَأَفْضَلُ فِيهَا شُيُوخٌ وَشَبَابٌ فَقُلْتُ لَهُمَا إِنَّكُمَا طَوَّفْتُمَانِي اللَّيْلَةَ

چې د اولني ځای څخه زیات ښایسته وو او په هغه کي سپین ږیري او ځوانان وه. ما هغو دوو کسانو ته وویل، تاسو خو زه نن شپه ډېر و ګرځولم

فَأَخْبِرَانِي عَمَّا رَأَيْتُ قَالَا نَعَمْ أَمَّا الَّذِي رَأَيْتَهُ يُشَقُّ شِدْقُهُ فَكَذَّابٌ يُحَدِّثُ

مګر ما چې څه لیدلي دي د هغوی د حقیقت څخه مي خبر کړئ، هغوی راته وویل: ښه دی، کوم سړي چې تا ولیدی چې د خولې کونجان یې تر څټ پورې څیرېدل هغه درواغجنان دي او

بِالْكَذْبَةِ فَتُحْمَلُ عَنْهُ حَتَّى تَبْلُغَ الْآفَاقَ فَيُصْنَعُ بِهِ مَا تَرَى إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ

درواغ وایي او وروسته بیا د هغوی د دروغو خبري بیانیږي تر دې پورې چې هغه و هر لور ته ورسیږي او د هغه سره به دا سزا چې تا د دوی ولیدل تر قیامته پورې کیږي

وَالَّذِي رَأَيْتَهُ يُشْدَخُ رَأْسُهُ فَرَجُلٌ عَلَّمَهُ اللّٰهُ الْقُرْآنَ فَنَامَ عَنْهُ بِاللَّيْلِ وَلَمْ

او د كوم سړی چي سر چيتېږی (ميده كيږي) هغه ته خداي تعالی قرانكريم ښودلی وو هغه به د قرانكريم څخه غافل او د شپې به بيده وو

يَعْمَلْ بِمَا فِيهِ بِالنَّهَارِ يُفْعَلُ بِهِ مَا رَأَيْتَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَالَّذِي رَأَيْتَهُ فِي الثَّقْبِ

او د ورځي به يې د قرانكريم مطابق عمل نه كوی نو د هغه سره به دا عمل چي تا وليدی تر قيامته پوري كيږي او كوم خلك چي په تنور كي دي ليدلي دي

فَهُمُ الزُّنَاةُ وَالَّذِي رَأَيْتَهُ فِي النَّهَرِ آكِلُوا الرِّبَا وَالشَّيْخُ الذي رايته فِي أَصْلِ

هغه زنا كاره دي او هغه سړی چي په ويالې كي دي وليدل هغه سود خور دی او هغه سپين ږيري چي د وني لاندي ناست وو

الشَّجَرَةِ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَام وَالصِّبْيَانُ حَوْلَهُ فَأَوْلَادُ النَّاسِ وَالَّذِي يُوقِدُ

هغه حضرت ابراهيم عليه السلام دی او د هغه سره چي كوم كوچنيان وه هغوی د خلكو اولاد دی او هغه سړی چي اور تېزوي

النَّارَ مَالِكٌ خَازِنُ النَّارِ وَالدَّارُ الْأُولَى الَّتِي دَخَلْتَ دَارُ عَامَّةِ الْمُؤْمِنِينَ وَأَمَّا هٰذِهِ

د دوږخ محافظ (خزانه دار) دی او د وني سره اولنی كور په كوم كي چي ته دا خل سوې په جنت كي د عامو مؤمنانو ځای دی او دغه

الدَّارُ فَدَارُ الشُّهَدَاءِ وَأَنَا جِبْرِيلُ وَهٰذَا مِيكَائِيلُ فَارْفَعْ رَأْسَكَ فَرَفَعْتُ رَأْسِي

كور د شهيدانو كور دی او زه جبرائيل عليه السلام يم او دا زما ملګری مكائيل عليه السلام دی اوس تا سو سر پورته كړئ ما چي سر پورته كړ

فَإِذَا فَوْقِي مِثْلُ السَّحَابِ وفي رواية مِثْلَ الرَّبَابَةِ الْبَيْضَاءَ قَالَا ذَاكَ مَنْزِلُكَ قُلْتُ

نو زما سر ته لوړ د وريځي په شان يو شی وو او په يوه روايت كي راغلي چي غټه سپينه وريځ وه هغوی ما ته وويل چي دا ستاسو ځای دی ، ما ورته وويل :

دَعْنِي أَدْخُلُ مَنْزِلِي قَالَا إِنَّهُ بَقِيَ لَكَ عُمُرٌ لَمْ تَسْتَكْمِلْهُ فَإِذَا اسْتَكْمَلْتَهُ أَتَيْتَ

ما پرېږدئ چي زه و خپل ځای ته داخل سم، هغوی راته وويل: اوس لا ستا عمر پاته دی کوم چي تاسو نه دی پوره کړی کوم وخت چي ستاسو خپل عمر پوره کړئ

مَنْزِلَكَ. رواه البخاري. و ذكر حديث عبدالله بن عمر في رؤيا النبي صلى الله عليه وسلم في المدينة في باب حرم المدينة.

نو په خپل ځای کي به داخل سئ. بخاري او په مدينه منوره کي د نبي کريم ﷺ د خوب په اړه حديث د ((حرم المدينه)) په باب کي د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په حديث کي بيان سوی دی.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۳۹، رقم: ۷۰۴۸،

**د لغاتو حل**: كلوب: حديدة معوجة الراس يتعلق بالشئ مع شدة فيجذب به. الفهر: الحجر. تدهده: اى تدحرج. الربابة: السحاب التي ركب بعضها على بعض.

**تشريح**: په شپه کي بېده وو: يعني هغه سړي نه خو د شپې د قرآن کريم تلاوت وکړ او نه يې د ورځي په هغه عمل وکړ، يا خو په قرآن کريم باندي د عمل کولو تعلق د شپې او ورځي دواړو سره دی او د شپې د هغه تلاوت هم په هغه عمل کول دي مګر عبادت کونکي بندګان په عامه توګه د قرآن کريم تلاوت د شپې کوي ځکه نو د شپې سره خاص کړل سو او د ژوند د زياتو حرکاتو او عمل تعلق د ورځي سره دی او په دې اعتبار سره د قرآن کريم احکام يعني د هغه اوامر او نواهي باندي د عمل کولو تعلق د ورځي سره دی ځکه په قرآن کريم باندي عمل کول د هغه سره خاص کړل سو.

ملا علي قاري رحمة الله عليه وايي: ددې مطلب دادی چي هغه سړي ته الله تعالى يو عظيم نعمت ورکړ چي هغه ته يې د قرآن کريم علم ورکړ مګر هغه ددغه نعمت قدر ونه کړ، په دې توګه چي د شپې د هغه د تلاوت څخه په غافل کېدو سره بېده سو او داسي کول ډېر ځله د قرآن کريم د هېرېدو سبب ګرځي او هغه د قرآن کريم په اموامرو او نواهيو باندي عمل ونه کړ، سره ددې چي د قرآن کريم د نازلېدو اصل مقصد دادی چي په هغه عمل وکړل سي ځکه فرمايل سوي دي چي کوم څوک په قرآن کريم باندي عمل کوي نو هغه لکه تل چي د قرآن کريم تلاوت کوي که څه هم هغه په حقيقت کي تلاوت ونه کړي او څوک چي تل تلاوت کوي مګر په هغه عمل نه کوي نو هغه لکه چي د قرآن کريم هيڅ تلاوت ونه کړ.

یحیی رحمة الله علیه وايي : د بېده کېدو مطلب دادی چي هغه د قرآن کریم څخه مخ وګرځوی او بې نیازي يې اختيار کړل، کوم څوک چي د تلاوت څخه پرته بېده سي نو په دې کي د هغه د اعراض او بې نیازی قطعا دخل نه وي بلکه محض د محض غفلت او کوتاهی یا بلي مجبوری دخل وي نو داسي سړی به د ذکر سوي وعيد څخه مستثنی وي .

او دغه کور د شهیدانو ځای دی: په دې اړه علماوو ليکلي دي چي د شهیدانو څخه مراد خاص مؤمنين دي لکه انبياء، اولياء او علماو ، ځکه نقل سوي دي چي د علماوو رنګ به د شهیدانو پر وینه غالبه وي .

امام نووي رحمة الله علیه وايي: ددغه ارشاد څخه دا هدايت څرګندېږي چي د امام لپاره دا مستحب دي چي هغه (د سهار په لمانځه کي) د سلام ګرځولو څخه وروسته مقتديانو ته متوجه سي ، او دا هم مستحب دي چي امام د مقتديانو څخه د خوب په اړه پوښتنه وکړي او دا هم مستحب دي چي تعبير بيانونکی د خوب تعبير د ورځي په لومړنی برخه کي بيان کړي چي په کاروبار کي د بوختيا په وجه ذهن پاشلی نه وي او په ښه توجه سره تعبير ورکړل سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### خوب هر چا ته مه وایه

﴿۴۴۱۷﴾: عَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو رزين عقيلی رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل :

رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِنْ ستة أَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ وَهِيَ عَلَى رِجْلِ طَائِرٍ مَا

د مؤمن خوب د نبوت د شپږ څلوېښتمي برخي څخه يوه برخه ده او خوب چي ترڅو بيان نه سي د مرغانو په پښو کي وي (يعني غير مستقل او غير قائم وي)

لَمْ يَتَحَدَّثْ بِهَا فَإِذَا حَدَّثَ بِهَا وَقَعَتْ وَأَحْسَبُهُ قَالَ وَلَا يُحَدِّثُ إِلَّا لَبِيبًا أَوْ

خو کله چي بيان سي نو خوب واقع سي ، د راوي بيان دی زما خيال دي چي نبي کريم صلی الله علیه وسلم دا هم وفرمايل: خوب د هر چا په مخکي کي مه بيانوئ پرته د دوستانو څخه .

حَبِيبًا . رواه الترمذي و في رواية ابي داؤد قال الرؤيا على رجل طائر ما لم

تعبر فاذا عبرت وقعت واحسبه قال لا تقصها الا علی واد او ذي راي.

ترمذي او د ابو داؤد په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي نبي کریم ﷺ وفرمایل: هغه (خوب) د مرغانو په پښو کي وي ترڅو پوري چي د خوب تعبیر بیان نه سي او کله چي د هغه تعبیر بیان سي نو هغه تعبیر واقع کیږي، راوي وایي، زما ګمان دی چي نبي کریم ﷺ دا هم ویلي دي چي خوب د دوست او عقلمند څخه پرته و بل چا ته مه بیانوئ.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۴۶۴، رقم: ۲۲۷۸، سنن ابي داود ۵\ ۲۸۳، رقم: ۵۰۲۰.

**تشریح**: (علی رجل طائر)، هغه د مرغه په پښو وي، دا په اصل کي د عربي ژبي یوه محاوره ده چي عرب یې په یو داسي معامله کي او د یو داسي شي په اړه استعمالوي چي هغه قرار او ثبات نلري، مطلب دادی چي څرنګه مرغه په عامه توګه یو ځای نه دریږي بلکه الوځي او حرکت کوي او کوم شی چي د هغه په پښو وي نو هغه هم په یوه ځای کي نه وي بلکه په ادنی حرکت سره غورځي، همدارنګه دغه معامله او دغه شی هم پر یوه ځای قائم او ثابت نه پاته کیږي، نو وفرمایل سول چي د خوب معامله هم داسي ده چي تر څو پوري چا ته بیان نه کړل سي او هغه په خپل زړه کي پټ وساتي نو هغه تر وخته پوري د هغه اعتبار نه وي او نه واقع کیږي، مګر کله چي هغه یو چا ته بیان کړل سي او څرنګه چي د هغه تعبیر وکړل سي نو د هغه تعبیر سره سم واقع کیږي نو باید چا ته خوب بیان نه کړل سي مګر څرګنده دي وي چي دغه حکم د خراب خوب په اړه دی چي د هغه د واقع کېدو څخه انسان بیریږي او د تاوان وهم لري لکه څرنګه چي په نورو حدیثو کي ددې وضاحت سوی دی.

هوښیار سړي او ملګري ته د خوب بیانولو لپاره ځکه فرمایل سوي دي چي هوښیار او پوه سړی د خپل عقل او حکمت په وجه د خوب ښه تعبیر ورکوي، په داسي توګه چي کوم څوک دوست او ملګری وي هغه به هم خوب پر خیر او ښېګڼه محمول کړي او ښه تعبیر به ورکړي حال دا چي بې عقل د خپلي ناپوهۍ په وجه او دښمن د خپل بغض او عناد په وجه خراب تعبیر ورکوي. دلته دا سوال پیدا کیږي چي کله د ټولو شیان واقع کېدل د قضاء او قدر سره متعلق دي نو دخوب تعبیر نه کول د هغه خوب پر نه ظاهرولو باندي څرنګه موقوف کېدای سي، او د خوب په واقع کېدو کي د تعبیر مؤثر کېدل څرنګه دی؟ ددې مختصر جواب دادی چي دغه شی هم د قضاء او قدر مطابق دی لکه څرنګه چي د دعاء، صدقې، خیرات او نورو اسبابو مسئله ده.

## ورقه بن نوفل په خوب كي ليدل

﴿۴۴۱۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ وَرَقَةَ

د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روايت دى چي د نبي كريم ﷺ څخه د ورقه (ورقه بن نوفل) په هكله پوښتنه وسوه (چي هغه مسلمان وو او كه څنګه؟)

فَقَالَتْ لَهُ خَدِيجَةُ إِنَّهُ كَانَ صَدَّقَكَ وَلٰكِنَّهُ مَاتَ قَبْلَ أَنْ تَظْهَرَ فَقَالَ رَسُولُ

بي بي خديجې رضي الله عنها د نبي كريم ﷺ په مخكي وويل: چي ورقه بن نوفل پوخ تصديق وكړ ليكن هغه ستاسو د نبوت څخه مخكي وفات سو ، نبي كريم ﷺ وفرمايل:

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرِيتُهُ فِي الْمَنَامِ وَعَلَيْهِ ثِيَابٌ بَيضٌ وَلَوْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ لَكَانَ عَلَيْهِ لِبَاسٌ غَيْرُ ذٰلِكَ. رواه احمد و الترمذي.

په خوب كي ما ته ورقه بن نوفل ښودل سوى دى چي سپيني جامې يې اغوستي وې ، كه هغه دوږخي واى نو د هغه پر بدن باندي به بل قسم جامې واى (مطلب دا چي هغه جنتي دى). احمد او ترمذي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۶\۶۵ ، والترمذي ۴\۴۶۸، رقم: ۲۲۸۸.

**تشريح**: ورقه ابن نوفل ابن اسد ابن عبدالعزى د ام المؤمنين بي بي خديجې رضي الله عنها د اكا زوى وو ، هغه د جاهليت په زمانه كي د عيسائيت د تعليم ډېر مهارت درلودى او انجيل يې په عربي ژبه ژباړلى وو ، د هغه په اړه ثابته ده چي د بت پرستۍ څخه سخت بېزاره وو او پر خپله طريقه باندي د الله تعالى په عبادت كي بوخت وو ، د ډېر عمر وو او د عمر په آخري برخه كي ړوند سوى وو ، كله چي رسول الله ﷺ په نبوت مشرف كړل سو او لومړنۍ وحي پر نازل سول نو بي بي خديجې رضي الله عنها رسول الله ﷺ ، ورقه ابن نوفل ته بوتلى ، هغه د رسول الله ﷺ د نبوت تصديق وكړ او رسول الله ﷺ ته يې زيرى وركړ چي تاسو نبي آخرالزمان ياست چي په آسماني كتابو يې يادونه راغلې ده ، دغه واقعه ډېره مشهوره ده او د سيرت په هر كتاب كي موجود ده.

د مشهور كتاب اسد الغابه مصنف د ورقه ابن نوفل تذكره د صحابه كرامو په ډله كي كړې ده او د هغه د اسلام راوړلو په اړه د علماوو چي كوم اختلافي اقوال دي د هغو ذكر كولو سره مذكوره حديث يې بعينه نقل كړى دى، د بي بي خديجې رضي الله عنها په ژوند كي بي بي عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ په خدمت كي نه وه راغلې ځكه هغې به دغه روايت د صحابه كرامو څخه د سماع

په توګه نقل کړی وي.

او بي بي خديجې ﷺ د رسول الله ﷺ په وړاندې بيان وکړ ...الخ: يعني کله چې د رسول الله ﷺ څخه د ورقه ابن نوفل په اړه پوښتنه وسول نو بي بي خديجې ﷺ د رسول الله ﷺ د جواب څخه مخکې د خپل اکا د زوی حالت بيان کړ مګر د کلام طرزيې داسې اختيار کړ چې د ورقه ابن نوفل حقيقت هم څرګند سي او د مرتبه نبوت ادب هم وسي نو هغې داسي وويل چې هغه به ستاسو تصديق کوی يعني ورقه ابن نوفل ستاسو په تصديق کولو سره ويلي وه چې کومه ملائکه تاسو لېدلې ده هغه د الله تعالی له خوا انبياء عليهم السلام ته وحي راوړونکې هغه ملائکه ده چې ستاسو څخه مخکې پر حضرت موسی او حضرت عيسی عليهما السلام باندې هم نازلېدل او تاسو د الله تعالی پيغمبر ياست ، او که زه ستاسو د ظهور او غلبې پر وخت ژوندی پاته سم نو ستاسو مرسته به وکړم او تاسو ته به طاقت ورسوم، يعني يوې خوا ته په دې خبره سره بي بي خديجې ﷺ د ورقه ابن نوفل ايمان ثابتول غوښتل او بلې خوا ته يې دا ويل چې: مګر هغه ستاسو د نبوت څخه مخکې مړ سوی دی، په دې سره د هغه د ايمان په اړه شک هم ظاهر کړ، او بيا رسول الله ﷺ د مذکوره ارشاد په ذريعه دا ثابته کړه چې هغه مؤمن وو نو دغه حديث د ورقه ابن نوفل پر ايمان دلالت کوي او څرګنده ده چې کله هغه د رسول الله ﷺ د پيغمبری کېدو څخه وروسته د رسول الله ﷺ تصديق وکړ نو بيا د هغه د ايمان په اړه د اختلاف هيڅ ګنجائش نسته ، مګر که چيري د هغه تصديق کول د نبوت څخه مخکې وي نو بېله شکه د اختلاف ګنجائش سته .

## په خوب کې د نبي ﷺ پر تندي سجده

﴿۴۴۱۹﴾: وَعَنِ ابْنِ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ عَمِّهِ أَبِي خُزَيْمَةَ أَنَّه رَأٰى فِيْمَا يَرَى

حضرت ابن خزيمه بن ثابت ﷺ د خپل اکا څخه روايت کوي چې هغه په خوب کې وليدل چې د

النَّائِمُ أَنَّهُ سَجَدَ عَلٰى جَبْهَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ فَاضْطَجَعَ لَهُ

رسول الله ﷺ پر تندي باندې يې سجده وکړه، نبي کريم ﷺ ته چې يې کله دا خوب بيان کړ نو نبي کريم ﷺ سمد ستي ورته متوجه سو

وَقَالَ صَدِّقْ رُؤْيَاكَ فَسَجَدَ عَلٰى جَبْهَتِهِ . رواه في شرح السنة. وسنذكر حديث أبي بكرة كأن ميزانا نزل من السماء في باب مناقب أبي بكر وعمر رضي الله عنهما.

او ويې فرمايل: خپل خوب رښتيا کړه نو هغه د نبي کريم ﷺ پر تندي مبارک باندي سجده وکړه . شرح السنه او ژر به د حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه حديث کان ميزانا نزل من السماء به د حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه د مناقب په باب کي بيان کړو .

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ١٢\٢٢٥، رقم: ٣٢٨٥.

**تشريح**: دغه حديث پر دې دلالت کوي که چيري د خوب تعلق د طاعاتو او عباداتو سره وي نو په ويښه په هغه خوب باندي عمل کول مستحب دي، د مثال په توګه يو سړی داسي خوب ويني چي روژه يې نيولې ده يا لمونځ يې کړی دی يا صدقه او خيرات يې ورکړي دي او د يو بزرګ زيارت يې کړی دی او داسي نور، نو د هغه خوب سره سم په ويښه کي لمونځ کول، روژه نيول، صدقه او خيرات کول او د هغه بزرګ زيارت کول مستحب دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د ۴۴۱۶ نمبر حديث متعلق نور خوب

﴿۴۴۲۰﴾: عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا

د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به اکثره وخت د خپلو اصحابو

يُكْثِرُ أَنْ يَّقُوْلُ لِأَصْحَابِهِ هَلْ رَأٰى أَحَدٌ مِّنْكُمْ مِنْ رُّؤْيَا ؟ فَيَقُصُّ عَلَيْهِ مَنْ شَاءَ

کرامو څخه پوښتنه کوله چي ايا په تاسو کي چا خوب ليدلی دی؟ چا چي به خوب ليدلی وو نو هغه به يې بيانوی ،

اللهُ أَنْ يَّقُصَّ وَإِنَّهُ قَالَ لَنَا ذَاتَ غَدَاةٍ إِنَّهُ أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتِيَانِ وَإِنَّهُمَا ابْتَعَثَانِي

يوه ورځ موږ ته نبي کريم ﷺ زموږ په مخ کي بيان وکړ ، نن شپه دوه کسان په خوب کي ما ته راغله زه يې را کښېنولم

وَإِنَّهُمَا قَالاَ لِي انْطَلِقْ وَإِنِّي انْطَلَقْتُ مَعَهُمَا وَذَكَرَ مِثْلَ الْحَدِيْثِ الْمَذْكُوْرِ فِي

او ما ته يې وويل ، زموږ سره ولاړ سه نو زه د هغوی سره روان سوم ، دد ې څخه وروسته د حديث راوي سمره د هغه حديث په شان چي په اولني فصل کي بيان سوی دی اوږد حديث بيان کړی دی

الْفَصْلِ الْأَوَّلِ بِطُوْلِهِ وَفِيْهِ زِيَادَةٌ لَيْسَتْ فِي الْحَدِيْثِ الْمَذْكُوْرِ وَهِيَ قَوْلُهُ : فَأَتَيْنَا

او په دې حدیث کي د اولني فصل د حدیث څخه یو څه خبري زیاتي دي او هغه دا دي : نبي کریم ﷺ وفرمایل: بیا موږ ورسېدو

عَلٰى رَوْضَةٍ مُعْتَمَّةٍ فِيهَا مِنْ كُلِّ نُوْرِ الرَّبِيْعِ وَإِذَا بَيْنَ ظَهْرِيِ الرَّوْضَةِ رَجُلٌ طَوِيْلٌ

یو ه تاریکه باغ ته (یعني و هغه باغ ته چي د ډیرو ونو په وجه پکښي تیاره وه) چي په هغه کي د پسرلي شینګیا وه او ګلونه غوړېدلي وه ، زما نظر ناڅاپه پر یو سړي پرېوت

لاَ أَكَادُ أَرٰى رَأْسَهُ طُوْلاً فِي السَّمَاءِ وَإِذَا حَوْلَ الرَّجُلِ مِنْ أَكْثَرِ وِلْدَانٍ رَأَيْتُهُمْ قَطُّ

چي د باغ په مینځ کي ولاړ وو ، دا سړی دومره اوږد وو چي د هغه سر ما نه ولیدی ګواکي د هغه سر و اسمان ته رسېدلی وو او شاؤخوا یې ډېر هلکان وه چي ما هیڅکله نه وو لیدلي ،

قُلْتُ لَهُمَا مَا هٰذَا مَا هٰؤُلاَءِ قَالَ قَالاَ لِيْ اِنْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا فَانْتَهَيْنَا إِلٰى رَوْضَةٍ

ما د هغو کسانو څخه و پوښتل چي دا اوږد سړی څوک دی؟ او دا هلکان څوک دي؟ هغوی راته وویل ، چي مخته ځه ،نو موږ په مخ ولاړو او یوه لوی باغ ته ورسېدو

عَظِيْمَةٍ لَمْ أَرَ رَوْضَةً قَطُّ أَعْظَمَ مِنْهَا وَلاَ أَحْسَنَ قَالَ قَالاَ لِيْ اِرْقَ فِيْهَا قَالَ فَارْتَقَيْنَا

چي د هغه څخه لوي او ښائسته باغ ما نه وو لیدلي بیا هغو ما ته وویل چي و باغ ته د ننه ولاړ سه یا و وني ته و خېژه نو موږ روان سوو

فيها فَانْتَهَيْنَا إِلَى مَدِيْنَةٍ مَبْنِيَّةٍ بِلَبِنِ ذَهَبٍ وَلَبِنِ فِضَّةٍ فَأَتَيْنَا بَابَ الْمَدِيْنَةِ

او یوه ښار ته نژدې ورسېدو چي د سرو او سپینو زرو د خښتو څخه جوړ سوی وو د ښار و دروازې ته د رسېدو سره

فَاسْتَفْتَحْنَا فَفُتِحَ لَنَا فَدَخَلْنٰهَا فَتَلَقَّانَا فيها رِجَالٌ شَطْرٌ مِنْ خَلْقِهِمْ كَأَحْسَنِ

موږ دروازه خلاصول و غوښتل نو دروازه خلاصه سوه او موږ په هغه کي دا خل سو موږ په هغه ځای کي د داسي کسانو سره ملاقات وکړ چي د هغوی نیم بدن ډېر ښائسته وو

مَا أَنْتَ رَاءٍ وَشَطْرٌ منهم كَأَقْبَحِ مَا أَنْتَ رَاءٍ قال قَالاَ لَهُمْ اذْهَبُوا فَقَعُوا فِي ذٰلِكَ

او نیم بدن یې ډېر ناکاره وو (یعني بهترین داسي شی چي د چا په نظر بهترین کېدی او بد ترین داسي شی چي د چا په نظر باندي بد ښکارېدی) ، د نبي کریم ﷺ بیان دي چي هغه دوه کسان چي زه یې د ځان

سره بهولي وم هغو خلكو ته وويل ،

النَّهر قَالَ وَإِذَا نَهرٌ مُّعْتَرِضٌ يَجْرِيْ كَأَنَّ مَاءَهُ الْمَحْضُ فِي الْبَيَاضِ فَذَهَبُوْا

چي په دې ويالـه كي غوټه ووهئ ما وليدل چي هلته د بنار په عرض كي يو ويالـه جاري وه چي اوبه يې تكي سپيني وې نو هغه خلك ولاړل

فَوَقَعُوا فِيهِ ثُمَّ رَجَعُوا إِلَيْنَا قَدْ ذَهَبَ ذٰلِكَ السُّوءُ عَنْهُمْ فَصَارُوا فِي أَحْسَنِ

او په هغه ويالـه كي پرېوتل ، كله چي يې غوټه په كنبي ووهله بيرته راغله نو د هغوی د بدنو هغه خرابه برخه ختمه سوه او په يوه ښه صورت باندي جوړه سوه

صُورَةٍ وَذَكَرَ فِيْ تَفْسِيْرِ هٰذِهِ الزِّيَادَةِ وَأَمَّا الرَّجُلُ الطَّوِيْلُ الَّذِيْ فِي الرَّوْضَةِ فَإِنَّهُ

او حديث د دې زياتو الفاظو تفسير يې داسي وكړ چي هغه اوږد سړی چي په باغ كي د ننه وو

إِبْرَاهِيْمُ وَأَمَّا الْوِلْدَانُ الَّذِيْنَ حَوْلَهُ فَكُلُّ مَوْلُوْدٍ مَاتَ عَلَى الْفِطْرَةِ قَالَ فَقَالَ

هغه حضرت ابراهيم عليه السلام وو او كوم كوچنيان چي د هغه شاؤخوا را چاپېره وه هغه زېږېدلي كوچنيان وه چي د بالغ كېدو څخه مخكي وفات سوي وه ،

بَعْضُ الْمُسْلِمِيْنَ يَا رَسُوْلَ اللهِ وَأَوْلَادُ الْمُشْرِكِيْنَ ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

ځينو اصحابو كرامو د نبي كريم ﷺ څخه پوښتنه وكړه اې د الله ﷻ رسوله ! او د مشركانو اولادونه؟ (يعني نا بالغه كوچنيان) نبي كريم ﷺ وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَوْلَادُ الْمُشْرِكِيْنَ وَأَمَّا الْقَوْمُ الَّذِيْنَ كَانُوْا شَطْرٌ مِّنْهُمْ حَسَنٌ

د مشركانو كوچنيان هم (د حضرت ابراهيم عليه السلام سره اوسيږي) بيا نبي كريم ﷺ د خوب په سلسله كي يې وفرمايل: هغه خلك چي د هغوی نيم بدن صحيح او نيم خراب وو

وَّشَطْرٌ مِّنْهُمْ قَبِيْحٌ فَإِنَّهُمْ قَوْمٌ قَدْ خَلَطُوْا عَمَلاً صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا تَجَاوَزَ اللهُ عَنْهُمْ . رواه البخاري .

هغه خلك وه چي هغوی به ښه او بد عمل كړ وه كوئ يعني يو څه عمل به يې ښه او يو څه عمل به يې بد كوئ وروسته الله ﷻ د هغوی گناهونه ورمعاف كړل . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۳۸، رقم: ۷۰۴۷.

**د لغاتو حل**: المحض: اى اللبن الخالص غير مشوب بشئ.

## د ځانه خوب مه جوړوئ

﴿۴۴۲۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ مِنْ أَفْرَى الْفِرَى أَنْ يُرِيَ الرجل عَيْنَيْهِ مَا لَمْ تَرَيَا. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د ټولو څخه لوئ بهتان (تهمت) دادي چي سړی و خپلو سترګو ته هغه شی وښائي چي هغه يې نه وي ليدلي (يعني په سترګو تهمت ولګوي چي ما داسي خوب وليدی او د دروا غ بيان کړي). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۲۷، رقم: ۷۰۴۳.

**تشريح**: مطلب دادی چي پر سترګو باندي دا درواغ وتړل سي چي هغوی ليدلي دي حال دا چي په حقيقت کي هغوی هيڅ نه دي ليدلي، يعني د درواغو د خوب ويلو بدي څرګندول دي او دې ته لوی بهتان ځکه ويل سوي دي چي خوب يو ډول د وحي قائم مقام وي او د هغه اړه د الله تعالى سره وي نو د درواغو خوب جوړول پر الله تعالى باندي بهتان تړل دي، په يوه حديث کي راغلي دي چي الله تعالى د خوب ښوونکي لپاره ملائکه را استوي.

## په سهار کي خوب ليدل

﴿۴۴۲۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَصْدَقُ الرُّؤْيَا بِالْأَسْحَارِ. رواه الترمذي والدارمي.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چي ډېر رېښتني خوب د سهار د وخت دی. ترمذي او دارمي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۶۲، رقم: ۲۲۷۴، والدارمي ۲\۱۶۹، رقم: ۲۱۴۶.

**تشريح**: د شپې آخري برخه په عامه توګه د زړه او دماغ د سکون وخت دي، دا وخت نه يوازي دا چي آرام وي بلکه هغه د ملائکو د نزول، سعادت او دعاء د قبوليت وخت هم دی ځکه د غه وخت چي کوم خوب وليدل سي نو هغه زيات رېښتوني وي.

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيم

# كِتَابُ الْآدَابِ

## د آدابو بيان

د ادب معنی ده هغه قول او فعل چي هغه ته ښه او د تعریف وړ ویل کیږي، او یا د ادب مطلب دادی چي هره خبره په ښه والي سره په ښه موقع وویل سي او هر کار په احتیاط او تدبیره سره سرته ورسول سي.

د ځینو حضراتو په نزد مکارم الاخلاق (ښه اخلاق)، یعني یقین، قناعت، صبر، شکر، حلم، ښه اخلاق، سخاوت، غیرت او د مهرباني په ډول ښه صفتونه اختیارول او په هغو عمل کولو ته ادب وایي.

ځیني حضرات وایي: د ادب مطلب دادی چي د نیکۍ او ښېګڼي لار اختیار کړل سي او د ګناه د لاري څخه پرهېز وکړل سي. د ځینو حضراتو په نزد د ادب معنی داده چي د خپل بزرګ عزت او توقیر وکړل سي او د خپلو کشرانو سره د شفقت او محبت چلن وکړل سي.

ادب د خپل وسیع مفهوم په اعتبار د انساني ژوند او تهذیب او د ټولني د مختلفو اړخونو سره اړوند حدیثونه نقل کیږي.

## بَابُ السّلاَمِ (د سلام بيان)

د سلام معنی د نقصاناتو او عیبو څخه خلاصون تر لاسه کول، سلام د الله تعالی یو پاک اسم دی چي د هغه معنی هغه ذات دی چي د هر عیب او آفت، تغیر او فنا څخه پاک وي.

سلام د اسلامي تهذیب او ټولني یو خاص رکن دی، ددې لپاره چي کوم الفاظ ټاکل سوي دي هغه (السلام علیک) دي، ددې معنی ده چي الله تعالی ستا په حال خبر دی نو غفلت مه اختیاروئ یا دا چي د الله تعالی د پاک اسم پر تاسو سایه ده یعني ته د الله تعالی په ساتنه او حفاظت کي یې لکه څرنګه چي ویل کیږي: الله معک، یعني الله تعالی ستا سره دی، د اکثرو علماوو په نزد ددې معنی داده چي پر تا دي سلامتیا وي یعني ته زما څخه په سلامتیا کي یې او ما هم د ځان څخه په سلامتیا کي کړه، په دغه صورت کي به سلام د سلم څخه مشتق وي چي

د هغه معنی د مصالحت ده او د دغه کلمې مطلب به دا وي چي ته زما څخه په حفظ او امان کي اوسه او ما هم په حفظ او امان کي ساته.

نقل سوي دي چي د سلام کولو طريقه د اسلام په پېل کي مشروع سوې ده او ددې مقصد يو داسي علامه رواج کول وه چي د هغه په ذريعه د مسلمان او کافر په مينځ کي فرق وکړل سي چي يو مسلمان د بل مسلمان سره تعرض نه کوي ، يعني دغه کلمه په خپله ژبه ادا کونکی ددې خبري اعلان کوي چي زه مسلمان يم او بيا دغه طريقه په ځانګړې توګه مشروع وګرځول سول.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ملائکو سلام

﴿۴۴۲۳﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلَقَ اللّٰهُ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : الله جل جلاله پيدا کړی دی

آدَمَ عَلَى صُورَتِهِ طُولُهُ سِتُّونَ ذِرَاعًا فَلَمَّا خَلَقَهُ قَالَ اذْهَبْ فَسَلِّمْ عَلَى أُولَئِكَ

حضرت آدم عليه السلام په خپل صورت ، د هغه اوږدوالی شپېته ګزه وو د هغه د پيدا کولو څخه وروسته خدای تعالی ورته وفرمايل : ورسه ودې ډلي ته سلام وکړه

النَّفَرِ وهم نفر مِنَ الْمَلَائِكَةِ جُلُوسٌ فَاسْتَمِعْ مَا يُحَيُّونَكَ فَإِنَّهَا تَحِيَّتُكَ

او هلته د ملائکو ډله ناسته وه او واوره هغوی چي څه جواب درکړي هغه ستا او ستا د اولادې

وَتَحِيَّةُ ذُرِّيَّتِكَ فذهب فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ فَقَالُوا السَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ

جواب دی ، آدم عليه السلام ورغی او د ملائکو جماعت يې مخاطب کړ ورته يې وويل : السلام عليکم ملائکو ورته په جواب کي السلام عليکم ورحمة الله وويل ،

اللّٰهِ فَزَادُوهُ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ قال فَكُلُّ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ آدَمَ وطوله ستون ذراعا فَلَمْ يَزَلِ الْخَلْقُ يَنْقُصُ بَعْدُ حَتَّى الْآنَ. متفق عليه.

نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: ملائکو د آدم عليه السلام د سلام په جواب کي ورحمة الله الفاظ زيات کړل ، نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمايي : څوک چي په جنت کي دا خليږي نو د آدم عليه السلام په صورت به وي او د هغه

اوږدوالی به شپېته گزه وي ، د دې څخه یې وروسته د مخلوقاتو د پیدائش قد په اندازه سره کمېدی یعني د هغوی قد به کمېدی تر دې پوري چې و دې مقدار ته راورسېد کوم چې اوس دی . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري):۱۱\۳، رقم: ٦٢٢٧، ومسلم ۴\۲۱۸۳، رقم: ۲۸- ۲۸۴۱.

**تشریح**: الله ﷻ ، ادم علیه السلام په خپل صورت جوړ کړ: ددغه ارشاد په معنی کي د علماوو اختلافي قولونه دي ، ځیني حضرات وایي چي دغه ارشاد د احادیثو د صفاتو څخه دی چي د هغه حقیقي مفهوم او مطلب ته رسیدل ممکن نه دي، ځکه په دې اړه د تاویل او توجیه کولو پر ځای سکوت غوره دی، لکه څرنگه چي د داسي قولونو او ارشاداتو په اړه سکوت اختیارېږي چي متشابهات ورته وایي، علماء سلف دغه قول ته مائل دي ، حال دا چي ځیني نور حضرات ددغه ارشاد تاویلونه کوي چي د هغو څخه مشهور تاویل دادی چي دلته صورت د صفت په معنی کي دی ، لکه څرنگه چي په عامه توگه په ورځنۍ اصطلاح کي ویل کیږي چي د فلانۍ معاملې صورت دادی یا صورت حال داسي دی ، څرگنده ده چي څرنگه د یوې مسئلې یا حال یو ظاهري صورت نه وي بلکه د هغه سره د صورت لفظ استعمالولو سره په حقیقت کي د هغه مسئلې یا حال صفت او کیفیت مراد وي همدارنگه دلته د الله د صورت د لفظ څخه مراد الله ﷻ صفت دی، مطلب دادي چي الله تعالی آدم علیه السلام پر خپل صفت باندي جوړ کړ او هغه یې په صفاتو سره موصوف کړ چي د صفات کریمه باري تعالی عکس دی نو الله تعالی هغه حي، عالم، قادر، مرید ، متکلم، سمیع او بصیر جوړ کړ .

ځیني حضرات وایي چي د صورته اضافت الله تعالی ته د شرف او عظمت څرگندولو لپاره دی لکه څرنگه چي په روح الله او بیت الله کي د روح او بیت اضافت الله تعالی ته دی، په دغه صورت کي به معنی دا وي چي الله تعالی آدم علیه السلام په هغه لطیف او جمیل صورت باندي پیدا کړ چي پر اسرارو او لطائفو باندي مشتمل دی چي هغه د خپل قدرت کامله په ذریعه د خپل خوا څخه ورکړ .

ځیني حضرات وایي چي د صورته ضمیر حضرت آدم علیه السلام ته راجع دی یعني الله تعالی آدم د هغه په صورت جوړ کړ ، مطلب دادی چي هغه د ابتداء څخه په دغه شکل باندي وو ، د نورو انسانانو په ډول د هغه تخلیق په دغه تدریجي توگه نه وو سوی چي مخکي هغه نطفه وو بیا مضعه سو ، بیا جنین ، بیا طفل ، بیا صبي او بیا پوره سړی سو ، بلکه هغه د پېل څخه ټول اندامونه او جوارح په پوره شکل او صورت او د شپېته گزه قد انسان جوړ کړل سو ، نو الله تعالی

ادم په خپل صورت جوړولو څخه مراد د ادم د تخليق او پيدائش حقيقت څرګندول دي او نور صفات پر خلاف د قد د اوږدوالي يو غير معروف شی وو ځکه دا يې په خاصه توګه ذکر کړ ، همدارنګه پر اوږد والي باندي پلنوالی هم قياس کيدای سي او په اجمالي توګه يې تصور په ذهن کي راتلای سي نو پلنوالی يې ذکر نه کړ .

د (ورحمة الله) لفظ ملائکو زيات کړ : ددې په ذريعه د سلام د جواب په اړه يو تهذيب او ادب ته اشاره وسوه نو غوره طريقه داده که يو سړی السلام عليک ووايي نو د هغه په جواب کي وعليک السلام ورحمة الله وبرکاته دي وويل سي ، همدارنګه که يو څوک السلام عليک ورحمة الله ووايي نو د هغه په جواب کي وعليک السلام ورحمة الله وبرکاته دي وويل سي ، په يوه روايت کي د ورحمة الله څخه وروسته و مغفرته لفظ هم نقل سوی دی، د حديث څخه معلومه سوه چي د سلام په جواب کي د وعليک السلام پر ځای السلام وعليک ويل هم صحيح دي ځکه چي د معنی په اعتبار په دواړ کي فرق نسته مګر د جمهورو علماوو په نزد غوره دادي چي په جواب کي وعليک السلام يا وعليکم السلام وويل سي، پاته سوه دا خبره چي ملائکو د حضرت ادم عليه السلام د سلام په جواب کي د وعليک السلام پر ځای السلام عليک ولي وويل، نو کېدايسي چي ملائکو دا غوښتل چي په سلام کولو کي هغوی خپله پېل وکړي لکه څرنګه چي په عامه توګه کيږي چي کله دوه کسان يو ځای کيږي او په هغوی کي هر په سلام کي پېل کول غواړي نو دواړه يو بل ته السلام عليک يا السلام عليکم وايي مګر دا خبره دي څرګنده وي چي د جواب صحيح کېدو لپاره دا ضروري ده چي هغه جواب د سلام څخه وروسته واقع سي نه دا چي دواړه يو ځای واقع سي، لکه څرنګه چي فاستمع ما يحيونک، بيا واوره چي هغوی څه جواب درکوي، نه څرګنديږي، نو په فاستمع کي د فاء حرف د تعقيب لپاره دی چي د ذکر سوي وضاحت دليل دی، په عامه توګه خلک ددغه مسئلې څخه ډېر غافل دي ځکه دا خبره بايد په ذهن کي وي که دوه خلک يو ځای سي او دواړه يو ځای السلام عليکم ووايي نو په دواړو کي به پر هر يوه باندي جواب ورکول واجب وي .

د حديث آخري جمله پر تقديم او تاخير باندي دلالت کوي ، ددې مطلب دادی چي د حضرت آدم عليه السلام قد شپېته ګزه وو د هغه څخه وروسته د خلکو قد په تدريج سره کمېدی او بيا چي په جنت کي داخليږي نو د ټولو قد به اوږد سي لکه څرنګه چي د آدم عليه السلام وو .

## ښه اعمال

﴿۴۴۲۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْإِسْلَامِ خَيْرٌ قَالَ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ. متفق عليه.

د حضرت عبدالله بن عمرو ؓ څخه روایت دی چي یوه سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي د اسلام کوم عادت بهتر دی؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: په چا باندي ډوډۍ خوړل او دوست او غیر دوست و ټولو ته سلام کول. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۱، رقم: ۶۲۳۶، ومسلم ۱\۶۵، رقم: ۶۳-۳۹.

**تشریح**: د دوو صفتو خاصوالی د سائل دحال په مناسبت دی نو په مختلفو وختو کي مختلفو اعمالو ته غوره ویل چي په یوه وخت کي یې یوه عمل ته افضل وویل او په بل وخت کي یې بل عمل ته، د مسائلو د احوال پر اختلاف او تفاوت باندي مبني وو، پوښتنه کونکي چي د کوم مزاج او احوال سړی وو او د هغه رجحان د کوم نیک خصلت په لور وو د هغه مخکي هغه نیک خصلت غوره وګرځول سي د مثال په توګه یو سړي پوښتنه وکړه چي کوم عمل غوره دی، رسول الله ﷺ وپوهېدی چي ددغه سړي په مزاج کي بخل دی نو هغه ته به یې وفرمایل چي خوراک ورکول تر ټولو غوره عمل دی، نو دلته چي کومه پوښتنه سوې وه رسول الله ﷺ د هغه د احوالو په مناسبت سره هغه ته وفرمایل چي خوراک ورکول او هر چا ته سلام کول غوره عمل دی.

لفظ د تُقری (د تاء په پېښ سره) د اقراء څخه مشتق دی او ددې معنی بل ته د ښوونې ده، دغه لفظ د تاء په زېر سره هم منقول دي چي د قرائت څخه مشتق دی او د هغه معنی د ویلو ده، که څه هم په لومړني صورت کي مفهوم زیات غوره دی نو ددې توجیه به دا کیږي چي سلام کونکی مسلم علیه به د جواب ورکولو باعث وي ځکه هغه د ژبي څخه هغه کلمه ویل غواړي چي د هغه تعلق د سلام او د هغه د جواب سره وي.

ددغه حدیث څخه دا خبره ثابته سوه چي د سلام تعلق د شناختو د حقوقو څخه نه دی بلکه دا د هغه حقوقو څخه دی چي اسلام پر یو مسلمان باندي د بل مسلمان عائد کړل سي همدارنګه د ناروغ پوښتنه او داسي نور امور هم د اسلامي حقوقو او واجباتو سره تعلق لري لکه څرنګه چي د راتلونکي حدیث څخه څرګندیږي.

## د یوه مسلمان پر بل مسلمان حقوق

﴿۴۴۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْمُؤْمِنِ

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د یوه مسلمان پر بل

عَلَى الْمُؤْمِنِ سِتُّ خِصَالٍ يَعُودُهُ إِذَا مَرِضَ وَيَشْهَدُهُ إِذَا مَاتَ وَيُجِيبُهُ إِذَا دَعَاهُ

مسلمان باندي شپږ حقوق دی: (۱)- کله چي یو مسلمان ناروغه سي د هغه پوښتنه کول. (۲)- کله چي یو مسلمان مړ سي د هغه په کفن او دفن کي او د جنازې په لمانځه وغیره کي شریکېدل. (۳)- که یو مسلمان دعوت درکړي د هغه دعوت قبلول.

وَيُسَلِّمُ عَلَيْهِ إِذَا لَقِيَهُ وَيُشَمِّتُهُ إِذَا عَطَسَ وَيَنْصَحُ لَهُ إِذَا غَابَ أَوْ شَهِدَ. ولم

(۴)- کله چي یو مسلمان سره یو ځای سي نو سلام ورته کول. (۵)- کله چي یو مسلمان تریچی وکړي د هغه په جواب کي یرحمک الله ویل (که چیرې هغه الحمد لله ووایي). (۶)- د حاضر او غائب مسلمان خیر خواهي کول.

اجده في الصحيحين ولا في كتاب الحميدي ولكن ذكره صاحب الجامع برواية النسائي.

(دا حدیث په بخاري او مسلم کي نسته او نه په حمیدي کتاب کي سته البته په جامع الاصول کي دا نقل سوی دی او د نسائي حواله یې ورکړې ده).

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۷۵، رقم: ۲۷۳۷.

**تشریح**: خیر خواهي دي کوي، ددې مطلب دادی چي پر مسلمان باندي د اواجب دي چي هغه په هر حالت کي د یو بل خیر خواه او همدرد وي، کوم مسلمان چي مخته وي د هغه سره دي خیرخواهي وکړل سي او کوم چي د نظر څخه لیري وي د هغه سره دي هم خیرخواهي وکړل سي دغه باید ونه کړل سي چي کله یو مسلمان مخته راسي نو د هغه سره دي ښه رویه اختیار کړل سي او کله چي هغه نه وي نو غیبت دي یې وکړل سي دا منافقانه رویه ده او د منافقانو خاصیت دی.

## د دوستۍ ښه لار سلام کول دي

﴿۴۴۲۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا أَوَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو تر هغه وخته پوري په جنت کي نه سي دا خلېدلای تر څو پوري چي ايمان را نه وړئ او تر هغه وخته پوري ستاسو ايمان نه سي کاملېدلای تر څو پوري چي په خپلو کي محبت پيدا نه کړئ، ايا زه تاسو ته يوه دا سي خبره و نه ښائم که تاسو په هغه باندي عمل وکړئ نو ستاسو په مينځ کي به محبت زيات سي او هغه خبره دا ده چي په خپلو کي يو بل ته سلام کول رواج کړئ يعني په خپلو کي دوست او غير دوست و ټولو ته سلام کوئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۷۴، رقم: ۹۳- ۵۴.

**تشريح**: د مشکوة په صحيح او معتمدو نسخو کي د (ولاتؤمنوا) لفظ د نون په حذف سره دی او دغه د نون حذف حتی تؤمنوا د مجانست او مقارنت په وجه دی، مگر په ځينو نسخو کي دغه لفظ په نون سره يعني ولاتؤمنون هم نقل سوی دی او دا د نحوي قاعدې مطابق دی.

## څوک دي اول سلام کوي

﴿۴۴۲۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِي وَالْمَاشِي عَلَى الْقَاعِدِ وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: سپور دي و پياده ته سلام کوي، پياده تلونکي دي و ناست ته سلام کوي او لږ کسان دي و ډيرو ته سلام کوي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۱۵، رقم: ۶۲۳۲، ومسم ۴\ ۱۷۰۳، رقم: ۱- ۲۱۶۰.

**تشريح**: کوم څوک چي سپور وي ...الخ: دغه حکم په اصل کي تواضع او انکسارۍ ته د رغبت ورکولو لپاره دی ځکه چي کوم سړی پر سپرلۍ وي هغه ته الله تعالی پر پښو تلونکي باندي غوره والی او فوقيت ورکړی دی نو هغه ته انکساري کول پکار دي، همدارنگه کوم

خلک چي کم وي او هغوی د داسي خلکو سره یو ځای سي چي هغوی زیات وي نو هغوی هم باید د تواضع او انکسارۍ په وجه د زیاتو کسانو د احترام سره سم په سلام کي پېل وکړي.

امام نووي رحمه الله وايي: که یو سړی د ځو خلکو سره یو ځای سي او دا وغواړي چي هغه ټولو ته د سلام کولو پر ځای په هغوی کي یو ځو کسانو ته سلام وکړي نو دا مکروه دي ځکه چي د اسلام اصل مقصد په خپلو کي موانست او الفت پیدا کول دي حال دا چي ځیني خاصو خلکو ته سلام کول پاته خلک په وحشت او پردي توب کي اخته کول دي او دغه کار په زیاتو وختو کي د نفرت او عداوت سبب هم ګرځي مګر د بازار او عامو سړکانو حکم دی او دا د هغه ځخه بېل دی، که په بازار یا عام سړک باندي ډېر خلک ځي او راځي نو په هغوی کي ځینو ته سلام کول کافي کیږي ځکه که یو سړی په بازار کي یو ځای کېدونکي هر سړي ته سلام کوي نو هغه به په همدې مصروف سي او خپل کارونه به ځیني پاته وي.

﴿۴۴۲۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ الصَّغِيرُ عَلَى الْكَبِيرِ وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ. رواه البخاري.

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوچنی دي و لوی ته سلام کوي او تلونکي دي و ناست ته سلام کوي او لږ کسان دي و ډېرو کسانو ته سلام کوي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۱۴، رقم: ۶۲۳۱.

**تشريح**: علماوو لیکلي دي چي ذکر سوی حکم په لاره کي د لیدني پر وخت دی د مثال په توګه یو سړی را روان دی او بل سړی ددې خوا ځخه ور روان دی او دواړو یو ځای سي نو ددغه صورت لپاره دا حکم دی چي په دواړو کي کوم یو کشر وي هغه دي مشر ته سلام وکړي مګر مجلس یا بل ځای ته د ورتلو په صورت کي د اسلام پېل ورتلونکی ته کول پکار دي که ځه هم هغه کوچنی وي یا لوی وي او که ځه هم شمېر یې زیات وي یا کم وي.

### د نبي کريم ﷺ شفقت

﴿۴۴۲۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى غِلْمَانٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ. متفق عليه.

ته يې سلام وكړ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۲، رقم: ۶۲۴۷، ومسلم ۱۷۰۸\۴، رقم: ۱۴– ۲۱۶۸.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ دغه عمل مبارک چي ماشومانو ته يې سلام وكړ دا په حقيقت كي د رسول الله ﷺ د وصف تواضع او انكسارۍ د كمال شفقت او محبت مظهر دی.

## غير مسلم ته سلام

﴿۴۴۳۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَبْدَءُوا الْيَهُودَ وَلَا النَّصَارَى بِالسَّلَامِ وَإِذَا لَقِيتُمْ أَحَدَهُمْ فِي طَرِيقٍ فَاضْطَرُّوهُ إِلَى أَضْيَقِهِ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يهودو او نصاراؤ ته په سلام كولو كي مخته كيږئ مه، او كله چي ستاسو سره په لار كي يو يهودي يا نصراني يو ځای سي نو د هغه لار دومره تنګه كړئ چي هغه و يوه لورته په تېرېدو باندي مجبوره سي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۷۰۷\۴، رقم: ۱۳– ۲۱۶۷.

**تشريح**: په سلام كولو كي پېل مه كوئ: مطلب دادی چي مخكي تاسو هغوی ته السلام عليكم مه وايا ست ځكه چي په اسلام كي پېل كول په حقيقت كي د اسلامي تهذيب يو اعزاز دی چي د هغه مستحق هغه خلک كيدای سي كوم چي د اسلامي تهذيب پيروان وي او مسلمانان وي، د دغه اعزاز استحقاق هغه خلكو ته تر لاسه كېدای نسي كوم چي د دين دښمنان او باغيان وي همدا رنګه هغه باغيانو ته او دښمنانو ته سلام كول او د داسي نورو شيانو په ذريعه الفت او محبت ورسره كول هم جائز نه دي ځكه چي الله تعالى فرمايلي دي:

(لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ)

ژباړه: ته به داسي هيڅ قوم تر لاسه نه كړې چي پر الله ﷻ او د قيامت په ورځ ايمان لري او د هغه خلكو سره هم دوستي كوي كوم چي د الله او د هغه د رسول مخالفت كوي.

مګر كه چيري هغه خلک په سلام كي پېل وكړي او السلام عليک يا السلام عليكم ووايي نو د هغه په جواب كي يوازي عليک يا عليكم ويل پكار دي، علماوو ليكلي دي چي غوره داده چي د غير مسلم په جواب كي هداک الله وويل سي او ځينو علماوو ليكلي دي چي د يو ضرورت

او مجبوري په وجه يهودو او نصاراوو ته سلام کول جائز دي او دا حکم د هغه مسلمانانو هم دی کوم چي بدعتيان او په فسق کي اخته وي.

په اسلامي سلطنت کي او سيدونکي يو مسلمان که يو پردي ته سلام وکړ او بيا معلومه سوه چي هغه ذمي دی نو په دغه صورت کي مستحب دادي چي د خپل اسلام د واپس کولو مطالبه دي وکړي يعني داسي دوايي چي : استرجعت سلامي، يعني زه دخپل سلام د بېرته اخيستني غوښته کوم.

د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي يهود او نصارا چي د دين دښمنان دي او د خپل مکر او فريب د طاقتونو په ذريعه د الله ﷻ ببرغ نسکورول غواړي دداسي چلن مستحق دي چي کله هغوی په لاره کي يو ځای سي نو پر هغوی دي دومره زور راولي چي هغوی يوې خوا ته کېدو سره په تېرېدو باندي مجبور سي او پر هغوی دي لاره تنګه کړل سي چي د اسلام عظمت او شوکت او د مسلمانانو د دبدبې اظهار وسي، د مشکوة په ځينو حاشيو کي دا مطلب ليکلی دي چي هغوی ته دا حکم ورکړئ چي يوې خوا ته سئ او پر غاړه ځئ چي د لار د مينځ برخه د مسلمانانو د تګ راتګ لپاره مخصوص سي.

## د يهودو شرارت

﴿۴۴۳۱﴾: وَعَنِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمُ الْيَهُودُ فَإِنَّمَا يَقُولُ أَحَدُهُمُ السَّامُ عَلَيْكَ فَقُلْ وَعَلَيْكَ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي يهود تاسو ته سلام کوي نو دا وايي : السام عليک (يعني مړ سې ، پر تا دي مرګ وي ، خدای تعالی دي مړ که) د دې په جواب کي وايه و عليک (يعني په تا دي مرګ راسي). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۲، رقم: ۶۲۵۷، ومسلم ۴\۱۷۰۶، رقم: ۸- ۲۱۶۴.

﴿۴۴۳۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَهْلُ الْكِتَابِ فَقُولُوا وَعَلَيْكُمْ. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي يهود او نصاری درته

سلام و کړي نو د هغوی په جواب کي يوازي و عليکم وایاست . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۲، رقم: ۶۲۵۸، ومسلم ۴\۱۷۰۵، رقم: ۶ - ۲۱۶۳.

**تشریح**: په لومړي روايت کي د فقل او عليک لفظ د مفرد په صيغې دي او په دغه روايت کي د جمع په صيغه دی، همدارنگه په نورو روايتو کي وعليک او عليکم په واو سره او بېله واوه دواړه ډوله نقل سوی دی ، د مشکوة مؤلف دلته چي کوم روايت نقل کړی دی په هغه کي دواړه په واو سره نقل سوي دي، د مؤطا په روايت کي عليک بېله واو او د دار قطني په روايت کي عليکم بېله واو نقل سوی دی ، علماوو ليکلي دي چي صحيح او مختار قول دادی چي د ذکر سوو خلکو د سلام په جواب کي دغه لفظ بېله واو يعني عليکم يا عليک وويل سي چي په دې کي مشارکت لازم نسي کوم چي د هغوی په ژبه سره ادا سوی دی او ځيني حضرات وايي چي دغه لفظ په واو ويلو کي هم څه پروا نسته ځکه چي د کوم شي مشارکت لازميږي هغه مرگ دی او مرگ ټولو ته راتلونکی دی ، په دغه صورت کي د دغه لفظ مطلب به دا وي چي کوم مرگ تاسو بد گڼئ او موږ ته د هغه ښېرا کوئ په هغه کي موږ او تاسو برابر يو ، چي موږ ته مرگ يعني مړ کېدل دي ، د ځينو حضرات قول دادی چي د واو حرف دلته د مشارکت لپاره نه دی بلکه د استيناف لپاره دی په دغه صورت کي دغه لفظ به د مفهوم په اعتبار د دغه جملې قائم مقام وي : وعليکم ما تستحقونه من الذم، يعني پر تا دي هغه بدي وي چي د هغه ته مستحق يې، مگر دا خبره دي څرگنده ري چي دغه لفظ په حديثو کي دوه ډوله نقل سوی دی چي په ځينو روايتو کي په واو سره دی او په ځينو روايتو کي بېله واو دی ځکه نو په دې اړه صحيح خبره داده چي دواړه ډوله ويل جائز دي .

نووي رحمة الله عليه وايي: د علماوو پر دې خبره اتفاق دی چي اهل کتابو ته دي د سلام جواب ورکړل سي مگر وعليکم السلام دي نه ويل کيږي يعني جواب ورکونکی دي عليکم السلام نه وايي بلکه يوازي عليکم يا عليک دي وايي ، بلکه وعليکم دي په هغه صورت کي وايي کله چي هغوی د يوه څخه زيات وي او که يو وي نو عليکم دي نه وايي ځکه چي په داسي ويلو سره د هغه تعظيم او توقير لازميږي .

## د نبي کريم ﷺ حکم

﴿۴۴۴۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اِسْتَأْذَنَ رَهْطٌ مِنَ الْيَهُودِ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي د يهودو يو جماعت د نبي کريم ﷺ په خدمت کي د

حاضري اجازه و غوښته

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا السَّامُ عَلَيْكُمْ فَقُلْتُ بَلْ عَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ

او وې ويل : السام عليكم (په تاسو دي مرګ راسي) ما د هغوی په جواب کي وويل : و عليكم السام واللعنة (په تاسو دي مرګ راسي او درباندي لعنت دي وي)

فَقَالَ يَا عَائِشَةُ إِنَّ اللّٰهَ رَفِيقٌ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِي الْأَمْرِ كُلِّهِ قُلْتُ أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا

په دې اورېدو سره نبي کريم ﷺ وفرمايل: اې عائشې ! خداي تعالى نرمي کوي او په ټولو کارونو کي نرمي خوښوي ما وويل: تاسو وا نهورېدل چي

قَالُوا قَالَ قَدْ قُلْتُ وَعَلَيْكُمْ. وفي رواية عَلَيْكُمْ وَلَمْ يَذْكُرُوا الْوَاوَ. متفق

هغوی څه وويل ؟ نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : ما د هغوی په جواب کي وعليكم (په تاسو هم) ويلي وو، او په يوه روايت کي دي چي (عليكم) يې ورته وو ايه بېله واو، او د بخاري په يوه

عليه و في رواية للبخاري قَالَتْ أَنَّ يَهُودَ أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا

روايت کي دا الفاظ دي ، يهود د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سول او ويې ويل :

السَّامُ عَلَيْكُمْ فَقَالَتْ عَائِشَةُ السام عَلَيْكُمْ وَلَعَنَكُمُ اللّٰهُ وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ

السام عليک (پر تا دي مرګ راسي) او نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : و عليكم (او په تاسو هم) بي بي عائشې رض د يهودو د الفاظو په اورېدو سره وويل : پر تاسو دي مرګ راسي او پر تاسو دي لعنت وي او پر تاسو دي غضب الهي نازل سي ،

فقَالَ رسول الله صلى الله عليه وسلم مَهْلًا يَا عَائِشَةُ عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ وَإِيَّاكِ

نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : اې عائشې ! د نرمي څخه کار اخله سختي پرېږده

وَالْعُنْفَ وَالْفُحْشَ قَالَتْ أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوا قَالَ أَوَلَمْ تَسْمَعِي مَا قُلْتُ

او د بې شرمو خبرو څخه ځان وژغوره، بي بي عائشې رضي الله عنها وويل ، تاسو د دوي الفاظ وا نه ورېدل ، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : او تا زما د جواب الفاظ وا نه ورېدل ما د هغوی الفاظ و

رَدَدْتُ عَلَيْهِمْ فَيُسْتَجَابُ لِي فِيهِمْ وَلَا يُسْتَجَابُ لَهُمْ فِيَّ. وفي رواية لمسلم قَالَ لَاتَكُونِيْ فَاحِشَةً فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْفُحْشَ وَالتَّفَحُّشَ.

هغوی ته ور وګرځول زما دعا د هغوی په حق کي قبليږي او د هغوی دعا زما په حق کي نه قبليږي او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي نبي کريم ﷺ دا وفرمايل: اې عائشې! ته فالتو او د فحش خبري مه کوه ځکه چي الله ﷻ فحش او بې حيائي نه خوښوي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۲۸۰، رقم: ۶۹۲۷، ومسلم ۴\۱۷۰۶، رقم: ۱۰- ۲۱۶۵.

## مسلمان او کافر چي دواړه وي

﴿۴۴۳۴﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِمَجْلِسٍ فِيهِ أَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ وَالْيَهُودِ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ. متفق عليه.

د حضرت اسامه بن زيد رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په يوه داسي ټولنه باندي تير سو چي په هغې کي مسلمانان، مشرکين، د بوتانو عبادت کونکي او يهود هر ډول خلک موجود وه او نبي کريم ﷺ و هغوی ته سلام ووايه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۸، رقم: ۲۶۵۴، ومسلم ۳\۱۴۲۲، رقم: ۱۱۶- ۱۷۹۷.

**تشريح**: نووي رحمة الله عليه وايي: که يو مسلمان پر يو داسي ډله باندي تېر سي چي په هغه کي مسلمانان هم وي او کافران هم وي، که څه هم مسلمان يو وي يا ډېر وي نو سنت دادی چي د مسلمانانو يا مسلمان په قصد کولو سره ټولي ډلي ته سلام وکړل سي، علماوو ليکلي دي چي په دغه صورت کي السلام عليکم ووايي او دا نيت وکړي چي ددغه سلام اصل مخاطب مسلمانان دي او که داسي ووايي چي السلام علي من اتبع الهدی، علماوو دا هم ليکي دي که يو مشرک او کافران ته خط ليکل کيږي نو سنت دادي چي هغه ته د السلام عليکم ليکلو پر ځای هغه الفاظ وليکي کوم چي رسول الله ﷺ د روم پاچا هرقل ته ليکلي وه يعني سلام علی من اتبع الهدی.

## دلاري حقوق

﴿۴۴۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوسعيد خدري ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوسَ عَلَى الطُّرُقَاتِ فَقَالُوا يارسول الله مَا لَنَا من

تاسو په لاره کي مه کښېنئ ، اصحابو کرامو وويل: اې د الله ﷻ رسوله ! موږ خو په دې مجبور

مَجَالِسِنَا بد نَتَحَدَّثُ فِيهَا قَالَ فَإِذَا أَبَيْتُمْ إِلَّا الْمَجَالِسَ فَأَعْطُوا الطَّرِيقَ

يو چي په لاره کي کښېنو ځکه چي موږ هلته په ناستي سره په ټولو ضروري کارونو باندي بحث کوو ، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : که تاسو په دې مجبوره ياست نو د لاري حق ادا کوئ ،

حَقَّهَا قَالُوا وَمَا حَقُّ الطَّرِيقِ يا رسول الله قَالَ غَضُّ الْبَصَرِ وَكَفُّ الْأَذَى وَرَدُّ

السَّلَامِ وَأَمْرٌ بِالْمَعْرُوفِ وَنَهْيٌ عَنِ الْمُنْكَرِ. متفق عليه.

اصحابو کرامو رض وويل: د لاري حق څشي دی؟ نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : (۱)- د سترګو بندول (يعني پر حرامو شيانو باندي نظر نه کول). (۲)- و چا ته ضرر نه رسول . (۳)د سلام جواب ورکول . (۴)- د مشروعو خبرو خلکو ته امر ورکول . (۵)- او د ممنوعو خبرو څخه يې منعه کول . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۸، رقم: ۶۲۲۹، ومسلم ۳\۱۶۷۵، رقم: ۱۱۴- ۲۱۲۱.

**تشريح**: د سلام جواب ورکول : دلته د سلام کولو پر ځای د سلام د جواب ورکولو هدايت کول د هغه سنت په وجه دی چي تلونکي او تېرېدونکي دي ناست ته سلام کوي لکه څرنګه چي مخکي بيان سوی دی .

﴿۴۴۳۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ

قَالَ وَإِرْشَادُ السَّبِيلِ. رواه ابوداؤد عقيب حديث الخدري هكذا.

حضرت ابو هريره ﷛ د پورته ذکر سوی حديث په واقعه کي دومره اضافه توب کوي چي نبي

كريم ﷺ د لاري حقوق په بيانولو سره دا هم وفرمايل: د لاري ښودل (يعني كه يو څوک د لاري د معلومولو په هكله پوښتنه وكړي نو هغه ته لاره ښودل). ابوداؤد حديث خدري پسي دا سي بيان كړی دی.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱٦٠، رقم: ۴۸۱٦.

﴿۴۴۳۷﴾: وَعَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هٰذِهِ الْقِصَّةِ قَالَ وَتُغِيثُوا الْمَلْهُوفَ وَتَهْدُوا الضَّالَّ. رواه ابوداؤد و عقيب حديث ابي هريرة هكذا ولم اجدهما في الصحيحين.

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د ذكر سوی حديث په واقعه كي دا سي وفرمايل: د مظلوم فرياد رسي كول او د لاري خطاكونكي ته لاره ښودل. ابوداؤد دا د حضرت ابو هريره رضي الله عنه په حديث پسې داسي بيان وكړ او موږ دا دواړه حديثونه په صحيحين نكړل پيدا.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱٦٠، رقم: ۴۸۱۷.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مسلمان پر مسلمان حقوق

﴿۴۴۳۸﴾: عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْمُسْلِمِ عَلَى

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مسلمان پر مسلمان باندي

الْمُسْلِمِ سِتٌّ بِالْمَعْرُوفِ يُسَلِّمُ عَلَيْهِ إِذَا لَقِيَهُ وَيُجِيبُهُ إِذَا دَعَاهُ وَيُشَمِّتُهُ إِذَا

شپږ حقوق دي: (۱)- كله چي د يو مسلمان سره يو ځای سي نو هغه ته په ښه ډول سلام كوي. (۲)- كه يو څوک مسلمان دعوت كړي نو هغه دي قبلوي. (۳)- كه يو مسلمان تريچی

عَطَسَ وَيَعُودُهُ إِذَا مَرِضَ وَيَتْبَعُ جَنَازَتَهُ إِذَا مَاتَ وَيُحِبُّ لَهُ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ.

رواه الترمذي والدارمي.

وکړي نو د هغه جواب ورکول (یعني یرحمک الله دي ورته ووایي ).(۴)- یو مسلمان چي ناروغ سي نو د هغه پوښتنه کول .(۵)- یو مسلمان چي مړ سي نو د جنازې سره یې تلل .(۶) او د هر مسلمان لپاره هغه شی خوښوه کوم چي ته یې د ځان لپاره خوښوې. ترمذي او دارمي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۷۵، رقم: ۲۷۳۶.

## ډېر ثواب والا سلام

﴿۴۴۳۹﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ ان رجلا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه څخه روایت دی چي یو سړی د نبي کریم ﷺ په خدمت کي

فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ فَرَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ ثُمَّ جَلَسَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ

حاضر سو سلام یې وکړ رسول الله ﷺ د هغه سلام جواب ورکړ ، وروسته هغه سړي کښېنستی ، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرٌ ثُمَّ جَاءَ آخَرُ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ فَرَدَّ عَلَيْهِ

د دې سړي لپاره لس نیکی ولیکل سوې ، وروسته بیا یو بل سړی راغی هغه وویل السلام علیکم ورحمة الله ، نبي کریم ﷺ و هغه ته جواب ورکړ

فَجَلَسَ فَقَالَ عِشْرُونَ ثُمَّ جَاءَ آخَرُ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ فَرَدَّ عَلَيْهِ فَجَلَسَ فَقَالَ ثَلَاثُونَ . رواه الترمذي و ابوداؤد.

او د هغه د ناستي څخه وروسته یې وفرمایل: د دې سړي لپاره شل نیکی و لیکل سوې ، وروسته بیا یو بل سړی راغي او ویې ویل : السلام علیکم ورحمة الله و برکاته ، نبي کریم ﷺ د هغه د سلام جواب ورکړ کله چي هغه کښېنستی نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: د ده لپاره دیرش نیکیو لیکل سوې. ترمذي او ابوداؤد.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۱، رقم: ۲۶۸۹، وابوداود ۵\۳۷۹، رقم: ۵۱۹۵.

**تشریح**: د ذکر سوي ارشاد تعلق د سلام کونکی سره دی ، که سلام کونکی السلام علیکم ووایي او چا ته چي سلام سوی دی هغه په جواب کي ورحمة الله الفاظ زیات کړي یعني

وعليكم السلام ورحمة الله ، ووايي، يا سلام كونكى السلام عليكم ورحمة الله، ووايي او جواب وركونكى وبركاته لفظ زيات كړي يعنې داسي ووايي چي : وعليكم السلام ورحمة الله وبركاته، نو دغه زياتوب به په ثواب كي د زياتوب په حكم كي وي او دغه حكم د مغفرته د زياتوب هم دى لكه چي په راتلونكي حديث كي ذكر سوي دي .

﴿۴۴۴۰﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ زَادَ ثُمَّ أَتَى آخَرُ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ وَمَغْفِرَتُهُ فَقَالَ أَرْبَعُونَ قَالَ هَكَذَا تَكُونُ الْفَضَائِلُ. رواه ابوداؤد.

حضرت معاذ بن انس ﷺ د ذكر سوى حديث هم معنى حديث د نبي كريم ﷺ څخه نقل كړى دى او دا الفاظ يې زيات ليكلي دي چي بيا يو بل سړى راغى او هغه وويل : السلام عليكم ورحمة الله وبركاته و مغفرته ، نبي كريم ﷺ وفرمايل: د دې سړي لپاره څلوېښت نيكئ و ليكل سوى ، د دې څخه وروسته نبي كريم ﷺ وفرمايل: او داسي ثواب زياتيږي . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۷۹، رقم: ۵۱۶۹.

**تشريح**: علماوو ليكلي دي چي د سلام كولو په اړه غوره دادي چي سلام كونكى داسي ووايي: السلام عليكم ورحمة الله وبركاته، يعني د جمع ضمير استعمال كړل سي كه څه هم يوه سړي ته سلام كيږي، همدارنګه كوم سړي ته چي سلام سوى وي هغه دي په جواب كي داسي وايي : وعليكم السلام، يعني هغه دي هم د جمع ضمير استعمال كړي . څرګنده دي وي چي د سلام ادنا درجه السلام عليكم ويل دي او كه السلام عليک يا سلام عليک وويل سي نو هم كافي دي او په جواب كي ادنا درجه د وعليک السلام او وعليكم السلام دى او كه واو ونه ويل سي نو هم كافي دى، د علماوو پر دې خبره اتفاق دى كه چيري په جواب كي يوازي عليكم وويل سي نو جواب به پوره نه وي او كه په جواب كي وعليكم وويل سي يعني واو ولګول سي نو په دغه صورت كي دواړه قوله دي .

### د مخكي سلام كولو فضيلت

﴿۴۴۴۱﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِاللَّهِ مَنْ بَدَأَهُمْ بِالسَّلَامِ . رواه احمد والترمذي وابوداؤد.

د حضرت ابو امامه ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله ﷻ ته زیات نیزدې هغه سړی دی چي شروع په سلام وکړي . احمد ، ترمذي او ابوداؤد

**تخریج**: مسند الامام احمد ۵\ ۲۵۴، رقم: ۵۱۹۷، والترمذي ۵\ ۵۴، رقم: ۲۶۹۴.

**تشریح**: ددغه فضیلت مخاطب هغه خلک دي چي په لاره کي د یو بل سره یو ځای سي ځکه چي په دغه صورت کي د سلام کولو د حق په اړه هغوی برابر دي ، په هغوی کي چي کوم څوک مخکي سلام وکړي هغه به د ذکر سوي فضیلت مستحق وي ، ددې پر خلاف که دا صورت وي چي یو سړی ناست وي او بل سړی هغه ته راسي نو د سلام کولو حق به پر هغه دوهم سړي وي کوم چي راغلی دی ، که هغه راتلونکی سړی په سلام کي مخکي سي نو هغه بهٔ د فضیلت مخاطب نه وي ځکه چي هغه په سلام کي د مخکې کېدو سره په حقیقت کي هغه حق ادا کړی دی کوم چي د هغه پر ذمه وو ، مګر که چیري په سلام کولو کي هغه ناست سړی مخکي سو نو ددغه فضیلت به هغه مستحق وي .

د حضرت عمر ﷛ په اړه نقل سوي دي چي هغه به ویل: درې شیان داسي چي د هغه په اختیارولو سره د مسلمانانو په تعلقاتو کي استحکام، محبت او جذباتو ته پرمختګ ورکوي، خو د لیدني په وخت کي په سلام کولو کي مخکي کېدل، دوهم یو مسلمان د هغه په هغه نامه مخاطب کول او بلل کوم چي هغه یې خوښوي، دریم دا چي کله هغه مجلس ته راسي نو هغه ته په عزت او احترام سره ځای ورکړل سي .

﴿۴۴۴۲﴾: وَعَنْ جَرِيرٍ أَنَّ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ على نسوة فَسَلَّمَ عَلَيْهِنَّ . رواه احمد.

د حضرت جریر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د ښځو د یوه جماعت سره نیزدې تیر سو او هغوی ته یې سلام وکړ . احمد

**تخریج**: مسند الامام احمد ۴\۳۵۷.

**تشریح**: دا خبره د رسول الله ﷺ د ذات سره خاص وه ځکه چي په فتنه او شر کي د رسول الله ﷺ د اخته کېدو بېره نه وه ځکه د رسول الله ﷺ لپاره ښځو ته سلام کول روا وو ، مګر د رسول الله ﷺ څخه پرته د بل مسلمان لپاره دا مکروه دي چي هغه پردې ښځي ته سلام وکړي ، مګر که چیري یو پردې ښځه د ومره سپین سرې وي چي د هغې څخه د فتنې او شر بېره نه وي او نه هغې ته سلام

کول د نورو خلکو په نظر کي د بد گمانی سبب جوړیږي نو بیا هغې ته سلام جائز دي .

## ډېرو خلکو ته سلام کول

﴿۴۴۴۳﴾: وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ قَالَ يُجْزِئُ عَنِ الْجَمَاعَةِ إِذَا مَرُّوا أَنْ يُسَلِّمَ أَحَدُهُمْ وَيُجْزِئُ عَنِ الْجُلُوسِ أَنْ يَرُدَّ أَحَدُهُمْ. رواه البيهقي في شعب الايمان مرفوعا و روى ابوداؤد وقال رفعه الحسن بن علي وهو شيخ ابي داؤد.

د حضرت علي بن ابي طالب ﷛ څخه روايت دی کله چي د سړو يو جماعت تيريږي او په هغوی کي يو چا يوه سړي يا جماعت ته سلام وکړ نو دا سلام د ټول جماعت د طرف څخه دی او داسي که د ناستي ډلي څخه يوازي يو سړی جواب ورکړي نو دا جواب د ټول جماعت د لوري څخه دی . بيهقي دا روايت مرفوعا نقل کړی دی (يعني دا قول يې د نبي کريم ﷺ ارشاد بنودلی دی).

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۸۷، رقم: ۵۲۱۰، والبيهقي في شعب الايمان ۶\۴۶۶، رقم: ۸۹۲۲.

**تشريح**: تيريږي: په د غه حکم کي هغه صورت هم داخل دی چي کله يو څو خلک يو داسي ځای ته ولاړ سي يا په يو داسي ځای کي تم سي چي هلته د مخکي څخه خلک ناست وي يا يو سړی وي ، د حديث خلاصه داده چي په سلام کولو کي مخکي کېدل سنت کفايه دي او د سلام جواب ورکول فرض کفايه دی ، کومو خلکو ته چي په سلام کي مخکي کېدل ضروري دي يا کومو خلکو ته چي د سلام جواب ورکول دي که په هغوی کي يو سړی سلام وکړي يا يو سړی د سلام جواب ورکړي نو هغه سلام يا جواب به د ټولو خلکو له خوا کافي وي او هغوی به بري الذمه سي ، که څه هم په هغوی کي د هر يوه سلام کول يا د هر يوه جواب ورکول غوره دي .

## په اشاره سره سلام

﴿۴۴۴۴﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

عمرو بن شعيب ﷛ د خپل پلاره څخه او هغه بيا د خپل پلاره څخه روايت کوي چي رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ تَشَبَّهَ بِغَيْرِنَا لَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ وَلَا بِالنَّصَارٰى

ﷺ وفرمايل: څوک چي د غير زموږ د قوم څخه د بل قوم سره مشابهت کوي هغه زموږ څخه نه دی ، تاسو د يهودو او د نصاراؤ سره مشابهت مه پيدا کوئ ،

فَإِنَّ تَسْلِيمَ الْيَهُودِ الإِشَارَةُ بِالأَصَابِعِ وَتَسْلِيمَ النَّصَارَى الإِشَارَةُ بِالأَكُفِّ.

رواه الترمذي وقال اسناده ضعيف.

يهوديان د گوتو په اشاره سره سلام کوي او نصارى د تلو ( د خپرى)په اشاره سره .ترمذي ويلي د دې حديث سند ضعيف دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۴، رقم: ۲۶۹۵.

**د لغاتو حل**: الاكف: جمع كف، اى السلام بالكف (په لاس سره سلام ادا كول)

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چي د يهوديانو او عيسايانو هر فعل او طريقه په خاصه توگه سلام کول د دغه دواړو طريقو مشابهت اختيارول نه دي پکار.

په ښکاره دا معلوميږي چي د يهودي او عيسائي سلام کول يا د سلام د جواب ورکولو لپاره يا د دواړو لپاره محض په ذکر سوو اشارو باندي اکتفاء کول او د سلام لفظ به يې نه وايه کوم چي د حضرت آدم عليه السلام او دهغه په اولاده کي د انبياؤ، او اولياؤ سنت او طريقه ده، رسول الله ﷺ ته مکاشفه وسوه چي زما د امت ځيني خلک به د بې لارى په ښکار کېدو سره د سلام کولو هغه طريقه اختياروي کوم چي د يهوديانو ، عيسايانو او نورو قومونو ده لکه د گوتو يا په ذريعه اشاره کول ، لاس پورته کول، ملا يا سر کښته کول ، او يوازي په سلام کولو اکتفاء کول او داسي نور، نو رسول الله ﷺ ټول امت په مخاطب کولو سره په دې اړه وفرمايه او دا وعيد يې بيان کړ چي کوم ځوک د سلام هغه رواج خپلوي کوم چي د زمي شريعت او زموږ د سنتو خلاف دى نو د هغه شمېر زموږ د امت په خلکو کي نه دى.

ځرگنده دي وي چي د دغه حديث اسنادو ته ترمذي ضعيف ويلي دي مگر دا حديث په يو بل سند سره هم نقل سوى دى او هغه ضعيف نه دى ، چي په جامع صغير کي نقل سوى دى.

## هر وار سلام کول

﴿۴۴۴۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا لَقِيَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ فَإِنْ حَالَتْ بَيْنَهُمَا شَجَرَةٌ أَوْ جِدَارٌ أَوْ حَجَرٌ ثُمَّ لَقِيَهُ فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کي چي څوک د خپل مسلمان ورور سره ملاقات کوي نو اول دي و هغه ته سلام وکړي او که د هغه او سلام کونکي په مینځ کي درخته، دېوال یا لویه ډبره واقع سي او بیا سره مخامخ سي نو دویم وار دي سلام وکړي . ابوداؤد .

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۳۸۱، رقم: ۵۲۰۰.

**تشریح**: مطلب دادی چي په دومره معمولي بېلوالي سره هم سلام کول مستحب دي نو بیا څه چي د زیات وخت وروسته وي، دغه حدیث د سلام پر استحباب او هر وخت کي د ادب خیال ساتل د مبالغې په توګه بیانوي، څرګنده دي وي د سلام د ازربنت سربېره ځیني صورتونه داسي دي چي د سلام کولو څخه مستثنی دي د مثال په توګه یو څوک تشي بولي یا ډکي بولي کوي، یا په کوروالي کولو بوخت وي یا همدارنګه په بل حالت کي وي نو هغه وخت سلام کول مکروه دي او جواب ورکول پر هغه واجب نه دي ، همدارنګه که یو سړی بېده وي یا لمونځ کوي، یا اذان کوي او یا په حمام کي وي، یا خوراک کوي او ګوله د هغه په خولې کي وي نو په دغه صورتو کي که یو څوک هغه ته سلام وکړي نو د هغه د جواب مستحق به نه وي، د خطبې په وخت کي باید سلام ادا نه کړل سي او نه د هغه جواب ورکړل سي ، کوم څوک چي د قرآن کریم تلاوت کوي نو هغه ته دي سلام نه ادا کیږي ، که څوک سلام ورته وکړي نو تلاوت کونکی باندي د تلاوت په بندولو سره د سلام جواب ورکړي او بیا په اعوذبالله ویلو سره تلاوت پیل کړي .

## خپلي کورنۍ ته سلام

﴿۴۴۴۶﴾: وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلْتُمْ بَيْتًا فَسَلِّمُوْا عَلٰى أَهْلِهِ وَإِذَا خَرَجْتُمْ فَأَوْدِعُوْا أَهْلَهُ بِسَلَامٍ . رواه البيهقي في شعب الإيمان مرسلا .

د حضرت قتاده رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چي تاسو په کور کي دا خلېږئ نو و کور والاؤ ته سلام کوئ او کله چي د کور د باندي وځئ نو د کوره څخه په سلام کولو سره رخصتېږئ . دا بیهقي په شعب الایمان کي مرسلا روایت کړی دی .

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ٦\۴۴۷، رقم: ۸۸۴۵.

**تشريح**: كه په كور كي يو څوک نه وي نو مستحب داده چي داسي ووايي : السلام علينا وعبادالله الصالحين، تر څو هلته موجودو ملائكو ته سلام ورسيږي.

د حديث په الفاظو : (فاودعوا اهله بسلام) كي ايداع په اصل كي د وديع په معنى كي دى چي د وداع څخه دى او مطلب يې دادى چي د كور څخه دباندي وتلو په وخت كي خپل كورنۍ ته د سلام په ذريعه وداع ووايه، ځيني علماوو ليكلي دي چي ددغه رخصتۍ د سلام جواب (واجب نه دى) بلكه مستحب دى ځكه چي دغه سلام په اصل كي دعاء او وداع ده.

شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله وايي: لفظ د اودعوا د ايداع څخه دى په دې معنى چي د خپل كورنۍ سره سلام امانت وساته ، ددې مطلب به دا وي چي كله تا د رخصتېدو په وخت كي خپل كورنۍ ته سلام وكړ نو تا د سلام خير او بركت د خپل كورنۍ سره امانت كښېښود چي تاسو به يې په آخرت كي بېرته اخلئ، لكه څرنګه چي يو څوک خپل يو شى د يو چا سره امانت كښېږدي او بيا هغه بېرته اخلي، د يحيى رحمه الله د قول سره سم مطلب دادى چي تاسو سلام خپل كورنۍ ته په وديعت (امانت) كي وركړي چي تاسو په را ستنېدو سره هغوى ته راسئ نو خپل امانت بېرته واخلئ لكه څرنګه چي امانتونه بېرته اخيستل كيږي ، دا خبره ددې امر د نېک فال اخيستنى مترادف ده چي د كور څخه رخصتېدونكى به په سلامتۍ سره را ستون سي او هغه ته به د بيا سلام كولو موقع په برخه سي.

﴿۴۴۴۷﴾: وَعَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا بُنَيَّ إِذَا دَخَلْتَ عَلَى أَهْلِكَ فَسَلِّمْ يَكُنْ بَرَكَةً عَلَيْكَ وَعَلَى أَهْلِ بَيْتِكَ. رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم و ماته وفرمايل : زويه! كله چي ته په (خپل) كور كي داخلېږې نو (خپل) و كور والاؤ ته سلام كوه ، ستا سلام به ستا او ستا د كوروالاؤ لپاره د بركت موجب وي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۶، رقم: ۲۶۹۸.

## اول سلام پسې كلام

﴿۴۴۴۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّلَامُ قَبْلَ الْكَلَامِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث منكر.

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د خبرو کولو څخه مخکي بايد سلام وويل سي . ترمذي ويلي چي دا حديث منکر دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵٦، رقم: ۲٦۹۹.

## د جاهليت د زماني سلام

﴿۴۴۴۹﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ كُنَّا فِي الْجَاهِلِيَّةِ نَقُولُ أَنْعَمَ اللّٰهُ بِكَ عَيْنًا وَأَنْعِمْ صَبَاحًا فَلَمَّا كَانَ الْإِسْلَامُ نُهِينَا عَنْ ذٰلِكَ. رواه ابوداؤد،

د حضرت عمران بن حصين ﷺ څخه روايت دی چي موږ د جاهليت په زمانه کي (د ملاقات پر وخت) دا ويل چي الله ﷻ دي ستا سترګي يخي کړي او ته دي د سهار په وخت کي په نعمتو کي داخل اوسې، وروسته چي کله اسلام خپور سو نو د دې (ډول سلام) څخه منعه وسوه . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۹٦، رقم: ۵۲۲۷.

**تشريح**: اول لفظ (انعم) د نعمومة څخه د ماضي صيغه ده چي معنی يې د نرمي او تازګي ده، ددغه عبارت : (انعم الله بک علينا) دوه مطلبه کېدای سي يو خو دا چي په بک کي باء د سبب په معنی وي او دغه جمله د هغه مفهوم وي چي الله ﷻ دي ستا په وجه ستا د قريبانو او ملګرو سترګي يخي او روښانه کړي، يعني دا د مخاطب د خوشحالۍ څخه کنايه ده، چي هغه خوشحاله وي چي د هغه ملګري هغه په خوشحاله او تازه لېدو سره خوشحاله سي ، دوهم دا چي د باء حرف زائد دی او د هغه څخه تاکيد تعديه مراد دی ، په دغه صورت کي به ددغه جملې مفهوم دا وي چي الله ﷻ دي تا ته د هغه شي د لېدو په موقع درکولو سره خوشحاله کړي کوم چي ته خوښوې او د هغه غوښتنه لرې .

دوهم لفظ : (انعم) د امر صيغه ده، مطلب دادی چي ستا سهارونه دي ستا لپاره د تازګۍ او خوشحالۍ باعث جوړ سي يا دا چي د سهار په وخت کي دي تازه او خوشحاله اوسې، دا هم د خوشحالۍ او فراغت سره د وخت تېرولو کنايه ده او د سهار دوخت خاصوالی په دې وجه دی چي د ورځي پېل د سهار څخه کيږي که د سهار په وخت کي يو پېښه دځان سره راوړي نو د هغه مطلب به دا وي چي اوس به ټوله ورځ بې اطميناني او بې ارامي سره تېريږي ، په خاصه توګه په هغه زمانه کي چي د ظلم او غلاوو رواج وو ، د هغه وخت پېل به په عامه توګه د سهار په وخت کي کېدی نو په هغه زمانه کي چي دکوم چا سهار به په خېر او عافيت سره تېرېدی نو د هغه ټول

وخت به په اطمينان او آرام سره تېرېدی .

## غائبانه سلام او د هغه جواب

﴿۴۴۵۰﴾: وَعَنْ غَالِبٍ قَالَ إِنَّا لَجُلُوسٌ بِبَابِ الْحَسَنِ البصري إِذْ جَاءَ رَجُلٌ

د حضرت غالب رضي الله عنه څخه روايت دی چې موږ د حضرت حسن بصري رضي الله عنه په دروازه کې ناست وو چې يو سړی راغلی

فَقَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ جَدِّي قَالَ بَعَثَنِي أَبِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

او بيان يې وکړ چې زما پلار زما د نيکه څخه دا نقل کړی دی چې زه زما پلار نبي کريم ﷺ ته

وَسَلَّمَ فَقَالَ ائْتِهِ فَأَقْرِئْهُ السَّلَامَ قَالَ فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ إِنَّ أَبِي يُقْرِئُكَ السَّلَامَ فَقَالَ عَلَيْكَ السَّلَامُ وَعَلَى أَبِيكَ السَّلَامُ. رواه ابو داؤد.

ولېږلم او ويلې ته د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر سه زما سلام ورته ووايه، زما نيکه وايي چې زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر سوم او عرض مې وکړ چې زما پلار پر تاسو (اې د الله ﷻ رسوله ! سلام ويلې دی) نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : پر تا او ستا پر پلار دې سلام وي .ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۹۸، رقم: ۵۲۳۱.

**تشريح**: د دغه حديث څخه معلومه سوه که يو څوک د چا له خوا سلام ورسوي نو سنت طريقه داده چې پر سلام رسونکي باندې هم سلام وويل سي او د چا له خوا چې هغه سلام را رسولی وي پر هغه هم وويل سي، يعني کله چې يو څوک د چا له خوا سلام ورسوي نو په جواب کې دې داسې وويل سي : عليک وعلى فلان السلام، يا وعليک وعليه السلام، د نسائي په روايت کې دغه الفاظ بعينه نقل سوي دي .

## په خط کې د سلام ليکلو طريقه

﴿۴۴۵۱﴾:وَعَنْ أَبِي الْعَلَاءِ الْحَضْرَمِيِّ أَنَّ الْعَلَاءَ بْنَ الْحَضْرَمِيِّ كَانَ عَامِلَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا كَتَبَ إِلَيْهِ بَدَأَ بِنَفْسِهِ. رواه ابو داؤد.

د حضرت ابو العلاء حضرمي رضی الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ عامل (ټاکل سوی حاکم)وو هغه به چي نبي کريم ﷺ ته خط ليکی نو د خپل ځان څخه به يې شروع کول (يعني داسي به يې ليکل)دا خط د علاء حضرمي د لوري څخه و نبي کريم ﷺ ته دی السلام عليکم ورحمة الله و برکاته . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۴۸، رقم: ۵۱۳۴.

**تشريح**: د ابوالعلاء اصل نوم يزيد ابن عبد دی ، دمشکوة په ځينو نسخو کي ددغه روايت د راوي نوم ابوالعلاء ليکل سوی دی يعني داسي دي : عن ابي العلاء الحضرمي ان العلاء الحضرمي ...الخ، او په ځينو نسخو کي د مصابيح د ځينو نسخو مطابق ابن علاء ليکل سوی دی يعني داسي دي : عن ابن العلاء الحضرمي ان العلاء الحضرمي...الخ، حضرمي په اصل کي مشهور ښار حضر موت ته نسبت دی ځکه چي حضرت علاء رضی الله عنه د حضرت موت اوسيدونکی وو او د مشکوة په اکثرو نسخو کي راتلونکی عبارت : ان العلاء الحضرمي دی، مگر په يوه نسخه کي ان العلاء ابن الحضرمي ...الخ، ليکل سوی دی .

په تقريب کي ليکلي دي چي حضرت علاء رضی الله عنه د بنو اميه حليف وو ، نوموړی يو جليل القدر صحابي وو ، رسول الله ﷺ هغه د بحرين عامل ټاکلی وو ، د رسول الله ﷺ څخه حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر رضي الله عنهما هم د خپل خلافت په زمانه کي هغه هم هلته عامل ټاکلی وو او پر همدغه عهده وفات سو .

د ځان څخه د پيل کولو مطلب دادی چي د خط پيل به يې په داسي الفاظو کوی: من العلاء الحضرمي الی رسول الله صلی الله عليه وسلم السلام عليکم ورحمة الله (يعني د علاء حضرمي له لوري د رسول الله ﷺ په خدمت کي السلام عليکم ورحمة الله)، ددغه عبارت څخه وروسته به د خط مضمون وو ، او حضرت علاء حضرمي رضی الله عنه د خط ليکلو دغه طريقه د رسول الله ﷺ په اتباع کي اختيارول ځکه چي د رسول الله ﷺ د مکتوباتو پيل به همدارنگه وو : من محمد رسول الله الی فلان، ددغه عبارت څخه وروسته به د سلام الفاظ وه ، که چيري مکتوب اليه به مسلمان وو نو دهغه مخاطب به يې په خاصه توگه هغه ثوک گرځوی يعني سلام عليک، لکه څرنگه چي به الفاظ وه، او که چيري مکتوب اليه به مسلمان نه وو نو بيا د سلام الفاظ په عامه توگه وه يعني داسي به يې ليکل : سلام علی من اتبع الهدی، يعني کوم ثوک چي د سيده لاري پيروي وکړي پر هغه دي سلامتيا وي، د سلام څخه وروسته به اصل مضمون وو ، رسول الله ﷺ چي

هرقل ته کوم لیک لیږلی وو هغه په دغه ترتیب سره لیکل سوی وو مگر رسول اللہ ﷺ چي معاذ رضی اللہ عنہ ته د هغه د زوی په تعزیت کي کوم خط لیکلی وو د هغه پیل په داسي الفاظو وو: بسم اللہ الرحمن الرحیم من محمد رسول اللہ الی معاذ بن جبل سلام علیک فاني احمد الیک اللہ الذي لا اله الا هو، اما بعد ....الخ.

دغه حدیث دلته نقل سوی دی مگر د باب د موضوع سره تعلق نه لري مگر دغه حدیث د سلام یو بنیادي حیثیت لري لکه څرنگه چي بیان سول ځکه نو په دغه باب کي نقل سوی دی، همدارنگه وروسته درې حدیثونه راځي او په هغو کي د لیک اړوند ځیني خبري بیان سوي دي د هغو تعلق هم په دې اعتبار سره د سلام سره دی چي سلام څرنگه زباني وړاندي کیږي همدارنگه هغه خط هم لیکل کیږي، نو دغه حدیثونه هم په دغه باب کي نقل سول او د مشکوۃ د مؤلف دا معمول وو چي هغه د فصل په پای کي هغه حدیثونه نقل کوي که څه هم هغه د باب سره تعلق نه لري مگر باب او د هغه د موضوع مناسب او بالواسطه تعلق لري.

**د خط لیکلو وروسته خاوره دوړول**

﴿۴۴۵۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا كَتَبَ أَحَدُكُمْ كِتَابًا فَلْيُتَرِّبْهُ فَإِنَّهُ أَنْجَحُ لِلْحَاجَةِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث منكر.

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول اللہ ﷺ وفرمایل: کله چي په تاسو کي څوک و یوه چاته خط لیکي نو (د لیکلو څخه وروسته) دي خاوره پر ودوړوي ځکه چي داسي کول حاجت پوره کوي. ترمذي (او وایي چي دا حدیث منکر دي).

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۳، رقم: ۲۷۱۳،

**تشریح**: پر کاغذ وغیره باندي د لیکلو څخه وروسته خاوره اچول د ډېره پخوانی طریقه ده او په عامه توگه د دې مقصد د رنگ وچول گڼل کیږي، مگر حقیقت دادی چي دغه طریقه د حاجت براري لپاره یو خاص تاثیر لري او دغه تاثیر بالخاصیت دی چي د دې سبب د شارع څخه پرته بل چا ته معلوم نه دي، ځینو عارفینو د اولي معنی یعني خاوره دي پر واچول سي په وضاحت کي لیکلي دي چي داسي کول په اصل کي پر خپل لیکل سوي خط باندي د خاورو اچولو د مفهوم مترادف دي په دې توگه چي دداسي کولو څخه څرگندیږي چي خپل مقصد او حاجت لپاره نه خو پر خپل دغه مکتوب باندي اعتبار دی او نه مکتوب الیه ته د حقیقي حاجت روا درجه

ورکول مقصد دي بلکه حقیقي اعتماد د الله تعالی پر ذات دی چي هغه مقصد پوره کونکی او حاجت پوره کونکی دی نو دغه مکتوب محض د اظهار خیال یوه ظاهري ذریعه ده حقیقي درخواست خو یوازي الله تعالی ته دی.

یا په خاوره اچولو سره وڅنډه: دا د فلیتربه دوهمه معنی ده او دغه معنی په دې اعتبار ده چي د خاورو اچولو په صورت کي داهم کېدای سي چي هغه خاوره د بل چا د ملکیت سره متعلق وي او همدارنګه د مالک د اجازې څخه پرته د هغه شي پاکول لازم سي چي په خاوره اچولو او څنډلو سره دا ډول یو خبره نه لازمیږي نو ددغه دوهمي معنی تائید د هغې قصې سره هم کیږي چي امام غزالي رحمة الله علیه په منهاج العابدین کي نقل کړي ده چي یو سړی چي د کرایې په سرای کي د اوسیدو هغه یوه پارچه ولیکل بیا چي هغه دا وغوښتل چي د سرای د دېوال څخه د لږ خاوري په اخیستلو سره هغه پر ورقه باندي واچوي نو هغه ته خیال پیدا سو چي دغه سرای د کرایې دی او د هغه د دېوال څخه خاوره اخیستل او مصرفول غیر مناسب دي مګر په زړه کي یې بل خیال هم راغلی چي په دې کي څه پروا نسته نو هغه خاوره واخیستل او پر ورقه یې واچول، ددې څخه وروسته هغه دغه غیبي اواز واورېدی چي یو څوک وایي: ددغه خاورو په حلال ګڼلو سره ژر به په دې پوه سې چي سبا ورځ (یعني د حشر په ورځ) د اوږده حساب په سبب هغه ته پېښېدونکي ده،

دغه حدیث د راویانو په اعتبار منکر دی، مګر په مضمون کي یې څه خبره نسته، طبراني په اوسط کي مرفوعا د حضرت ابوداؤد څخه دا روایت نقل کړی دی چي: (اذا کتب احدکم الی انسان فلیبدا بنفسه واذا کتب فلیترب کتابه فهو انجح)، یعني کله چي په تاسو کي یو څوک یو چا ته خط لیکي نو باید چي هغه دخپل ځان څخه پیل کړي او کله چي هغه خط ولیکي نو پر هغه دي خاوره واچوي، ځکه چي داسي کول د حاجت پوره کېدو لپاره ډېر ګټور دی.

## په غوږ کي د قلم ایښودلو خاصیت

﴿۴۴۵۳﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ يَدَيْهِ كَاتِبٌ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ ضَعْ الْقَلَمَ عَلَى أُذُنِكَ فَإِنَّهُ أَذْكَرُ لِلْمَالِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب و في اسناده ضعف.

د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي حاضر سوم دا وخت د نبي کریم صلی الله علیه وسلم مخي ته کاتب ناست وو ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه دا واورېدل قلم په خپل

غوږ کي ایږدئ ځکه چي داسي کول مطلب ژر را یادوي. ترمذي . او په ترمذي کي دا حدیث غریب دي او د دې په سند کي ضعف دی .

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۶۳، رقم: ۲۷۱۴.

**تشریح**: د هر شي مطلب ډېر یادیږي: مطلب دا دی چي په داسي کولو سره ذهن خلاصیږي او د هغه نتیجه دا وي چي خپل مقصد او مفهوم بیانولو لپاره د عبارت او الفاظو راتګ پېل سي او لیکونکی چي څه لېکل غواړي په هغه کي په پوره توګه کامیابه کیږي ، دغه شی هم بالخاصیت دی یعني داسي څرنګه کیږي ددې علم شارع ته دی مګر ځیني علماء ددې تاویل او توجیه بیان کړې دي ، یحیی رحمه الله لیکلي دي چي قلم یو ډول د ژبي حکم لري لکه چي ویل کیږي : القلم احد اللسانین، او ژبه د قلب او ذهن ترجماني کوي نو قلم په غوږ کي اېښودل د ژبي په غوږ کي اېښودو مترادف دي چي ژبه او قلم زړه او ذهن ته نژدې سي او د زړه او ذهن چي د څه ویلو اراده وي او هغه مفهوم په غوره عبارت او ښه الفاظو کي د ادا کولو تقاضا وکړي ، هغوی ته کلام او بیان په هغه مناسبت او موزونیت سره تحریر کړي .

دا حدیث غریب دی او ددې سند ضعیف دی، مطلب دا دی چي د روایت د متن یا سند په اعتبار ضعیف دی مګر دا خبره ددغه روایت د صحیح کېدو خلاف نه ده او ددې تائید د ابن عساکر د روایت څخه هم کیږي چي هغه د حضرت انس رضی الله عنه څخه مرفوعا نقل کړی دی چي : اذا کتبت فضع قلمک علی اذنک فانه اذکر لک، همدارنګه په جامع صغیر کي د حضرت زید ابن ثابت رضی الله عنه څخه مرفوعا ترمذي دا روایت نقل کړی دی چي : ضع القلم علی اذنک فانه اذکر للملي.

## د کافرانو ژبه

﴿۴۴۵۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ أَمَرَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَتَعَلَّمَ السريانية

د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وماته حکم راکړ چي زه سریاني

وفي رواية انه امرني ان اتعلم كِتَابِ يَهُودَ قَالَ إِنِّي مَا آمَنُ يَهُودَ عَلَى كِتَابِي

ژبه زده کړم او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي نبي کریم ﷺ وماته حکم راکړ چي زه د یهودیانو خط وکتابت زده کړم

قَالَ فَمَا مَرَّ بِي نِصْفُ شَهْرٍ حَتَّى تَعَلَّمْتُهُ فكان إِذَا كَتَبَ إِلَى يَهُودَ كَتَبْتُ وَإِذَا

كَتَبُوا إِلَيْهِ قَرَأْتُ لَهُ كِتَابَهُمْ . رواه الترمذي.

او داسي يې وفرمايل: د خط و كتابت په معامله كي د يهوديانو د لوره ماته اطمينان نسته ، د زيد بن ثابت رضي الله عنه بيان دي چې په دوو هفتو كي د ننه ما سرياني ژبه زده كړه ، ورسته چي كله نبي كريم ﷺ به يوه يهودي ته خط ليكى نو هغه به يې په ما ليكى او يهوديانو چي به كوم خط و نبي كريم ﷺ ته رالېږى نو هغه به ما (نبي كريم ﷺ ته) ورته وايه . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۴، رقم: ۲۷۱۵.

**تشريح**: سُرياني د دنيا په پخوانيو كي ژبو كي يوه ژبه ده چي په هغه كي تورات نازل سوى وو مګر د اكثرو محققينو قول دادى چي تورات په عبراني ژبه نازل سوى وو ، او سرياني او عبراني دواړي له يو بل سره يو ډول ژبي دي .

زما پر يهودو اطمينان نسته: مطلب دادى چي داسي مسلمان نسته چي د يهوديانو په ژبه پوهيږي ځكه د يهوديانو سره د خط او كتابت لپاره ما ته د يو يهودي مرسته اخيستل پكاريږي او په دغه صورت كي ما ته ددې خبري خطره ده كه د يهودو په نامه خپل يو خط په يو يهودي وليكم نو هغه دخپل ځان څخه كمي او زياتوب پكښي ونه كړي ، همدارنګه كه د يهوديانو له خوا ما ته يو خط راسي او زه هغه په يهودي وايم نو هغه د خپل ځان څخه زياتوب او كمى پكښي ونه كړي ، ددې څخه معلومه سوه چي د اړتيا له موخي د كافرانو ژبه زده كول جائز دي، او بېله ضرورته جائز نه دي ځكه چي په دغه صورت كي د كافرانو سره مشابهت اختيارول لازميږي او دا منع دى، لكه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: من تشبه بقوم فهو منه، كوم څوك چي د يو قوم سره مشابهت اختيار كړي نو هغه په هغه قوم كي شمېرل كيږي، بلكه يحيى رحمة الله عليه بېله ضرورته زده كول حرام ليكلي دي .

### اول او اخير سلام

﴿۴۴۵۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا انْتَهَى أَحَدُكُمْ إِلَى مَجْلِسٍ فَلْيُسَلِّمْ فَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يَجْلِسَ فَلْيَجْلِسْ ثُمَّ إِذَا قَامَ فَلْيُسَلِّمْ فَلَيْسَتِ الْأُولَى بِأَحَقَّ مِنَ الْآخِرَةِ. رواه الترمذي وابوداؤد.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي په تاسو كي يو

څوک يو مجلس ته ورسي نو سلام دي ورته وکړي او که د ناستي ضرورت وي نو کښېدېني او کله چي بيرته ځي نو د دويم وار لپاره دي سلام وکړي ځکه چي اولني سلام کول تر دويم وار سلام کولو بهتر نه دی يعني دواړه سلامونه حق او مسنونه دي. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۰، رقم: ۲۷۰۶، وابوداود ۵\۳۸۶، رقم: ۵۲۰۸.

**تشريح**: کله چي ولاړ سي: مطلب دادی چي په مجلس کي د ناستي څخه وروسته کله چي هغه د تلو لپاره ولاړ سي، زياته صحيح خبره داده چي ددې څخه مراد دادی چي کله د هغه ځای څخه د تلو اراده وکړي که څه هم په مجلس کي ناست وي يا ناست نه وي، په هر حال د حديث د ظاهري مفهوم څخه دا څرګنديږي چي د رخصتېدو په وخت کي هم سلام کول سنت دی، لکه څرنګه چي د ليدني په وخت کي سنت دی، همدارنګه د دواړو سلامو جواب ورکول واجب دي مګر ځينو محققينو ليکلي دي چي د رخصتېدو په وخت کي سلام او د هغه جواب مستحب دی.

### په لاره کي د ناستي حق

﴿۴۴۵۶﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لاَ خَيْرَ فِيْ جُلُوْسٍ فِي الطُّرُقَاتِ إِلاَّ لِمَنْ هَدَى السَّبِيْلَ وَرَدَّ التَّحِيَّةَ وَغَضَّ الْبَصَرَ وَأَعَانَ عَلَى الْحَمُوْلَةِ. رواه في شرح السنة وذكر حديث أبي جري في باب فضل الصدقة.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په لاره کي ناسته بهتره نه دی خو هغه سړی چي د لاري ښودنه کوي د سلام جواب ورکوي او سترګي ښکته ساتي (يعني کوم حرامو شيانو ته نه ګوري) او د بار وړونکي کومک کوي. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\۳۰۵، رقم: ۳۳۳۹.

**د لغاتو حل**: الحمولة: ما يحمل على الدواب (بار).

**تشريح**: حُموله د حاء په پېښ سره دی، مګر د مشکوة په يوه نسخه کي دغه لفظ د حاء په زور سره نقل سوی دی، شارحينو ليکلي دي چي حَمولة هغه حيوان ته وايي چي پر هغه بار وړل کيږي.

د هغه سړي مرسته وکړئ، چي بار پر پروت وي، مطلب دادی که هغه سړی د خپل حيوان پر شا د بار اچولو لپاره يا خپله د بار په شا کولو لپاره بار پورته کول غواړي نو د هغه بار په پورته کولو کي د هغه مرسته وکړئ.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

## حضرت ادم علیه السلام

﴿۴۴۵۷﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا خَلَقَ اللَّهُ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: الله جل جلاله چي کله حضرت

آدَمَ وَنَفَخَ فِيهِ الرُّوحَ عَطَسَ فَقَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ فَحَمِدَ اللَّهَ بِإِذْنِهِ فَقَالَ لَهُ رَبُّهُ

آدم علیه السلام پیدا کړ او روح يې په کښې پوه کړل نو هغه ته ترچی ورغلی او هغه د خداي تعالی په توفیق او اجازې سره الحمد لله وویل، خداي تعالی وویل:

يَرْحَمُكَ اللَّهُ يَا آدَمُ اذْهَبْ إِلَى أُولَئِكَ الْمَلَائِكَةِ إِلَى مَلَإٍ مِنْهُمْ جُلُوسٍ فَقُلْ

اې آدمه! الله دي پر تا رحم وکړي اوس ته د ملائیکو و هغه جماعت ته ورسه چي ناست دی او هغوی ته سلام وکړه

السَّلَامُ عَلَيْكُمْ قَالُوا وَعَلَيْكَ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى رَبِّهِ فَقَالَ إِنَّ هَذِهِ

یعني السلام علیکم ورته ووایه نو ده وویل چي السلام علیکم ملائکو وویل: و علیک السلام ورحمة الله د دې څخه وروسته حضرت آدم علیه السلام و خپل پروردګار ته راغلی او الله جل جلاله هغه ته وفرمایل: دا (السلام علیکم ورحمة الله)

تَحِيَّتُكَ وَتَحِيَّةُ بَنِيكَ بَيْنَهُمْ فَقَالَ له اللَّهُ وَيَدَاهُ مَقْبُوضَتَانِ اخْتَرْ أَيَّهُمَا شِئْتَ

ستا او ستا د اولاد دعا ده چي په خپلو کي به يې کوئ، بیا الله جل جلاله د خپل دواړو بنده لاسونو ته اشاره وکړه او ویې فرمایل: په دې دواړو لاسونو کي يو (د ځان لپاره) خوښ کړه،

فَقَالَ اخْتَرْتُ يَمِينَ رَبِّي وَكِلْتَا يَدَيْ رَبِّي يَمِينٌ مُبَارَكَةٌ ثُمَّ بَسَطَهَا فَإِذَا فِيهَا آدَمُ

حضرت آدم علیه السلام د خداي تعالی راسته لاس خوښ کړ او د خداي تعالی دواړه لاسونه برکتناک دي بیا الله جل جلاله خپل دواړه لاسونه خلاص کړل نو هغه د آدم علیه السلام

وَذُرِّيَّتُهُ فَقَالَ أَيْ رَبِّ مَا هَؤُلَاءِ فَقَالَ هَؤُلَاءِ ذُرِّيَّتُكَ فَإِذَا كُلُّ إِنْسَانٍ مَكْتُوبٌ

او د هغه د ذریات (اولادې) څخه ډک سو ، حضرت آدم علیه السلام پوښتنه وکړه اې پروردګاره! دا څوک دي؟ الله جل جلاله ورته وفرمایل : دا ستا اولاد دي ، حضرت آدم علیه السلام ولیدل چي د هغوي د

عُمُرُهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ فَإِذَا فِيهِمْ رَجُلٌ أَضْوَؤُهُمْ أَوْ مِنْ أَضْوَئِهِمْ قَالَ يَا رَبِّ مَنْ هَذَا

هر انسان عمر د هغوي د سترګو په مینځ کي لیکلي دي ، بیا په هغوی کي حضرت آدم علیه السلام یو روښانه (د ټولو خلکو څخه ډیر روښانه) سړی ولید او پوښتنه یې وکړه اې پروردګاره! دا

قَالَ هَذَا ابْنُكَ دَاوُدُ قَدْ كَتَبْتُ لَهُ عُمْرَ أَرْبَعِينَ سَنَةً قَالَ يَا رَبِّ زِدْهُ فِي عُمْرِهِ قَالَ

څوک دی؟ الله جل جلاله ورته وفرمایل : دا ستا زوی داؤد علیه السلام دی او ما دده عمر څلوېښت کاله لیکلي دي حضرت ادم علیه السلام وویل اې ربه عمر یې زیات کړې ، الله جل جلاله وفرمایل :

ذَالِكَ الَّذِي كَتَبْتُ لَهُ قَالَ أَيْ رَبِّ فَإِنِّي قَدْ جَعَلْتُ لَهُ مِنْ عُمْرِي سِتِّينَ سَنَةً قَالَ

دا هغه قدر دی چي دده لپاره مي لیکلی دی ، حضرت آدم علیه السلام وویل : اې پروردګاره! ما د خپل عمر څخه شپېته کاله و ده ته ورکړل ، الله جل جلاله ورته وفرمایل :

أَنْتَ وَذَاكَ قَالَ ثُمَّ أُسْكِنَ الْجَنَّةَ مَا شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ أُهْبِطَ مِنْهَا فَكَانَ آدَمُ يَعُدُّ

ته پوه شه او ستا زوئ داؤد علیه السلام ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چي آدم علیه السلام (د دې څخه وروسته) تر څو پوري چي د الله جل جلاله خوښه وه په جنت کي وو او بیا د جنت څخه لاندي را کښته سو ، حضرت آدم علیه السلام به د خپل عمر کلونه شمېرل

لِنَفْسِهِ قَالَ فَأَتَاهُ مَلَكُ الْمَوْتِ فَقَالَ لَهُ آدَمُ قَدْ عَجَّلْتَ قَدْ كُتِبَ لِي أَلْفُ سَنَةٍ

کله چي د هغه عمر نه سوه څلوېښت کاله پوره سوه نو د مرګ ملائکي ورته راغلې ، حضرت آدم علیه السلام ورته وفرمایل: تاسو تلوار وکړي زما عمر خو زر کاله دی ،

قَالَ بَلَى وَلَكِنَّكَ جَعَلْتَ لِابْنِكَ دَاوُدَ سِتِّينَ سَنَةً فَجَحَدَ فَجَحَدَتْ ذُرِّيَّتُهُ وَنَسِيَ فَنَسِيَتْ ذُرِّيَّتُهُ قَالَ فَمِنْ يَوْمِئِذٍ أُمِرَ بِالْكِتَابِ وَالشُّهُودِ. رواه الترمذي.

د مرګ ملائکي ورته وویل : هو ، ستا عمر زر کاله وو لیکن تا د خپل عمر شپېته کاله خپل زوی داؤد علیه السلام ته ورکړی دي ، حضرت آدم علیه السلام د دې څخه انکار وکړ او د هغه اولاد هم انکار کوي او

د حضرت آدم عليه السلام څخه (د خداي تعالى ممانعت چي د ونې د مېوې د خوړلو په اړه وو) هير سو او د هغه د اولاد څخه هم هيريږي، نبي كريم ﷺ وفرمايل: د دې ورځې څخه د ليكلو او د شاهد د درولو حكم وكړل سو. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۴۲۲، رقم: ۳۳۶۸،

**د لغاتو حل**: اذنه: اي بتيسيره و توفيقه.

**تشريح**: حال دا چي د هغه دواړه لاسونه بند وه: ددغه الفاظو څخه هغه هيئت كذائي بيانول مقصد دى لكه څرنګه چي يو څوک په خپلو لاسو كي يو شى پټ كړي.

او زما د پروردګار دواړه لاسونه راسته او بابركته دي: دغه جمله حضرت آدم عليه السلام فرمايلې ده چي رسول الله ﷺ نقل كړل، يا د رسول الله ﷺ خپل كلام دى، په هر صورت الله تعالى ته د لاس او راسته لاس نسبت كول د متشابهاتو څخه دي مگر علماو ددغه الفاظو څو معناوي او تاويلونه بيان كړي دي، يو خو دا چي د الله تعالى لپاره د يد (لاس) صفت ثابت دى مگر ظاهري او جسماني لاس ثابت نه دى نو ذكر سوى عبارت د جسماني لاس نفي ته اشاره كوي ځكه كه چيري د الله تعالى لپاره جسماني لاس ثابت واى نو يمين او شمال به هم ثابت واى.

او دواړه لاسونه ښه او بابركته دي: په دغه جملې سره دې ته اشاره كول مقصد دي چي دلته د خير او بركت وجود مراد دى چي يد يمين (راسته لاس) او لفظ يمين ماده اشتقاق تقاضا ده.

دوهم دا چي څرنګه په قوت كي د مخلوقاتو چپه لاس كمزورى او ناقص وي همدارنګه په الله تعالى كي كمزوري نسته بلكه د هغه دواړه لاسونه يو ډول زور او قوت لري، په دې اعتبار سره د هغه دواړه لاسونه ښه سول، دا خبره د پوهولو لپاره بيان سوې ده كنه نو ددغه عبارت اصل مراد دا بيانول دي چي د الله تعالى په هيڅ يو صفت كي هيڅ ډول كمزوري او نقص نسته او د هغه ټول صفات كامل دي.

او دريم دا چي ددغه الفاظو مقصد د الله تعالى د وجود، كرم، احسان او انعام صفت زيات څرګندول دي، كله چي به عربو د داسي كس صفت كول غوښتل چي هغه به ډېر ګټه رسونكى وو نو د هغه په اړه به يې داويل چي: كلتا يديه يمين، يعني د هغه دواړه لاسونه راسته دي.

چي تر ټولو زيات ځلانده وو: ددغه عبارت څخه په ذهن كي يو تشويش پيدا كيږي او هغه دا چي ددغه الفاظو څخه پر ټولو انبياوو باندي د حضرت داؤد عليه السلام فضيلت لازميږي، ددې جواب دادى چي دلته الله تعالى د حضرت آدم عليه السلام په وړاندي حضرت داؤد عليه السلام په يو ځانګړي

شکل او صورت کي څرګند کړ چي د هغه په وجه حضرت آدم علیه السلام د هغه په اړه سوال وکړي او پر هغه سوال باندي هغه صورت مرتب سي کوم چي مخکي پېښ سو، يعني د حضرت آدم علیه السلام، حضرت داؤد علیه السلام ته د خپل عمر څخه شپېته کاله ورکول او بيا د ملک الموت په راتلو سره د هغه انکار کول او دا خبره بالکل څرګنده ده چي د حضرت داؤد علیه السلام د ځلانده کېدو دا مطلب نه دی چي هغه په ټولو صفات کماليه کي تر ټولو انبياء عليهم السلام ترجيح درلودل، نو کېدای سي چي د ذکر سوي مصلحت په وجه په دغه عالم کي الله تعالی د حضرت داؤد علیه السلام په شکل او صورت کي يو ډول خاص نورانيت ورکړی وي بلکه هغه په هغه عالم کي هم په دغه نورانيت سره متصف وي، په پيغمبرانو کي هر نبي په يو خاص صفت سره موصوف سوی دی او په دغه صفت کي هغه ته امتيازي حيثيت او خصوصيت حاصل وي مګر ددې څخه دا نه لازميږي چي محض د دغه خاص صفت په وجه دغه نبي ته پر نورو نبيانو عليهم السلام د فضيلت او فوقيت درجه تر لاسه وي.

زما عمر خو زر کاله ټاکل سوی دی: څرګنده ده چي حضرت آدم علیه السلام دغه خبره بالکل صحيح کړې وه (ځکه چي په حقيقت کي الله تعالی د هغه زر کاله عمر ټاکلی وو) مګر ددې خبري په ذهن کي د هغه مذکوره انکار پټ وو، هغه په صراحت سره دا خبره ونه کړه چي ما د خپل عمر څخه داؤد علیه السلام ته څه نه دي ورکړي او صريحا انکار هم ممکن نه وو ځکه چي د انبياء عليهم السلام د ژبي څخه دروغ په قصد سره نه صادريږي نو ويل کيږي چي د حضرت ادم علیه السلام دغه انکار د تعريض په توګه وو لکه څرنګه چي په ځينو داسي صورتو کي د نورو انبياء عليهم السلام څخه هم صادريږي، يا دا ويل کيږي چي د حضرت آدم علیه السلام مذکوره انکار د هيري په توګه وو يعني د هغه دا په ياد نه وه چي هغه د خپل عمر څخه شپېته کاله داؤد علیه السلام ته ورکړي دي ځکه هغه د ملک الموت په وړاندي انکار وکړ.

## ښځو ته سلام کول يوازي نبي ﷺ ته جائز وه

﴿۴۴۵۸﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدٍ قَالَتْ مَرَّ عَلَيْنَا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نِسْوَةٍ فَسَلَّمَ عَلَيْنَا. رواه ابوداؤد وابن ماجة والدارمي.

د بي بي اسماء بنت يزيد رضي الله عنها څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ موږ ښځو ته چي ناستي وو موږ ته تېر سو او موږ ته يې سلام وکړ. ابوداؤد، ابن ماجه او دارمی

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۳۸۳، رقم: ۵۲۰۴، وابن ماجه ۲\ ۱۲۲۰، رقم: ۳۷۰۱، والدارمي ۲\ ۳۵۹، رقم: ۲۶۳۷.

**تشريح**: ښځو ته د سلام كولو اجازه د رسول الله ﷺ د ذات سره خاص وو، د بل مسلمان لپاره دا جائز نه ده چي هغه پردې ښځي ته سلام وكړي لكه څرنګه چي د دوهم فصل د حديث په ضمن كي بيان سوي دي.

### د سلام فضيلت

﴿۴۴۵۹﴾: وَعَنِ الطُّفَيْلِ بْنَ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ أَنَّهُ كَانَ يَأْتِي بْنَ عُمَرَ فَيَغْدُو مَعَهُ

د حضرت طفيل بن ابي بن كعب رضي الله عنه څخه روايت دی چي طفيل رضي الله عنه به ابن عمر رضي الله عنه ته را تلی او

إِلَى السُّوقِ قَالَ فَإِذَا غَدَوْنَا إِلَى السُّوقِ لَمْ يَمُرَّ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ عَلَى سَقَاطٍ

ابن عمر رضي الله عنه به هغه د سهار په وخت كي بازار ته بېوی كوم وخت چي به هغه بازار ته ولاړی نو

وَلَا صَاحِبِ بِيعَةٍ وَلَا مِسْكِينٍ وَلَا على أَحَدٍ إِلَّا سَلَّمَ عَلَيْهِ قَالَ الطُّفَيْلُ

كوم د كاندار عاجز او صاحب د بيع مسكين يا د بل سړي سره چي نژدې تېرېدی نو هغه ته به يې سلام كوی، د طفيل بيان دی،

فَجِئْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ يَوْمًا فَاسْتَتْبَعَنِي إِلَى السُّوقِ فَقُلْتُ لَهُ وَمَا تَصْنَعُ فِي

يوه ورځ زه (د معمول مطابق) ابن عمر رضي الله عنه ته ورغلم هغه زه بازار ته بوتلم ما ورته وويل ته د څه

السُّوقِ وَأَنْتَ لَا تَقِفُ عَلَى الْبَيِّعِ وَلَا تَسْأَلُ عَنِ السِّلَعِ وَلَا تَسُومُ بِهَا وَلَا

لپاره و بازار ته ځې چي نه خو څه رانيسي او نه څه خرڅوې او نه د يوه شی نرخ معلوموې نه سوداګری كوې او نه

تَجْلِسُ فِي مَجَالِسِ السُّوقِ فاجلِسْ بِنَا هَاهُنَا نَتَحَدَّثُ قَالَ فَقَالَ لِي عَبْدُ

د بازار په مجلس كي شاملېږې، راځه چي دلته كښېنو، خبري به كوو، طفيل رضي الله عنه وايي د دې په

اللهِ بْنُ عُمَرَ يَا أَبَا بَطْنٍ وَكَانَ الطُّفَيْلُ ذَا بَطْنٍ إِنَّمَا نَغْدُو مِنْ أَجْلِ السَّلَامِ

نُسَلِّمُ عَلَى مَنْ لَقِيْنَا. رواه مالك والبيهقي في شعب الايمان.

جواب كي ابن عمر رضي الله عنه راته وويل : اې خپتهو ! (د طفيل نس غټ وو) موږ صرف و سلام ته ځو او هر هغه سړي ته سلام كوو كوم چي زموږ سره يو ځاى كيږي. مالك او بيهقي.

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\۹٦۱، رقم: ٦، والبيهقي في شعب الايمان ۱\۴۳۴، رقم: ۸۷۹۰.

**د لغاتو حل**: سقاط: هو الذي يبيع الرديء من النوع (هغه كس چي خراب شيان پلوري).

## سلام نه كول بخل دى

﴿۴۴٦۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَتَى رجل النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِفُلَانٍ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي يو سړى د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او وه يې ويل : چي زما په باغ كي د فلاني سړى

فِي حَائِطِي عَذْق وَإِنَّهُ قَدْ آذَانِي مَكَان عَذْقِهِ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د خرماؤ يوه درخته ده او د هغه دا درخته ماته تكليف راكوي (يعني د دې مالک وخت بې وخته باغ ته راځي او زما اهل وعيال ته ځيني تكليف رسيږي) نبي كريم ﷺ هغه سړى را

وَسَلَّمَ ان بِعْنِي عَذْقَكَ قَالَ لَا قَالَ فَهَبْهُ لِي قَالَ لَا قَالَ فَبِعْنِيهِ بِعَذْقٍ فِي

وغوښتى او هغه ته يې وويل: ته خپله درخته پر ما خرڅه كړه ، هغه وويل : زه يې نه خرڅوم ، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : چي ته يې نه خرڅوې نو هبه يې كړه ماته، هغه وويل، چي هبه كوم يې هم نه ، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : ښه نو درخته د درختي په عوض كي پر ما خرڅه كړه ، هغه

الْجَنَّةِ فقَالَ لَا فقَالَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا رَأَيْتُ الَّذِي هُوَ أَبْخَلُ

وويل دا سي هم نه كوم ، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : ما ستا څخه زيات بخيل سړى نه دى

مِنْكَ إِلَّا الَّذِي يَبْخَلُ بِالسَّلَامِ. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

ليدلى خو هغه سړي ستا څخه نور هم زيات بخيل دي چي خلكو ته په سلام كولو كي بخل كوي. احمد او بيهقي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۳\۳۲۸، والبيهقي في الشعب: ٦\۴۳۰، رقم: ۸۷۷۱.

**تشریح**: علماؤ لیکلي دي چي د رسول الله ﷺ هغه سړي ته ویل د شفاعت په توګه وو د حکم په توګه نه وو، که چیري رسول الله ﷺ د حکم په توګه فرمایلي وای نو هغه د انکار کولو هیڅ جرئت نسو کولای ځکه چي په هر حال هغه مسلمان وو او د مسلمان کېدو په حیثیت سره هغه د رسول الله ﷺ د حکم څخه انکار په هیڅ صورت کي نسو کولای، مګر که چیري هغه مسلمان نه وي نو د حکم نبوي څخه د هغه انکار د تعجب خبره نه ده مګر رسول الله ﷺ دا وفرمایل چي ته دغه درخته د جنت د خرما د درختي په بدله کي پر ما وپلوره، ددې خبري دلیل دی چي هغه یقینا مسلمان وو مګر د طبیعت د سختوالي څخه خالي نه وو.

## په سلام کولو کي لومړیتوب

﴿۴۴۶۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْبَادِئُ بِالسَّلَامِ بَرِيْءٌ مِّنَ الْكِبْرِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت عبدالله رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په سلام کي مخته کېدونکي د تکبر څخه پاک دی. بیهقي

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۶\ ۴۳۲، رقم: ۸۷۸۶.

**تشریح**: مطلب دادی چي کله تلونکي راتلونکي دوه کسان په خپلو کي یو ځای سي او د دواړو حیثیت یو ډول وي لکه دواړه پر پښو وي یا دواړه سپاره وي نو په هغوی کي چي کوم څوک مخکي سلام وکړي نو هغه دا ځرګندوي چي الله تعالی هغه د تکبر او غرور څخه پاک کړی دی.

دا خبره هم مخکي بیان سوې ده چي سلام کول سنت دي او د سلام جواب ورکول فرض دي که یو سړی یو مجلس ته راسي او هلته سلام وکړي نو د مجلس پر خلکو باندي د هغه د سلام جواب ورکول فرض دي. او که هغه سړي دغه مجلس ته دوهم وار راسي او بیا سلام وکړي نو اوس د هغه د سلام جواب ورکول پر هغوی فرض نه دي بلکه مستحب دی، سلام او د هغه جواب د دواړو الفاظ باید د جمع په صیغه وي که څه هم مخاطب یو سړی وي، ددې لپاره چي ملائکي چي د هر چا سره ملګري دي په سلام کي د مخاطب سره شریکي سي.

په یوه حدیث کي نقل سوي دي چي یو سړي سرې جامې اغوستي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او سلام یې وکړ، رسول الله ﷺ د هغه د سلام جواب ورنه کړ، دغه حدیث پر دې دلالت کوي چي کوم څوک د سلام په کولو په وخت کي د یو نامشروع کار کونکی وي نو هغه به د سلام د جواب مستحق نه وي.

## بَابُ الْاِسْتِيْذَانِ (د اجازې غوښتلو بيان)

د ادب او تهذيب غوښتنه دا ده چې هيڅوک دې د چا کور ته بېله اجازې نه ننوزي، شريعت دا خبره مستحب ګرځولې ده چې کله د يو چا کورته ورسي نو لومړی دې په دروازه کې ودرېږي او د ننوتلو اجازه دې وغواړي که چيرې د کور خاوند يې کورته راوغواړي نو په دروازه کې دې دننه سي کنه نو بيرته دې ولاړ سي، د دغه حکم بنياد د قرآن کريم دغه آيت کريمه دی:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا

ژباړه: اې مؤمنانو! د خپلو کورو څخه پرته د نورو په کورو کې تر هغه وخته پورې مه ننوزئ تر څو چې د کور والا څخه اجازه تر لاسه نه کړئ او هغوی ته سلام ونه کړئ.

په دې اړه سنت طريقه دا ده چې په دروازه کې په درېدو سره د کور خاوند دې مخاطب کړي او داسې دې ووايې چې السلام عليکم، ايا زه دننه درسم؟.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د اجازې لپاره درې واره سلام کول

﴿۴۴۶۲﴾: وَعَنْ اَبِي سَعِيْدِ الْخُدْرِيّ قَالَ اتانا ابوموسى قال ان عُمَرَ أَرْسَلَ إِلَيَّ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چې ابو موسی اشعری رضي الله عنه (يوه ورځ) موږ ته راغی او ويې ويل، چې حضرت عمر رضي الله عنه ما ته يو سړی را ولېږی

أَنْ آتِيَهُ فَأَتَيْتُ بَابَهُ فَسَلَّمْتُ ثَلاَثًا فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ فَرَجَعْتُ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ

زه يې را وغوښتلم زه د هغه دروازې ته راغلم او د اجازت د حاصلولو لپاره مې درې واره سلام وکړ خو ما ته د سلام جواب را نغلی نو زه بيرته راغلم بيا (په بله موقع حضرت عمر رضي الله عنه ما ته

أَنْ تَأْتِيَنَا فَقُلْتُ إِنِّي أَتَيْتُكَ فَسَلَّمْتُ عَلَى بَابِكَ ثَلاَثًا فَلَمْ يَرُدُّوا عَلَيَّ فَرَجَعْتُ

وفرمايل: وروره ته را نغلې څه وسوه؟ ما ورته وويل: زه حاضر سوی وم او ستاسو په دروازه کې ودرېدلم درې واره مې سلام کړی وو ليکن په کوروالاؤ کې هيچا د سلام جواب را نکړ په دې وجه زه بيرته راغلم

وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَأْذَنَ أَحَدُكُمْ ثَلَاثًا فَلَمْ

ځکه چي نبي كريم ﷺ ما ته دا فرمايلي دي کله چي په تاسو کي ځوک درې واره اجازت و

يُؤْذَنْ لَهُ فَلْيَرْجِعْ فَقَالَ عُمَرُ أَقِمْ عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ قَالَ أَبُو سَعِيدٍ فَقُمْتُ مَعَهُ فَذَهَبْتُ إِلَى عُمَرَ فَشَهِدْتُ. متفق عليه.

غواړي که اجازت ورته و نه سو نو بيرته دي ځي، په دې اوريدو سره حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل: د دې حديث شاهد را وله ابو سعيد رضي الله عنه (د دې حديث راوي) وايي چي د ابوموسى سره زه و حضرت عمر رضي الله عنه ته ورغلم او شاهدي مي ورکړه چي دا حديث صحيح دی. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۶ - ۲۷، رقم: ۶۲۴۵، ومسلم ۳\ ۱۶۹۴، رقم: ۳۳ - ۲۱۵۳.

**تشريح**: حضرت ابو موسى رضي الله عنه، حضرت ابوسعيد رضي الله عنه ته ذکر سوې پېښه بيان کړه او هغه وويل دغه حديث تا هم د رسول الله ﷺ څخه اوريدلی دی ځکه نو زما سره حضرت عمر رضي الله عنه ته ولاړ سه او د هغه په وړاندي شاهدي ورکړه، نو ابو سعيد خدري رضي الله عنه د هغه سره حضرت عمر رضي الله عنه ته ورغلی او دا شاهدي يې ادا کړه چي حضرت ابو موسى رضي الله عنه کوم حديث بيان کړی دی هغه بالکل صحيح دی.

د حضرت عمر رضي الله عنه شاهد غوښتل محض د احتياط په توګه وو چي نورو خلکو ته د حديث بيانولو د ازرښت اندازه وسي او په خاصه توګه هغه درواغجن خلک چي د ځان څخه حديثونه جوړوي او رسول الله ﷺ ته يې منسوب کوي، هغوی ددې جرئت ونه کړلای سي کنه نو دا خبره ده چي خبر واحد مقبول دی په خاصه توګه په داسي صورت کي چي کله راوي د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه په ډول صحابي وي چي د سترو صحابه کرامو څخه دی.

د دروازې په دريدو درې واره سلام کول ددې لپاره دي چي يو سلام خو د پېژندني لپاره سو او دوهم سلام د تامل لپاره او دريم سلام د اجازې لپاره دی، يعني د کور خاوند د اول سلام په اوريدو سره هغه سړی و پېژني چي دا څوک دی او د دوهم سلام په اوريدو سره هغه فکر وکړي چي ايا دغه سړي ته د راتلو اجازه ورکړل سي که يا، او د دريم سلام د اوريدو څخه وروسته به د ننه راتلو اجازه ورکړي.

## خاص اجازه

﴿۴۴۶۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْنُكَ عَلَيَّ أَنْ تُرْفَعَ الْحِجَابُ وَأَنْ تَسْتَمِعَ سِوَادِي حَتّٰى أَنْهَاكَ. رواه مسلم.

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ و ما ته فرمایل: زه و تا ته اجازت درکوم چي ته زما د دروازې پرده پورته کوه او د ننه را ځه او تر څو پوري چي زه تا منعه نه کړم زما پټي خبري اوره. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۷۹۸/۴، رقم: ۱٦– ۲۱٦۹.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ پر دروازه چي کومه پرده وه هغه د بوری (ګونی) وه، ددغه حدیث څخه معلومه سوه چي حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ته د رسول الله ﷺ کور ته د ننوتلو خاص اجازه تر لاسه وه او هغه په دروازه کي په درېدو سره د اجازې تر لاسه کولو پابند نه وو، نو رسول الله ﷺ هغه ته فرمایلي وه چي ما ته ستا د راتلو د اجازې علامه بس ده چي ته د پردې په پورته کولو سره وګورې که چیري زه موجود وم یا تا ته دا معلومه سي چي زه په کور کي یم نو دننه ځه که څه هم زه د خاصو خلکو سره خبري کوم، تا ته د اجازې غوښتلو ضرورت نسته مګر که یو وخت ستا راتلل مناسب و نه ګڼم نو هغه وخت به دي د راتلو څخه منع کوم، ددې حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د مرتبې اندازه لګول کیږي چي هغه ته په نظیر نبوت محبوبیت تر لاسه وو او پر هغه د رسول الله ﷺ څومره مهرباني وه، رسول الله ﷺ هغه مقرب ګرځولی وو چي هغه د کور یو فرد سوی وو چي کله به یې غوښتل کور ته به ورتلی مګر څرګنده دي وي چي حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ته دغه خاص اجازه ددغه صورت سره متعلق وه چي کله به په حجره مبارکه کي د ښځو د راتلو وخت نه وو یا په کور کي به ښځي موجود نه وې، په خاصه توګه د پردې د آیت نازلېدو څخه وروسته خو به دا قید خامخا عائد سوی وي.

## داسي مه وایه چي زه یم

﴿۴۴٦۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دَيْنٍ كَانَ عَلَى أَبِي فَدَقَقْتُ الْبَابَ فَقَالَ مَنْ ذَا فَقُلْتُ أَنَا فَقَالَ أَنَا أَنَا كَأَنَّهُ كَرِهَهَا. متفق علیه

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي د پور په یوه معامله کي چي زما پر پلار وو زه رسول الله ﷺ ته ورغلم دروازه مي وټکول ، نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه چي څوک دئ ، ما وویل زه یم ، نبي کریم ﷺ وفرمایل: زه یم زه یم مطلب نبي کریم ﷺ زما دا الفاظ بد وګڼل. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۵ ،رقم: ۶۲۵۰، ومسلم ۳\۱۶۹۷، رقم: ۳۸- ۲۱۵۵.

**تشریح**: د پور هغه معامله چي د هغه په اړه حضرت جابر ﷛ د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوی وو ، هغه دا وو چي د هغه پلار حضرت عبدالله انصاري ﷛ د اُحد په غزا کي شهید سوی وو او د هغه پر ذمه پور پاته سوی وو ، پور غوښتونکو د حضرت جابر ﷛ څخه د پور د ادا کولو غوښتنه وکړه او د هغه تنګول یې پیل کړل نو هغه د مرستي غوښتني لپاره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو چي د هغه د پور ادا کولو یو انتظام وسي او د پور غوښتونکو څخه خلاصون تر لاسه سي، هغه وخت د حضرت جابر ﷛ په ملکیت کي د لږ خرماوو څخه پرته نور هیڅ نه وه مګر دلته د رسول الله ﷺ معجزه ښکاره سوه چي په هغه خرماوو کي برکت نازل سو او دومره برکت چي حضرت جابر ﷛ په هغه خرماوو سره ټول پور هم ادا کړ او د هغه څخه وروسته هم هغسي پاته وې او په هغه کي هیڅ کمي واقع نه سول ،

زه یم، دا ویل رسول الله ﷺ ځکه بد وګڼل چي د دغه جملې په ذریعه د ابهام ازاله نه کېدله او د کور پر خاوند باندي دا نه ښکارېدل چي دا کوم څوک دی ، یعني په دې ویلو سره د کور د خاوند دغه سوال چي څوک یې ، همدغسي پاته کیږي ، نو حضرت جابر ﷛ باید خپل نوم ، لقب یا کنیت ښودلی وای چي دا معلومه سوې وای چي دباندي په دروازه کي څوک دی، که څه هم په ځینو وختو کي محض په اواز پېژندو سره هم د شخصیت وضاحت کیږي په خاصه توګه په هغه صورت کي چي کله زه ویونکی سړی داسي څوک وي چي د هغه سره هر وخت ناست او ولاړ وي نو کېدای سي چي رسول الله ﷺ په اواز سره حضرت جابر ﷛ پېژندلی وي مګر د دې سربېره رسول الله ﷺ د خپل ناخوښۍ اظهار حضرت جابر ﷛ ته د هغه د تعلیم په توګه وکړ چي د چا دروازې ته په رسېدو سره د خپل راتګ خبر ورکړه او په صافو الفاظو سره خپل نوم وښیه محض په دې ویلو اکتفاء مه کوه چي زه یم.

دا هم کېدای سي چي رسول الله ﷺ د حضرت جابر ﷛ داسي وینا له دې کبله بده ګڼلې وي چي هغه د سلام کولو په ذریعه د اجازې تر لاسه کولو طریقه پرېښودل چي سنت ده.

د رسول الله ﷺ زه یم، زه یم ، دوه واره ویل د حضرت جابر ﷛ د هغه جواب قبلولو څخه د انکار په توګه وو او د هغه مهفوم دا وو چي زه یم زه یم دا څه وایې خپل نوم ولي نه ښیې.

﴿۴۴۶۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَ لَبَنًا فِي قَدَحٍ فَقَالَ أَبَا هِرٍّ الْحَقْ بِأَهْلِ الصُّفَّةِ فَادْعُهُمْ إِلَيَّ فَأَتَيْتُهُمْ فَدَعَوْتُهُمْ فَأَقْبَلُوا فَاسْتَأْذَنُوا فَأُذِنَ لَهُمْ فَدَخَلُوا. رواه البخاري.

د حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ سره (د هغوی په کور کي) دا خل سوم نبي کريم ﷺ په خپل کور کي يوه پياله پيدا کړه چي شيدې پکښي وې نو ما ته يې وفرمايل: اې ابو هريره! (ولاړ سه او) اهل صفه ما ته را وله زه هغوی ته ورغلم ما اهل صفه را و غوښتل هغوی په دروازه کي حاضر سول اجازت يې و غوښت نبي کريم ﷺ ورته اجازه ورکړه او دوی داخل سول . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۱، رقم: ۶۲۴۶.

**تشريح**: په يو بل حديث کي دا هم نقل سوي دي چي اهل صفه دننه راغله نو رسول الله ﷺ هغوی ته د شېدو پياله ور وړاندي کړل او د رسول الله ﷺ د معجزې په سبب هغه ټولو د پيالې څخه په ماړه نس شيدې وڅښلې.

څرګنده دي وي چي اهل صفه د صحابه کرامو هغه ډلي ته وايي چي د هغوی په مدينه کي نه کوروو او نه معاش يو بله ذريعه بلکه د فقر او مفلسی په وجه د مسجد نبوي څخه دباندي پر يو دوکانچه جمع وه او هر وخت د رسول الله ﷺ په خدمت کي په اوسېدو سره به يې فيض تر لاسه کوی، ددغه صحابه کرامو تعلق د انصارو سره هم وو او د مهاجرينو څخه هم، د مدينې عامو مسلمانانو به د خپل حيثيت او توان سره سم د هغوی د خوراک او څښاک بندوبست کوی مګر رسول الله ﷺ به د خپل طرف څخه هغوی ته خوراک او څښاک ورکوئ.

ددغه حديث څخه څرګنده سوه چي د يو چا رابلل د اجازې اخيستل نه ساقطوي يعني که يو سړی د چا په بلنه د هغه کور ته ورسي نو هغه بايد په دروازه کي په دربېدو سره اجازه وغواړي او بيا کور ته دننه ورسي مګر دا چي په بللو او راتلو کي د زيات وخت فرق نه وي ، مخته يو حديث راځي چي په هغه کي فرمايل سوي دي چي کله په تاسو کي يو څوک وبلل سي او هغه سړی د هغه سره يو ځای راسي کوم چي د بللو لپاره ورغلی وي نو د هغه سره راتلل د هغه لپاره اجازه ده يعني هغه ته د اجازې اخيستلو ضرورت نسته ، دغه حديث د ذکر سوي حديث سره

مطابقت نلري ځکه د دواړو په مینځ کي د مطابقت پیدا کولو لپاره علماو لیکلي دي چي اصل مسئله داده چي د بللو سره راوستونکی سره د راتلو په صورت کي د اجازي تر لاسه کولو ضرورت نسته ، اصحاب صفه ځکه راغوښتي وه چي کېدای سي هغوی به د ابوهريره ﷛ سره نه وو راغلي بلکه د حضرت ابوهريره ﷛ څخه وروسته به را رسیدلي وي ، که چیري هغوی خپله د ابوهريره ﷛ سره راغلي وي نو بیا هغوی ته به د اجازي غوښتني ضرورت نه وو ، یا دا چي هغه خلک د حضرت ابوهريره ﷛ سره راغلي وه ، په دغه صورت کي هغوی ته د اجازي تر لاسه کولو ضرورت نه وو مګر پر هغه خلکو باندي د ادب او حیاء ډېره غلبه وه ځکه هغو اجازه تر لاسه کول غوره وګڼل ، یا هغه خلکو ته به هلته یو داسي شي محسوس سوی وي چي د اجازي تر لاسه کولو غوښتونکی به وو ، یا دا چي هغه خلکو ته به دغه حدیث نه وو رسیدلی ځکه هغوی اجازه وغوښتل . والله اعلم .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### بېله اجازې د بل کور ته مه داخلیږئ

﴿۴۴۶۶﴾: عَنْ كَلَدَةَ بْنَ حَنْبَلٍ أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ بَعَثَهُ بِلَبَنٍ او جداية

د حضرت کلده بن حنبل ﷛ څخه روایت دی چي صفوان بن امیه زما په لاس رسول الله ﷺ ته

وَضَغَابِيسَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَعْلَى

شیدې د اوسی یو بچی او ترې (ککړی) ولېږلې دا وخت نبي کريم ﷺ د مکې معظمې په

الْوَادِي قَالَ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِ وَلَمْ أُسَلِّمْ وَلَمْ أَسْتَأْذِنْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْجِعْ فَقُلْ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَأَدْخُلُ. رواه الترمذي وابوداؤد.

پورته طرف کي چي هغې ته معلا وايي تشریف فرما وو زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي دا غسي ورغلم یعني نه مي سلام وکړ او نه مي اجازه و غوښتل نبي کريم ﷺ و ما ته وفرمایل: بیرته ولاړ سه (یعني د کور څخه د باندي د هغه ځایه څخه) السلام علیکم ووایه او د ننه د راتلو اجازت واخله . ترمذي او ابوداؤد . .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۱، رقم: ۲۷۱۰، وابوداود ۵\۳۶۸، رقم: ۵۱۷۶.

**د لغاتو حل:** الجِداية: اولاد الطباء.

## د غوښتونکي سره راتګ

﴿۴۴۶۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ فَجَاءَ مَعَ الرَّسُولِ فَإِنَّ ذٰلِكَ لَهُ إِذْنٌ. رواه ابوداؤد. وفي رواية له قال رسول الرجل الى الرجل اذنه.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چې په تاسو کې يو څوک را وغوښتل سي او بيا دی د قاصد سره راسي نو د قاصد سره را تلل د ده لپاره اجازت دی، او د ابوداؤد په بل روايت کې دي چې نبي کريم ﷺ وويل: قاصد لېږل د سړي بل سړي ته اذن دی. ابوداؤد

**تخريج:** سنن ابي داود ۵\۳۷۶، رقم: ۵۱۹۰.

**تشريح:** مطلب دادی که يو څوک يو سړی د يو چا را بللو لپاره واستوي او هغه هم د بلونکي سره راسي نو په دغه صورت کې ده ته ددې خبرې ضرورت نسته چې په دروازه کې ودرېږي او اجازه وغواړي او بيا کورته داخل سي.

## د بل چا کورته د تلو ادبونه

﴿۴۴۶۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُسْرٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن بسر رضي الله عنه څخه روايت دی چې کله به رسول الله ﷺ

إِذَا أَتَى بَابَ قَوْمٍ لَمْ يَسْتَقْبِلِ الْبَابَ مِنْ تِلْقَاءِ وَجْهِهِ وَلٰكِنْ مِنْ رُكْنِهِ الْأَيْمَنِ

د يو چا کورته ورتلی نو د دروازې و مخ ته به نه درېدی بلکه د دروازې راسته يا چپه لورته به

أَوِ الْأَيْسَرِ فَيَقُولُ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَذٰلِكَ أَنَّ الدُّوْرَ لَمْ يَكُنْ

درېدی او (د اجازت د اخيستلو لپاره به يې) السلام عليکم السلام عليکم ويل او د دروازې مخته به په دې وجه چې په هغه زمانه کې به

يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا سُتُورٌ، رواه ابوداؤد وذكر حديث انس قال عليه الصلاة والسلام السلام عليكم ورحمة الله في باب الضيافة.

د دروازې مخته پردې نه وې . ابوداؤد ،او د انس رضي الله عنه حديث چې نبي كريم ﷺ السلام عليكم ورحمة الله ويل د ضيافت په باب كې بيان سوى دى .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۳۷۴، رقم: ۵۱۸۶.

**تشريح**: د زيات واره سلام كولو وجه دا وه چې د كور خاوند يې په ښه واورې او اجازه وركړل سي ، څرګنده دې وي چې دلته د السلام عليكم دوه واره ذكر سوى دى نو ددې څخه شمېر مراد دى او د دوه واره اقتصار مراد نه دى ځكه چې د رسول الله ﷺ عادت مبارك وو چې كله به د چا د دروازې سره ودرېدى نو درې واره به يې سلام ادا كوى لكه چې مخكې تېر سوي دي .

د روايت د آخري الفاظو : د دروازې مخته د درېدو وجه ...الخ: ددې څخه دا معلومېږي كه چېرې پر دروازه باندې لرګي وي يا پر هغه پردې وي نو په دغه صورت كې د دروازې مخته په درېدو كې څه پروا نسته مګر د اصل سنت د رعايت سره سم غوره خبره داده چې په دغه صورت كې هم د دروازې د مخ څخه آخوا راسته يا چپه خوا ته ودرېږي او په دې وجه هم چې ځيني وختونه د لرګيو او پردې د خلاصولو په وخت كې د دروازې مخته د ولاړ سړي نظر كور ته د ننه ځي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د خپلې مور څخه هم اجازه غواړه

﴿۴۴۶۹﴾: عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ أَنَّ رَجُلاً سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عطاء بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دى چې يوه سړي د نبي كريم ﷺ څخه پوښتنه وكړه

فَقَالَ أَسْتَأْذِنُ عَلَى أُمِّي فَقَالَ نَعَمْ فقَالَ الرَّجُلُ إِنِّي مَعَهَا فِي الْبَيْتِ فَقَالَ

ايا زه خپلې مور ته په ورتلو كې اجازت غواړم؟ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : هو! سړي وويل: زه او زما مور په يوه كور كې اوسېږو ،

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَأْذِنْ عَلَيْهَا فَقَالَ الرَّجُلُ إِنِّي خَادِمُهَا

نبي کريم ﷺ وفرمايل: کله چي و هغې ته ورځی نو اجازت و غواړه هغه وويل: چي زه د خپلي مور خادم يم (يعني د هغې د خدمت لپاره بار بار زه و هغې ته ځم)

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَأْذِنْ عَلَيْهَا أَتُحِبُّ أَنْ تَرَاهَا عُرْيَانَةً قَالَ لَا قَالَ فَاسْتَأْذِنْ عَلَيْهَا. رواه مالك مرسلا.

نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: د اجازې د غوښتلو څخه وروسته ورځه ايا ته دا خبره خوښوې چي خپله مور لڅه ووينې؟ هغه وويل: يا، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: د اجازې د غوښتلو څخه وروسته ورځه. مالک مرسلا.

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\۹۶۳، رقم: ۱.

**تشريح**: په دې اړه د مور په حکم کي نور محارم هم دي که دهغوی سره نسبي تعلق وي يا د خسروالي تعلق، خلاصه دا چي د کومو ښځو څخه پرده کول په شرعي توګه ضروري نه وي او هغوی ته محارم ويل کيږي که هغوی ته ورتلل وي نو د اجازې اخيستلو څخه پرته ورتلل نه دي ښکار مګر خپل ښځه ددغه حکم څخه مستثنی ده.

## داجازې طريقه

﴿۴۴۷۰﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ كَانَ لِي مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَدْخَلٌ بِاللَّيْلِ وَمَدْخَلٌ بِالنَّهَارِ فَكُنْتُ إِذَا دَخَلْتُ بِاللَّيْلِ تَنَحْنَحَ لِي. رواه النسائي

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه به (هر وخت) شپه او ورځ نبي کريم ﷺ ته ورتلم کله چي به زه د شپې په خدمت کي حاضرېدم نو نبي کريم ﷺ به د اجازت راکولو لپاره غاړه تازه کوله ماته. نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ۳\۱۲، رقم: ۱۲۱۲.

**تشريح**: ددې څخه معلومه سوه چي د شپې په وخت کي د اجازې ورکولو علامه غاړه تازه کول وو، پاته سوه دا خبره چي د ورځي په وخت کي د حاضرۍ په صورت کي کومه علامه ټاکل سوې وه نو کېدای سي چي ددغه صورت لپاره امر بالعکس مراد وي يعني حضرت علي رضي الله عنه دا ويل غواړي چي د شپې وخت به رسول الله ﷺ غاړه تازه کول چي زما لپاره به د اجازې برابر وو او کله چي به زه د ورځي ورتلم نو د خپلو غاړو په تازه کولو سره به د ننه ورتلم.

د دغه حديث څخه دا څرګندېږي چي د رسول الله ﷺ غاړه تازه كول د اجازې علامه وه مګر په يو بل روايت كي حضرت علي رضي الله عنه دا فرمايي چي كله به د شپې په وخت كي زه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضرېدم نو رسول الله ﷺ به غاړه تازه كول نو زه به بېرته ولاړم ځكه نو دا څرګندېږي چي غاړه تازه كول د نه اجازې علامه وه نو په څرګنده دا معلومېږي چي غاړه تازه كول يوازي د اجازې علامه نه وه بلكه يو داسي قرينه به وه چي د هغه په ذريعه به غاړه تازه كول په ځينو وختو كي د اجازې علامه ګڼل كېدل او په ځينو وختو كي به د نه اجازې علامه ګڼل كېدل نو هغه قرينې چي به كوم صورت ظاهروي حضرت علي رضي الله عنه به په هغه عمل كوی.

**سلام نه كونكی**

﴿۴۴۷۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لاَ تَأْذَنُوا لِمَنْ لَّمْ يَبْدَأْ بِالسَّلاَمِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اجازه مه وركوئ هغه چا ته چي اول سلام ادا نه كړي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۶\۴۴۱، رقم: ۸۸۱۶.

**تشريح**: مطلب دادی كه چيري يو سړی چي تاسو ته راتلل غواړي مګر هغه د سلام په ذريعه د ننه راتلو اجازه طلب نه كړي يا تاسو ته په را رسېدو سره تاسو ته سلام ونه كړي نو هغه ته د راتلو يا د ځان سره د كښېنستلو اجازه مه وركوئ بلكه هغه ته وواياست چي هغه دروازې په بېرته تلو سره لومړی سلام وكړي او بيا د اجازې په اخيستلو سره د ننه راسي.

============

# بَابُ الْمُصَافَحَةِ وَالْمُعَانَقَةِ

## (د لاس د روغبړ او د غاړي د روغبړ بيان)

د مصافحې تعريف په داسي الفاظو سوی دی: دست يكديګر را ګرفتن، يعني د دوو كسانو په خپل مينځ كي د يو بل سره لاس يو ځای كول، د معانقې په اړه دا ويل سوي دي چي: دست در ګردن يكديګر در آوردن، يعني د دوو كسانو په خپلو كي د يو بل په غاړه كي لاس اچول، د دوو كسانو په خپلو كي يو بل سره سينه لګول.

# د مصافحې او معانقې احکام

د ملاقات په وخت کي مصافحه کول سنت دي او باید په دواړو لاسو مصافحه وسي، محض په یوه لاس سره مصافحه کول غیر مسنون دي، په یو خاص وخت یا یو خاص مراسمو کي مصافحه ضروري ګڼل غیر شرعي خبره ده ، په ځینو وختو کي چي دا رواج دی چي ځیني خلک د مازدیګر د لمانځه یا جمعې د لمانځه څخه وروسته د بل سره مصافحه کوي ددې هیڅ اصل نسته او زموږ علماوو وضاحت کړی دی چي د وخت د خاصوالي په سبب داسي مصافحه کول مکروه ده او بدعت مذمومه دی، مګر که یو سړی مسجد ته راسي او خلک په لمانځه کي بوخت وي یا لمونځ پېل کېدونکی وي او هغه سړی د لمانځه څخه وروسته د هغه خلکو سره مصافحه وکړي نو دا مصافحه بېله شکه مسنون مصافحه ده په شرط ددې چي هغه دمصافحې څخه مخکي سلام هم کړی وي ، که څه هم په یو خاص او مکروه وخت کي مصافحه کول مکروه دي مګر که یو سړی هغه وخت د مصافحې لپاره لاس را وړاندي کړي نو د هغه څخه لاس منع کول به مناسب نه وي ځکه چي ددې په وجه د مصافحې لپاره لاس وړاندي کونکی سړي ته تکلیف رسیږي او یو مسلمان ته تکلیف نه رسول د ادابو د رعایت څخه زیات اهم دی ، د پیغلي ښځي سره مصافحه کول حرام دي او د هغه سپین سري ښځي سره په مصافحه کولو کي پروا نسته چي ته جنسي جذبات مائل کېدای نسي، نقل سوي دي چي حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خپل په زمانه کي د هغه سپینو سرو ښځو سره مصافحه کول چي د هغوی تی یې رودلی وي که د هغه سپین ږیري سړي چي د جنسي جذباتو د فتنې څخه بې بهره سوی وي هغه لره د لي ښځي سره مصاحفه کول جائز دي د ښځي په ډول د ښه شکل سړي سره هم مصاحفه کول جائز نه دي ، څرګنده دي وي چي د چا لیدل حرام دي د هغه مس کول هم حرام دي بلکه د مس کولو حرمت د لېدو تر حرمت زیات سخت دی لکه چي په مطالب المؤمنین کي ذکر سوي دي.

په صلوة مسعودي کي لیکلي دي چي کله یو سړی سلام وکړي نو خپل لاس دي هم ورکړي یعني د مصافحې لپاره لاس ورکول سنت دي مګر د مصافحې طریقه دي دا وي چي ورغوی دي په ورغوي کي کښېږدي محض دګوتو په سرونو سره دي اکتفاء نه کوي ځکه چي محض د ګوتو په سرونو نیولو سره د مصافحې یوه داسي طریقه ده چي هغې ته بدعت ویل کیږي .

معانقه یعني یو د بل تر غاړه کېدل مشروع دي په خاصه توګه هغه وخت کله چي یو سړی د سفر څخه راغلی وي لکه څرنګه چي د حضرت جعفر ابن ابي طالب حدیث نقل سوی دی مګر

ددې اجازه په هغه صورت کي ده کله چي د هغه په وجه په يو خرابۍ کي د اخته کېدو يا د يو شک او شبهې پيدا کېدو بېره نه وي.

د حضرت امام اعظم ابو حنيفة او امام محمد رحمة الله عليهما په اړه نقل سوي دي چي دغه دواړه حضرات د معانقې او تقبيل (يعني د لاس د خولې او سترګو په ذريعه مچولو) د کراهت قائل دي، د هغوی دا وينا ده چي د معانقې په اړه نهي منقول ده لکه چي په لومړي فصل کي د حضرت انس رضي الله عنه د روايت څخه دغه نهي ثابتيږي، دغه حضرات دا هم وايي چي په کومو روايتو کي د معانقې اجازه ثابتيږي د هغو تعلق د هغه زمانې سره دی کله چي معانقه منع نه وه ګرځول سوې، په هر حال په دې اړه چي کوم حديثونه نقل سوي دي او د هغو په مينځ کي په ظاهره اختلاف معلوميږي نو د دغه حديثو د اختلاف ليري کولو او د هغوی په مينځ کي د مطابقت پيدا کولو لپاره د شيخ ابو منصور ماتريدي رحمه الله دغه قول نقل سوی دی چي کومه معانقه خراب خيال او د جنسي جذباتو په وجه وي نو هغه مکروه ده او د کومي معانقې تعلق چي د ميني او اکرام په جذبه سره وي نو هغه بېله شکه او شبهې جائز ده، ځينو علماوو دا هم ليکلي دي چي د معانقې په اړه د فقهاوو په مينځ کي چي کوم اختلاف دی دا په هغه صورت کي دی کله چي پر بدن باندي جامه نه وي، پر بدن باندي د قميص، چپني وغيره کېدو په صورت کي هيڅ اختلاف نسته بلکه په اتفاق سره جائز دي.

تقبيل يعني د لاس يا تندي وغيره مچول هم جائز دي بلکه د دين د بزرګانو او د سنتو د متبعينو علماوو لاس مچولو ته ځينو حضراتو مستحب ويلي دي مګر د مصافحې څخه وروسته د خپل لاس مچول هيڅ اصل نه لري بلکه دا د جاهلانو طريقه ده او مکروه دي.

د حاکمانو او مشائخو علماوو په وړاندي مځکه مچول حرام دي، مچه مچونکی او په هغه باندي راضي کېدونکی دواړه ګناه کار دي، فقيه ابو جعفر رحمه الله وايي: د پاچا او حاکم په وړاندي مچه مچونکی او سجده کونکی کافر کيږي په شرط ددې چي د هغه مځکه مچول او سجده د عبادت په نيت وي او که د تحيه (سلام) په توګه وي نو نه کافر کيږي مګر د کبيره ګناه کونکی به وي، د ځينو علماوو د قول مطابق د هيڅ ډول نيت نه کېدو په صورت کي هم کافر کيږي.

علماوو ليکلي دي چي د يو عالم يا پاچا او حاکم لاس مچول که د هغه د عدل او انصاف په وجه وي او د دين د اکرام او جذبي څخه وي نو څه پروا نسته او که د هغوی د لاس مچولو تعلق د دنيوي غرض او ګټي لپاره وي نو سخت مکروه به وي او که يو سړی يو عالم يا بزرګ ته د هغه د پښو مچولو لپاره خواست وکړي نو دا بايد هيڅکله و نه منل سي، د ماشومانو مچولو اجازه ده

كه څه هم د بل چا ماشومان وي بلكه د كوچني مچول سنت دي .

علماوو ليكلي دي چي كومه مچه په شرعي توګه جائز ده د هغه پنځه صورتونه دي : ۱: يو خو د مودت او ميني مچه لكه څرنګه چي مور او پلار د خپل زوى بار خوګان مچوي، ۲: دوهم د احترام ، اكرام او رحمت مچه لكه د اولاد د مور او پلار سر مچول، ۳: دريم د جنسي جذباتو مچه لكه د خاوند د خپل ښځي مخ مچول، ۴: څلورم د تحيه (سلام) مچه لكه د مسلمانانو د يو بل لاس مچول، ۵: او پنځم هغه مچه چي خور د خپل ورور تندي مچ كړي ، د ځينو حضراتو په نزد په خپلو كي د يو بل لاس او مخ مچول مكروه دي ، ځيني حضرات وايي چي د ماشوم مچول واجب دي .

امام نووي رحمة الله عليه دا ليكلي دي چي (د ښځي او خاوند څخه پرته د بل چا څخه) د جنسي جذباتو په وجه مچه اخيستل په اتفاق سره حرام دي كه هغه پلار وي يا بل څوک وي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### مصافحه مشروع ده

﴿۴۴۷۲﴾: عَنْ قَتَادَةَ قَالَ قُلْتُ لِأَنَسٍ أَكَانَتْ الْمُصَافَحَةُ فِي أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى [اللهُ عَ]لَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ . رواه البخاري

[حض]رت ابو قتاده رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د انس رضي الله عنه څخه پوښتنه وكړه چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم [په] اصحابو كرامو كي د مصافحې (د لاس روغبړ) رواج وو ؟ هغه وفرمايل : هو. بخاري

[ت]خريج : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۵۴، رقم: ۶۲۶۳.

### د كوچنيانو سره مينه مستحب ده

﴿۴۴۷۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَبَّلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَسَنَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم حسن بن على رضي الله عنه مچ كړى دا وخت د

بْنَ عَلِيٍّ وَعِنْدَهُ الْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ فَقَالَ الْأَقْرَعُ إِنَّ لِي عَشَرَةً مِنَ الْوَلَدِ مَا

نبي كريم صلى الله عليه وسلم سره اقرع بن حابس رضي الله عنه ناست وو هغه چي نبي كريم صلى الله عليه وسلم په مچولو سره وليدى نو

یې وویل، زما لس زامن دي

قَبَّلْتُ مِنْهُمْ أَحَدًا فَنَظَرَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ مَنْ لَا

ما هیڅکله په هغوی کي يو هم نه دی مچ کړی، نبي کريم ﷺ د هغه وطرف ته وکتل ورته يې وفرمايل: کوم سړی چي (پر خپل اولاد يا د خدای تعالی پر مخلوق)

يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ. متفق عليه. وسنذكر حديث أبي هريرة أثم لكع في باب

مهرباني او شفقت نه کوي پر هغه رحم نه کيږي يعني الله ﷻ پر هغه باندي رحم نه کوي. بخاري او مسلم، او ډېر ژر به موږ د ابوهريره رضي الله عنه حديث: ثم لکع

مناقب أهل بيت النبي صلى الله عليه وعليهم أجمعين إن شاء تعالى وذكر

حديث أم هانئ في باب الأمان.

د اهل بيت د مناقبو په باب کي بيان کړو او د ام هاني حديث په باب الامان کي راغلی دی

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۲۶، رقم: ۵۹۹۷، ومسلم ۵\۱۸۰۸، رقم: ۶۵ – ۲۳۱۸.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مصافحي فضيلت

﴿۴۴۷۴﴾: عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي دوه مسلمانان

مِنْ مُسْلِمَيْنِ يَلْتَقِيَانِ فَيَتَصَافَحَانِ إِلَّا غُفِرَ لَهُمَا قَبْلَ أَنْ يَتَفَرَّقَا. رواه

احمد والترمذي وابن ماجة و رواية ابي داؤد قال اذا التقى المسلمان

فتصافحا وحمد الله واستغفراه غفر لهما.

سره يو ځای سي او مصافحه کوي نو هغوی د جلا کېدو مخکي بخښل کيږي. احمد، ترمذي او ابن ماجه، او د ابوداؤد په يوه روايت کي دا الفاظ دي کله چي د وه مسلمانان سره يو ځاي

سي او مصافحه وکړي د خداي تعالى ثناء بيان کړي او بخښښ وغواړي نو هغوی بخښل کيږي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۲۸۹، وابوداود ۵\۳۸۸، رقم: ۵۲۱۲، والترمذي ۵\۷۰، رقم: ۲۷۲۷، وابن ماجه ۲\۱۲۲۰، رقم: ۳۷۰۳.

**تشريح**: حکيم ترمذي او ابو الشيخ د حضرت عمر رضي الله عنه څخه مرفوعا دا روايت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي دوه مسلمانان سره يو ځای سي او په هغوی کي يو بل ته سلام کوي نو په هغوی کي هغه مسلمان د الله تعالى په نزد زيات غوره وي کوم چي په پراخ تندي او خوشحالي سره د خپل دوهم ملګري سره يو ځای کيږي او بيا چي کله دواړه مصافحه کوي نو الله تعالى پر هغوی سل رحمتونه نازلوي، نيوي (۹۰) رحمتونه پر هغه چا باندي چا چي مخته والی وکړ او لس رحمتونه پر هغه چا باندي د چا سره چي مصافحه کوي.

### د سلام په وخت کي بايد سر کښته نه سي

﴿۴۴۷۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ الرَّجُلُ مِنَّا يَلْقَى أَخَاهُ أَوْ صَدِيقَهُ أَيَنْحَنِي لَهُ قَالَ لَا قَالَ أَفَيَلْتَزِمُهُ وَيُقَبِّلُهُ قَالَ لَا قَالَ أَفَيَأْخُذُ بِيَدِهِ وَيُصَافِحُهُ قَالَ نَعَمْ. رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه سړي وويل: اې د الله رسوله! کله چي په موږ کي ځوک د خپل مسلمان ورور يا دوست سره ملاقات کوي نو ايا هغه (د هغه د تعظيم لپاره) ورته سر کښته کړي؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: يا! هغه سړي وويل، ايا د هغه سره معانقه وکړي؟(يعني هغه ته په غاړه ورسي او مچ يې کړي) نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: يا! هغه سړي بيا پوښتنه وکړل ايا د هغه لاس په خپل لاس کي ونيسي مصافحه ورسره وکړي؟ نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: هو. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۷۰، رقم: ۲۷۲۸.

**تشريح**: د دغه حديث څخه څرګنده سوه چي د سلام په وخت کي کښته کېدل لکه څرنګه چي د ځينو خلکو عادت دی او په ځينو ځايو کي رواج دی، د سنت خلاف دی او رسول الله ﷺ له دې کبله خوښ نه کړ چي داسي کول د رکوع په حکم کي دي او رکوع د الله تعالى عبادت دی.

يحيى رحمه الله د محي السنة څخه نقل کړي دي چي د سلام په وخت کي د ملا کښته کول مکروه دي ځکه چي د دې په منع کي صحيح حديث نقل سوی دي که څه هم ځيني عالمانو دا

اختيار کړی دی مګر د هغوی دغه فعل هيڅکله د باور او اعتماد وړ نه دی .

په مطالب المؤمنين کي د شيخ ابو منصور ماتريدي رحمة الله عليه څخه نقل سوي دي که چيري يو ثوک د چا په وړاندي مځکه مچ کړي يا د هغه په مخکي ملا کښته کړي نو هغه دديٍ په وجه نه کافر کيږي مګر ګناه کار کيږي ځکه چي د چا په مخکي مځکه مچول يا کښته کېدل د تعظيم لپاره وي چي د عبادت په نيت سره وي نو کوم ثوک چي د عبادت په نيت سره داسي کار وکړي نو هغه يقينا کافر کيږي .

ځيني مشائخ ددغه کار (کښته کېدو) منع په ډېره سختۍ سره بيانوي او وايي : کاد الانحناء ان يکون کفرا ، يعني کښته کېدل کفر ته نژدې دي .

کوم حضرات چي معانقه او تقبيل (يعني غاړه په غاړه کېدل او مچېدل) ته مکروه وايي کله د امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه او امام محمد رحمة الله عليه په اړه نقل سوي دي چي هغوی ددغه حديث څخه استدلال کوي مګر کوم حضرات چي ددغه شيانو د کراهت قائل نه دي هغوی وايي چي هغه معانقه او تقبيل مکروه دی کوم چي د بې ځايه تعظيم په توګه وي يا د کومي معانقې او تقبيل څخه چي د يو خرابي رامنځته کېدو ببره وي، کنه نو په هغه صورت کي معانقه او تقبيل جائز دی کله چي يو ثوک رخصت کوي يا ثوک د سفر څخه راسي يا د يو چا سره ډير وخت وروسته لېدنه کيږي يا د الله تعالی لپاره د يو چا دميني غلبه دديٍ متقاضي وي .

## د مريض پوښتنه

﴿۴۴۷۶﴾ : وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

قَالَ تَمَامُ عِيَادَةِ الْمَرِيضِ أَنْ يَضَعَ أَحَدُكُمْ يَدَهُ عَلَى جَبْهَتِهِ أَوْ عَلَى يَدِهِ فَيَسْأَلُهُ

د ناروغ پوره پوښتنه داده چي چي ته خپل لاس د ناروغه پر تندي يا پر لاس کښېږدې او د هغه څخه د هغه حال و پوښتې چي

كَيْفَ هُوَ وَتَمَامُ تَحِيَّاتِكُمْ بَيْنَكُمُ الْمُصَافَحَةُ . رواه احمد والترمذي.

څنګه يې او پوره سلام کول دادي چي د سلام وروسته ورسره مصافحه هم وکړې . احمد او ترمذي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\ ۲۶۰، والترمذي ۵\ ۷۱، رقم: ۲۷۳۱.

﴿۴۴۷۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَدِمَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ الْمَدِينَةَ وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِي فَأَتَاهُ فَقَرَعَ الْبَابَ فَقَامَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرْيَانًا يَجُرُّ ثَوْبَهُ وَاللّٰهِ مَا رَأَيْتُهُ عُرْيَانًا قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ فَاعْتَنَقَهُ وَقَبَّلَهُ. رواه الترمذي

د بي بي عائشي ﷺ څخه روايت دی چي زيد بن حارثه و مديني منورې ته راغلی او د نبي كريم ﷺ سره د ملاقات لپاره حاضر سو نبي كريم ﷺ دا وخت په كور كي وو ، هغه دروازه وټكوله نبي كريم ﷺ لنګ وهلی لڅ بدن باندي د څادر را كښولو سره د باندي را ووت قسم په خداي چي ماهيڅكله نبي كريم ﷺ ددې څخه مخكي او وروسته لڅ نه وو ليدلی ، نبي كريم ﷺ زيد ﷺ په غاړه كي ونيوی او مچ يې كړ . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۷۲، رقم: ۲۷۳۲.

**تشريح**: دغه حديث او همدارنګه د حضرت جعفر ابن ابي طالب ﷺ حديث چي مخته را روان دی پر دې دلالت كوي چي معانقه او تقبيل يعني تر غاړه كېدل او لاس وغيره مچول جائز دي ، فقهاوو دا قول اختيار كړی دی چي د سفر څخه د راتلونكي كس سره معانقه او تقبيل بېله كراهته جائز دي .

## معانقه

﴿۴۴۷۸﴾: وَعَنْ أَيُّوبَ بْنِ بُشَيْرٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ عَنَزَةَ أَنَّهُ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي ذَرٍّ هَلْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَافِحُكُمْ إِذَا لَقِيتُمُوهُ قَالَ مَا لَقِيتُهُ قَطُّ إِلَّا صَافَحَنِي وَبَعَثَ إِلَيَّ ذَاتَ يَوْمٍ وَلَمْ أَكُنْ فِي أَهْلِي فَلَمَّا جِئْتُ أُخْبِرْتُ

حضرت ايوب بن بشير ﷺ د بنو عنزه د قبيلې د يو سړي څخه نقل كوي هغه سړي د ابوذر ﷺ څخه پوښتنه وكړه كله چي نبي كريم ﷺ به ستاسو سره ملاقات كوی نو مصافحه به يې هم كول ؟ ابوذر ﷺ وويل ما چي هر كله د نبي كريم ﷺ سره ملاقات كړی دی

فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ عَلَى سَرِيرِهِ فَالْتَزَمَنِي فَكَانَتْ تِلْكَ أَجْوَدَ وَأَجْوَدَ. رواه ابوداؤد.

نو نبي كريم ﷺ زما سره مصافحه كړې ده يوه ورځ نبي كريم ﷺ زه را وغوښتلم خو هغه وخت زه په كور كي نه وم زه چي كورته راغلم او ما ته د دې اطلاع وسوه نو زه د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سوم نبي كريم ﷺ دا وخت پر تخت باندي ناست وو نبي كريم ﷺ زه و خپل غاړي ته كش كړم او دا غاړه ډېر بهتره سوه (يعني د مصافحې څخه زياته بهتر سو چي د معانقې بركت او راحت راته حاصل سو). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۸۹، رقم: ۵۲۱۴.

**تشريح**: د دې څخه معلومه سوه چي د سفر څخه د راتلو پرته په نورو حالاتو كي هم د ميني او عنايت د اظهار لپاره معانقه كول ثابت دي.

﴿۴۴۷۹﴾: وَعَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ أَبِي جَهْلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ جِئْتُهُ مَرْحَبًا بِالرَّاكِبِ الْمُهَاجِرِ. رواه الترمذي.

د حضرت عكرمه بن ابو جهل رضي الله عنه څخه روايت دى كوم وخت چي زه د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سوم نو نبي كريم ﷺ و ماته وفرمايل: هجرت كونكى سپور ته دي مرحبا وي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۷۴، رقم: ۲۷۳۵.

**تشريح**: سيوطي رحمه الله په جمع الجوامع كي د حضرت معصب ابن عبدالله څخه نقل كړي دي چي كله رسول الله ﷺ، عكرمه ابن ابوجهل را روان ولېدى نو ولاړ سو او هغه ته ور روان سو او بيا د هغه تر غاړه سو او وه يې فرمايل: مرحبا بالراكب المهاجر.

حضرت عكرمه رضي الله عنه د اسلام قبلولو څخه مخكي د خپل پلار ابوجهل په ډول د رسول الله ﷺ سره سخت عداوت درلود او د اسلام پر خلاف په هره جگړه كي مخته وو، د هغه خاص صفت ښه سپرتيا وه چي په هغه كي ډېر مشهور وو او ښه سپور منل كېدى، د مكې د فتحي په ورځ چي د اسلام دښمن طاقت په آخري توگه ذره ذره سو او هغه پر خطه مقدس باندي د الله تعالى د نوم اخيستونكو پوره غلبه وسوه نو عكرمه هم د مكې څخه په تېښتېدو سره يمن ته ورسېدى، بيا د هغه ښځه بي بي ام حكيم بنت حارث يمن ته ورغله او هغه يې د ځان سره د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر كړ، او هغه د رسول الله ﷺ په مخكي د خپلو تېرو كوتاهيو د پښېماني

اظهار و کړ او د بخښني غوښتونکی سو ، د رسول الله ﷺ په مبارک لاس یې اسلام قبول کړ او د اسلام داسي شتمني یې په برخه سول چي د فخر وړ جوړ سو ، تر دې چي د الله تعالی د دین د بیرغ په پورته کولو سره یې خپل ځان قربان کړ او د یرموک په غزا کي د شهادت په مرتبه فائز سو .

څرګنده دي وي چي په دغه حدیث کي د سفر څخه راتلونکي کس ته د ښه راغلاست ذکر دی او ښه راغلاست ویل د مصافحې سره یو ډول مناسبت لري په دې اعتبار دغه حدیث دلته (د مصافحې په باب کي) نقل سوی دی .

**د رسول ﷺ بدن مچول**

﴿۴۴۸۰﴾: وَعَنْ أُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ بَيْنَمَا هُوَ يُحَدِّثُ

د حضرت اسید بن حضیر انصاري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي هغه یوه ورځ د خپل قوم سره خبري

الْقَوْمَ وَكَانَ فِيهِ مِزَاحٌ بَيْنَا يُضْحِكُهُمْ فَطَعَنَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

کولې او دی ټوکی (مسخر کونکی) وو ، له دې کبله خلکو د هغه د خبرو سره خندل او هغه په خپلو خبرو سره قوم خندوی چي رسول الله ﷺ د هغه تشی په ډیکه ووهئ ،

خَاصِرَتِهِ بِعُودٍ فَقَالَ أَصْبِرْنِي فَقَالَ اصْطَبِرْ قَالَ إِنَّ عَلَيْكَ قَمِيصًا وَلَيْسَ عَلَيَّ

هغه رسول الله ﷺ ته وویل ما ته ددې بدله راکړه ، رسول الله ﷺ ورته فرمایل (ښه دئ) بدله واخله ، هغه ورته وویل : ستاسو ﷺ پر بدن جامه ده او زه لوڅ وم ، نبي کریم ﷺ خپل قیمص

قَمِيصٌ فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَمِيصِهِ فَاحْتَضَنَهُ وَجَعَلَ يُقَبِّلُ كَشْحَهُ قَالَ إِنَّمَا أَرَدْتُ هٰذَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ . رواه ابو داؤد.

واړوئ ، اسید رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ تشي ته ور جوخت سو او د هغه مچول یې پیل کړل بیا یې وویل اې د الله رسوله ! ما یوازي دا غوښتل (یعني ستاسو بدن مبارک مي مچول غوښتل) . ابو داؤد .

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\ ۳۹۴، رقم: ۵۲۲۴.

**د لغاتو حل**: کشحه: ای جنبه (بغل یې)..

**تشریح** لفظ د (رجل) په مصابیح کي د لام په زېر سره ذکر سوی دی او ددې متقاضي دی چي د

کوم چا په مزاج کي خوش طبعي او ظرافت وو او هغه د رسول الله ﷺ د بدلې غوښتنه وکړه هغه په خپله اسید رضی الله عنه دی، لکه څرنګه چي د ژباړي څخه څرګنده سوه، مګر په جامع الاصول کي دغه لفظ رجل نه دی بلکه رجلا نقل سوی دی، د روایت الفاظ داسي دي: عن اسید بن حضیر قال ان رجلا من الانصار کان فیه مزاح فبینما هو یحدث القوم یضحکم اذ طعنه النبي ...الخ، ژباړه: د حضرت اسید رضی الله عنه څخه روایت دی چي په انصارو کي یو سړی وو چي د هغه په مزاج کي خوش طبعي او ظرافت وو، یو وخت چي هغه د خلکو سره خبري کولې او هغوی یې خندول نو نبي کریم ﷺ هغه په بغل کي په لرګي ووهی...الخ، ددې څخه دا څرګنده سوه چي په خوش طبعي او ظرافت سره خندونکی او د رسول الله ﷺ د بدلې غوښتنه کونکی بل څوک وو او خپله اسید رضی الله عنه نه وو، حضرت اسید رضی الله عنه خو د هغه پیښې بیانونکی دی.

طیبي رحمه الله د جامع الاصول د روایت سره سم د حدیث د متن په روایت کي توجیه او تاویل کولو سره ددې هڅه کړې ده چي صاحب واقعه خپله اسید رضی الله عنه نه دی بلکه هغه محض ددغه پیښې راوي دی او هغه ځکه هڅه کړې ده چي حضرت اسید رضی الله عنه یو جلیل القدر صحابي وو د هغه تعلق د لوړي درجې د صحابه کرامو څخه وو نو د هغه د شان څخه دا خبره لیري معلومېږي چي ددغه پیښې تعلق د هغه سره وي، والله اعلم.

رسول الله ﷺ هغه په بغل کي په لرګي ووهی: ددغه الفاظو محمول دادی چي هغه کس د مزاح او ظرافت یې پرېښود او خپلو خبرو یې خلک خندول ځکه رسول الله ﷺ هم په دې خوشحاله سو او د مزاح په توګه یې هغه په لرګي ووهی، ددې څخه معلومه سوه چي د خوش طبعی او ظرافت خبري کول او د هغه خبرو اورېدل مباح دي په شرط ددې چي د هغه په وجه د یو غیر شرعي او منع خبرو صادرېدل نه وي.

## معانقه او مچول

﴿۴۴۸۱﴾: وَعَنِ الشَّعْبِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَلَقَّى جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ فَالْتَزَمَهُ وَقَبَّلَ مَا بَيْنَ عَيْنَيْهِ. رواه ابوداؤد والبیهقي في شعب الایمان مرسلا وفي بعض نسخ المصابیح وشرح السنة عن البیاضي متصلا.

د حضرت شعبي رضی الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ د جعفر بن ابو طالب سره یو ځای سو او د هغه سره غاړه په غاړه سو نو هغه یې د سترګو په منځ کي مچ کړ. ابوداؤد، بیهقي په شعب

الايمان كي مرسلا روايت كړې دئ، د مصابيح په ځينو نسخو كي او په شرح السنه كي د بياضي څخه مرسلا روايت دئ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۳۹۲، رقم: ۵۲۲۰، والبغوي في شرح السنة ۱۲\ ۲۹۲، رقم: ۳۳۲۷، ولم نجده في الشعب.

**تشريح**: د حضرت جعفر رضي الله عنه د حبشې څخه راتلل د دغه واقعې سره متعلق دي چي د هغه ذكر په مخكي حديث كي هم راغلى دى.

بياضي بياضه ابن عامر ته منسوب دى او په جامع الاصول كي ليكلي دي چي هلته مطلق بياضي بېله نامه نقل سوى دى هلته به حضرت عبد الله ابن جابر انصاري صحابي مراد وي.

﴿۴۴۸۲﴾: وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ أَبِيْ طَالِبٍ فِيْ قِصَّةِ رُجُوْعِهِ مِنْ أَرْضِ الْحَبَشَةِ قَالَ

حضرت جعفر بن ابو طالب رضي الله عنه د حبشې څخه د راگرځېدو د قصې په بيانولو سره فرمايي چي

فَخَرَجْنَا حَتّٰى أَتَيْنَا الْمَدِيْنَةَ فَتَلَقَّانِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

موږ د حبشې څخه را روان سو مديني ته راغلو، رسول الله ﷺ زموږ سره يو ځاى سو او زه يې د

فَاعْتَنَقَنِيْ ثُمَّ قَالَ مَا أَدْرِيْ أَنَا بِفَتْحِ خَيْبَرَ أَفْرَحُ أَمْ بِقُدُوْمِ جَعْفَرٍ وَوَافَقَ ذٰلِكَ فَتْحُ خَيْبَرَ. رواه في شرح السنة.

خپل غاړي مباركي سره جوخت كړم او وه يې فرمايل: زه نه سم ويلاى چي ما ته د خيبر د فتح خوشحالي زياته ده يا د جعفر راتگ، جعفر په دغه ورځ راغلى وو په كومه ورځ چي خيبر فتح سوى وو. شرح السنه..

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\ ۳۹۱، رقم: ۳۳۲۷.

**تشريح**: د امام شافعي رحمه الله استاد او شيخ سفيان ابن عينيه په اړه نقل سوي دي چي هغه يوه ورځ د امام مالک رحمه الله په خدمت كي حاضر سو، امام مالک رحمه الله د هغه سره مصافحه وكړه او وه يې فرمايل: كه معانقه بدعت نه واى نو ما به ستا سره معانقه هم كړې واى، حضرت سفيان رحمه الله وويل: معانقه خو هغه خلكو كړې ده چي زما او ستا څخه غوره وو، د حبشې څخه د حضرت جعفر رضي الله عنه د راتلو پر وخت رسول الله ﷺ د هغه سره معانقه وكړه او هغه يې مچ كړ، امام مالک رحمه الله وفرمايل: صحيح ده مگر هغه د حضرت جعفر رضي الله عنه سره خاص وو، حضرت سفيان

رحمۃ اللہ علیہ جواب ورکړ، يا، هغه معانقه د حضرت جعفر رضی اللہ عنہ سره خاص نه وه او که زموږ تعلق د صحابه کرامو څخه نه وي نو موږ او جعفر يو ډول حيثيت لرو ، که تاسو اجازه راکړئ نو زه به ستاسو په مجلس کي دا حديث بيان کړم ، امام مالک رحمۃ اللہ علیہ وفرمايل: هو، زه اجازه درکوم، نو حضرت سفيان رحمۃ اللہ علیہ حديث په خپل سند سره بيان کړ او امام مالک رحمۃ اللہ علیہ خاموشي اختيار کړه.

## د رسول ﷺ لاسونه او پښې مچول

﴿۴۴۸۳﴾: وَعَنْ زَارِعٍ وَكَانَ فِي وَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ قَالَ لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ فَجَعَلْنَا نَتَبَادَرُ مِنْ رَوَاحِلِنَا فَنُقَبِّلُ يَدَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِجْلَهُ . رواه ابوداؤد.

زارع چي د عبدالقيس په ډله کي ګډ وو وايي کله چي موږ مديني ته راغلو نو موږ په تلوار تلوار د خپلو سپرليو څخه کښته سو او موږ د رسول الله ﷺ لاس او پښې مبارکي مچ کړلې. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۹۵، رقم: ۵۲۲۵.

**د لغاتو حل**: نتبادر: اى نتسابق في النزول من رواحلنا.

**تشريح**: د دغه حديث د ظاهري مفهوم څخه معلوميږي چي د پښو مچول جائز دي مګر فقهاوو دا منع ګرځولي دي، هغوی د دغه حديث دا تاويل کوي چي يا خو دا د رسول الله ﷺ د خصائصو څخه وو چي يوازي د رسول الله ﷺ د پښو مچول وو، يا دا چي دا د اسلام په پېل کي وو او بيا منع سو ، يا هغه خلک د دغه مسئلې څخه ناخبر وه او د دغه ناخبرۍ په وجه د رسول الله ﷺ پښه مبارکه يې مچ کړل او يا د ليدني د شوق د اضطراري حالت څخه هغوی دغه کار وکړ.

## د اولاد مچول

﴿۴۴۸۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا كَانَ أَشْبَهَ سَمْتًا

د حضرت عائشي رضی اللہ عنہا څخه روايت دئ چي ما په هيئت او طريقه ، سيرت، عادت او شکل کي او

وَهَدْيًا وَدَلًّا وَ في رواية حَدِيثًا وَكَلَامًا بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ

په يو بل روايت کي دا الفاظ دي چي په خبرو او کلام کي د رسول الله ﷺ سره زيات مشابه تر

فَاطِمَةَ كَانَتْ إِذَا دَخَلَتْ عَلَيْهِ قَامَ إِلَيْهَا فَأَخَذَ بِيَدِهَا وَقَبَّلَهَا وَأَجْلَسَهَا فِي

بي بي فاطمې بل څوک نه دی ليدلی ، (په دې تولو شيانو کي بي بي فاطمه د رسول الله ﷺ مشابه وه) کله چي به بي بي فاطمه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوه نو رسول الله ﷺ به ورته ولاړ سو او پر تندي به يې مچ کړه

مَجْلِسِهِ وَكَانَ إِذَا دَخَلَ عَلَيْهَا قَامَتْ إِلَيْهِ فَأَخَذَتْ بِيَدِهِ فَقَبَّلَتْهُ وَأَجْلَسَتْهُ فِي مَجْلِسِهَا. رواه ابوداؤد.

او پر خپل ځای به يې کښېنول او کله چي به رسول الله ﷺ د بي بي فاطمې ﷞ کره ولاړی نو بي بي فاطمه به ورته ولاړه سوه د رسول الله ﷺ لاس مبارک به يې په خپل لاس کي واخيست او مچ به يې کړی او پر خپل ځای به يې کښېنوئ . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۹۱، رقم: ۵۲۱۷.

**د لغاتو حل**: الدل: حسن الشمائل

﴿۴۴۸۵﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ أَبِي بَكْرٍ أَوَّلَ مَا قَدِمَ الْمَدِينَةَ فَإِذَا عَائِشَةُ ابْنَتُهُ مُضْطَجِعَةٌ قَدْ أَصَابَتْهَا حُمَّى فَأَتَاهَا أَبُو بَكْرٍ فَقَالَ كَيْفَ أَنْتِ يَا بُنَيَّةُ وَقَبَّلَ خَدَّهَا. رواه ابوداؤد.

د حضرت براء ﷛ څخه روايت دئ چي کله ابوبکر ﷛ مدينې ته راغلی (يعني د يوې غزا څخه را ستون سو) نو زه ورسره د هغه کور ته ورغلم ما وليدل چي د هغه لور بي بي عائشه پرته وه او تبه يې وه ، حضرت ابوبکر صديق ﷛ هغې ته ورغلی او پوښتنه يې وکړه لوري څنګه يې ؟ بيا يې پر مخ مچ کړل . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۹۳، رقم: ۵۲۲۲.

## اولاد د بزدلۍ سبب دئ

﴿۴۴۸۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِصَبِيٍّ فَقَبَّلَهُ فَقَالَ أَمَا إِنَّهُمْ مَبْخَلَةٌ مَجْبَنَةٌ وَإِنَّهُمْ لَمِنْ رَيْحَانِ اللهِ . رواه في شرح السنة.

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دئ چي يو كوچنى نبي كريم ﷺ ته راوستل سو رسول الله ﷺ هغه مچ كړ او وه يې فرمايل دا اولاد د. بخل باعث دئ دا اولاد د بيري سبب دئ او دا اولاد د خداى ﷻ نعمت دى .شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\۳۵، رقم: ۳۴۴۸.

**د لغاتو حل**: ريحان الله: اى من رزق الله. (د الله ﷻ روزي)

**تشريح**: د اولاد په اړه چي رسول الله ﷺ څه فرمايلي دي د هغه څخه دې ته اشاره كول مقصد دي چي اولاد په انسان باندي هر څه كوي، يو پلار د خپل اولاد لپاره نه يوازي دا چي په مختلفو وسائلو اختيارولو سره روپۍ ګټي او اسباب تياروي بلكه د كوچنيانو راتلونكى هغه په دې مجبوره كوي چي هغه څه ګټلي دي هغه وساتي تر دې چي د اولاد فكر يې بخيل جوړ كړي چي هغه د خپل مال څخه د الله تعالى په لاره كي مصرف نه كوي او نه د انساني ښېګڼي او همدردۍ په كارو كي مرسته كوي او بيا دا چي د اولاد مينه وي چي انسان تر دې حده بې زړه كوي چي هغه د اعلاء كلمة الحق او د دين د سرلوړۍ خپل فرض هم هيروي د جهاد كولو او جګړې ته تلو څخه منع كوي دغه خوف هغه د ميړاني او شجاعت ښوونې څخه منع كوي او وايي كه زه د جنګ په ميدان كي ووژل سم يا ونېول سم نو زما د اولاد به څه حال وي؟ د هغوى ساتنه او روزنه به څرنګه كيږي او زما كوچنيان به د پلار د سايې څخه په محروم كېدو سره په كوم ډول تكليف او مشقت كي اخته سي.

مخكي خو رسول الله ﷺ د اولاد په اړه داسي بدي بيان كړه او بيا وروسته يې د اولاد يوه خوبي او د هغه تعريف هم بيان كړ، رسول الله ﷺ وفرمايل: دغه كوچنيان ريحان دي، د ريحان معنى د روزۍ او نعمت هم ده او ريحان هغه بوټي ته هم وايي چي خوشبويي لرونكى وي، په دواړو صورتو كي د اولاد مدح او تعريف ظاهريږي او په دې كي څه شک هم نسته چي كوچنيان د مور او پلار په حق كي د رزق درجه لري كه د مور او پلار غېږ د اولاد څخه خالي وي نو د هغوى مينه او جذبه داسي پرېشانه وي لكه څرنګه چي يو وږى د روزۍ نه تر لاسه كولو په صورت كي مضطرب وي همدارنګه كوچنيان په اصل كي د الله تعالى له خوا مور او پلار ته د يو عظيم نعمت په توګه وركول كيږي داسي نعمت چي د هغوى د ژوند مرسته كونكي هم وي او د هغوى د كور څراغ هم او كه چيري د ريحان څخه خوشبويي لرونكى بوټى مراد واخيستل سي نو ښېله شكه او شبهې كوچنيان د خپل مور او پلار او كورنۍ په نظر كي د ګل درجه لري لكه څرنګه چي يو سړى د ګل په لېدو سره خوشحالي تر لاسه كوي او په بويولو سره يې دماغ معطر كوي

همدارنګه د کوچنیانو په لېدو سره هم خوشحاليَ محسوس کوي ، د هغوی سره په مینه کولو سره د هغوی په مچولو سره او د هغوی سره په خوش طبعي کولو سره خوشحالي تر لاسه کوي.

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

### انسان او دده اولاد

﴿۴۴۸۷﴾: عَنْ يَعْلىٰ قَالَ اِنَّ حَسَناً وَحُسَيْنًا اِسْتَبَقَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَمَّهُمَا إِلَيْهِ وَقَالَ إِنَّ الْوَلَدَ مَبْخَلَةٌ مَجْبَنَةٌ . رواه احمد.

د حضرت يعلي ﷺ څخه روايت دئ چي حضرت حسن او حضرت حسين (رض) رسول الله ﷺ ته په منډه راغلل او رسول الله ﷺ هغوی ځان ته را کش کړل او وه يې فرمايل اولاد د بخل سبب دئ اولاد دبيري سبب دئ . احمد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۱۷۳.

**تشريح**: علماو ليکلي دي چي دلته د ذکر سوو الفاظو څخه د کوچنيانو سره د شفقت او ميني او د تعريف اظهار مقصود دی حال دا چي په مخکني حديث کي ددغه الفاظو په ذريعه د کوچنيانو د بدي او کراهت اظهار سوی دی .

### هديه او مصافحه

﴿۴۴۸۸﴾: وَعَنْ عَطَاءِ الْخُرَاسَانِيِّ اِنَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَصَافَحُوا يَذْهَبُ الْغِلُّ وَتَهَادَوْا تَحَابُّوا وَتَذْهَبُ الشَّحْنَاءُ. رواه مالك مرسلا.

د حضرت عطاء خراساني ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مصافحه (دلاس روغبړ) کوئ په دې سره بغض ليري کيږي او هديه او تحفه يو بل ته ليږئ په دې سره مينه زياتيږي او دښمني ختميږي . مالک.

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\۹۰۸، رقم: ۱٦.

﴿۴۴۸۹﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلّٰى أَرْبَعًا قَبْلَ الْهَاجِرَةِ فَكَأَنَّمَا صَلاَّهُنَّ فِيْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ وَالْمُسْلِمَانِ إِذَا

تَصَافَحَا لَمْ يَبْقَ بَيْنَهُمَا ذَنْبٌ إِلاَّ سَقَطَ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم څوک چي تر غرمې ځلور رکعته وکړي دومره ثواب لري لکه په ليلة القدر کي چي وکړل سي ، او دوه مسلمانان چي په خپل منځ کي مصافحه کوي نو د هغوی په منځ کي هيڅ ګناه داسي نه پاته کيږي چي هغه ونه بخښل سي . بيهقي .

**تخريج** : البهيقي في شعب الايمان ۶\ ۴۷۴، رقم: ۸۹۵۵.

**تشريح**: په څرګنده دا معلوميږي چي د ګناه څخه مراد عام ګناهونه دي مګر طيبي رحمة الله عليه ويلي دي: چي د ګناه څخه مراد بغض، کينه او دښمني ده لکه څرنګه چي تر دې مخکي په حديث کي بيان سوي دي .

=========

# بَابُ الْقِيَامِ

## (د تعظيم لپاره د دريدو بيان)

د قيام (دريدو) څخه مراد د يو چا د تعظيم لپاره دريدل دي، ځيني علماوو ليکلي دي چي په مجلس کي يا د راتلونکي سړي د تعظيم او عزت لپاره دريدل مسنون دي ، دغه حضراتو د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد څخه استدلال کړی دی چي : قوموا الی سيدکم، او ځيني حضرات وايي چي مکروه او بدعت دی، او ددې منع ثابت ده ، دهغوی دليل دادی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څرنګه چي عجميان دريږي همدا رنګه تاسو مه دريږئ، او وه يې فرمايل چي دا د عجميانو رواج دی .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د اهل فضل تعظيم

《۴۴۹۰》: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ بَنُو قُرَيْظَةَ

د حضرت ابو سعيد خدري رضی الله عنه څخه روايت دئ چي د بنو قريظه يهودو د حضرت سعد رضی الله عنه پر

عَلَى حُكْمِ سَعْدٍ بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اليه وَكَانَ قَرِيبًا مِنْهُ

پریکړه امادګي ښکاره کړه نو رسول الله ﷺ سعد بن معاذ راوغوښتئ ، سعد رضي الله عنه هغه ځای ته

فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ فَلَمَّا دَنَا مِنَ الْمَسْجِدِ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نژدې وو هغه پر خره سپور راغلی کله چي مسجد نبوي ته رانژدې سو نو رسول الله ﷺ انصارو

لِلْأَنْصَارِ قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ. متفق علیه. و مضی الحدیث بطوله في باب حكم الاسراء.

ته وفرمایل: تاسو خپل سردار ته ولاړ سئ . بخاري او مسلم ،ددې پوره حدیث د بندیانو د احکامو په باب کي تیر سوی دئ.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۱۱، رقم: ۴۱۲۱، ومسلم ۳\۱۳۸۸، رقم: ۶۴- ۱۷۶۸.

**تشریح**: بنو قریظه د مدینې منورې د یهودیانو د یوې قبیلې نوم دی، په پنځم هجري کال کي د خندق د غزا په دوران کي دغه یهودیانو د منافقانو کردار ادا کړ او سره د پخوانی معاهدې سره سم هغه یهودیانو ته هم د مسلمانانو سره اوږه پر اوږه د کفارو مقابله کول پکار وو مګر هغوی د خپل بدعهدی او شرارت مظاهره وکړه او د مختلف ډول فلانونو په ذریعه د هغه عهد ماتولو لپاره د کفارو آله کار جوړ سول ، د هغوی ددغه بدعهدی په وجه رسول الله ﷺ د خندق د غزا څخه د فارغه کېدو وروسته د بنو قریظه سره د جنګ اعلان وکړ او هغه ټول یهودیان یې په هغه قلعه کي پر محصور کېدو مجبور کړل ، د مسلمانانو له خوا د بنو قریظه په قلعه کي محاصره تر پنځه ویشت ورځو پوري جاري وه ، په پا یکي یهودیانو دا تجویز وکړ چي زموږ معامله دي حضرت سعد ابن معاذ رضي الله عنه ته وسپارل سي چي د اوس قبیلې سردار وو ، او د اوس قبیله د بنو قریظه حلیف وو ، هغه یهودیانو وویل: موږ حضرت سعد رضي الله عنه خپل ثالث منو ، هغه چي زموږ په اړه کومه فیصله وکړي موږ هغه خامخا منو ، د یهودیانو خیال وو چي حضرت سعد رضي الله عنه زموږ د قبیلې سردار دی او د هغوی او زموږ په مینځ کي خاص تعلقات دي ځکه نو حضرت سعد رضي الله عنه به یقینا زموږ په حق کي فیصله وکړي نو رسول الله ﷺ حضرت سعد رضي الله عنه راوغوښت چي هغه راسي او په دې اړه یو فیصله وکړي . حضرت سعد رضي الله عنه که څه هم هغه وخت د رسول الله ﷺ تم ځای ته نژدې وو مګر د خندق په غزا کي هغه سخت زخمي سوی وو او په خاصه توګه پر رګ

زخمي سوى وو چي د هغه څخه وينه روانه وه ځکه نو پر خره باندي په سپرېدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، هغه وخت هم د زخم څخه وينه روانه وه مګر دا د رسول الله ﷺ معجزه وه چي کله رسول الله ﷺ را وبلی نو وينه يې ودرېدل، په هر حال حضرت سعد رضي الله عنه راغلی او هغه د ټولي معاملې پر مختلفو اړخونو باندي په فکر کولو سره او د هغوی د بدعهدۍ د جرم په وجه د هغوی د شريعت مطابق چي کومه فيصله وکړه د هغې خلاصه دا وه چي د هغوی جنګېدونکي خلک دي قتل کړل سي ، ښځي او کوچنيان دي يې غلامان وګرځول سي او د هغوی سامان دي وويشل سي، پر دغه فيصله باندي تر يو حده پوري عمل هم وسو ،

دلته په حديث کي د هغه وخت د پېښي ذکر دی کله چي حضرت سعد رضي الله عنه راتلی نو رسول الله ﷺ انصارو ته وفرمايل: وګورئ ستاسو سردار را روان دی ولاړ سئ، زيات علماء ددغه حديث څخه استدلال کوي او وايي که چيري د فضل خاوند او معزز سړی راسي نو د هغه د عزت او احترام لپاره درېدل پکار دي، ددې پر خلاف ځيني علماء وايي چي : قوموا الی سيدکم، څخه د رسول الله ﷺ دا مراد نه وو چي د سعد رضي الله عنه د تعظيم او عزت لپاره ولاړ سئ لکه څرنګه چي د يو لوی سړي پر راتلو باندي د درېدو رواج دی او د هغه منع ثابت ده او دا عمل د رسول الله ﷺ په نزد د ژوند تر آخري زمانې پوري ناخوښه وو، يحيی رحمة الله عليه وايي: که چيري ددغه ارشاد څخه د رسول الله ﷺ مراد د تعظيم او عزت لپاره د درېدو حکم ورکول وي نو رسول الله ﷺ به په دغه وخت کي : قوموا الی سيدکم، نه فرمايلای بلکه دا به يې فرمايلای چي: قوموا لسيدکم، نو ددغه علماوو مطابق ددغه حکم څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي وګورئ ستاسو سردار سعد رضي الله عنه را روان دی او د هغه حالت ښه نه دی، ژر ولاړ سئ او د هغه د سپرلۍ څخه په راکښته کېدو کي مرسته وکړئ چي د کښته کېدو په وخت کي هغه په تکليف نسي او د زيات حرکت په وجه د زخم څخه وينه ونه بهيږي، ددغه علماوو له خوا داهم ويل کيږي چي دغه روايت چي حضرت عکرمه رضي الله عنه ابن ابي جهل د رسول الله ﷺ خدمت کي حاضر سو نو رسول الله ﷺ د هغه د تعظيم لپاره درېدلی وو يا د حضرت عدي ابن حاتم دا روايت چي نقل کيږي چي هغه وويل کله چي به زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم نو رسول الله ﷺ به زما لپاره ودرېدی يا به د خپل ځای څخه وښورېدی نو ددغه روايتو څخه استدلال کول صحيح نه دي ځکه چي محدثينو دغه روايتونه ضعيف ګرځولي دي .

کوم حضرات چي د اهل فضل او کمال پر راتلو باندي درېدل جائز ګرځوي د هغوی وينا داده که چيري د حضرت عکرمه او حصرت عدي رضي الله عنهما په اړه ذکر سوي روايتونه

ضعيف وي او د هغو څخه استدلال كول صحيح نه وي نو بيا د هغه روايت په اړه به څه ويل كيږي كوم چي د بي بي فاطمې ﷺ په اړه نقل سوى دى چي كله به رسول الله ﷺ بي بي فاطمې ﷺ ته تشريف راوړ نو بي بي فاطمه ﷺ به د رسول الله ﷺ لپاره درېدل، او كله چي به بي بي فاطمه ﷺ د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضره سول نو رسول الله ﷺ به د هغې لپاره درېدى، كه ددغه روايت دا تاويل وكړل سي چي د رسول الله ﷺ درېدل د ميني د اظهار او د استقبال په توګه وو نه د تعظيم او عزت په توګه نو دغه تاويل به د حقيقت څخه ليري ګڼلو څخه خالي نه وي ، ددې څخه پرته خپله طيبي رحمة الله عليه د محي السنة څخه نقل كړي دي چي د جمهورو علماوو پر دې اتفاق دى چي ددغه حديث سره سم د اهل فضل او كمال په ډول علماء كرامو، صالحانو او بزرګانو عزت او اكرام كول جائز دي ددې څخه پرته محي الدين نووي رحمة الله عليه دا ليكلي دي چي دغه درېدل د اهل فضل د راتلو په وخت كي مستحب دي او نه يوازي دا چي په دې اړه احاديث هم منقول دي بلكه ددې صريح منع د هيڅ صحيح حديث څخه ثابت نه ده .

په مطالب المؤمنين كي د قنيه په حوالې سره دا نقل سوي دي چي د راتلونكي كس د تعظيم په توګه د ناست خلكو قيام يعني درېدل مكروه نه دي او دا چي قيام بنفسه مكروه نه دي بلكه د قيام طلب او خوښول مكروه دي ، هغه قيام هيڅكله مكروه نه دى چي د يو داسي سړي لپاره وكړل سي چي نه خو د ځان لپاره قيام طلب كوي او نه يې خوښوي .

قاضي عياض مالكي رحمة الله عليه دا هم ليكلي دي چي د درېدو د منع تعلق د هغه چا لپاره دى چي ناست وي او د هغه تر ناستي پوري خلك ورته ولاړ وي لكه څرنګه چي په يوه حديث كي منقول دي ، خلاصه دا چي كه چيري يو سړى داسي معلوم سي چي د علم او فضل خاوند دى نو د هغه د تعظيم او عزت په توګه درېدل جائز دي په دې كي هيڅ پروا نسته مګر د داسي سړي په وړاندي درېدل چي نه يوازي دا چي ددغه عزت مستحق نه وي بلكه پر خپل راتلو باندي هغه د خلكو د درېدو غوښتنه او خواهش هم لري نو دا مكروه دي او همدارنګه د بې ځايه ښه راغلاست په توګه درېدل هم مكروه دي او د شتمنو خلكو لپاره درېدل او دهغوى عزت كول هم ډېر سخت مكروه دي او په دې اړه ډېر سخت وعيد هم نقل سوى دى .

## په مجلس كي ناست مه ولاړوئ

﴿۴۴۹۱﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُقِيمُ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مجلسه ثُمَّ يَجْلِسُ فِيهِ وَلٰكِنْ تَفَسَّحُوا وَتَوَسَّعُوا . متفق عليه .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅوک دي د خپل ناستي لپاره بل سړی د هغه ځای څخه نه ولاړوي مگر پراخه کوئ ځايونه او ځای ورکوئ خلکو ته . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٦٢، رقم: ٦٢٦٩، ومسلم ۴\١٧١۴، رقم: ٣١- ٢١٧٧.

**تشريح**: ځينو حضراتو دا ويلي دي چي د ولکن څخه وروسته ليقل لفظ مقدر دی يعني د مفهوم په اعتبار اصل عبارت داسي دی : ولکن ليقل تفسحوا وتوسعوا، په دغه صورت کي به معنی دا وي چي هيڅوک دي بل څوک د هغه د ځای څخه په ولاړولو سره نه کښېني، بلکه هغه دي داسي وايي چي په پراخۍ سره کښېنئ او راتلونکي کس ته ځای ورکړئ.

امام نووي رحمه الله وايي : په حديث کي ذکر سوې منع د نهي تحريمي په توګه ده ، مطلب دادی که چيري يو سړی يو داسي ځای ته مخکي په رسېدو سره کښېني کوم چي د يو چا لپاره خاص نه وي د مثال په توګه د جمعې وغيره په ورځ مسجد ته په داسي وخت کي ورسېږي او په اول صف کي کښېني يا ددې څخه پرته په بل مجلس وغيره کي مخکي په رسېدو سره په يو عام ځای کي کښېني نو پر هغه ځای به تر ټولو زيات حقدار هم هغه وي د بل چا لپاره به دا حرام وي چي هغه سړی د ځای څخه ولاړ کړي او خپله هلته کښېني.

## د خپل ځای حقداره

﴿۴۴۹۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَامَ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ . رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم څوک چي په يو مجلس کي د خپل ځای څخه (د يو ضرورت لپاره ) ولاړ سي او بيرته راسي نو د خپل ځای هغه زيات وړ دئ . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\٢١٧٩، رقم: ٣١- ٢١٧٩.

**تشريح**: علماوو ليکلي دي چي دغه حکم په هغه صورت کي دی کله چي هغه سړی د خپل ځای څخه په دې ارادې او نيت ولاړ سوی وي چي بيرته به خپل ځای ته راځي، د مثال په توګه هغه اوداسه لپاره ولاړ سوی وي يا هغه ته يو داسي ضرورت پېښ سوی وي چي د هغه په وجه د لږ وخت لپاره ولاړېدل ضروري سوی وي او بيا هغه په اودس کولو سره يا د هغه کار په پوره کولو

سره بيرته راسي نو د هغه ځای زيات مستحق به هم هغه سړی وي ، په دغه صورت کي که چيري بل سړی راسي او د هغه پر ځای کښېني نو د هغه ولاړول به صحيح وي ځکه چي هغه اول سړی پر هغه ځای د ناستي څخه محروم سوی نه دی په دې توګه چي هغه په عارضي توګه د يو ضرورت لپاره تللی دی او بيرته راغلی دی نو پر دغه ځای به د هغه حق برقرار وي ، ددې تائيد د راتلونکي يو حديث څخه هم کيږي چي په هغه کي بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ به کوم ځای ناست وو بيا به د هغه ځای څخه په ولاړېدو د ضرورت لپاره ولاړی او بېرته د راتلو اراده به يې وه نو رسول الله ﷺ به پر هغه ځای خپل څپلی پرېښودلې ، مګر څرګنده دي وي که يو سړی د خپل ځای په پرېښودو سره د مجلس څخه ولاړ سي او د يو ضرورت لپاره ليري ځای ته ولاړ سي او بيا بېرته راسي نو په دغه صورت کي به د هغه خپل پخوانی ځای مستحق نه وي که څه هم هغه پر خپل ځای څپلی وغيره اېښي وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### مكروه كار

﴿۴۴۹۳﴾ : عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمْ يَكُنْ شَخْصٌ أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانُوا إِذَا رَأَوْهُ لَمْ يَقُومُوا لِمَا يَعْلَمُونَ مِنْ كَرَاهِيَتِهِ لِذَلِكَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث صحيح.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي صحابه کرامو تر رسول الله ﷺ بل هيڅوک زيات محبوب او عزيز نه ګڼئ مګر د هغوی دا عادت وو چي کله به رسول الله ﷺ تشريف راوړ نو د تعظيم لپاره به ورته نه دريدل ځکه چي هغوی په دې پوهيدل چي رسول الله ﷺ دا کار مکروه ګڼئ . ترمذي دا حديث حسن صحيح دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۸۴، رقم: ۲۷۵۴.

**تشريح**: رسول الله ﷺ دخپل انکسارۍ او تواضع د اظهار او د متکبرينو د طريقو د مخالفت په وجه دا خبره نه خوښول چي کله رسول الله ﷺ مجلس ته راسي نو صحابه کرام دي د رسول الله ﷺ د لېدو سره د تعظيم لپاره ولاړ سي بلکه رسول الله ﷺ په درېدو ، کښېنستو ، خوراک ، څېښاک او نورو کارو کي د تکلفاتو پر ترک بآندي قائم وو چي د عربو عادت وو ځکه رسول

الله ﷺ وفرمايل : انا واتقياء امتي براء من التكلف. يعني زه او زما د امت متقيان خلک د تکلف څخه بېزاره دي .

طيبي رحمة الله عليه وايي : دغه شی نه خوښول د کمال محبت، د باطن د پاکوالي او اتحاد قلوب په وجه وو، چي قلبي اتحاد او د تعلق کمال د داسي تکلفاتو متقاضي نه وي .

خلاصه دا چي د تعظيم لپاره درېدل او نه درېدل د دواړو صورتو تعلق د وخت او حالاتو او اشخاصو پر تفاوت مبني وي چي ځيني وختونه او په ځينو حالاتو کي د راتلونکي لپاره درېدل مناسب وي او په ځينو حالاتو او وختو کي درېدل مناسب نه وي په خاصه توګه په هغه صورت کي کله چي دا معلومه سي چي راتلونکی کس درېدل نه خوښوي ، يا په خپلو کي تعلقات د تکلفاتو محتاج نه وي او د داسي سړي لپاره درېدل جائز نه دي چي هيڅ ډول ديني فضيلت نه لري بلکه دنياوي حيثيت لري .

## خلک ولاړ مه ساتئ

﴿۴۴۹۴﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَتَمَثَّلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ . رواه الترمذي وابوداؤد

د حضرت معاويه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم څوک چي دا خبره خوښوي چي خلک د هغه لپاره ولاړ سي نو هغه ته پکار ده چي په دوږخ کي خپل د ناستي ځای تيار کړي . ترمذي او ابوداؤد .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۸۴، رقم: ۲۷۵۵، وابوداود ۵\ ۳۹۷، رقم: ۵۲۲۹.

**تشريح**: تيار کړئ: دغه امر د خبر په معنی کي دي يعني ددغه بيان په ذريعه رسول الله ﷺ دا خبر ورکړی دی چي کوم څوک په دې خبره سره خوشحاله کيږي چي خلک د هغه په مخکي په ادب سره ولاړ وي نو هغه ته دي معلومه وي چي هغه خپل ځان په دوږخ کي د داخلېدو مستوجب ګرځولی دی .

علماؤ ليکلي دي چي دغه وعيد د هغه چا په اړه دی چي هغه د تکبر او د خپل تعظيم کولو لپاره خپل مخکي خلک درېدل خوښوي مګر که يو سړی دا غوښتنه او خواهش نه لري بلکه خپل په خپله خوښه د هغه د خدمت لپاره يا د ثواب د طلب لپاره د هغه په مخکي ولاړ وي نو په دې کي څه پروا نسته ، خلاصه دا چي منع او مکروه دغه شی دی چي د خپل تعظيم او احترام

لپاره او د خپلې لويي د اظهار لپاره خلک خپل مخکي ولاړ خوښ کړل سي او که دا صورت نه وي نو بيا منع او مکروه به نه وي.

بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کي د خطابي رحمه الله څخه دا نقل کړي دي چي د حديث مطلب دادی چي ددغه وعيد تعلق د هغه ځا سره دی چي هغه د تکبر په وجه خلکو ته دا حکم ورکړي چي د هغه په مخکي ولاړ سي يا د هغه خلکو لپاره دا ضروري وګرځول سي چي کله د هغه مخکي راسي نو ولاړ دي وي، او وايي چي د حضرت سعد رضي الله عنه په اړه کوم حديث تېر سوی دی هغه ددې خبري دليل دی چي د سردار، امير، فاضل، والي او عادل په مخکي درېدل لکه څرنګه چي يو شاګرد د خپل استاد په مخکي ولاړ وي مستحب دي او مکروه نه دي، بيهقي ددغه قول په وضاحت کولو سره ويلي دي چي د مذکوره خلکو درېدل په اصل کي د خير تر لاسه کولو او د تکريم په توګه د درېدو مترادف دی لکه څرنګه چي د رسول الله ﷺ په حکم انصار د حضرت سعد رضي الله عنه لپاره درېدلي وه، يا حضرت طلحه رضي الله عنه د حضرت کعب ابن مالک رضي الله عنه لپاره درېدلی وو، مګر څرګنده دي وي چي کوم سړی داسي حيثيت او فضيلت لري نو د هغه په مخکي د احترام په درېدو کي څه پروا نسته مګر د هغه لپاره هم مناسب نه دي چي هغه د خلکو څخه په خپل مخکي درېدل وغواړي تر دې که يو سړی ونه درېږي نو د هغه سره کينه او بغض کوي يا د هغه څخه شکايت کوي او يا ور څخه ناراضه سي.

## د احترام لپاره مه ولاړيږئ

﴿۴۴۹۵﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئًا عَلَى عَصًا فَقُمْنَا له فَقَالَ لَا تَقُومُوا كَمَا تَقُومُ الْأَعَاجِمُ يُعَظِّمُ بَعْضُهَا بَعْضًا.

رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ تشريف راوړ چي تکيه کونکی وو پر لکړه باندي نو موږ د تعظيم لپاره ولاړ سوو نو رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو د تعظيم لپاره داسي مه ولاړيږئ لکه څرنګه چئ عجمي خلک ولاړيږي په هغوی کي ځيني د ځينو تعظيم کوي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۹۸، رقم: ۵۲۳۰.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي دا د عجميانو رواج دی چي کله د هغوی سردار يا يو

مشر سړی د هغوی مجلس ته راسي نو محض د هغه په لېدو سره ولاړيږي، او بيا د هغه په مخکي په ادب سره لاس تر نامه ولاړ وي، نو رسول الله ﷺ د دغه ارشاد : يعظم بعضها بعضا، ددې څخه دې ته اشاره ده چي هغوی کوچني او کمتر خلک د خپل لوی او لوړي درجې خلکو سره داسي دريږي که هغوی ورته ونه دريږي نو هغه لوی خلک ځيني ناراضه سي او بيا د تعظيم لپاره د هغوی په مخکي ولاړ وي، د دغه توجيه څخه دا خبره څرګنده سوه چي دلته په حديث کي د اصل قيام منع کېدل نه ثابتيږي چي د هغه جواز د نورو حديثو څخه ثابت دی بلکه هغه قيام منع دی چي د شان د اظهار او د تکبر په توګه وي ، يا دا خبره کيږي چي رسول الله ﷺ د تواضع او انکسارۍ په وجه صحابه کرامو د درېدو څخه منع کړل لکه څرنګه چي په مخکي يو حديث کي تېر سوي دي .

﴿۴۴۹۶﴾ : وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ قَالَ جَاءَنَا أَبُو بَكْرَةَ فِي شَهَادَةٍ فَقَامَ لَهُ

د حضرت سعيد بن ابو الحسن ﷺ څخه روايت دئ چي حضرت ابو بکر ﷺ په يوه فيصله کي د شاهدۍ لپاره تشريف راوړ

رَجُلٌ مِنْ مَجْلِسِهِ فَأَبَى أَنْ يَجْلِسَ فِيهِ وَقَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يو سړي د هغه د ناستي لپاره ځای خالي کولو په نيت ولاړ سو ، نو هغه د هغه سړي پر ځای د ناستي څخه انکار وکړ او وه يې فرمايل : نبي کريم ﷺ

نَهَى عَنْ ذَا وَنَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَمْسَحَ الرَّجُلُ يَدَهُ بِثَوْبِ مَنْ لَمْ يَكْسُهُ. رواه ابوداؤد.

ددې څخه منع فرمايلې ده او د هغه سړي په جامه دلاس وچولو څخه يې منع فرمايلې ده چي هغه ته جامه نه ورکوي (لکه زوی، مزدور) چي کالي يې ستا پر ذمه وي د هغه نفر په کالو لاس وچول ستا لپاره پروا نه لري . ابوداؤد،

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۱۶۴، رقم: ۴۸۲۷.

**تشريح**: په حديث کي د ذکر سوې منع مطلب دادی که په خوراک يا بل شي سره لاس ولړل سي نو هغه لاسونه دي د بل چا په جامه وغيره سره نه وچوي بلکه د داسي کس په جامه سره په لاس اچولو کي څه پروا نسته چي هغه جامه ورکړې وي لکه خپل اولاد يا غلام يا خادم وغيره، او

صحیح خبره داده چي د هغه پردي سړي په جامه سره په وچولو کي هم څه پروا نسته چي هغه په ې راضي وي ، په دغه حدیث کي د لومړني جز مسئله هم قیاس کیدای سي او که دا معلومه وي چي یو سړی د هغه لپاره د خپل ځای څخه په خوښۍ ولاړ سوی دی نو د هغه پر ځای په ناسته کي پروا نسته لکه څرنگه چي په دغه آیت : تفسحوا في المجالس، څخه مفهوم کیږي او څرنگه چي دغه حدیث پر دې هم دلالت کوي : صدر الدابة احق بصاحبها الا اذا اذن، او همدارنگه نور ډېر منقولات دي چي د هغو څخه دا مفهوم اخیستل کیږي ، پاته سوه دا خبره چي کله هغه سړی د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه لپاره په خپل خوښه ځای پرې ایښی وو نو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د ناستي څخه ولي انکار وکړ نو د هغه د انکار سبب دا وو چي هغه ته به د هغه سړي په خوښي کي شک سوی وي او هغه به دا محسوس کړې وي چي دغه سړی په خوښي سره نه دی ولاړ سوی بلکه د بل سړي په وجه ولاړ سوی دی یا د شرم په وجه ولاړ سوی دی، یا دا چي د هغه سړي د خوښۍ سربېره حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه احتیاط او تقوا په دې کي لیدلې وي چي هغه دي دده پر ځای نه کښېني ، یا هغه د منع حدیث پر اطلاق باندي محمول کړی وی او خوښي یې هم د عدم منع سبب نه وي گڼلی .

## چي ولاړېږي پر ځای یو شی پرېږده

﴿۴۴۹۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ الدَّرْدَاءِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ وَجَلَسْنَا حَوْلَهُ فَقَامَ فَأَرَادَ الرُّجُوعَ نَزَعَ نَعْلَيْهِ أَوْ بَعْضَ مَا يَكُونُ عَلَيْهِ فَيَعْرِفُ ذٰلِكَ أَصْحَابُهُ فَيَثْبُتُونَ . ابوداؤد.

د حضرت ابودرداء رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم تشریف راوړ او موږ به شاوخوا ناست وو نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا عادت مبارک وو که چیري به د وتلو ضرورت پېښ سو یعني کورته او بیرته د راتلو اراده به یې وه نو پر خپل ځای به یې څپلۍ، څادر وغیره ایښودل، د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته به د رسول الله صلی الله علیه وسلم بیرته راتګ معلومیدی او هغوی به پر خپل خپل ځای ناست وه . ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\ ۱۸۰، رقم: ۴۸۵۴.

**تشریح**: د رسول الله صلی الله علیه وسلم شاوخوا څخه مراد د رسول الله صلی الله علیه وسلم راسته خواته، چپه خواته او مخته کښېنستل دي، یعني ځیني صحابه کرام به د رسول الله صلی الله علیه وسلم راسته خواته ، ځیني چپه خواته او

ځيني مخته كښېنستل ، دا معنی ځكه بيان سوې ده كه چيري د چاپېره څخه مراد څلور خواوي واخيستل سي نو دا به صحيح نه وي ځكه چي د حلقې په مينځ كي د ناستي څخه منع راغلې ده.

## د دوو كسانو په منځ كي كښېنستل

﴿۴۴۹۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لرجُلٍ أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَ اثْنَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا. رواه الترمذي وابوداؤد.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د دوو ناستو خلكو په منځ كي بيلوالی راوستل (يعني د هغوی په منځ كي كښېنستل) جائز نه دي مگر دا چي هغوی اجازه وركړي . ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۸۳، رقم: ۲۷۵۲، وابوداود ۵\۱۷۵، رقم: ۴۸۴۵.

**تشريح**: مطلب دادی كه چيري دوه كسان يو ځای ناست وي نو دريم سړي ته دا جائز نه دي چي هغه د دوو په مينځ كي په ننوتلو سره كښېني ځكه كېدای سي چي هغه دوه كسان په خپلو كي مينه او تعلق ولري او په خپلو كي خبري كول غواړي او كه دريم سړی د هغوی په مينځ كي كښيني نو د هغه ناسته به پر هغوی باندي سخته سي ، علماوو دا وضاحت كړی دی كه چيري دا معلومه سي چي دغه دوه ناست كسان مينه او تعلق نه لري نو په دغه صورت كي د هغوی په مينځ كي ناسته پروا نه لري او كه د هغوی په مينځ كي مينه او تعلق مبهم وي نو په دغه صورت كي د احتياط تقاضا داده چي د هغوی په مينځ كي دي نه كښيني .

﴿۴۴۹۹﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تجلس بَيْنَ رَجُلَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا . رواه ابوداؤد.

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د دوو كسانو په منځ كي مه كښېنه مگر د دوی په اجازه سره . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۷۴، رقم: ۴۸۴۴.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د رسول ﷺ تعظیم

﴿۴۵۰۰﴾: عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَجْلِسُ مَعَنَا فِي الْمَسْجِدِ يُحَدِّثُنَا فَإِذَا قَامَ قُمْنَا قِيَامًا حَتّٰى نَرَاهُ قَدْ دَخَلَ بَعْضَ بُيُوْتِ أَزْوَاجِهِ.

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به زموږ سره په مسجد کي ناست وو خبري به یې کولې بیا چي به کله رسول الله ﷺ ولاړیدئ نو موږ به هم ولاړیدلو او تر هغو پوري به ولاړ وو تر څو پوري چي موږ به رسول الله ﷺ په خپلو بیبیانو کي د یو چا کور ته داخل سو.

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۶\۴۶۷، رقم: ۸۹۳۰.

**تشریح**: کله چي به رسول الله ﷺ د مجلس څخه ولاړیدی نو هغه وخت به د صحابه کرامو ولاړیدل د احترام په توګه نه وو بلکه د مجلس د ختمېدو په وجه به وو، او دا هم څرګنده ده چي کله صحابه کرام د رسول الله ﷺ د راتلو په وخت کي نه درېدل نو د تلو په وخت کي به ولي درېدل ، پاته سوه دا خبره چي صحابه کرامو به تر ډېره وخته ولي ولاړ وه نو ددې وجه به دا وي چي رسول الله ﷺ به د مجلس څخه ولاړ سو نو صحابه کرام به په دې انتظار کي وه چي کیدای سي رسول الله ﷺ د یو کار لپاره تللی وي یا دا امید وو چي رسول الله ﷺ به بیا راسي او مجلس به برقرار وي مګر کله چي به دغه امید ختم سو نو صحابه کرام به پر خپلو خپلو لارو ولاړل.

### د راتلونکي هر کلی ښه کار دی

﴿۴۵۰۱﴾: وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ دَخَلَ رَجُلٌ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ قَاعِدٌ فَتَزَحْزَحَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ فِي الْمَكَانِ سَعَةٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ

د حضرت واثله بن خطاب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړی رسول الله ﷺ ته حاضر سو په

او رسول الله ﷺ په مسجد نبوي کي ناست وو ، رسول الله ﷺ د خپل ځای څخه لږ آخوا سو او د هغه لپاره یې ځای خالي کړ

هغه سړي وويل اې دالله رسوله ! ځای بس او پراخ دئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِلْمُسْلِمِ لَحَقًّا إِذَا رَآهُ أَخُوهُ أَنْ يَّتَزَحْزَحَ لَهُ . رواهما البيهقي في شعب الإيمان.

د يو مسلمان حق دي چي هغه يو ورور راتلونکی وويني نو د هغه لپاره دي د خپل ځای څخه حرکت وکړي (چي هغه هم کښيني). دواړه حديثونه بيهقي په شعب الايمان کي روايت کړي دي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦\٤٦٨، رقم ٨٩٣٣.

==========

# بَابُ الْجُلُوْسِ وَالنَّوْمِ وَالْمَشْيِ

## (د ناستي، خوب او تګ بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ناستي طريقه

﴿۴۵۰۲﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِفِنَاءِ الْكَعْبَةِ مُحْتَبِيًا بِيَدِهِ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ د کعبې په غولي کي داسي ناست وليدئ چي د رسول الله ﷺ دواړه زنګنونه ولاړ وه او په خپلو مبارکو لاسونو سره يې پر پنډۍ حلقه جوړه کړې وه. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٦٥، رقم: ٦٢٧٢.

**تشريح**: پر پښو ناسته، د ناستي يوه خاصه طريقه ده چي صورت يې داسي وي چي دواړه زنګنونه ودرول سي، تلي پر مځکه وي او په دواړو لاسو سره پر زنګنو حلقه وتړي، او کوناټي که پر مځکه وي که پورته وي، ډېر واره پر زنګنو باندي د لاسو په ذريعه د حلقه تړلو پر ځای پر هغه جامه لکه دسمال وغيره چاپيره کوي، د رسول الله ﷺ په اړه جامه چاپيره کول هم نقل سوي

دي . په هر حال د ناستي دغه طريقه په عربو كي ډېره رواج وه او زيات خلک به داسي کښېنستل ، د حديث څخه معلومه سوه چي داسي ناسته جائز بلكه مستحب ده .

## د پروتي طريقه

﴿۴۵۰۳﴾ : وَعَبَّادِ بْنُ تَمِيمٍ عَنْ عَمِّهِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ مُسْتَلْقِيًا وَاضِعًا إِحْدَى قدميه عَلَى الْأُخْرَى . متفق عليه

حضرت عباد بن تميم رضي الله عنه د خپل اکا څخه روايت کوي چي ما رسول الله ﷺ په مسجد کي داسي پروت وليدئ چي شا يې پر مځکه او سينه يې آسمان ته وه (ستوني ستخ) چي يوه پښه مباركه يې پر بله اچولې ده . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۸۰، رقم: ۶۲۸۷، ومسلم ۳\۱۶۶۲، رقم: ۷۵- ۲۱۰۰.

**تشريح**: پر قدم باندي د قدم په ايښودو سره په پرېوتلو ستر نه لوځيږي، او داسي پرېوتل چي پر پښه باندي پښه ايښې وي د ستر لوځېدو سبب كيږي، ددغه مطلب په ذريعه دغه حديث او د هغه حديثو په مينځ كي مطابقت پيدا كيږي كوم چي مخكي را روان دی او د هغه څخه دا ځرګنديږي چي پر پښه باندي په پښه ايښودو سره پرېوتل منع دي ددغه مسئلې زيات تفصيل به مخته راسي .

ځرګنده دي وي چي د رسول الله ﷺ داسي پرېوتل به كله كله وه او هغه هم يا خو د بيان جواز لپاره د يا لږ ارام کولو لپاره ، كنه د رسول الله ﷺ معمول دا وو چي په داسي ځای كي چي هلته به خلک موجود وه چارزانو ، باوقار او په تواضع سره کښېنستی .

﴿۴۵۰۴﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَرْفَعَ الرَّجُلُ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى وَهُوَ مُسْتَلْقٍ عَلَى ظَهْرِهِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د داسي پريوتلو څخه منع فرمايلې ده چي يوه پښه ولاړه او بله پښه پر هغې سربېره کښېږدي او دی ستوني ستخ پروت وي . مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم ۳\۱۶۶۱، رقم: ۷۲- ۲۰۹۹.

﴿۴۵۰۵﴾ : وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَسْتَلْقِيَنَّ أَحَدُكُمْ ثُمَّ

يَضَعُ إِحۡدَى رِجۡلَيۡهِ عَلَى الۡأُخۡرَى . رواه مسلم.

د حضرت جابر ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هیڅوک دي داسي ستوني ستخ نه پریوځي چي یوه پښه یې ولاړه وي او بله یې سربیره پر اچولې وي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۳\۱۶۶۲، رقم: ۷۴- ۲۰۹۹.

**تشریح**: د حضرت جابر ﷺ ذکر سوي دواړه حدیثونه د عباد ابن تمیم د روایت خلاف معلومیږي مګر حقیقت دادی چي په هغو کي هیڅ اختلاف او تضاد نسته ځکه چي پر پښه باندي په پښه ایښودو سره ستوني ستخ پرېوتل دوه ډوله وي یو خو دا چي دواړي پښې یې غزولي وي د یوې پښې سربېره یې بله پښه ایښې وي په دغه طریقه باندي په پرېوتلو کي څه پروا نسته ، ځکه چي په دغه صورت کي د ستر ښکاره کېدو سوال نه پیدا کیږي، نو د عباد ابن تمیم په روایت کي چي دا منقول دي چي رسول الله ﷺ پر یوه قدم باندي دوهم قدم ایښودو سره پرېوتی نو ددې څخه دا صورت مراد دی ، دوهمه طریقه داده چي په ستوني ستخ پرېوتو سره د یوې پښې ګونډه ودرول سي او دوهمه پښه پر هغه ولاړي ګونډې کښېښودل سي دغه طریقه منع ده مګر دغه منع هم په هغه صورت کي ده کله چي د ستر لوڅېدو اندېښنه وي د مثال په توګه یو سړی پرتوګ نه وي اغوستی او نه یې لونګ تړلی وي او د هغه لونګ یا قمیص دومره کوچني وي چي د داسي پرېوتلو په وجه ستر لوڅ سي که د ستر لوڅېدو اندېښنه نه وي نو بیا په دغه طریقه سره پرېوتل به هم جائز وي ، خلاصه دا چي د منع او جواز اصل مدار د ستر پر لوڅېدو دی ، علماوو هم دا بیان کړی دی.

**د تکبر انجام**

﴿۴۵۰۶﴾: وَعَنۡ أَبِي هُرَيۡرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ بَيۡنَمَا رَجُلٌ يَتَبَخۡتَرُ فِي بُرۡدَيۡنِ وَقَدۡ أَعۡجَبَتۡهُ نَفۡسُهُ فَخَسَفَ بِهِ الۡأَرۡضَ فَهُوَ يَتَجَلۡجَلُ فِيهَا إِلَى يَوۡمِ الۡقِيَامَةِ. متفق علیه.

د حضرت ابوهریره ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : یو سړی وو چي دوه ښادرونه یې پر ځان د غرور څخه اچولې وه او غروریې کوئ او هغه ته ځان ښه ښکاره کېدی نو هغه په مځکه کي ژوندی ننوتئ چي تر قیامته پوري به په مځکه کي روان وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۵۸، رقم: ۵۷۸۹، ومسلم ۳\۱۶۵۳، رقم: ۴۹ - ۲۰۸۸.

**تشريح**: ځيني حضرات وايي چي په حديث کي د کوم چا ذکر سوی دی هغه قارون وو، نووي رحمة الله عليه ليکلي دي چي دا هم کېدای سي چي هغه سړی به د امت يو کس وو ، يا په تېر امت کي به يو سړی وي ، په هر حال د حديث څخه دا ثابته سوه چي په تکبر او غرور سره تلل خراب دي او د دې انجام ډېر بد دی، الله جل جلاله دي موږ وساتي ، اللهم امين .

## تر ټولو ښه تګ

څرګنده دي وي چي د انسان تګ د هغه د مزاج او حال تر ډېره حده غماز وي، همدا رنګه پر دې خبره خاص ټينګار کيږي چي انسان د خپل تګ انداز داسي نه کړي چي په هغه سره د هغه په شخصيت کي نقص پيدا سي او د هغه طبعي احوال او کيفياتو کي د کوږوالي اظهار وي، په عامه توګه د چلن لس ډولونه بيانيږي او په هغو کي هر ډول په عربي کي په يو ځانګړي لفظ سره نومول سوی دی چي د هغو تفصيل په نورو کتابو کي موجود دی، کوم ډول چي تر ټولو غوره او افضل ګڼل کيږي هغه ته د هون نوم ورکړل سوی دی ، د لغت په اعتبار د هون معنی ده سکون او قرار، د عربي دا مشهوره محاوره ده : امش علی هونک، يعني په خپل تګ ځه، کوم چلن ته چي هون ويل کيږي هغه داسي چلن دی چي په هغه کي حرکت خو پوره وي مګر قدم کرار کرار په لږ تيزي سره پورته کوي نه خو د وچ لرګي په ډول داسي مړ قدم پورته کول لکه د مړه زړه خلک چي ځي او نه دومره تېز وي لکه په بېړه کي چي وي، د تلو دغه دواړه صورتونه خراب دي او د تلونکي د زړه مړتوب يا بې عقلي څرګندوي، په قرآن کريم کي الله تعالی د هون تعريف کړی دی او دغه تګ يې د خپل خاصو بندګانو صفت ګرځولی دی لکه چي فرمايي : (وعباد الرحمن الذين يمشون على الارض هونا ) او د رحمن خاص بندګان هغه خلک دي چي پر مځکه په نرمۍ او سکون سره ځي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي　　(دوهم فصل)

### په تکيه لګولو سره ناسته مستحب ده

﴿۴۵۰۷﴾: عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ عَلَى يَسَارِهِ. رواه الترمذي.

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ په داسي تکيه لګولو سره ناست وليدئ چي بالښت د هغه چپه اړخ ته پروت وو . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۹۱، رقم: ۲۷۷۰.

**تشريح**: ددغه حديث څخه معلومه سوه چي په تکيه کولو سره ناسته مستحب ده او دا نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به تکيه خوښول او رسول الله ﷺ د خوشبويي په ډول د تکيې په اړه هم دا فرمايلي دي که يو سړی بالښت درکړي نو د هغه د قبلولو څخه انکار مه کوئ.

## د ناستي طريقه

﴿۴۵۰۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ فِي الْمَسْجِدِ اِحْتَبٰى بِيَدَيْهِ . رواه رزين.

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ په مسجد کي کښينستئ نو دواړه زنګنونه به يې ولاړ ساتل او په دواړو لاسونو مبارکو به يې حلقه (کړۍ) جوړول . رزين .

**تخريج**: رواه رزين.

## د عاجزي ناسته

﴿۴۵۰۹﴾: وَعَنْ قَيْلَةَ بِنْتِ مَخْرَمَةَ أَنَّهَا رَأَتْ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَهُوَ قَاعِدٌ الْقُرْفُصَاءَ قالت فَلَمَّا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخْتَشِعَ أُرْعِدْتُ مِنَ الْفَرَقِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت قيله بنت مخرمه (رض) څخه روايت دئ چي هغې رسول الله ﷺ په مسجد کي د قرفصاء په شکل ناست وليدئ هر کله چي ما د رسول الله ﷺ د خضوع (د زړه عاجزي) او خشوع (عاجزي او خاکساري) دا حالت وليدئ نو د رسول الله ﷺ د هيبت څخه وبيريدم . ابوداؤد. (د قرفصاء شکل دادئ چي سړی دواړه زنګنونه ودروی پر ورنو کښيني او زنګنونه د نس سره ومښلوي او په دواړو لاسونو سره زنګنونه ونيسي يعني دواړه لاسونه پر زنګنونو چاپيره کړي) .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۷۶، رقم: ۴۸۴۷.

**د لغاتو حل**: المتخشع: اى الخاشع الخاضع المتواضع(خاكسار). الفرق: الخوف (بېره)

**تشريح**: قُرفصاء، د قاف په پېښ، د راء په جزم او د فاء په پېښ او زور سره دى، ددې معنى داده چي د پښو پر سرو كښېنستل، او لاسونه پر پښو چاپېره كول، ددغه ناستي يعني قرفصاء صورت دا وي چي دواړه زنگنونه ودرول سي او پر كوناټو باندي كښېنيي، زنگنونه د نس سره ولگوي او دواړه لاسونه پر زنگنو ونيسي، د قرفصاء دوهم صورت دا هم دى چي دواړه زنگنونه پر مخكه په لگولو سره ورنونه د نس سره لگوي او د لاسونو مړوندونه د دواړو بغلو سره يو ځاى كړي، داسي چي راسته مړوند په چپه بغل كي او چپه مړوند په راسته بغل كي وي، د ناستي دغه خاص طريقې ته د عربو هغه غير متمدن خلكو كي رواج وه چي په ځنگلو كي اوسېدل او هغه مسكين او غريب خلک هم داسي كښيني چي په فكر او غم كي اخته وي، دغه ناسته د ډېر عجز او انكسارۍ ثر گندونه كوي ځكه رسول الله ﷺ به په دغه هيئت سره كښېنستى

## د سهار تر لمانځه وروسته

﴿۴۵۱۰﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى الْفَجْرَ تَرَبَّعَ فِي مَجْلِسِهِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ حَسْنَاءَ. رواه ابوداؤد

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ د سهار لمونځ وكړ نو چارزانو به كښېنستئ او تر لمر ښه ځلانده كېدو پوري به همداسي ناست وو. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۷۸، رقم: ۴۸۵۰.

## د پروتي طريقه

﴿۴۵۱۱﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا عَرَّسَ بِلَيْلٍ اِضْطَجَعَ عَلٰى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ وَإِذَا عَرَّسَ قُبَيْلَ الصُّبْحِ نَصَبَ ذِرَاعَهُ وَوَضَعَ رَأْسَهُ عَلٰى كَفِّهِ. رواه في شرح السنة.

د حضرت ابو قتاده رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ په سفر كي آرام كوئ په شپه كي نو پر راسته اړخ به پريوتئ او كه د سهار په وخت كي به يې آرام كوئ نو خپل يو لاس مبارک به يې ودروئ او پر ورغوي د لاس به يې سر كښېښودى (چي خوب ور نه سي). شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\ ۳۲۵، رقم: ۳۳۵۹.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ معمول وو چي کله به په سفر کي وو او د شپې په وخت کي به په يو ځای کي تم سو او د شپې څه برخه به پاته وه نو پر راسته بغل به پرېوتی او ارام به يې کوی لکه ځرنګه چي په غير سفر کي به پر راسته بغل د پرېوتلو عادت وو، او که داسي وخت به تم سو چي د شپې ډېره برخه به تېره سوې وه او سهار به نژدې وو نو په دغه صورت کي به رسول الله ﷺ د پرېوتلو پر ځای راسته لاس مبارک ودروی او پر هغه به يې تکيه کولو سره ارام کوی، داسي به يې ځکه کول چي د غفلت خوب رانسي او د سهار لمونځ قضاء نسي که څه هم پر راسته بغل باندي د بېده کېدو په صورت کي د غفلت خوب نه راځي ځکه چي پر راسته بغل باندي په پروته سره زړه لاندي وي او قرار کم وي، او پر چپه بغل باندي په پروته سره زړه پر خپل ځای وي او ارام هم وي چي د هغه په وجه خوب هم د اطمينان او سکون وي، همدا ز جه ده چي طبيبانو نه يوازي خپله بلکه نورو ته هم پر چپه اړخ د بېده کېدو مشوره ورکوي هغوی وايي: پر چپه بغل باندي په بېده کېدو سره زړه پر خپل ځای وي ځکه نو زړه ته د مطمئن او ارام کېدو په وجه نه يوازي دا چي آرام او د ارام خوب تر لاسه کيږي بلکه خوراک هم په ښه ډول هضم کيږي ځکه په دغه صورت کي د بدن حرارت په بدن کي دننه پاته سي چي د نظام هضم غوره او معتدل کېدو سبب دی، په ځينو روايتو کي دا بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ به د سفر په دوران کي د شپې په آخري برخه کي چيري تم سو نو تر سر مبارک لاندي به يې يو خښته کښېښودل او کله چي به د سهار وخت نژدې وو نو د لاس په درولو سره به يې پر هغه سر مبارک کښېښود او د لږ وخت لپاره به پرېوتی.

## د رسول الله ﷺ بستره

﴿۴۵۱۲﴾: وَعَنْ بَعْضِ آلِ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَ كَانَ فِرَاشُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوًا مِمَّا يُوضَعُ فِي قَبْرِهِ وَكَانَ الْمَسْجِدُ عِنْدَ رَأْسِهِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ام سلمه ﷺ د ځيني اولاد څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ بستره د هغه جامې څخه وه کومه چي د رسول الله ﷺ پر قبر مبارک کښېښودل سوې وه او په مسجد کي د رسول الله ﷺ سر مبارک ته نژدې وو، .ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۹۷، رقم: ۵۰۴۴.

**تشريح**: د حديث د لومړۍ برخي مطلب دادی چي رسول الله ﷺ پر کومه کوربچه ارام کوی د

هغه اوږدوالي او پلنوالي تقريبا د هغه جامې برابر وو کوم چي د رسول الله ﷺ په قبر مبارک کي اېښودل سوې ده او هغه جامه ځينو خلکو ليدلې وه چي يو مختصر جامه وه چي نه زياته اوږده او نه زياته پلنه وه ، ځينو حضراتو د امطلب بيان کړی دی چي د رسول الله ﷺ کوربچه د هغه ټوکر څخه وه کوم چي د رسول الله ﷺ په قبر مبارک کي اېښودل سوی دی او کوم ټوکر چي په قبر مبارک کي اېښودل سوی دی هغه په اصل کي يو سور څادر وو چي د ناروغۍ په حالت کي به د رسول الله ﷺ لاندي پروت وو، کله چي د رسول الله ﷺ وصال وسو نو شقران ﷺ چي د رسول الله ﷺ غلام وو ، دصحابه کرامو د رايه څخه پرته هغه څادر په قبر شريف کي د رسول الله ﷺ تر بدن مبارک لاندي اېښی وو ، د هغه وينا وه چي زه نه غواړم د رسول الله ﷺ څادر دي د [illegible]ه څخه وروسته بل څوک واغوندي يا يې استعمال کړي، صحيح قول دادی چي کله صحابه [illegible]رام په هغه خبر سول نو هغوی د قبر شريف بندولو څخه مخکي هغه څادر را کښلی وو ، څرګنده دي وي چي په حديث شريف کي بايد د يوضع (مضارع ) پر ځای (وضع) د ماضي صيغه وای مګر د

راوي مقصد به د حال زمانه وه ځکه د ماضي د صيغې پر ځای يې د مضارع صيغه استعمال کړل

د حديث دوهمه برخه: او مسجد به د رسول الله ﷺ سر مبارک ته نژدې وو، ددې مطلب دادی چي کله به رسول الله ﷺ آرام کوی نو د هغه کونج سره به پرېوتی چي سر مبارک به يې مسجد ته وو ځکه چي د رسول الله ﷺ حجره شريفه د مسجد چپه خوا ته وه او رسول الله ﷺ به مخ پر قبله پرېوتی ځکه نو څرګنده ده که چيري په هغه حجره کي مخ پر قبله پرېوځي نو مسجد به يې سر ته وي، د مشکوة په يوه نسخه کي د مسجد لفظ د جيم په زېر سره دی چي د هغه معنی د مصلی ده ، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي د ارام په وخت کي به د رسول الله ﷺ مصلی د رسول الله ﷺ سر ته اېښودل کېدل چي کله د لمانځه وخت سي نو هغه به سمدستي وغوړول سي.

## پړمخي مه پريوځئ

﴿۴۵۱۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ رَأَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مُضْطَجِعًا عَلَى بَطْنِهِ فَقَالَ إِنَّ هَذِهِ ضَجْعَةٌ لَا يُحِبُّهَا اللَّهُ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ يو سړي پړمخی (نس پر مځکه او ملا آسمان ته ) پروت وليدئ نو وه يې فرمايل په دغه شکل کي پريوتل الله ﷻ نه خوښوي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۹۰/۵، رقم: ۲۷۶۸.

**تشريح**: علماؤ ليکلي دي چي د پرېوتو څلور صورتونه دي، يو خو سم پرېوتل د اهل عبرت طريقه ده چي کوم خلک د الله تعالى د قدرت د عجائبو په لېدو سره ايمان باالله ټينګول غواړي نو هغوی سم پرېوځي چي هغوی اسمان او ستورو ته د اشتهاد په نظر ګوري چي د الله تعالى د قدرت او حکمت کار کردګي دليل حاصل کړي، دوهم صورت پر راسته بغل باندي د پرېوتلو دی، دا د اهل کبارو د پرېوتلو طريقه ده چي کوم خلک د الله تعالى په عبادت کي بوخت وي او د شپې وېښېدل غواړي نو هغوی پر راسته اړخ پرېوځي چي د غفلت خوب پر رانسي او پر وخت باندي په پورته کېدو سره په لمانځه، ذکر او وظيفه کي بوخت سي، دريم صورت پر چپه بغل پرېوتل دي چي د آرام او راحت غوښتونکو د پرېوتلو طريقه ده يعني کوم خلک چي غواړي چي خوراک يې په ښه ډول هضم سي او د ارام خوب وکړل سي او بدن ته په پوره توګه ارام او راحت تر لاسه سي نو هغوی پر چپه بغل باندي پرېوځي، او څلورم صورت د پړمو خي يعني پر نس باندي د پرېوتلو دی، دا د اهل غفلت او ناپوهانو خلکو د پرېوتلو طريقه ده ځکه د داسي پرېوتلو مطلب دا وي چي سينه او مخ چي غوره اندامونه دي او په بدن کي تر ټولو افضلي برخي دي هغه بېله قصده پر مځکه باندي پړمو خي واچول سي چي ددغه اندامو د عزت او شرف خلاف کار دی او د بچه بازو خلکو عادت دی، ځکه پړمو خی پرېوتل دومره ذليل مشابهت اختيارول دي چي په خپله ډېره بده خبره ده.

﴿۴۵۱۴﴾: وَعَنْ يَعِيشَ بْنِ طَخْفَةَ بْنِ قَيْسٍ الْغِفَارِيِّ عَنْ اَبِيْهِ وَكَانَ مِنْ

حضرت يعيش بن طخفه بن قيس غفاري رضي الله عنه د خپل پلار څخه چي

أَصْحَابِ الصُّفَّةِ قَالَ فَبَيْنَمَا اَنَا مُضْطَجِعٌ مِنَ السَّحَرِ عَلَى بَطْنِي إِذَا رَجُلٌ

په اصحابه صفه کي وو روايت کوي چي زه د سينې د درد په وجه پړمخې پروت وم چي يو سړي

يُحَرِّكُنِي بِرِجْلِهِ فَقَالَ إِنَّ هَذِهِ ضِجْعَةٌ يُبْغِضُهَا اللّٰهُ قَالَ فَنَظَرْتُ فَإِذَا هُوَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

زه په خپل پښه سره وښورولم او وه يې ويل د پروتي دغه طريقه الله تعالى نه خوښوي، ما چي وکتل نو هغه رسول الله ﷺ وو. ابوداؤد او ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۹۴، رقم: ۵۰۴۰، وابن ماجه ۱\ ۲۴۸، رقم: ۷۵۲.

**تشريح**: په ظاهره دا معلوميږي چي د رسول الله ﷺ په علم كي به د حضرت طخفه ﷛ هغه عذر نه وو چي د هغه په وجه هغه پورموخې پروت وو، ځکه رسول الله ﷺ په ذکر سوو الفاظو سره وفرمايل، او كه چيري دا وويل سي چي د هغه عذر د رسول الله ﷺ په علم كي وو نو بيا بهٔ دا تاويل كيږي چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد د احتياط او تقوا په وجه وو، او ددې څرګندولو لپاره وو چي په عامو حالاتو كي پرموخې پرېوتل سخت خراب كار دی او دې ته هم اشاره كول مقصود وو كه د سينې د درد دفاع مقصد وي نو په دغه صورت كي دا هم ممكن ده چي هغه د پښو غزولو څخه پرته د پښو خوا ته په كښته كېدو سره سينه د دواړو زنګنو سره وموښلوي.

## پر داسي بام پرېوتل چي ديوال نه لري

﴿۴۵۱۵﴾: وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ بَاتَ عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ لَيْسَ عَلَيْهِ حِجَابٌ وفي رواية حِجَارٌ فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ. رواه ابوداؤد. في معالم السنن للخطابي حجي.

د حضرت علي بن شيبان ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د شپې پر داسي بام بيده كيږي چي پر هغه ديوال نه وي، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي پر هغه ډبري نه وي (يعني د ډبرو ديوال نه وي) نو د هغه څخه د الله ذمه ولاړل (يعني د هغه د ساتني ذمه ختمه سوه ځکه چي هغه خپل ځان په خپله په خطره كي واچوئ). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۹۵، رقم: ۵۰۴۱.

**د لغاتو حل**: حجي: اى ستر.

**تشريح**: د يوه مضمون په درو روايتو كي بېل بېل الفاظ دي، په يوه روايت كي د حجاب لفظ دی چي د هغه معنی د پردې ده او ددې څخه مراد هغه دېوال دی چي بام د بې پردګۍ څخه خوندي كوي او د هغه په وجه د بام څخه د يو چا لوېدو بېره هم نه وي، په دوهم روايت كي د حجار لفظ دی چي د حجر جمع ده، او معنی يې د هغه شی ده چي بام داسي راګير كړي چي څوک ځيني ايله نسي كه هغه دېوال وي يا بل شی وي، او په دريم روايت كي د حجي لفظ دی دغه لفظ د حاء په زېر سره هم دی او د حاء په زور سره هم دی، په دواړو صورتو كي دغه لفظ د پردې په

مفهوم کي دی ، د لغت په اعتبار د حجی معنی عقل او زیرکتوب ده، نو ویل کیږئ چي پردې ته د عقل سره ځکه مشابهت ورکړل سوی دی چي څرنګه عقل انسان د خرابو او تاواني کارو څخه منع کوي همدارنګه پرده هم انسان د بام لوېدو څخه منع کوي، همدارنګه حَجی د حاء په زور سره د غاړي په معنی ده او څرګنده ده چي د بام پرده د بام پر غاړه وي، په دې اعتبار سره دې ته حجی ویل کیږي.

د حدیث خلاصه داده چي الله تعالی د هر انسان د ساتني او حفاظت ذمه او عهد اخیستی دی او ددغه مقصد لپاره هغه محض په خپل فضل او کرم سره ملائکي ټاکلي دي او داسي اسباب يې پیدا کړي دي چي د هغه په اختیارولو سره انسان خپل ځان خوندي ساتلای سي، مګر که چیري یو سړی پر داسي بام باندي بېده کیږي چي د هغه شاوخوا پرده یا بل شی نه وي نو د هغه مطلب به دا وي چي هغه په یو داسي ځای کي بېده کیږي چي په عامه توګه د هلاکت او ضرر سبب ګرځېدلای سي، او کله چي هغه سړی خپله خپل ځان په هلاکت کي د اچولو اراده کړې ده نو اوس قدرت ته څه ضرورت دی چي د هغه ساتنه دي وکړي نو د هغه د ساتني څخه خدایي ذمه او عهد ساقط سو .

﴿۴۵۱۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنَامَ الرَّجُلُ عَلَى سَطْحٍ لَيْسَ بِمَحْجُورٍ عَلَيْهِ. رواه الترمذي.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ پر هغه بام د بیدېدو څخه منع فرمایلې ده چي پر هغه د پردې دیوال نه وي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۳۰، رقم: ۲۸۵۴.

## د خلکو په منځ کي مه کښینئ

﴿۴۵۱۷﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ مَلْعُونٌ عَلَى لِسَانِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَعَدَ وَسْطَ الْحَلْقَةِ. رواه الترمذي وابو داؤد.

د حضرت حذیفة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ پر هغه سړي لعنت ویلی دئ چي د حلقې په مینځ کي کښیني . (یعني چي یو څو کسان سره ناست وي دی را تېر سي په مینځ کي یې کښیني) ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۱۶۴، رقم: ۴۸۲۶، والترمذي ۵\۸۳. رقم: ۲۷۵۳.

**تشريح**: ددغه حديث د محمول په اړه د علماوو مختلف اقوال دي ، يو خو دا چې د مثال په توګه خلکو حلقه جوړه کړې ناست وي چې يو سړى راسي او ددې پر ځاى چې هغه چيري ځاى ويني هم هلته کښېني نو د خلکو پر اوږو په ټوپ وهلو سره ولاړ سي او په مينځ کي کښېني ، داسي سړي ته ملعون ويل سوي دي ، دوهم دا چې يو سړى د خلکو د حلقې په مينځ کي داسي کښېني چې په هغوى کي د ځينو مخونه د يو بل څخه پټ سي او هغوى په خپلو کي په نه ليدو سره په خپل مينځ کي د خلل په وجه هغه سړى د تکليف او ضرر باعث محسوس کړي، نو داسي سړى د مذکوره حديث محمول دى، او دريم دا چې ددغه حديث تعلق د هغه سړي سره دى چې د مسخرو کولو لپاره د خلکو د حلقې په مينځ کي کښېني ددې لپاره چې خلک وربانديو خاندي

## په پراخه ځاى کي مجلس

﴿۴۵۱۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ الْمَجَالِسِ أَوْسَعُهَا. رواه ابوداؤد

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : غوره مجلس هغه دئ چې په پراخه ځاى کي جوړ کړل سي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۱۶۲، رقم: ۴۸۲۰.

**تشريح**: مطلب دادى كه چيري د وعظ او نصيحت مجلس وي يا په يو مباح مراسمو کي خلک جمع کول وي نو ددغه مقصد لپاره داسي ځاى اختيارول پکار دي چې پراخه وي چې خلکو ته په ناسته کي تنګي نه وي او هغوى په تکليف کي اخته نسي .

## يو ځاى کښېنستل

﴿۴۵۱۹﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ جَاءَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واصحابه جلوس فَقَالَ مَالِي أَرَاكُمْ عِزِينَ. رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روايت دئ چې صحابه کرام ناست وه چې رسول الله ﷺ تشريف راوړ او وه يې فرمايل : څه خبره ده. چې تاسو جلا جلا ناست ياست . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۱۶۳، رقم: ۴۸۲۳.

**د لغاتو حل**: عزين: ای متفرقين (جلا جلا)

**تشريح**: عزين په اصل كي د عزة جمع ده چي د هغه معنى د خلكو د ډلي ده، رسول الله ﷺ چي دا ولېدل چي د صحابه كرامو يو ډله دغه خوا ته ناست دي او بله ډله هغه خوا ته، ځيني خلك په دغه كونج كي ناست دي او ځيني خلك په هغه كونج كي، نو په بېلو بېلو ډلو كي كېنېنستل په خپلو كي وحشت او يوازيوالي ته فروغ وركول دي او د يو بل څخه د بېلوالي اختيارولو موجب كيږي ځكه رسول الله ﷺ د مذكوره ارشاد په ذريعه په داسي متفرق ډول ناسته ناخوښه كړل او په يو ځاى سره ناستي ته يې راغب كړل، ځكه چي يو ځاى په جمع كېدو سره ناسته په اصل كي د اتحاد او د ميني علامه ده.

خلاصه دا كه چيري په يو ځاى كي يو څو مسلمانان جمع وي نو هغوى بايد د بېلو بېلو ډلو په جوړولو سره نه كښېني بلكه ټول خلك يو ځاى په حلقه جوړولو سره يا په ضف جوړولو سره كښېني.

## نيم په لمر او نيم په سايه كي مه كښېنئ

﴿۴۵۲۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا كَانَ اَحَدُكُمْ فِي الْفَيْءِ فَقَلَصَ عَنْهُ الظِّلُّ وَصَارَ بَعْضُهُ فِي الشَّمْسِ وَبَعْضُهُ فِي الظِّلِّ فَلْيَقُمْ. رواه ابوداؤد. وفي شرح السنة عنه قال اذا كان احدكم في الفئ فقلص عنه فليقم فانه مجلس الشيطان هكذا رواه معمر مرفوعا.

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي په تاسو كي يو څوك په سايه كي ناست وي بيا هغه سايه ولاړه سي او د هغه د بدن يو څه برخه په لمر كي او څه برخه په سايه كي وي نو هغه ته پكار ده چي د هغه ځاى څخه ولاړ سي (يا په سايه كي دي كښېني او يا په لمر كي). ابوداؤد، په شرح االسنة كي دا الفاظ دي چي په تاسو كي چي يو څوك په سايه كي ناست او هغه سايه ولاړه سي نو د هغه ځايه څخه دي ولاړ سي ځكه چي په لږ سايه او لږ لمر كي ناسته د شيطان كار دئ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۶۲، رقم: ۴۸۲۱.

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي دا د حضرت ابو هريرہ ﷺ قول دی، د رسول الله ﷺ ارشاد نه دی، مگر ښرگنده دي وي چي دا موقوف حكم په اعتبار د مرفوع حديث په

درجه كي دی ځكه چي د دين كومه خبره د اجتهاد او قياس په ذريعه ثابت كېدونكي نه وي او يو صحابي يې په خپله نقل كړي نو ددې مطلب به دا وي چي هغه صحابي هغه خبره د رسول الله ﷺ څخه خامخا اورېدلي وي كنه نو دا ممكن نه ده چي يو صحابي دي د دين يو داسي خبره نقل كړي چي د اجتهاد او قياس څخه وتلې وي او هغه خبره يې د رسول الله ﷺ څخه نه وي اورېدلې.

د شيطان د ناستي ځای دی: په دې اړه ځينو حضراتو دا ويلي دي چي دغه عبارت پر خپل ظاهري معنی باندي محمول دی يعني په حقيقت كي داسي كيږي چي شيطان پر هغه ځای كښېني چي د هغه لږ برخه په لمر كي او لږ په سايه كي وي، په دې اعتبار سره دا خبره كيږي چي لږ په سايه كي او لږ په لمر كي ناسته د شيطان كار دی، ځيني حضرات وايي چي د داسي ځای نسبت شيطان ته په دې اعتبار سوی دی چي شيطان كوم سړی پرېشانه كول غواړي هغه د داسي ځای ناستي يا پرېوتلو ته راغب كوي، يعني پر هغه ځای باندي د يو سړي د ناستي يا پرېوتلو سبب شيطان جوړېدل وي او ددې څخه د شيطان مقصد دادی چي هغه سړی په تكليف او مصيبت كي اخته سي، نو معلومه سوه چي شيطان څرنګه د انسان د دين دښمن دی همدارنګه د هغه د بدن هم بدخواه دی.

دا خبره دي په ذهن كي وي چي په يو داسي ځای كي هم ناسته يا پرېوتل مكروه دي چي ټول په لمر كي وي كه څه هم په دغه صورت كي د منع او كراهت سبب دا نه دی چي په داسي ځای كي د شيطان د ناستي ځای وي بلكه دا ځكه منع او مكروه دی چي په پوره توګه په لمر كي كښېنستل د خپل ځان په تكليف كي اخته كول دي مګر كه چيري د يخ په وخت كي وي نو بيا په لمر كي ناسته پروا نه لري.

## نارينه او ښځي دي پر يو طرف نه ځي

﴿۴۵۲۱﴾: وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو اسيد انصاري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د مسجد څخه وتلی وو په

يَقُولُ وَهُوَ خَارِجٌ من المسجد فاختلط الرجال مع النساء فِي الطَّرِيقِ

لاره كي د ښځو سره نارينه يو ځای سول (يعني په لاره كي ګډ وډ تلل)

فَقَالَ لِلنِّسَاءِ اسْتَأْخِرْنَ فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيقَ عَلَيْكُنَّ

نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل تاسو د نارينوو وروسته ځئ تاسو ته د لارې په منځ کې تلل مناسب نه دي تاسو

بِحَافَّاتِ الطَّرِيقِ فَكَانَتْ الْمَرْأَةُ تَلْتَصِقُ بِالْجِدَارِ حَتَّى إِنَّ ثَوْبَهَا لَيَتَعَلَّقُ بِالْجِدَارِ. رواه ابوداؤد والبيهقي في شعب الايمان.

په غاړه غاړه کې ځئ، ددې په اورېدو سره ښځې د ديوالو سره جوختې تللې تردې چې ځينې وختونه به يې جامې د ديوال سره موښتې. ابو داؤد او بيهقي په شعب الايمان کې.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۴۲۲، رقم: ۵۲۷۳. والبيهقي في الشعب ٦\ ۱۷۳، رقم: ۷۸۲۲.

**د لغاتو حل**: تحققن: اى تذهبن في وسط الطريق (د لارې په منځ کې تلل)

## د ښځو په مينځ کې مه ځئ

﴿۴۵۲۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يَمْشِيَ يَعْنِي الرَّجُلَ بَيْنَ الْمَرْأَتَيْنِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ ددې څخه منع کړې ده چې يو سړى د دوو ښځو په منځ کې ځي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۴۲۲، رقم: ۵۲۷۳.

**تشريح**: د يعني لفظ د راوي خپل قول دى چې په هغه سره د حديث د الفاظو وضاحت کول مقصد دى، يعني راوي دا بيان کړى دى چې رسول الله ﷺ د يمشي فاعل يې الرجل مراد اخيستى دى، خلاصه دا چې دغه لفظ د الرجل د حديث د متن جز نه دى بلکه د راوي لفظ دى، همدارنګه د روايت په مينځ کې دغه عبارت يعني الرجل جمله معترضه ده.

رسول الله ﷺ خلک د ښځو په مينځ کې د تلو څخه ځکه منع کړل چې د سړي او ښځو اختلاط نه يوازې دا چې په مختلفو فتنو کې اخته کيږي بلکه دا يو داسې کار دى چې د شرم او حياء خلاف ګڼل کيږي.

څرګنده دې وي چې څرنګه د ښځو په مينځ کې تلل منع دي همدارنګه په لاره کې د يوې ښځې سره تلل هم منع دي په شرط ددې چې د هغه په وجه په فتنه کې د اخته کېدو ېېره وي.

## پر خالي ځای ناسته

﴿۴۵۲۳﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَلَسَ أَحَدُنَا حَيْثُ يَنْتَهِي. رواه ابوداؤد و ذكر حديث عبدالله بن عمرو في باب القيام و سنذكر حديث علي و ابي هريرة في باب اسماء النبي صلى الله عليه وسلم وصفاته ان شاء الله تعالى.

د حضرت جابر بن سمرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي موږ به وو چي نبي ﷺ به راغلی نو چي کوم یو ځای ته به را ورسیدی هلته به کښېنستی. ابوداؤد د حضرت عبد الله بن عمرو حدیث په باب القیام کي بیان سوی دئ او د حضرت علي او ابوهریره حدیث به د اسماء النبي ﷺ وصفاته په باب کي ان شاء الله بیان سي.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۱۷۶، رقم: ۴۸۴۸.

**تشریح**: مطلب دادی چي په نبوي مجلس کي هر سړی به د مجلس د ادب او وقار خیال ساتی او ددې خبري پرواه کولو پرته چي هغه ته د نورو په نسبت ځلانده او غوره مقام تر لاسه سي چیري چي به یې ځای لېدی هلته به کښېنستی ځکه چي په مجلس کي ښکاره او غوره ځای باندي د کښېنستلو او د هغه لپاره هڅه کول په اصل کي د هغه نفس تقاضا وي چي هر وخت خپل ځان بېله ضرورت ښکاره کولو او غوره ثابتولو په لټه کي وي، او دا د هغه خلکو شان دی چي د عزت او شان لوی حریص وي، حال دا چي صحابه کرامو دداسي جذباتو څخه بالکل خلاص وه، نه هغوی ته ددغه شي د تر لاسه کولو خواهش وو او نه په یو وخت کي د ناستي په اړه د تکلف او اهتمام عادي وه، د هغوی په مزاج کي چي کومه سادګي او خاکساري وه د هغه په وجه او د رسول الله ﷺ د ادب او احترام په وجه به په مجلس نبوي کي چیري چي به یې ځای تر لاسه کړ هلته به کښېنستل.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د ناستي غلطه طريقه

﴿۴۵۲۴﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ مَرَّ بِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ

حضرت عمرو بن شريد رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ زما سره نژدې تېر

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا جَالِسٌ هَكَذَا وَقَدْ وَضَعْتُ يَدِيَ الْيُسْرَى خَلْفَ ظَهْرِي

سو او زه داسي ناست وم چي ما چپه لاس زما پر ملا ايښى وو او د ښي ګوتي لاندي غوښي

وَاتَّكَأْتُ عَلَى أَلْيَةِ يَدِي فَقَالَ أَتَقْعُدُ قِعْدَةَ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ. رواه ابوداؤد.

باندي مي تکيه کړې وه، په دې حال ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل ايا ته دا ډول کښيني په کوم ډول چي هغه خلک کښينستل چي پر هغوی د الله جل جلاله غضب نازل سوی وو. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۷٦، رقم: ۴۸۴۸.

**د لغاتو حل**: الية: اللحمة التي في اصل الابهام.

**تشريح**: چي پر هغوی د الله جل جلاله غضب نازل سوی دی: ددې څخه مراد يهوديان دي، دلته د يهوديانو په څرګنده ذکر کولو پر ځای د مغضوب عليهم په ذريعه هغوی ته د اشارې کولو يوه وجه خو ددې خبري څخه خبرداری دی چي پر دغه ډول ناسته د هغه شيانو څخه ده چي الله تعالى يې دښمن ګڼي او دوهم دا چي مسلمان د يو اُمت فرد دی چي پر هغه الله تعالى خپل رحمت او نعمت فرمايلی دی، ځکه نو هغه بايد د هغه خلکو مشابهت اختيار نه کړي چي پر هغوی د الله تعالى غضب نازل سوی دی او هغوی يې ملعون ګرځولي دي، څرګنده دي وي چي د قرآن کريم په سورة فاتحه کي هم د مغضوب عليهم په ذريعه چي کومو خلکو ته اشاره سوې ده د هغو څخه هم دغه يهود مراد دي.

ځينو حضراتو ويلي دي چي په حديث کي د مغضوب عليهم لفظ په خپل وسيع او عام مفهوم کي استعمال سوی دی يعني ددې څخه ټول کافران او هغه خلک مراد دي چي په خپلو تلو او راتلو او نورو چارو کي د تکبر او غرور اظهار کوي.

## پړموخی پروته د دوږخيانو طريقه ده

﴿۴۵۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ مَرَّ بِيَ النَّبِيُّ ﷺ وَأَنَا مُضْطَجِعٌ عَلَى بَطْنِي فَرَكَضَنِي بِرِجْلِهِ وَقَالَ يَا جُنَيْدِبُ إِنَّمَا هِيَ ضِجْعَةُ أَهْلِ النَّارِ. رواه ابن ماجة.

د حضرت ابودرداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه پړموخی پروت وم چي رسول الله ﷺ زما په خوا كي تير سو ، رسول الله ﷺ په پښې مباركي سره زه وښورولم ه او وه يې فرمايل : اې جندبه ! د پريوتلو دا طريقه د دوږخيانو ده . ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱۲\۱۲۲۷، رقم: ۳۷۲۴.

**تشريح**: جندب د جضرت ابوذر رضي الله عنه اصلي نوم دی، رسول الله ﷺ په دغه وخت كي هغه د كنيت پر ځای په اصلي نامه سره مخاطب كړ .

داسي پرېوتل د دوږخيانو طريقه ده : په دې اړه دوه احتماله دي يو خو دا چي د ارشاد څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي په دنيا كي كفار او فاجران د داسي پرېوتلو عادي دي ، دوهم دا چي رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذريعه دې ته اشاره وفرمايل چي كفار او فاجران به په دوږخ كي په كوم هيئت وهل كيږي هغه به دغه هيئت وي يعني پړموخی .

===========

# بَابُ الْعُطَاسِ وَالتَّثَاؤُبِ

## (د ترچي او اررمی بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### اررمی ښه نه وي

﴿۴۵۲۶﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى ترچی خوښوي

الْعُطَاسَ وَيَكْرَهُ التَّثَاؤُبَ فَإِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ وَحَمِدَ اللَّهَ كَانَ حَقًّا عَلَى كُلِّ

او اررمی بد ګڼي ، په تاسو كي چي چا ته ترچی راسي او هغه الحمد لله ووايي نو د هر هغه

مُسْلِمٍ سَمِعَهُ أَنْ يَقُولَ لَهُ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ وَأَمَّا التَّثَاؤُبُ فَإِنَّمَا هُوَ مِنَ الشَّيْطَانِ

مسلمان چي ترچی واوري دا فرض دي چي په جواب كي ورته يرحمک الله ووايي، او اررمی د شيطان له طرفه څخه ده

فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرُدَّهُ مَا اسْتَطَاعَ فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا تَثَاءَبَ ضَحِكَ مِنْهُ

په تاسو كي چي چا ته اررمی راسي نو ترڅو چي ممكن وي هغه دي بنده كړي ځكه چي يو سړی

الشَّيْطَانُ. رواه البخاري وفي رواية للمسلم فان احدكم اذا قال ها ضحك الشيطان منه.

اررمی كوي نو شيطان پوري خاندي. بخاري، او د مسلم په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي كله په تاسو كي يو څوک ها كوي (يعني اررمی كاږي) نو شيطان ورپوري خاندي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۶۱۱، رقم: ۶۲۲۶،

**تشريح**: الله ﷻ ترچی خوښوي، مطلب دادی چي د ترچي په وجه د دماغ څخه بوج ليري كيږي او د فهم او ادراک د قوت تزكيه كيږي او دغه شی د طاعت او د زړه د حضور مرستيال جوړيږي ځكه نو ترچی غوره دی، ددې پر خلاف د اررمی راتلل د نفس د دروندوالي او د حواس د كدورت له وجه وي او دغه شي غفلت ، سستي او بدفهمي په طاعت او عبادت كي د عدم انشاط باعث جوړيږي ځكه د اررمی راتلل د شيطان د خوشحالی ذريعه ده، او له دې كبله د اررمی راتلل د شيطان اثر ګرځول سوی دی او ددې نسبت شيطان ته سوی دی ، ددې څخه معلومه سوه چي د الله تعالی ترچی خوښول او اررمی نه خوښول د هغه د نتيجې او ثمرې په اعتبار دي چي د ترچي په نتيجه كي په عبادت او طاعت كي نشاط او تازګي پيدا كيږي او د اررمی په نتيجه كي سستي پيدا كيږي .

د الله ﷻ تعريف وكړي: يعني كله چي ترچی راسي نو الحمدلله دي ووايي او كه رب العالمين ووايي نو غوره دي، او كه الحمدلله علی كل حال وويل سي نو ډېره غوره ده، په مصنف نامه كتاب كي ابن ابي شيبه رحمة الله عليه د حضرت علي رضي الله عنه څخه موقوفا دا نقل كړي دي چي كوم چا ته ترچی راسي او هغه داسي ووايي: الحمدلله رب العالمين علی كل حال، نو هغه به د زامي او غوږو په درد كي هيڅكله اخته نسي، څرګنده دي وي چي علماوو پر ترچي راتلو باندي

د الحمدلله ویلو دا حکمت بیان کړی دی چي ترچی په اصل کي د دماغ، روغتیا، او په طبیعت کي د نشاط او توانايي علامه ده او دغه شی د بدني روغتیا په اعتبار د الله تعالی یو ډېر لوی نعمت دی او ثرګنده ده چي د نعمت په ترلاسه کېدو باندي د الله تعالی تعریف کول ډېر مناسب کار دی.

## یرحمک الله ویل فرض دي که واجب؟

د حدیث دغه عبارت: پر هر مسلمان باندي حق دی چي هغه د ترچي کونکي په جواب کي یرحمک الله ووایي، دا په ثرګنده پر دې خبره دلالت کوي که چیري ترچي کونکی الحمدلله ووایي نو د هغه پر اورېدونکي مسلمان باندي دا فرض دي چي د هغه په جواب کي یرحمک الله ووایي، مګر په دې اړه د علماوو اختلافي اقوال دي، د حنفي مذهب په اعتبار زیات صحیح قول دادی چي په جواب کي یرحمک الله ویل واجب علی الکفایه دي، مطلب دادی که د ترچي کونکي حمد اورېدونکی تر یوه زیات خلک وي نو هلته په موجود ټولو خلکو کي د یوه سړي یرحمک الله ویل د ټولو د ذمې څخه د جواب وجوب ساقطوي، په یوه قول کي د هغه جواب ته مستحب ویل سوي دي، ددې پر خلاف د سفر السعادت مصنف دا لیکلي دي چي په دې اړه د منقول صحیح حدیثو ظاهري مفهوم دا ثرګندوي چي د ترچي کونکي په جواب کي یرحمک الله ویل پر اورېدونکي هر مسلمان باندي فرض دي او هلته په موجود خلکو کي د یوه جواب ورکول فرض دی او د ټولو د ذمي څخه نه ساقط کیږي،

د ځینو اکابرو علماوو د یو ډلي مذهب ددغه قول مطابق دی، د شوافعو مذهب دادی چي د ترچي کونکي جواب ورکول سنت علی الکفایه دی مګر غوره دادی چي په حاضرینو کي هر سړی په جواب کي یرحمک الله ووایي، د امام مالک رحمة الله علیه په مذهب کي اختلافي قولونه دي چي تر چي کونکي ته په جواب کي یرحمک الله ویل واجب دي که سنت، مګر پر دې باندي اتفاق دی چي دغه اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي ترچي کونکی الحمدلله ووایي او هغه حاضرین واوري، که ترچي کونکی الحمدلله ونه وایي نو هغه د جواب مستحق نه دی همدارنګه هغه الحمدلله ووایي مګر دومره کراریې ووایي چي بل څوک یې نه واوري نو په دغه صورت کي هم جواب ورکول یعني یرحمک الله ویل لازم نه دي، لفظ د سمعه چي په حدیث کي نقل سوی دی پر دې خبره دلالت کوي، او دغه حکم د سلام او ټولو فرض کفایه کارو لکه د ناروغ پوښتنه، د مړي کفن، دفن، د جنازې لمونځ او نورو شیانو هم دی.

په شرح السنه كي ليكلي دي چي دغه حديث پر دې دلالت كوي چي ترچي كونكى باندي الحمدلله په لوړ اواز وواييي ترڅو نورناست خلك يې واوري او د جواب مستحق سي .

## يرحمك الله ويونكى

﴿۴۵۲۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلْيَقُلْ لَهُ أَخُوهُ أَوْ صَاحِبُهُ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ فَإِذَا قَالَ لَهُ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ فَلْيَقُلْ يَهْدِيكُمُ اللّٰهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي يو چا ته ترچي راسي نو هغه دي الحمدلله وواييي او د هغه مسلمان ورور دي په جواب كي يرحمك الله وواييي نو ترچي كونكى دي په جواب كي يهديكم الله ويصلح بالكم (الله دي تا ته هدايت وكړي او ستا حال دي درست كړي) وايي . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۶۰۸، رقم: ۶۲۲۴.

**تشريح**: په : يهديكم الله، كي د مخاطب لپاره د جمع صيغه يا خو د غالب په اعتبار ده چي په عامه توګه ترچي كونكي سره څو خلك وي نو په ذكر سوې دعاء كي هغه ټول بايد شريك سي يا د مخاطب لپاره د جمع صيغه د تعظيم او تكريمه په توګه ده يا دا چي په دعاء كي د مخاطب په واسطه ټول امت مرحومه شاملول مراد كيږي .

## د الحمدلله نه ويونكى

﴿۴۵۲۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ عَطَسَ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَمَّتَ أَحَدَهُمَا وَلَمْ يُشَمِّتِ الْآخَرَ فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ شَمَّتَّ هٰذَا وَلَمْ تُشَمِّتْنِي قَالَ إِنَّ هٰذَا حَمِدَ اللّٰهَ وَلَمْ تَحْمَدِ اللّٰهَ. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په حضور دوو كسانو ته ترچي ورغلى ، رسول الله ﷺ يوه سړي ته جواب وركړ او بل ته يې ور نه كړ هغه وويل: اې د الله رسوله ! تاسو ده ته جواب وركړ او ما ته مو جواب نه راكړ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هغه سړي د خداى جل جلاله حمد وو ايه او تا ونه وايه . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۶۱۰، رقم: ۶۲۲۵، ومسلم ۴\ ۲۲۹۴، رقم: ۵۳- ۲۹۹۱.

**تشريح**: د حديث څخه معلومه سوه چي كوم څوك د ترچي څخه وروسته الحمد لله ونه وايي نو هغه ددې مستحق نه دی چي هغه ته د ترچي په جواب كي يرحمک الله وويل سي.

حضرت مكحول رحمة الله عليه وايي: يوه ورځ زه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه سره ناست وم چي يو سړي د مسجد په يوه كونج كي ترچی وكړ، حضرت ابن عمر رضي الله عنه چي د هغه د ترچي آواز واوريدی نو وه يې فرمايل: يرحمک الله ان كنت حمدت الله، يعني كه چيري تا د الله جل جلاله حمد كړی وي نو پر تا دي الله جل جلاله خپل رحمت نازل كړي.

شعبي رحمة الله عليه وايي: كه چيري يو څوک د دېوال د شا له خوا ترچي وكړي او د الحمد لله پلو آواز تا ته راسي نو هغه ته هم جواب وركړه يعني يرحمک الله ووايه.

﴿۴۵۲۹﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَحَمِدَ اللَّهَ فَشَمِّتُوهُ فَإِنْ لَمْ يَحْمَدُ اللَّهَ فَلَا تُشَمِّتُوهُ. رواه مسلم

د حضرت ابو موسى رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه واوريدل هر كله چي چا ته ترچی راسي او هغه الحمد لله ووايي نو تاسو په جواب كي ورته يرحمک الله وواياست او څوک چي په ترچي سره الحمد لله ونه وايي نو هغه ته جواب مه وركوئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۲۲۹۲، رقم: ۵۴- ۲۹۹۲.

## د ترچي ادبونه

﴿۴۵۳۰﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم وَعَطَسَ رَجُلٌ عِنْدَهُ فَقَالَ لَهُ يَرْحَمُكَ اللَّهُ ثُمَّ عَطَسَ أُخْرَى فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلُ مَزْكُومٌ. رواه مسلم وفي رواية للترمذي انه قال له في الثالثة انه مزكوم.

د حضرت سلمة بن اكوع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د نبئ كريم صلى الله عليه وسلم څخه يې اوريدلي وه چي يو سړي ته ترچی ورغلي نو رسول الله صلى الله عليه وسلم په جواب كي يرحمک الله وويل بيا دويم وار ورتا

ترچې ورغلی نو رسول الله ﷺ وفرمايل دا سړی زکام دئ . مسلم او د ترمذي په يوه روايت کي راځي چي رسول الله ﷺ د هغه سړي پر دريم ترچی وفرمايل چي دی زکام دئ .

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۲۲۹۲، رقم: ۵۵- ۲۹۹۳.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو چي دغه سړی زکام سوی دی ځکه په وار وار ترچی کوي او الحمدلله وايي، نو د هغه په جواب کي په وار وار د يرحمک الله ويلو ضرورت نسته ، ځرګنده دي وي چي د ابوداؤد او ترمذي په يو بل روايت کي دا فرمايل سوي دي چي کوم چا ته ترچی راځي او هغه الحمدلله وايي نو تر درو واره ترچي کولو پوري جواب ورکول کيږي او د دريم وار څخه وروسته اختيار دی که جواب ورکړي يا يې نه ورکړي .

د حديث خلاصه دا سوه که چيري يو سړي ته پرله پسې ترچي راځي نو د هغه په جواب کي تر درو وارو پوري يرحمک الله ويل واجب يا سنت مؤکده دي ، د دريم وار څخه وروسته د سکوت او جواب په مينځ کي اختيار دی که د درو واره څخه وروسته جواب نه ورکړي ، او که وغواړي د دريم وار وروسته دي هم جواب ورکړي چي مستحب دی ، يعني مقصد دادی چي د درو وارو څخه وروسته جواب ورکول ناجائز خبره نه ده مګر واجب او سنت مؤکده هم نه دي .

## د اريږمی په وخت کي

﴿۴۵۳۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا تَثَاوَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيُمْسِكْ بِيَدِهِ عَلَى فِيهِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ . رواه مسلم

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي په تاسو کي يو چا ته اريږمی راسي نو خپله خوله دي په لاس سره بنده کړي ځکه چي شيطان دده په خوله کي ننوزي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۲۲۹۳، رقم: ۵۷- ۲۹۹۵.

**تشريح**: په خوله کي د شيطان ننوتلو څخه مراد يا خو حقيقتا ننوتل دي يا دا مراد دی چي کوم څوک د اريږمی پر وخت خپله خوله بنده نه کړي نو شيطان پر هغه باندي په اثر کولو سره او د هغه په وسوسو او وهمو کي اخته کولو باندي قادر کيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ترچي په وخت کي

﴿۴۵۳۲﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا عَطَسَ غَطَّى وَجْهَهُ بِيَدِهِ أَوْ بِثَوْبِهِ وَغَضَّ بِهَا صَوْتَهُ. رواه الترمذي و ابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ ته ترچی راغلی نو مخ مبارک به يې په خپل لاس يا خپل جامې سره پټوی او د ترچی آواز به يې په کرار کړ. ترمذي ابوداؤد او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۸۰، رقم: ۲۷۴۵، وابوداود ۵\۲۸۷، رقم: ۵۰۲۹.

**تشريح**: د ترچي په وخت کي مخ پټول او په لوړ آواز سره ترچی نه کول د تهذيب علامه هم ده او اداب شريعت تقاضا هم ده، ځکه چي د ترچي په ذريعه په عامه توګه د دماغ فضله مواد او بلغم وغيره د پزي يا خولې څخه راوځي، او د دوهم ترچي پر وخت د مخ هيئت خراب سي ځکه نو مخ پټول پکار دي همدارنګه په زيات لوړ آواز سره د ترچي کولو په صورت کي ډېر ځله خلک راوېښ سي او هسي هم زيات لوړ آواز سره ترچی کول د طبيعت د سلامتيا او شخصي وقار خلاف ګڼل کيږي نو په کرار آواز سره ترچی کول د ادب څخه ګڼل کيږي ، علماوو ليکلي دي چي ترچي کونکي ته مستحب دي چي خپل ترچی په کرار آواز سره وساتي او الحمدلله په لوړ آواز سره ووايي چي خلک يې په اورېدو سره جواب ورکړي.

### د يرحمک الله ويونکي جواب

﴿۴۵۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا عَطَسَ

د حضرت ابو ايوب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي په تاسو کي چا ته

أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ الْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ وَلْيَقُلْ الَّذِي يَرُدُّ عَلَيْهِ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ وَلْيَقُلْ هُوَ يَهْدِيكُمُ اللّٰهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ. رواه الترمذي والدارمي.

ترچي راسي نو دا کلمات دي وايي الحمد لله علی کل حال (پر هر حال باندي الله تعالی ته تعريف دئ) او څوک چي دد ې جواب ورکوي هغه دي يرحمک الله ووايي او ترچي کونکی دي دا ووايي : يهديکم الله ويصلح بالکم . ترمذي او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۷۷، رقم: ۲۷۴۱، والدارمي ۲\۳۶۸، رقم: ۲۶۵۹.

## د يهودو د ترچي جواب

﴿۴۵۳۴﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ كَانَ الْيَهُودُ يَتَعَاطَسُونَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْجُونَ أَنْ يَقُولَ لَهُمْ يَرْحَمُكُمُ اللَّهُ فَيَقُولُ يَهْدِيكُمُ اللَّهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ. رواه الترمذي وابوداؤد.

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به د رسول الله ﷺ سره يهود وه او هغوی ته به ترچي راغلی نو په قصد سره به يې ترچي کوئ په د ې اميد چي رسول الله ﷺ ورته يرحمک الله ووايي مګر رسول الله ﷺ به د هغوی د ترچي په جواب کي يهديکم الله ويصلح بالکم ويل . ابوداؤد او ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۹۱، رقم: ۵۰۳۸، والترمذي ۵\۷۶، رقم: ۲۷۳۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د هغوی د ترچي په جواب کي يرحمک الله نه وايه، ځکه چي د الله تعالی رحمت يوازي د مؤمن لپاره خاص دی مګر رسول الله ﷺ به د هغوی د حال سره سم هغوی ته د هدايت او اصلاح دعاء کول .

## د ترچي په وخت کي سلام

﴿۴۵۳۵﴾: وَعَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ قَالَ كُنَّا مَعَ سَالِمِ بْنِ عُبَيْدٍ فَعَطَسَ رَجُلٌ

د هلال بن يساف رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د سالم بن عبيد رضي الله عنه سره وو چي يو سړي ترچي

مِنَ الْقَوْمِ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ فَقَالَ لَهُ سَالِمٌ وَعَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ فَكَأَنَّ

وکړ هغه د الحمد لله پر ځای السلام عليکم ووايي (په د ې خيال چي شايد دا هم صحيح وي) سالم رضي الله عنه د هغه سړي په جواب کي ووويل پر تا او ستا پر مور دي سلام وي ، هغه سړي خپل په

الرَّجُلَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ فَقَالَ أَمَا إِنِّي لَمْ أَقُلْ إِلَّا مَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

زړه كي دا الفاظ بد وګڼل، سالم ورته وويل په دې كي د بد منلو كومه خبره ده ما خو هغه الفاظ ويلي دي كوم چي رسول الله ﷺ فرمايلي وه

وَسَلَّمَ عَطَسَ رَجُلٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ

يعني يو سړى په ترچي كولو سره د رسول الله ﷺ ومخته السلام عليكم وويل

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ

نو نبي كريم ﷺ ورته په جواب كي وفرمايل پر تا او ستا پر مور دي سلام وي او ددې وروسته نبي كريم ﷺ فرمايلي وه هر كله چي څوک ترچي وكړي نو هغه دي

الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ وَلْيَقُلْ لَهُ مَنْ يَرُدُّ عَلَيْهِ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ وَلْيَقُلْ يَغْفِرُ اللّٰهُ لَنَا وَلَكُمْ. رواه الترمذي وابوداؤد.

الحمد لله رب العالمين وايي او څوک چي جواب وركوي هغه دي ورته يرحمک الله ووايي او بيا دي ترچي كونكى د هغه په جواب كي يغفر الله لي ولكم ووايي. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ٥\٢٨٨، رقم: ٥٠٣١، والترمذي ٥\٧٦، رقم: ٢٧٣٩.

**تشريح**: مطلب دادى چي د ترچي په راتلو باندي الحمد لله يا الحمد لله رب العالمين ويل پكار دي، په دغه وخت كي حاضرينو ته د سلام كولو څه معنى ده او نه ددې هيڅ اصل سته.

ځينو حضراتو ليكلي دي چي د يرحمک الله وينكي په جواب كي ترچي كونكي ته يغفر الله لي ولكم سره يهديكم الله ويصلح بالكم هم ويل غوره دي.

د حديث څخه معلومه سوه كه چيري ترچي كونكى د الحمد لله پر ځاى بل لفظ ووايي نو هغه د جواب مستحق نه دى، همدا وجه ده چي رسول الله ﷺ هغه سړي ته د ترچي په جواب كي يرحمک الله ونه فرمايل مګر هغه سړى رسول الله ﷺ ته سلام وكړ نو رسول الله ﷺ د سلام جواب وركړ، پاته سوه دا خبره چي رسول الله ﷺ د سلام په جواب كي وعلى امک (او ستا پر مور دي سلام وي) الفاظ ولي وفرمايل، نو دا په اصل كي رسول الله ﷺ د دغه الفاظو په ذريعه دوو خبرو ته اشاره وفرمايل، يو خو دا چي په دغه وخت كي سلام كول بې ځايه دى او دا داسي

ده لکه یو سړی سلام کول غواړي مګر هغه داسي ووايي چي پر تا او ستا پر مور دي سلام وي، دوهمه خبره دا ده چي د يوه لفظ او کلام بې محله او بې موقع استعمالول خپل ځان د علم او تربيت څخه بې خبره ثابتول دي او ددې خبري اظهار کول دي چي زه د هغه سړي په ډول يم چي د يو هوښيار سړي د تربيت څخه محروم او محض د مور د غير موزون تربيت حامل وي، او د هغه په زړه او دماغ د ښځينو ماحول او طريقو اثر وي، علماوو دا هم ليکلي دي چي ددغه الفاظو په ذريعه د هغه سړي ناپوهي ښکاره سوې ده چي په هغه کي د مور د اوصافو د سرايت کولو په وجه پيدا سوې ده، په دې اعتبار سره هغه دخپل مور په حق کي د رسول الله ﷺ د دعاء محتاج وو، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: ستا سره دي ستا پر مور هم سلامتيا وي چي الله تعالی هغه د عقل په دولت ونازوي او د ناپوهی د فتنې څخه يې خوندي کړي.

## درې واره د ترچي جواب

﴿۴۵۳۶﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ رِفَاعَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تُشَمِّتُ الْعَاطِسَ ثَلَاثًا فلما زَادَ فَإِنْ شِئْتَ فَشَمِّتْهُ وَإِنْ شِئْتَ فَلاَ. رواه ابوداؤد والترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت عبيد بن رفاعه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ترچی کونکي ته درې واره جواب ورکوئ ددې څخه وروسته که ترچي ورته راسي نو خوښه ستا ده که جواب ورکوئ او که يې نه ورکوئ. ابوداؤد او ترمذي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۹۱، رقم: ۵۰۳۶، والترمذي ۵\ ۷۹، رقم: ۲۷۴۴.

﴿۴۵۳۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ شَمِّتْ أَخَاكَ ثَلَاثًا فَمَا زَادَ فَهُوَ زُكَامٌ. رواه ابوداؤد و قال لا اعلمه الا انه رفع الحديث الى النبي ﷺ.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د خپل مسلمان ورور لپاره تر درو وارو پوري د ترچي جواب ورکوئ ددې څخه زيات که ترچي ورته راسي نو بيا هغه زکام دئ، ابوداؤد او وايي چي پر ته ددې څخه ما ته نور معلومات نسته چي دا حديث يې رسول الله ﷺ ته مرفوع کړی دئ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۹۱، رقم: ۵۰۳۴.

**تشریح**: د امام ابوداؤد رحمة الله علیه د عبارت مطلب دادی چي دغه حدیث د حضرت ابوهریره رضي الله عنه خپل قول نه دی بلکه د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي ابوهریره رضي الله عنه نقل کړی دی او که چیري دغه حدیث ته حدیث موقوف یعني د ابوهریره رضي الله عنه قول وویل سي نو بیا به هم دغه روایت د حدیث موفوع یعني د رسول الله ﷺ د ارشاد په حکم کي وي ځکه چي حضرت ابوهریره رضي الله عنه د درو د شمېر تعین د شارع علیه السلام د اورېدو څخه پرته نسو کولای.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د ترچي صحیح جواب

﴿۴۵۳۸﴾: عَنْ نَافِعٍ أَنَّ رَجُلًا عَطَسَ إِلَى جَنْبِ ابْنِ عُمَرَ فَقَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د ابن عمر رضي الله عنه په څنګ کي یو سړي ترچی وکړ او بیا یې وویل الحمد لله

وَالسَّلَامُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَأَنَا أَقُولُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَالسَّلَامُ عَلَى

والسلام علی رسول الله، ابن عمر رضي الله عنه ددې په جواب کي وویل او زه هم وایم الحمد لله والسلام

رَسُولِ اللّٰهِ وَلَيْسَ هٰكَذَا عَلَّمَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَقُولَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

علی رسول الله مګر موږ ته رسول الله ﷺ داسي ښودنه نه ده کړې، رسول الله ﷺ موږ ته داسي ښودلي دي هر کله چي چا ته ترچی راسي نو الحمد لله علی کل حال دي ووایي. ترمذي او وایي چي دا حدیث غریب دئ.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۷٦، رقم: ۲۷۳۸.

======

# بَابُ الضِّحْكِ (د خندا بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول ﷺ تبسم

﴿۴۵۳۹﴾: عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَجْمِعًا ضَاحِكًا حَتّٰى أَرٰى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ. رواه البخاري

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چي ما هيڅکله رسول الله ﷺ په داسي خندا کولو نه دی ليدلی چي د رسول الله ﷺ خوله مبارکه خلاصه سوې وي او حلق مبارک يې ښکاره سوی وي بلکه رسول الله ﷺ به تبسم کوئ. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۰۴، رقم: ۶۰۹۲.

**د لغاتو حل**: لهواته: جمع اللهاة، وهي اللحمات في سقف اقصى الفم مشرفة على الحلق.

﴿۴۵۴۰﴾: وَعَنْ جَرِيرٍ قَالَ مَا حَجَبَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْذُ أَسْلَمْتُ وَلَا رَآنِي إِلَّا تَبَسَّمَ. متفق عليه.

د حضرت جرير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د کوم وخت څخه زه مسلمان سوی يم رسول الله ﷺ په هيڅ حال کي زه هغوی ته د ورتلو څخه منع کړی نه يم او کله چي به رسول الله ﷺ ما ته کتل نو تبسم به يې کوئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۰۴، رقم: ۶۰۸۹، ومسلم ۴\۱۹۲۵، رقم: ۱۳۴-۲۴۷۵.

**تشريح**: زه يې نه يم منع کړی: ددې مقصد دادی چي رسول الله ﷺ هيڅکله زه د راتللو څخه نه يم منع کړی، ما چي به کله غوښتل نو د رسول الله ﷺ په خدمت کي به حاضرېدم، که څه هم هغه به يو خاص مجلس وو، په شرط ددې چي د نارينو مجلس به وو، يا دا مراد دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه يو شی غوښتی دی او رسول الله ﷺ د هغه د راکولو څخه انکار کړی وي، کله چي به ما د رسول الله ﷺ څخه غوښتل نو هغه به ما ته راکول.

## د صحابه كرامو خندل

﴿۴۵۴۱﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقُومُ مِنْ مُصَلَّاهُ الَّذِي يُصَلِّي فِيهِ الصُّبْحَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَإِذَا طَلَعَتْ الشَّمْسُ قَامَ وَكَانُوا يَتَحَدَّثُونَ فَيَأْخُذُونَ فِي أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ فَيَضْحَكُونَ وَيَتَبَسَّمُ ﷺ. رواه مسلم وفي رواية للترمذي يتناشدون الشعر.

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به چي په كوم ځاى كي د سهار لمونځ وكړ نو تر هغه وخته پوري به د هغه ځاى څخه نه ولاړيدئ تر څو پوري چي به لمر بنه ځلانده سوى نه وو كله چي به لمر راوختئ نو رسول الله ﷺ به ولاړ سو او صحابه كرامو به په خپل منځ كي خبري كولې او د جاهليت د زمانې حالات به يې بيانول او خندل به يې او رسول الله ﷺ به تبسم كاوه . مسلم او د ترمذي په روايت كي دي چي صحابه كرامو به شعرونه ويل .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۱۸۱۰، رقم: ۶۹– ۲۳۲۲، والترمذي ۵\۱۲۸، رقم: ۲۸۵۰.

**تشريح**: د اشعارو څخه مراد هغه اشعار دي چي هغه د توحيد، رسالت او ترهيب پر مضامينو باندي مشتمل وه . ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د جاهليت زمانې خبري كول او پر هغو خندل جائز دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### زيات تبسم كونكى

﴿۴۵۴۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ قَالَ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ تَبَسُّمًا مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه الترمذي.

د حضرت عبدالله بن حارث بن حزء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما تر رسول لله ﷺ زيات تبسم كونكى هيڅوك نه دى ليدلى . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۶۱، رقم: ۳۶۴۲،

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د صحابه كرامو تبسم

﴿۴۵۴۳﴾: عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ هَلْ كَانَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت قتادة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د ابن عمر رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول ايا د رسول الله ﷺ

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُوْنَ ؟ قَالَ نَعَمْ وَالْإِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِهِمْ أَعْظَمُ مِنَ

اصحابو به خندل؟ هغه ورته وويل هو او د هغوی په زړونو كي تر غره هم لوی ايمان وو ،

الْجَبَلِ وَقَالَ بِلَالُ بْنُ سَعْدٍ أَدْرَكْتُهُمْ يَشْتَدُّوْنَ بَيْنَ الْأَغْرَاضِ وَيَضْحَكُ بَعْضُهُمْ إِلٰى بَعْضٍ فَإِذَا كَانَ اللَّيْلُ كَانُوْا رُهْبَانًا . رواه في شرح السنة.

بلال بن سعد رضي الله عنه وايي ما صحابه كرام د غشي نښي ته په منډه ليدلي دي په داسي حال كي چي يو بل يې خندول مگر كله چي به شپه سول نو زهد (د خدای ﷻ عبادت) به يې كوی . شرح السنة.

**تخريج**: رواه البغوي في شرح السنة ۱۲\۳۱۸، رقم: ۳۳۵۱.

**تشريح**: حال دا چي د هغوی په زړو كي تر غره لوی ايمان وو: دلته دا اشاره ده چي كله به د خندا وخت وو نو هغوی به خندل مگر داسي به يې نه خندل لكه څرنگه چي غافل او شتمن خلك خاندي ځكه چي داسي خندا چي تر حد زياته وي زړه غافل كوي او په نور ايمان كي خلل اچوي، صحابه كرامو به د خندا په حالت كي هم د شرعي ادابو لمن د لاس څخه نه ايله كول او خپل ايمان به يې پر كامله درجه ساتی .

نو هغوی به د الله ﷻ څخه ډېر زيات بېرېدونكي وه: مطلب دادی چي كله به شپه راغله نو صحابه كرام به د دنيا ټول كار او ارام پرېښود او په عبادت كي به بوخت سول او د الله ﷻ د بيري د غلبې څخه به يې ژړاوي كولې او په مناجات او التجاء كي به بوخت وه .

==========

# بَابُ الْاَسَامِيْ (دنوم ايښودلو بيان)

په دغه باب کي هغه حديثونه نقل کيږي چي د هغو څخه د نومانو احکام څرګنديږي او دا معلوميږي چي بايد څرنګه نوم کښېښودل سي، کوم نومونه ښه دي او کوم نومونه خراب دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول ﷺ کنيت پر ځان مه ايږدئ

﴿٤٥٤٤﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السُّوقِ فَقَالَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په بازار کي وو چي يو سړي وويل:

رَجُلٌ يَا أَبَا الْقَاسِمِ فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّمَا دَعَوْتُ

اې اباالقاسم، رسول الله ﷺ هغه سړي ته وکتل، هغه وويل ما تاسو ته آواز نه دی کړی هغه بل سړي ته مي آواز کړی دی،

هٰذَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوا بِاسْمِي وَلَا تَكَنَّوْا بِكُنْيَتِي. متفق عليه

رسول الله ﷺ و فرمايل زما په نامه خپل نوم ايږدئ مګر زما په کنيت خپل کنيت مه ايږدئ. بخاري او مسلم. کنيت هغه نامه ته وايي چي د پلار، مور، لور يا زوی ته منسوب وي لکه ابو القاسم د قاسم پلار چي د رسول الله ﷺ کنيت دئ.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٤\ ٣٣٩، رقم: ٢١٢٠، ومسلم ٣ ١٦٨٢، رقم: ١- ٢١٣١.

﴿٤٥٤٥﴾: وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَمُّوا بِاسْمِي وَلَا تَكَنَّوْا بِكُنْيَتِي فَإِنِّي إِنَّمَا جُعِلْتُ قَاسِمًا أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ. متفق عليه.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما په نامه خپل نوم ايږدئ مګر زما په کنيت خپل کنيت مه ايږدئ ځکه چي زه قاسم (ويشونکی) جوړ کړل سوی يم چي په تاسو کي ويش کوم. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢١٧، رقم: ٣١١۴، ومسلم ٣\١٦٨٣، رقم: ۴- ٢١٣٣.

**تشريح**: کُنيت دې ته وايي چي يو سړی د خپل ذات نسبت پلار يا زوی ته په کولو سره خپل ځان په هغه مشهور او معروف کړي لکه ابن فلان يا ابو فلان، يعني د فلاني زوی يا د فلاني پلار، يا داسي هم ويل کيږي چي کنيت هغه نامه ته وايي چي د پلار، زوی، لور او مور سره اړوند ويل کيږي.

او زه ستاسو په مينځ کي وېش کوم : ددې مطلب دادی چي الله تعالی ما ته کوم علم او حکمت، ديني احکام او مسائل او دنيوي مال لکه د غنيمت مال وغيره راکوي نو زه هغه د مسلمانانو په مينځ کي ويشم، ددې څخه مراد دادی چي زه د الله ﷻ نېکو بندګانو ته د جَنّت او د نورو نعمتونو زيری ورکوم او بدکاره خلک د دوږخ څخه بېروم، نو دغه صفت په تاسو کي موجود نه دی او تاسو په دې فائز نه ياست، ځکه تاسو زما د کنيت اختيارولو مجاز نه لرئ، البته خپل نوم يا دخپل اولاد نوم لفظا او صورتا زما په نامه اېښولای سئ، خلاصه دا چي زه محض په دې وجه ابو القاسم نه يم چي زما د زوی نوم قاسم دی بلکه په ما کي د قاسميت د معنی لحاظ هم اېښودل سوی دی، په دې اعتبار چي زه د ديني او دنيوي چارو وېشونکی ګرځول سوی يم، کله چي زه د ذات په اعتبار او د صفاتو په اعتبار ستاسو په ډول نه يم نو تاسو زما کنيت ولي اېږدئ بلکه د هغه وصف د مالک به وي لکه چا ته چي ابو الفضل ويل کيږي حال دا چي د هغه د زوی نوم فضل نه وي.

ځيني حضرات وايي چي د رسول الله ﷺ د کنيت اېښودو منع د رسول الله ﷺ د زمانې سره خاص وه چي د تخاطب په وخت کي د نبي کريم ﷺ او نورو خلکو په مينځ کي د اشتباه صورت پيدا نسي لکه څرنګه چي ملا علي قاري رحمه الله ليکلي او دغه قول صحيح دی.

شيخ عبد الحق محدث دهلوي رحمه الله وايي: ددغه دواړو حديثو څخه دا څرګنديږي چي د محمد نوم اېښودل جائز دي مګر د ابو القاسم کنيت اېښودل جائز نه دي که څه هم داسي صورت وي چي د يو چا نوم محمد وي او هغه خپل کنيت ابو القاسم اېښودل غواړي او که داسي صورت چي بل نوم يې وي او محض کنيت د ابو القاسم ايږدي، خلاصه دا چي د هيچا لپاره دا جائز نه ده چي هغه خپل کنيت ابو القاسم کښېږدي که څه هم د هغه نوم محمد وي يا بل څه وي، د امام شافعي رحمه الله او اصحاب ظواهرو دا قول دی او هغوی ددغه حديثونو څخه استدلال کوي، دوهم قول د محمد شيباني رحمه الله دی او هغه دادی چي د نامه او کينت يو ځای صحيح نه دي يعني د چا نوم چي محمد وي هغه دي خپل کنيت ابو القاسم نه ايږدي مګر که چيري د چا نوم محمد نه وي نو هغه ته په ابو القاسم ويل جائز دي، د دوی په نزد ددغه حديثو مطلب دادی چي

يو سړی دي د خپل ذات لپاره دغه نوم او کنيت يو ځای نه اختياروي .
دريم قول دادی چي دواړه جمع کېدل هم جائز دي يعني د چا نوم چي محمد وي هغه هم خپل کنيت ابو القاسم اېښودلای سي ، ددغه قول نسبت امام مالک رحمة الله عليه ته کيږي ، د دوی وينا ده چي په کومو حديثو کي ددغه منع نقل سوې ده هغه منسوخ دي ، يو ډله وايي چي ددغه منع تعلق د رسول الله ﷺ د زمانې سره وو ، د رسول الله ﷺ څخه وروسته دا جائز دی ، ددغه ډلي دليل د حضرت علي رضي الله عنه دغه حديث دی چي کله هغه رسول الله ﷺ ته وويل: که ستاسو څخه وروسته زما زوی پيدا سي نو زه به د هغه نوم او کنيت ستاسو د نامه او کنيت په ډول اېږدم، رسول الله ﷺ اجازه ورکړه، نو حضرت محمد بن الحنيفة چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته پيدا سوی وو ، حضرت علي رضي الله عنه د هغه کنيت ابو القاسم کښېښود ، يو بله ډله چي د هغوی قول د باور وړ نه دی وايي چي يو چا ته د رسول الله ﷺ نوم اېښودل هم جائز نه دي .
د ذکر سوو قولو په رڼا کي کوم قول چي تر ټولو زيات صحيح او د حنفي مذهب مطابق دی هغه دادی چي د رسول الله ﷺ نوم اېښودل خو جائز دي بلکه مستحب دي مګر د رسول الله ﷺ کنيت اېښودل که څه هم ددې تعلق د رسول الله ﷺ څخه وروسته وي منع دی تر څو چي د حضرت علي رضي الله عنه په اړه منقول دي نو دا د هغه سره يو خاص معامله وه لکه څرنګه چي د حديث د سياق څخه څرګنديږي ، نو د هغه څخه پرته د بل چا لپاره دا جائز نه دي چي هغه د رسول الله ﷺ کنيت پر خپل ځان کښيږدي ، ددې تائيد د ابن عساکر رحمة الله عليه ددغه روايت څخه هم کيږي چي په جمع الجوامع کي د حضرت علي رضي الله عنه څخه نقل سوي دي چي يوه ورځ پر دغه مسئله باندي د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت طلحه رضي الله عنه په مينځ کي خبري وسوې، نو حضرت طلحه رضي الله عنه ، حضرت علي رضي الله عنه ته وويل: تاسو د خپل زوی نوم د رسول الله ﷺ په نامه محمد اېښی دی او د هغه کنيت دي هم د رسول الله ﷺ پر کنيت (ابو القاسم) اېښی دی حال دا چي رسول الله ﷺ د دواړو جمع کولو څخه منع فرمايلې ده، حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل: معاذ الله، څوک د الله تعالی او د هغه د رسول پر خلاف د عمل کولو جرئت کولای سي، بيا حضرت علي رضي الله عنه يو څو قريشي صحابه کرام را وغوښتل او هغوی ټولو شاهدي ورکړه چي رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته اجازه ورکړې وه چي هغه د رسول الله ﷺ څخه وروسته د خپل زوی نوم او کنيت د رسول الله ﷺ په نامه او کنيت کښيږدي .

## عبدالله او عبدالرحمان

﴿۴۵۴۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحَبَّ أَسْمَائِكُمْ إِلَى اللّٰهِ عَبْدُ اللّٰهِ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ. رواه مسلم.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د الله تعالى په نزد ستاسو په نومونو کي غوره نوم عبدالله او عبدالرحمن دئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۶۸۲\۳، رقم: ۲- ۲۱۳۲.

**تشريح**: ځينو حضراتو ويلي دي چي ددغه ارشاد څخه مراد دادی چي دغه دواړه نومونه يعني عبدالله او عبدالرحمن د انبياء عليهم السلام د نومانو څخه وروسته زيات غوره دي، په دې اعتبار سره ويل کيږي چي دغه دواړه نومونه د محمد د نامه څخه زيات غوره نه دي بلکه په غوره والي کي د دواړو درجه يا خو د محمد دنامه څخه کمه ده او يا برابره ده.

## يو څو منع نومونه

﴿۴۵۴۷﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

لَا تُسَمِّيَنَّ غُلَامَكَ يَسَارًا وَلَا رَبَاحًا وَلَا نَجِيحًا وَلَا أَفْلَحَ فَإِنَّكَ تَقُولُ أَثَمَّ هُوَ

د خپل غلام نوم يسار، رباح، نجيح، او افلح مه ايږدئ ځکه چي تاسو د هغه په نامه سره هغه ته

فَلَا يَكُونُ فَيَقُولُ لَا ، رواه مسلم و في رواية له قَالَ لَا تُسَمِّ غُلَامَكَ رَبَاحًا وَلَا يَسَارًا وَلَا أَفْلَحَ وَلَا نَافِعًا.

آواز کړئ او هغه موجود نه وي نو وه به ويل سي چي هغه نسته ، (يعني مثلا تاسو د ايسار په نامه اخيستلو سره آواز کړئ او دا وويل سي چي هغه نه سته نو ددې مفهوم به دا وي چي په کور کي پراخي او اساني نه سته او دا بده خبره ده) .مسلم او د مسلم په يوه بل روايت کي دا الفاظ دي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل : د خپل غلام نوم رباح، يسار، افلح او نافع مه ايږدي. رباح معنی ګټه، نجيح معنی مطلب ته رسيدونکی ، افلح معنی بری موندونکی .

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۸۵، رقم: ۱۲- ۲۱۳۷.

**تشريح**: يسار د يسر څخه دی چي معنی يې د پراخۍ ده، رباح د ربح څخه دی چي معنی يې د ګټې او فائدې ده، نجيح د نجح څخه دی چي معنی يې د بريالیتوب ده، افلح د فلاح څخه دی چي معنی يې د کاميابۍ او خلاصون ده، نافع د نفع څخه دی چي معنی يې د ګټې ده.

د حديث مطلب دادی چي داسي نوم ايښودل منع دی ځکه د مثال په توګه که چيري د يو سړي نوم يسار کښېښودل سي او يو وخت د کورنۍ والا څخه پوښتنه وکړل سي چي دلته يسار سته ؟ او د کورنۍ خلک جواب ورکړي چي په کور کي يسار نسته نو که څه هم په دغه صورت کي متعين ذات مراد دی مګر د لفظ يسار د حقيقي معنی په اعتبار به دا مفهوم وي چي په دغه کور کي پراخي نسته او داسي ويل خرابه خبره ده، پر همدغه باندي نور ذکر سوي الفاظ هم قياس کيدای سي.

د مسلم په يوه روايت کي د نجيح پر ځای د نافع ذکر دی، ددې څخه معلومه سوه چي د ذکر سوي منع تعلق محض ددغه نومانو سره نه دی بلکه هغه نور نومونه هم ددغه الفاظو په معنی کي همدغه حکم لري.

امام نووي رحمة الله عليه وايي: زموږ علماؤ ويلي دي چي داسي نومونه ايښودل مکروه تنزيهي ده نه مکروه تحريمي.

﴿۴۵۴۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْهَى عَنْ أَنْ يُسَمَّى بِيَعْلَى وَبِبَرَكَةَ وَبِأَفْلَحَ وَبِيَسَارٍ وَبِنَافِعٍ وَبِنَحْوِ ذٰلِكَ ثُمَّ رَأَيْتُهُ سَكَتَ بَعْدُ عَنْهَا ثُمَّ قُبِضَ وَلَمْ يَنْهَ عَنْ ذٰلِكَ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم ﷺ اراده وکړه چي خلک د يعلي، برکت، افلح، يسار او نافع او ددې په مثل نومونو ايښودلو څخه منع کړي بيا ما وليدل چي رسول الله ﷺ ددې اراده څخه پټه خوله پاته سو او ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفات سو او رسول الله ﷺ ددغه نومو ايښودو څخه منع نه وفرمايل. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۶۸۶، رقم: ۱۳- ۲۱۳۸.

**تشريح**: ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د ذکر سوو نومونو ايښودو منع نافذ سوې نه ده، حال دا چي مخکني حديث د منع پر نفاذ باندي په ښکاره دلالت کوي، ددغه تضاد ليري کولو

لپاره يحيى رحمة الله عليه وايي چي د حضرت جابر رضي الله عنه د منع علامه لېدل او هغه شی هم اورېدل چي منع ته اشاره کوي هغه د منع حکم په صريح توګه نه وو اوريدلی ځکه هغه دغه مسئله په ذکر سوي طرز بيان کړل، مګر دغه منع د صحيح حديث څخه ثابت سوې ده ځکه نو دا ويل کيږي چي منع ثابت ده ، ددې څخه پرته ملا علي قاري رحمة الله عليه وايي چي زما په نزد ددغه تضاد ليري کولو لپاره يو بل تاويل دی هغه دا چي د رسول الله ﷺ د ارادې تعلق په اصل کي د هغه منع د نهي تحريمي په توګه نافذ کولو نه وو مګر ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د امت په اړه د سانۍ او نرمۍ په خيال ساتلو سره سکوت وفرمايه ځکه چي رسول الله ﷺ پوهېدی چي د نومانو مسئله داسي ده چي هغه ته زيات خلک توجه نه کوي او د ښه او بد نومانو د فرق کولو پابند به نه وي او د هغه نتيجه به دا وي چي ددې په وجه به د امت خلک په ديني تاوان کي اخته سي ، نو ويل کيږي چي د کوم روايت څخه د منع عدم نفاذ ثابتيږي د هغه تعلق د نهي تحريمي سره دی او په حقيقت کي دا مسئله هم ده چي ذکر سوی نوم ايښودل مکروه تنزيهي دی او مکروه تحريمي نه دی.

**شهنشاه**

﴿۴۵۴۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْنَى

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : بدترين

الْأَسْمَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِنْدَ اللَّهِ رَجُلٌ تَسَمَّى مَلِكَ الْأَمْلَاكِ .رواه البخاري

نوم به د قيامت په ورځ د الله تعالى په نزد د هغه سړي نوم وي چي هغه ته شهنشاه ويل کيږي (يعني د يو چا نوم چي شهنشاه وي). بخاري

وفي رواية مسلم قَالَ أَغْيَظُ رَجُلٍ عَلَى اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَخْبَثُهُ وَأَغْيَظُهُ رَجُلٍ كَانَ يُسَمَّى مَلِكَ الْأَمْلَاكِ لَا مَلِكَ إِلَّا اللَّهُ.

او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي د قيامت په ورځ به مبغوض ترين خلک د الله جل جلاله په نزد هغه وي چي د هغه نوم شهنشاه وي (دا نوم که د يو عام سړي او که د يو پاچا ښه نه دئ) د الله تعالى څخه پرته بل هيڅوک حقيقي پاچا نسته .مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۵۸۸، رقم: ۶۲۰۶، ومسلم ۱۳\ ۱۶۸۸، رقم: ۲۰- ۲۱۴۳.

**د لغاتو حل**: اخنى: اى اقبحها (بد يې کنم)

**تشریح**: مطلب دادی چي د الله ﷻ څخه پرته بل حقیقي پاچا نسته نو بیا شهنشاه یعني د پاچاهانو پاچا یو چا ته ویل به څرنګه وي، شهنشاه یو داسي وصف دی چي یوازي د الله تعالی سره خاص دی چي په دغه وصف کي د یو مخلوق د شریک کېدو وهم او ګمان هم نسي کیدای.

## د نفس تعریف

﴿۴۵۵۰﴾: وَعَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ قَالَتْ سُمِّيتُ بَرَّةَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ اللّٰهُ أَعْلَمُ بِأَهْلِ الْبِرِّ مِنْكُمْ فَقَالُوا بِمَ نُسَمِّيهَا قَالَ سَمُّوهَا زَيْنَبَ. رواه مسلم.

د حضرت زینب بنت ابو ﷺ څخه روایت دئ چي زما نوم بره (نیکه) کښېښنودل سو، رسول الله ﷺ وفرمایل د خپل ځان تعریف مه کوه د نیکۍ خاوندان الله ﷻ ښه پیژني ددې نوم زینب کښېږدئ. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۶۸۷، رقم: ۱۹- ۲۱۴۲.

**تشریح**: ددغه حدیث څخه معلومه سوه چي داسي نوم باید نه کښېښنودل سي چي د هغه لفظي مفهوم څخه د نفس تعریف ظاهرېږي ځکه چي ددې په وجه په نفس کي لویي پیدا کیږي.

﴿۴۵۵۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَتْ جُوَيْرِيَةُ اسْمُهَا بَرَّةُ فَحَوَّلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْمَهَا جُوَيْرِيَةَ وَكَانَ يَكْرَهُ أَنْ يُقَالَ خَرَجَ مِنْ عِنْدَ بَرَّةَ. رواه مسلم.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ د بي بي جویریه نوم بَرّه وو، رسول الله ﷺ د هغې نوم بدل کړ او جویریه نوم یې پر کښېښنودئ ځکه چي رسول الله ﷺ دا خبره بده ګڼل چي څوک ورته دا ووایي چي تاسو د بره (نیکۍ) څخه ووتلاست. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۳\۱۶۸۷، رقم: ۱۶- ۴۱۴۰.

**تشریح**: د بره معنی د نیکانو ده، ددغه لفظ د اصل معنی په اعتبار یې خوښ نه کړ، کله چي د بره د کور څخه ووځي ځکه چي د نیکانو څخه وتل ښه خبره نه ګڼل کیږي، وکان یکره...الخ: په

دې اړه دا معلومیږي چي د حضرت ابن عباس رضي الله عنه قول دی مګر دا هم کیدای سي چي د خپل ذکر سوي ناخوښي په اړه خپله رسول الله ﷺ د دغه الفاظو په ذریعه خبر ورکړی وي ، څرګنده دي وي چي په دغه حدیث کي د بره اېښودو د منع سبب ذکر سوې ناخوښي ګرځول سوې ده ، حال دا چي د بي بي زینب رضي الله عنها په اړه د دغه منع سبب د نفس تزکیه ګرځول سوې ده مګر په دواړو کي څه تضاد نسته ، ځکه چي د اسبابو په مینځ کي مزاحمت نه وي ، د یوه شي دوه مختلف سببونه کیدلای سي د کومو دوو شیانو چي ذکر سوی دی هغه دواړه د مذکوره منع د سبب صلاحیت لري ، ددې څخه پرته داهم کیدای سي چي د زینب کورنۍ او قبیلې د خلکو څخه د معلومولو څخه وروسته دا څرګنده سوې وي چي هغوی د زینب نوم بره واقعتا د هغې د نفس د تعریف او مدح په قصد سره ایښی وي حال دا چي د بي بي جویریه رضي الله عنها په اړه دا خبره نه ده ځکه د زینب په اړه د منع سبب د نفس تزکیه وګرځول سول او د جویریه په اړه د منع سبب د رسول الله ﷺ د بره څخه د وتلو ویل نه خوښول وګرځول سول، او دا خبره هم ده چي ازواج مطهرات ته د رسول الله ﷺ د تلو او راتلو په اړه په عامه توګه داسي ویل کېدل چي رسول الله ﷺ فلانۍ بي بي ته تشریف وړی دی یا رسول الله ﷺ د فلانۍ بي بي څخه وتلی دی او دا هم کیدای سي چي څرنګه یسار، نجیح وغیره د نومونو په اړه د بدفالۍ اعتبار کیږي همدارنګه د بره په اړه هم دا اعتبار وي او څرنګه چي د بره په اړه د تزکیې او کراهت اعتبار سوی دی همدارنګه د یسار او نجیح په اړه هم ددې اعتبار وي.

## ښه نومان ایږدئ

﴿۴۵۵۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ ابْنَتًا لِعُمَرَ كَانَتْ يُقَالُ لَهَا عَاصِيَةُ فَسَمَّاهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمِيلَةَ. رواه مسلم.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د حضرت عمر رضي الله عنه د یوې لور نوم عاصیه (ګناه کاره) وو، رسول الله ﷺ د هغې نوم بدل کړ او جمیله نوم یې پر کښېښودئ. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\ ۱۶۸۷، رقم: ۱۵- ۲۱۳۹.

**تشریح**: د جاهلیت په زمانه کي د عربو دا رواج وو چي هغوی به د خپلو کوچنیانو نوم عاصي یا عاصیه ایښودل، د عاصي لفظي معنی د نافرمان ، سرکښ او متکبر ده، چي د الله جل جلاله او د هغه د دین مخالف دي، د اسلام د زمانې څخه وروسته رسول الله ﷺ داسي نومونه ایښودل

ناخوبنه کړل ، او د چا نوم چي عاصي يا عاصيه وو هغه به يې بدل کړل او نور نومونه يې پر کښېښودل، ددې څخه معلومه سوه چي د خراب نوم بدلول مستحب دي .

﴿۴۵۵۳﴾: وَعَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ قَالَ أُتِيَ بِالْمُنْذِرِ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ وُلِدَ فَوَضَعَهُ عَلَى فَخِذِهِ فَقَالَ مَا اسْمُهُ قَالَ فُلَانٌ قَالَ وَلَكِنْ أَسْمِهِ الْمُنْذِرَ. متفق عليه.

د حضرت سهل ابن سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله منذر بن ابو اسيد رضي الله عنه پيدا سو نو د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، رسول الله ﷺ هغه پر خپل زنګانه مبارک کښېنوئ او پوښتنه يې وکړه دده نوم څه دئ ؟په جواب کي ورته وويل سوه دده نوم فلانی دئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل دا نه بلکه دده نوم منذر دئ (منذر معنی د الله جل جلاله د احکامو رسونکی او د الله جل جلاله د عذاب څخه بېرونکی) . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۵۷۵، رقم: ۶۱۹۱، ومسلم ۳\ ۱۶۹۲، رقم: ۲۹– ۲۱۴۹.

**تشريح**: فلانی نوم دی، يعني مور او پلار چي کوم نوم پر ايښی وو راوستونکي هغه بيان کړ، راوي ته هغه نوم معلوم نه وو ځکه هغه همداسي نقل کړي . منذر په اصل کي د انذار څخه مشتق دی چي د هغه معنی د الله تعالی د عذاب څخه د بېرونکي ده .

## عبدي يا امتي مه وایاست

﴿۴۵۵۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ عَبْدِي وَأَمَتِي كُلُّكُمْ عَبِيدُ اللَّهِ وَكُلُّ نِسَائِكُمْ إِمَاءُ اللَّهِ وَلَكِنْ لِيَقُلْ غُلَامِي وَجَارِيَتِي وَفَتَايَ وَلَا يَقُلِ الْعَبْدُ رَبِّي وَلَكِنْ لِيَقُلْ سَيِّدِي، وفي رواية

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅوک دي (خپل غلام او مينزي ته) زما بنده او زما مينزه نه وايي (اصل مطلب دا چي عبدي او امتي ويل يوازي کبريا او د عزت خاوند الله جل جلاله خپل بنده ته وايي نور خلک بايد ونه وايي او غلام ويل روا دی ځکه چي غلام معنی هلک) تاسو ټول د الله جل جلاله بندګان او ټولي ښځي د الله جل جلاله مينزي دي بلکه

داسي دي ووايي زما خادم او زما خادمه، زما هلک او زما انجلۍ، او غلام دي خپل بادار ته زما پروردګار نه وايي بلکه زما سردار دي ورته وايي، او په يوه روايت کي دادي

لِيَقُلْ سَيِّدِي وَمَوْلاَيَ، وفي رواية لَا يَقُلْ الْعَبْدُ لِسَيِّدِهِ مَوْلَايَ فَإِنَّ مَوْلاَكُمُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ. رواه مسلم.

چي غلام دي خپل بادار ته زما مولی نه وايي ځکه چي ستاسو مولی الله تعالی دئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۷۶۴، رقم: ۱۳- ۲۲۴۹.

**تشريح**: کله چي د غلام او مينزي ساتلو رواج وو نو خلکو به د داسي الفاظو په ذريعه مخاطب کول چي د خپلي معنی په اعتبار به بالکل نامناسب وه د مثال په توګه د جاهليت په زمانه کي به عربو خپل غلام يا مينزي په داسي ويلو مخاطب کول چي يا عبدي (اې زما بنده) او يا امتي (اې زما مينزي)، ښرګنده ده چي د عبد لفظ د يو خاص مفهوم حامل دی او د اسلامي عقيدې مطابق انسان د الله تعالی عبد (بنده) دی، او يو انسان د بل انسان بنده نسي کيدای، په دې اعتبار سره که چيري يو انسان بل انسان ته د خپل عبد يعني بنده په لفظ ووايي نو ددې مطلب دادی چي په ظاهره يا خو هغه په حقيقت کي د عبديت د شرک مرتکب کيږي يا د شرک مرتکب نه دی بلکه د ګمان سبب جوړيږي، نو رسول الله ﷺ ددغه لفظ د استعمال څخه منع وفرمايل، همدارنګه د قاموس مطابق د امة لفظ د مملوکه په معنی دی او دا هم ښرګنده ده چي د يو انسان حقيقي ملکيت يوازي الله تعالی ته حاصل دی، دا ممکن نه ده چي يو انسان د بل انسان د ملکيت دعوه وکړي نو رسول الله ﷺ ددغه لفظ د استعمالولو څخه هم منع وفرمايل.

د کومو الفاظو په ذريعه چي د غلام او مينزي د يادولو اجازه ورکړل سوې ده په هغو کي د غلام (هلک) او جاريه (انجلۍ) الفاظ دی، د فتی معنی د زلمي ده او د فتاة معنی د ځواني ښځي ده، ښرګنده ده چي ددغه الفاظو په استعمال کي نه يوازي دا چي د مفهوم په اعتبار څه نامناسب نيت نسته بلکه ددغه الفاظو په ذريعه يو ډول د غلام او مينزي د شفقت او ميني د جذباتو اظهار هم کيږي، پاته سوه دا خبره چي فتی او فتاة ځوان سړي او ځواني ښځي ته وايي نو ددغه الفاظو اطلاق به پر هغه غلام او مينزي باندي ښرنګه کيږي چي هغوی سپين ږيري وي، نو په دې اړه بايد دا خيال وي چي غلام او مينزه که هر څومره سپين ږيري وي په عامه توګه د هغوی د سپين ږيرتوب هغه لحاظ او احترام به يې نه کوی چي د هغه عمر د نورو خلکو يعني د

آزادو سپین ږیرو کېدی ، ددې ښځه پرته دا هم ویل کیدای سي چي د خدمت او کاروبار په اړه سپین ږیري غلام او مینزه هم د ځوانان په ډول تکړه وي ځکه هغوی ته به هم فتی او فتاة ویل کېدل، خلاصه دا چي ددغه ارشاد مطلب دا ثرګندول دي که چیري غلام او مینزه د داسي الفاظو په ذریعه مخاطب کړل سي چي د هغوی حیثیت او مرتبه ثرګنده سي نو ددغه مقصد لپاره د عبد او امة ښځه غوره الفاظ دي، علماوو دا لیکلي دي چي د عبد او امة د الفاظو د استعمال د منع تعلق په هغه صورت کي دی کله چي د خپل غرور او تکبر اظهار او د غلام او مینځي د حقیر او ذلیل ګڼلو په توګه وي کنه نو پر غلام او مینزي باندي د عبد او امة د لفظ اطلاق په خپله په قرآن کریم کي نقل سوی دی لکه ثرنګه چي الله تعالی فرمایي :

وَالصَّالِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ، اللهُ مَثَلاً عَبْدًا مَّمْلُوكًا لاَّ يَقْدِرُ عَلَى شَيْءٍ.

همدارنګه په ډېرو حدیثو کي هم د غلام او مینزي لپاره د عبد او امة الفاظ استعمال سوي دي .

لکه ثرنګه چي مالکانو ته هدایت سوی دی چي هغوی دي خپل غلام او مینځي په نامناسب الفاظو سره نه یادوي همدارنګه غلام او مینځي هم خبرداری ورکړل سوی دی چي هغوی دي خپل مالک په نامناسب الفاظو سره نه مخاطب کوي او فرمایل سوي دي چي هیڅ غلام او مینځه دي خپل بادار ته په (ربي) یعني زما ربه، نه وایي ، که څه هم د رب معنی د تربیت او روزني ده مګر ربوبیت علی الاطلاق یو داسي خاص صفت دی چي یوازي د الله تعالی سره خاص دی، نو یو انسان ته رب ویل د شرک د ګمان باعث دی مګر ثرګنده دي وي چي ددغه منع تعلق هم د هغه صورت سره دی کله چي ددغه لفظ د استعمال مقصد د خپل بادار تعظیم وي کنه نو پر مالک باندي د رب د لفظ اطلاق هم د قرآن کریم ښځه ثابت دی لکه چي فرمایل سوي دي :

اذْكُرْنِي عِندَ رَبِّكَ، غلام او مینځي ته د خپل بادار د یادولو لپاره چي د کوم لفظ اجازه ورکړل سوې ده هغه سید دی، او دا ثرګنده ده چي بادار ته پر خپل غلام او مینځي باندي سیادت (سرداري او مشرتوب) تر لاسه دی، په دې اعتبار سره غلام او مینځي ته د یا سیدي (اې زما سرداره!) په لفظ ویلو سره مخاطب کول مناسب دي .

ثرګنده دي وي چي په یوه روایت کي خو غلام او مینځي ته حکم ورکړل سوی دی چي هغوی دي خپل بادار ته مولی وایي مګر په دوهم روایت کي دا ویل سوي دي چي هیڅ یو غلام او مینځه دي خپل مالک ته مولی نه وایي، ددغه دواړو روایتو په مینځ کي ظاهري تضاد ددغه تاویل په ذریعه لیري کیدای سي چي د مولی څو معناوي دي لکه متصرف ، منتظم، ناصر ،

معين وغيره، نو غلام او مينځي ته د خپل بادار لپاره د مولى د لفظ استعمالولو د اجازې تعلق په هغه صورت كي دى كله چي د هغه هغه معنى مراد وانخلي كوم چي د الله تعالى د ذات سره خاص ده مګر د كومي معنى اطلاق چي د بندګانو پر ذات باندي هم كيداى سي لكه متصرف او منتظم نو ددغه معنى په مراد اخيستلو سره د بادار لپاره د مولى د لفظ استعمال كيداى سي، همدا وجه ده چي د مولى اطلاق پر معتِق او معتَق باندي كيږي، لكه څرنګه چي د بخاري په روايت كي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد نقل سوى دى : مولى القوم من انفسهم، يا د طبري په روايت كي دي : مولى الرجل اخوه، بادار ته د مولى ويلو منع او د عدم جواز تعلق په هغه صورت كي دى كله چي ددغه لفظ هغه معنى مراد واخيستل سي كوم چي د الله تعالى د ذات سره خاص ده لكه ناصر ، معين او داسي نور، ځكه چي ددغه معنى په اعتبار د مولى حقيقي معنى يوازي الله تعالى دى لكه چي فرمايل سوي دي : نعم المولى ونعم النصير، ددغه تفصيل څخه وروسته د دواړو حديثو په مينځ كي تضاد پاته نه سو ، خلاصه دا چي په دغه مسئله كي به هغه مسئله په نظر كي وي كوم چي مخكي ذكر سوې ده يعني كه چيري د مولى د لفظ استعمال د تعظيم په توګه وي نو ددغه منع حكم به جاري وي كنه نو په بل صورت كي ددغه لفظ په استعمال كي څه پروا نسته .

## انګورو ته کرم مه وایاست

《۴۵۵۵》: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُولُوا الْكَرْمَ فَإِنَّ الْكَرْمَ قَلْبُ الْمُؤْمِنِ. رواه مسلم. وفي رواية عن وائل بن حجر لَا تَقُولُوا الْكَرْمُ وَلَكِنْ قُولُوا الْعِنَبُ وَالْحَبْلَةُ.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي كريم ﷺ وفرمايل : د انګورو درختي ته كرم مه واياست ځكه چي كرم د مؤمن زړه دئ . مسلم او د مسلم په يو بل روايت كي داسي دي چي انګور ته كرم مه واياست بلكه عنب او حبله ورته واياست .

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۷۶۳، رقم: ۷- ۲۲۴۷.

**د لغاتو حل**: الحبلة: وهو الاصل من شجر العنبْ (تاک)

**تشريح**: حَبله د حاء او باء په زور سره ، يا د حاء په زور او د باء په جزم سره ، دغه لفظ په اصل كي تاک (د انګورو درخته) يا د يوه قول مطابق د انګورو ښاخ ته وايي ، په ځينو ځايو كي مجازا

انګورو ته هم حبله ويل سوي دي.

د حديث خلاصه داده چي انګور ته عنب يا حبله واياست يا ددې لپاره چي نور نومونه دي په هغه ورته وایاست، مګر کرم مه ورته وایاست، ددغه منع یوه واقعه داده چي د جاهلیت په زمانه کي عربو به انګورو ته کرم ویل ځکه چي د انګورو څخه شراب جوړیږي او د هغوی وینا ده چي ددغه شراب په څښلو سره په سړي کي سخاوت، همت، کرم او داسي نور صفتونه پیدا کیږي حال دا چي شریعت شراب حرام کړل او هغه یې یو نجس او ناپاک شی وګرځوی، نو رسول الله ﷺ انګورو ته د کرم ویلو څخه منع وفرمایل، ځکه چي یو داسي شی د ذکر سوي نامه په ذریعه په کرم او خیر سره متصف کول چي د شرابو په ډول د ناپاک شي ریښه ده مناسب ونه ګڼل سو، حال دا چي انګور په دومره ښه نامه سره د یادولو مطلب د یو حرام شي د تعریف او توصیف لار اختیارل او د هغه څخه زړه او دماغ ته رغبت ورکول هم کیدای سي، او رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمایل چي کرم یو داسي غوره لفظ دی چي د خپل وسیع مفهوم په اعتبار یې ټولي ښېګڼې چاپیره کړي دي، په دې اعتبار سره ددغه لفظ مصداق مؤمن او د هغه زړه کېدای سي چي د علم او تقوا د نور او اسرارو منبع دی.

## زمانې ته بد مه وایاست

﴿۴۵۵۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُسَمُّوا الْعِنَبَ الْكَرْمَ وَلَا تَقُولُوا خَيْبَةَ الدَّهْرِ فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ الدَّهْرُ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: پر انګور د کرم نوم مه ایږدئ او یا خیبة الدهر (د زمانې نا امیدي) مه وایاست ځکه چي زمانه خدای دئ (یعني زمانه د الله جل جلاله په اختیار کي ده). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۵۶۴، رقم: ۶۱۸۲.

**تشريح**: د جاهلیت په زمانه کي د خلکو عادت وو چي کله به تکلیف ور رسېدی یا په یو مصیبت کي به اخته سول نو داسي به یې ویل: یا خبیبة الدهر، یعني ددغه الفاظو په ذریعه به هغوی زمانې ته بد ویل (لکه څرنګه چي اوس هم د جاهلانو خلکو عادت دی چي پر هره خبره باندي زمانې ته بد وایي)، رسول الله ﷺ خلک له دې څخه منع کړل ځکه چي زمانه بذات خود هیڅ شی نه دی د حالاتو او زمانې بدلون د الله تعالی په قدرت کي دی چي د کوم خیر او شر

نسبت زمانې ته کيږي په حقيقت کي هغه د الله تعالی له لوري دی او هغه فاعل حقيقي دی نو زمانې ته بد ويل په اصل کي الله تعالی ته بد ويل دي .

﴿۴۵۵۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَسُبُّ أَحَدُكُمُ الدَّهْرَ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الدَّهْرُ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زمانې ته بد مه وايا ست ځکه چي د زمانې بدلون د الله تعالی په حکم کي دئ . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۷۶۳، رقم: ۶- ۲۲۴۷.

## د ښو الفاظو ښودونه

﴿۴۵۵۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ خَبُثَتْ نَفْسِي وَلَكِنْ لِيَقُلْ لَقِسَتْ نَفْسِي. متفق عليه و ذكر حديث ابي هريرة يؤذيني ابن آدم في باب الايمان.

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅوک دي د زړه خرابيدو سره خَبُثَتْ نَفسِي زما زړه خراب سو) نه وايي بلکه لقست نفسي دي وايي . بخاري او مسلم ، د ابو هريره حديث يؤذيني ابن ادم په کتاب الايمان کي بيان سوی دئ .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۶۳، رقم: ۶۱۷۹، ومسلم ۴\۱۷۶۵، رقم: ۱۶- ۲۲۵۰.

**د لغاتو حل**: لقست: ای غثيت (د زړه ايشېدل)

**تشريح**: خبثت نفسي او لقست نفسي ، دغه دواړه لفظونه که د معنی په اعتبار څه فرق نه لري بلکه په عربي کي ددغه دواړو معنی يوه ده يعني زړه ايشېدل او د طبيعت فاسد کېدل مګر رسول الله ﷺ خبثت نفسي ويل ناخوښ کړل ځکه چي د خبثت په وجه نه يوازي دا چي جمله قبيح کيږي بلکه د مؤمن لفظ د خبث خپل ځان ته منسوب کول هم لازميږي چي نامناسبه خبره ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### ابوالحکم کنیت یې بدل کړ

﴿۴۵۵۹﴾: وَعَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ لَمَّا وَفَدَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

حضرت شریح بن هانئ رضی الله عنه د خپل پلار څخه روایت کوي کله چي هغوی د خپل قوم سره د رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ قَوْمِهِ سَمِعَهُمْ يَكْنُونَهُ بِأَبِي الْحَكَمِ فَدَعَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول نو نبي کريم ﷺ واوريدل چي د هغه قوم هغه ته ابو الحکم ويل ، رسول الله ﷺ هغه را وغوښتئ

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَكَمُ وَإِلَيْهِ الْحُكْمُ فَلِمَ تُكْنَى أَبَا الْحَكَمِ

او ورته وه يې فرمايل: حَكَمْ الله تعالى کوي او حُکَمْ د هغه په قبضه او اختيار کي دئ ، بيا تا ابو الحکم کنيت ولي ټاکلی دئ ،

قَالَ إِنَّ قَوْمِي إِذَا اخْتَلَفُوا فِي شَيْءٍ أَتَوْنِي فَحَكَمْتُ بَيْنَهُمْ فَرَضِيَ كِلَا الْفَرِيقَيْنِ

هغه وويل زما په قوم کي چي به په يو شي کي اختلاف پيدا سو نو هغوی به ما ته راغلل او ما به د هغوی په منځ کي داسي پريکړه وکړه چي دواړه ډلي به راضي سوې زما په حکم ،

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحْسَنَ هَذَا فَمَا لَكَ مِنَ الْوَلَدِ قَالَ

رسول الله ﷺ وفرمايل د خلکو په منځ کي پريکړه کول ډيره ښه خبره ده ستا څو کوچنيان دي ؟ وويل ده چي زما اولادونه دي

لِي شُرَيْحٌ وَمُسْلِمٌ وَعَبْدُ اللَّهِ قَالَ فَمَنْ أَكْبَرُهُمْ قَالَ شُرَيْحٌ قَالَ فَأَنْتَ أَبُو شُرَيْحٍ . رواه ابوداؤد والنسائي .

شريح، مسلم او عبدالله، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه په دوی کي مشر کوم يو دئ ؟ ويلي دي ده چي وه مي ويل : شريح، رسول الله ﷺ وفرمايل : بس ستا کنيت ابو شريح دئ . ابوداؤد او نسائي .

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۲۴۰، رقم: ۴۹۵۵، والنسائي ۸\۲۲۶، رقم: ۵۳۸۷.

**تشريح**: كنيت كله خو يو صفت ته په نسبت كولو سره ټاكل كيږي لكه يو سړی خپل كنيت ابو الفضل، ابو الحكم، ابو الخير او داسي نور وټاكي، او كله اولاد ته په نسبت كولو سره ټاكل كيږي لكه ابو مسلم، ابو شريح او داسي نور، او كله د كنيت تعلق د يو داسي خاص شي سره وي چي د هغه سره ډېر اختلاط او ربط وي لكه مشهور صحابي ابوهريره رضي الله عنه چي د هغه اصلي نوم عبدالله وو، ويل كيږي چي يوه پيشي د هغه سره اوسېدل، يوه ورځ هغه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو نو هغه پيشي يې په لستوڼي كي اخيستې وه، رسول الله ﷺ پوښتنه ځيني وكړه چي دا څه شي دی؟ هغه وويل: پيشي ده، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: يا اباهريره!، نو د هغه ورځي څخه د هغه كنيت په ابوهريره (د پيشانو پلار) سره مشهور سو، او كله كنيت محض د علميت لپاره يعني د اصل نامه په توګه وي لكه ابوبكر، ابو عمر او داسي نور.

او حكم د هغه د لوري وي، ددې څخه د رسول الله ﷺ مقصد دا وو چي حقيقي حكم د الله تعالى ذات دی او د هر حكم او فيصلې پيل او پای د هغه په اختيار كي دی چي نه يوازي د هغه حكم او فيصله څوک رد كولای نسي بلكه د هغه حكم او فيصله، حكمت او دانايي څخه خالي نه وي په دې اعتبار سره دغه وصف د الله تعالى سره خاص دی او يوازي هغه د دغه صفت وړ دی نو بل چا ته مناسب نه دي چي هغه ځان ته ابوالحكم (يعني د حكم او فيصلې خاوند) ووايي، ځكه چي په دغه صورت كي د الله تعالى په دغه خاص وصف كي د غير الله سره د شرېكېدو ګمان پيدا كيږي، دا بېله خبره ده چي د ابوت او ابنيت د وهم په وجه د هغه پر ذات د ابوالحكم اطلاق نه كيږي.

## اجدع د شيطان نوم دئ

﴿۴۵۶۰﴾: وَعَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ لَقِيتُ عُمَرَ فَقَالَ مَنْ أَنْتَ قُلْتُ مَسْرُوقُ بْنُ الْأَجْدَعِ قَالَ عُمَرُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْأَجْدَعُ شَيْطَانٌ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت مسروق رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د حضرت عمر رضي الله عنه سره ملاقات وكړ هغه را څخه پوښتنه وكړه چي ته څوک يې؟ ما ورته وويل مسروق زوی د اجدع، حضرت عمر رضي الله عنه وويل: ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي اجدع د شيطان يو نوم دئ. ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۴۳، رقم: ۴۹۵۷، وابن ماجه ۲\۱۲۲۹، رقم: ۳۷۳۱.

**تشريح**: اجدع په اصل كي هغه چا ته وايي چي د هغه غوږ، پزه، شونډه او لاسونه پرې سوي وي، او كنايتا ددغه نامه اطلاق پر هغه سړي باندي كيږي چي د هغه په خبره كي هيڅ وزن او دليل نه وي په دغه مناسبت سره يو شيطان ته اجدع ويل كيږي .

د حضرت عمر رضي الله عنه د مسروق رحمة الله عليه په اړه پوښتنه كول او بيا د رسول الله ﷺ د ذكر سوي ارشاد نقل كول د طبع د ازادۍ په توګه وو او ددې په ذريعه دې ته اشاره كول مقصد وو كه ستا پلار ژوندى واى نو د هغه دغه نوم بدل كړئ .

**ښه نومان ايږدئ**

﴿۴۵۶۱﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ تُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَسْمَائِكُمْ وَأَسْمَاءِ آبَائِكُمْ فَأَحْسِنُوا أَسْمَاءَكُمْ . رواه احمد وابو داؤد.

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به تاسو په خپلو نومو او ستاسو د پلرونو په نومو بلل كيږئ له دې كبله تاسو خپل نوم ښه ايږدئ . احمد او ابوداؤد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۱۹۴، وابوداود ۵\۲۳۶، رقم: ۴۹۴۸.

**تشريح**: تاسو ښه نوم ايږدئ: ددغه ارشاد په ذريعه ټولو انسانانو ته خطاب سوى دى نو په دې كي پلرونه هم داخل دي او د هغوى لپاره هدايت دى چي د خپلو اولادو ښه نومونه ايږدي .

په يوه روايت كي دا فرمايل سوي دي چي د قيامت په ورځ به خلك د هغوى د ميندو په نامه بلل كيږي او علماوو دا ليكلي دي چي د ميندو په نومو سره د بللو حكمت او علت دادى چي كوم خلك د زنا په نتيجه كي پيدا سوي وي هغوى به په دغه صورت كي د شرمندګۍ او رسوايي څخه وساتل سي، دوهم د حضرت عيسى ابن مريم عليه السلام د حال رعايت به مقصد وي چي بې پلاره وو، او دريم د حضرت حسن او حضرت حسين رضي الله عنهما د فضل او شرف اظهار به مقصد وي چي هغوى ته د بي بي فاطمې رضي الله عنها د زامنو كېدو په حيثيت سره رسول الله ﷺ ته د نسبت په ذريعه حاصل دى، كه دا روايت هم ومنل سي نو ويل كيږي چي تاسو به ستاسو د پلرونو په نومونه بلل كيږئ ، په دې كي به پلار پر تغليب باندي حمل كړل سي لكه څرنګه چي مور او پلار دواړو ته ابوين ويل كيږي او دا هم كيداى سي چي په يو ځاى كي د پلار په نامه سره بلل سي او په يو ځاى كي د مور په نامه سره، يا د ځينو خلكو نسبت به پلار ته كيږي او د ځينو

خلکو نسبت به د هغوی مور ته کيږي.

## د رسول ﷺ نوم او کنيت مه يو ځای کوئ

﴿۴۵۶۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يَجْمَعَ أَحَدٌ بَيْنَ اسْمِهِ وَكُنْيَتِهِ وَيُسَمِّيَ مُحَمَّدًا أَبَا الْقَاسِمِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ددې څخه منع فرمايلې ده چي يو سړی د رسول الله ﷺ نوم مبارک او کنيت يو ځای کړي (يعني محمد نوم کښيږدئ او کنيت ابوالقاسم و ټاکي). ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۲۴، رقم: ۲۸۴۱.

**تشريح**: ذکر سوې معنی به په هغه صورت کي وي چي کله لفظ د محمد مرفوع او يسمی د مجهول په صيغه وي، لکه څرنګه چي ترمذي او شرح السنه او د مصابيح په اکثرو نسخو کي نقل سوي دي، مګر په جامع الاصول او د مصابيح په ځينو نسخو کي محمدا په نصب (زور) سره نقل سوی دی، په دغه صورت کي به يسمی په معروف صيغه سره وي او معنی به داسي کيږي که يو سړی هغه ته ابوالقاسم ووايي چي د هغه نوم محمد وي، د حديث خلاصه داده چي د کوم چا نوم محمد وي نو هغه ته دا رواه نه ده چي خپل کنيت ابوالقاسم کښېږدي، ددغه مسئلې تفصيل مخکي هم تېر سوی دی.

﴿۴۵۶۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ ان النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا سَمَّيْتُمْ بِاسْمِي فَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي، رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب، وفي رواية ابي داؤد قَالَ مَنْ تَسَمَّى بِاسْمِي فَلَا يَتَكَنَّى بِكُنْيَتِي وَمَنْ تَكَنَّى بِكُنْيَتِي فَلَا يَتَسَمَّى بِاسْمِي.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو زما په نامه خپل نوم ايږدئ مګر زما په کنيت خپل کنيت مه ټاکئ،. ترمذي او ابن ماجه، او ترمذي ويلي دي چي دا حديث غريب دی، او د ابوداؤد په روايت کي دي چي کوم سړی زما په نامه خپل نوم کښيږدئ

هغه دي زما په كنيت خپل كنيت نه ايږدئ او كوم سړی چي زما په كنيت خپل كنيت وتاكي هغه دي زما په نامه خپل نوم نه ايږدي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۲۵، رقم: ۲۸۴۲. وسنن ابن ماجه ۲\۱۲۳۰، رقم: ۳۷۳۵.

**تشريح**: دغه حديث هم د رسول الله ﷺ د نامه او كنيت په يو ځاى اختيارولو صريح منع ښكندوي، مګر په دې اړه يو اختيارول يعني يوازي نوم ايښودل يا يوازي كنيت ايښودل منع نه دي.

**﴿۴۵۶۴﴾**: وَعَنْ عَائِشَةَ اَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دئ چي يوې ښځي وويل اې د الله رسوله ! زما يو زوى

وَلَدْتُ غُلَامًا فَسَمَّيْتُهُ مُحَمَّدًا وَكَنَّيْتُهُ أَبَا الْقَاسِمِ فَذُكِرَ لِي أَنَّكَ تَكْرَهُ ذٰلِكَ

پيدا سوى دئ چي د هغه نوم مي محمد او كنيت مي ابو القاسم ايښى دئ ، بيا ما ته وويل سول چي دا خبره ستاسو خوښه نه ده ،

فَقَالَ مَا الَّذِي أَحَلَّ اسْمِي وَحَرَّمَ كُنْيَتِي أَوْ مَا الَّذِي حَرَّمَ كُنْيَتِي وَأَحَلَّ اسْمِي. رواه ابوداؤد وقال محي السنة غريب.

رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم شي زما نوم جائز كړ او كوم شی زما كنيت حرام كړ ، يا كوم شي زما كنيت حرام كړ او زما نوم يې حلال كړ مګر د دواړو جمع كول مكروه تنزيهي دي حرام نه دي . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۵۱، رقم: ۴۹۶۸.

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو (يا يې داسي وفرمايل) په ذريعه راوي د خپل شك اظهار كړى دى چي رسول الله ﷺ يا خو مخكي د نوم حلت او بيا د كنيت حرمت ذكر كړ يا مخكي د كنيت حرمت او وروسته د نامه حرمت ذكر كړ، په هر حال په دواړو صورتو كي معنى او مطلب يو دى، د مفهوم او مقصد په مينځ كي څه فرق نسته ، اصل خبره داده چي محدث كله يو حديث بيانوي نو ددې خبري پوره احتياط وكړئ چي هغه د حديث الفاظ د رسول الله ﷺ څخه چي څرنګه اوريدلي وي يا څرنګه هغه ته رسيدلي وي بعينه هم هغه نقل كړي ، دلته د حديث راوي ته د الفاظو په اړه شك پيدا سو ځكه هغه په ذكر سوي طرز سره بيان وكړ .

د دغه حديث څخه ثابته سوه چي رسول الله ﷺ د نامه او كنيت يو ځاى اختيارولو منع د

تحريم په توګه نه دی بلکه د مکروه تنزيهي په توګه ده .

﴿۴۵۶۵﴾ : وَعَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَاَيْتَ إِنْ وُلِدَ لِي بَعْدِكَ وَلَدٌ أُسَمِّيهِ بِاسْمِكَ وَأُكَنِّيهِ بِكُنْيَتِكَ قَالَ نَعَمْ . رواه ابوداؤد.

حضرت محمد بن حنفيه د خپل پلار څخه روايت کوي چي ما وويل: اې دالله رسوله ! که ستاسو وروسته زما يو زوی پيدا سو نو زه د هغه نوم محمد او کنيت يې ابو القاسم کښېږدم (که يا)؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هو ، ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود: ۵\ ۲۵۰، رقم: ۴۹۶۷.

**تشريح**: دغه حديث هم پر دې دلالت کوي چي د رسول الله ﷺ د نامه او کنيت يو ځای اختيارولو د منع تعلق د رسول الله ﷺ د زمانې سره وو او د هغه څخه وروسته دا جائز دي ، په دې اړه د علماوو چي کوم اختلافي قولونه دي هغه مخکي نقل سوي دي .

## د حضرت انس رضي الله عنه کنيت

﴿۴۵۶۶﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَنَّانِي رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَقْلَةٍ كُنْتُ أَجْتَنِيهَا. رواه الترمذي وقال هذا حديث لا نعرفه الا من هذا الوجه وفي المصابيح صححه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما به يو وابنه وکښېځ رسول الله ﷺ د هغه وابنه په نامه زما کنيت و ټاکئ يعني ابو الحمزه ، (حمزه ترتيزک ته وايي) . ترمذي ويلي دي دا حديث ددې طريقې څخه پرته په بل ډول زه نه پيژنم او په مصابيح کي يې دې ته صحيح ويلي دي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۶۴۰، رقم: ۳۸۳۰، والبغوي في المصابيح ۳\ ۳۰۷، رقم: ۳۷۰۸.

## خراب نومونه بدلول

﴿۴۵۶۷﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قالت أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُغَيِّرُ الِاسْمَ الْقَبِيحَ . رواه الترمذي.

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به خراب نومونه بدلول . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۲۴، رقم: ۲۸۳۹.

**تشريح**: د مثال په توګه په يوه روايت کي بيان سوی دی چي د يوه سړي نوم اسود (تور) وو، رسول الله ﷺ د هغه نوم بدل کړ او وه يې فرمايل چي د نن څخه وروسته دده نوم ابيض (سپين) دی.

## منع نومونه

﴿۴۵۶۸﴾: وَعَنْ بَشِيرِ بْنُ مَيْمُونٍ عَنْ عَمِّهِ أُسَامَةَ بْنِ أَخْدَرِيٍّ أَنَّ رَجُلًا يُقَالُ

حضرت بشير بن ميمون د خپل اکا اسامه بن اخدري رضي الله عنه څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ ته

لَهُ أَصْرَمُ كَانَ فِي النَّفَرِ الَّذِينَ أَتَوْا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

ډله راغلل په هغو کي يو سړی وو چي هغه ته يې اَصرم (درختي پريکونکی) ويل ، رسول الله

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اسْمُكَ قَالَ أَصْرَمُ قَالَ بَلْ أَنْتَ زُرْعَةُ.

ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه ستا نوم څه شي دئ ؟ هغه وويل : اصرم ، رسول الله ﷺ وويل بلکه زُرعه وايه .

رواه ابوداؤد وقال غير النبي ﷺ اسم العاص وعزيز وعتلة وشيطن والحكم و غراب وحباب و شهاب وقال تركت اسانيدها للاختصار.

ابوداؤد ، ابوداؤد ويلي دي چي رسول الله ﷺ عاص، عزيز، عتله، شيطان، حکم، غراب، حباب او شهاب نومونه بدل کړی دي او ويلي يې دي چي د لنډوالي له کبله يې ما سندونه پرېښودل .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۳۹، رقم: ۴۹۵۴.

**تشريح**: اصرم د صرم څخه مشتق دی چي د هغه معنی د قطع او ترک سلام و کلام دی، او د درختي پرېکولو ته هم وايي، ددغه معنی په مناسبت سره رسول الله ﷺ د اصرم نوم ناخوښ کړ او ددې پر ځای کي د زرعه نوم کښېښود ، يا دغه لفظ د زراعت څخه ماخوذ دی او د خپلي معنی په اعتبار سخاوت، خير او برکت ته اشاره کوي .

په پای کي ابوداؤد چي د رسول الله ﷺ له خوا د کومو نومونو د بدلولو ذکر کړی دی په هغو کي عاص د عاصي مخفف دی ، دغه لفظ د لفظي مفهوم په اعتبار عصيان او سرکښي

باندي دلالت كوي، حال دا چي مؤمن خصوصيت اطاعت او فرمانبرداري وي، ځكه د هيڅ مؤمن لپاره دا مناسب نه دي چي هغه عاص يا عاصيه نوم كښېږدي.

عزيز د الله تعالى د اسماوو څخه يو پاک اسم دی ځكه نو عبدالعزيز نوم ايښودل مناسب دي مګر يوازي د عزيز نوم نامناسب دی ، دد ې څخه پرته د غه لفظ پر غلبه، قوت او عزت باندي دلالت كوي چي د الله تعالى شان دی او د بنده شان ذلت او انكساري ده .

خضوع او خشوع ده، همدارنګه د حميد نوم ايښودل هم نامناسب دي ځكه چي دا هم د الله تعالى د اسماوو او صفاتو څخه يو اسم دی او د مبالغې په توګه د هغه يو صفت دی، په دې اعتبار سره د يو چا نوم عبدالحميد مناسب دی ، كريم او داسي نور نومان هم پر دې قياس كيداى سي .

د عتله نوم هم رسول الله ﷺ ناخوښ کړ ځكه چي په دې كي د عظمت ، شدت او سختۍ معنی ده حال دا چي مؤمن په نرم او ملائمت سره موصوف سوی دی .

د شيطان نوم ايښودل نه يوازي دا چي د هغه د ذات سره مشابهت اختيارول دي چي د ټولو خرابيو ريښه ده بلكه دد غه لفظي مفهوم په اعتبار هم ډېر نامناسب دی ځكه چي لفظ د شيطان د شيط څخه وتلی دی چي د هغه معنی د سوځېدو او هلاكېدو ده ، او يا د شطن څخه دی چي د هغه معنی د الله تعالى د رحمت څخه ليري كېدل دي .

حكم د حاكم مبالغه ده او حقيقي حاكم د الله تعالى ذات دی، په دې اعتبار سره د حكم نوم ايښودل هم نامناسب دي او كله چي رسول الله ﷺ د ابوالحكم كنيت خوښ نه کړ لكه چي په مخكي روايت كي تېر سوي دي نو د حكم نوم په طريقه اولى مناسب نه دی .

د غراب د نامه د ناخوښۍ وجه يوه خو داده چي غراب ټپوس ته وايي چي په مرغانو كي مردار دی ، او هغه مرداري خوري، دوهم دا چي دد غه لفظ معنی د ليري كېدو ده .

د حباب نوم له دې كبله نامناسب دی چي دا د شيطان نوم دی او مار ته هم حباب وايي، شهاب د اور هغه شغلې ته وايي چي ملائكي شيطانان په ولي ، له دې كبله د شهاب نوم ايښودل هم ناخوښه دی مګر كه چيري د شهاب اضافت دين ته وکړل سي يعني شهاب الدين نوم كښېښودل سي نو په دې كي څه پروا نسته .

**د زعموا لفظ**

﴿۴۵۶۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ مَسْعُودِ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ لِاَبِيْ عَبْدُاللهِ اَوْ قَالَ اَبُو عَبْدُاللهِ

حضرت ابو مسعود انصاري رضی اللہ عنہ د ابو عبدالله څخه او يا ابو عبدالله رضی اللہ عنہ د ابو مسعود انصاري

لِأَبِي مَسْعُوْدٍ مَا سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول فِي زَعَمُوا قَالَ

رضی اللہ عنہ څخه پوښتنه وکړه چي ايا تا د رسول الله ﷺ څخه د لفظ زعموا په اړه څه اوريدلي دي؟

سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بِئْسَ مَطِيَّةُ الرَّجُلِ. رواه

ابوداؤد وقال ان اباعبدالله حذيفة.

هغه ووېل: ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي (زَعَمُوا) د سړي خرابي سپرلۍ ته وايي (يعني ددې لفظ استعمال خراب دئ). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۵۴، رقم: ۴۹۷۲.

**تشريح**: زعموا د زعم څخه مشتق دی، زُعم، يا زِعم، د زاء په پېښ او زير سره ددې معنی هغه ده کوم چي د ظن او گمان ده لکه څرنگه چي په نهايه کي ليکلي دي، په صراح کي ليکلي دي چي د زعم معنی د ويلو ده او په عامه توگه د زعم اطلاق پر هغه خبره کيږي چي خرابه او د باور وړ نه وي، په قاموس کي هم ليکلي دي چي د زعم معنی د قول ده او ددې اطلاق پر بې بنياده او دروغو خبرو باندي کيږي.

د زعموا په اړه علماوو دا بيان کړی دی چي د خلکو دا معمول دی چي کله هغوی ته يو بې بنياده خبره بيانول وي نو هغوی داسي وايي چي د فلاني سړي په اړه دا اوريدل سوي دي، يا خلک داسي وايي، او د دروغ کېدو د بيري څخه د يو سړي نوم نسي اخيستلای چي دا خبره فلاني کړې ده يا فلاني سړی بيان کړی دی، بلکه خلک وايي يا بيان کيږي، په دغه پرده کي ډېر دروغ ويل کيږي او بېله پلټنې خبري خپرول کيږي، په ذکر سوو دواړو صحابه کرامو کي يو صحابي د بل صحابي څخه پوښتنه وکړه چي ځيني خلک چي د زعموا لفظ يعني خلک وايي په ذريعه بې بنياده خبري نقل کوي نو ايا تا د رسول الله ﷺ څخه ددغه لفظ په اړه څه اوريدلي دي، چي رسول الله ﷺ ددغه لفظ په تحقيق کي ددغه لفظ د استعمال او مفهوم په اړه څه فرمايلي دي، دوهم صحابي جواب ورکړ ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي دغه لفظ خرابه سپرلۍ ده، يعني رسول الله ﷺ دغه لفظ ته له سپرلۍ سره تشبيه ورکړې ده لکه څرنگه چي يو سړی پر سپرلۍ په ناسته سره خپل منزل ته رسيږي همدا رنگه کوم سړی چي دا غواړي چي يو بې

بنياده او غير حقيقي خبره د نورو په مخكي نقل كړي او هغوى يې خپره كړي نو هغوى د خپل بحث او خپل قول په پېل كي د زعموا لفظ استعمالوي او ددغه لفظ په ذريعه خپل مقصد تر لاسه كول غواړي او رسول الله ﷺ د خرابي سپړلى په ذريعه دې ته اشاره وفرمايل چي د زعموا په لفظ سره د خبرو پېل كول ښه خبره نه ده ځكه چي ددغه لفظ په بنياد جوړولو سره چي كومه خبره كيږي يا نقل كيږي د هغه محمول جزم او يقين نه وي بلكه زعم او گمان وي او ښرگنده ده چي د زعم او گمان نسبت هغه خبري ته كيږي چي يو سند او ثبوت نه لري بلكه د يو حكايت په درجه كي وي او د گمان په توگه پر ژبه راسي نو ددغه ارشاد مطلب دادى چي د نقل او بيان په اړه پوره احتياط كول پكار دي ښېله پلټني يو خبره بيانول نه دي پكار، او د اورېدلي خبري تعبير په يقين سره نورو ته رسول نه دي پكار ځكه چي هغه خبري چي د هغه تعلق محض د گمان سره وي په عامه توگه پر غلط فهمۍ او درواغو باندي مبني وي ځكه ويل سوي دي چي: وزعموا مطية الكذب، يعني د زعموا لفظ د درواغو سپړلى ده، او يا رسول الله ﷺ د ذكر سوي ارشاد په ذريعه دا هدايت وركول وغوښتل چي يو سړى دي ښېله پلټني او يقين د زعم او گمان نسبت يو چا ته نه كوي مگر كه چيري هغه ته د هغه خبري يقين وي چي فلاني سړي په حقيقت كي درواغ ويلي دي او دا چي د هغه سړي درواغ ويل د تاوان د اثراتو څخه د نورو خلكو ساتنه ضروري وي چي څوک د هغه څخه په دوكه كي نسي نو ددغه حكمت سره سم يو چا ته د زعم او گمان نسبت كول جائز دي لكه څرنگه چي محدثين وغيره يې كوي.

**منعه الفاظ**

﴿۴۵۷۰﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُولُوا مَا شَاءَ

د حضرت حذيفه ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو داسي مه واياست كه

اللّٰهُ وَشَاءَ فُلَانٌ وَلٰكِنْ قُولُوا مَا شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ شَاءَ فُلَانٌ. رواه احمد وابوداؤد

خداى او فلاني سړي غوښتل، (ځكه په دې كي د بنده او خداى برابري ده) بلكه داسي واياست كه خداى غوښتل او د فلاني سړي غوښتنه وه نو داسي به وي، احمد او ابوداؤد،

وفي رواية منقطعا قال و لاتقولو ما شاء الله وشاء محمد وقولوا ما شاء الله وحده. رواه في شرح السنة.

او په يوه منقطع روايت کي داسي الفاظ دي چي تاسو داسي مه واياست که خدای او محمد وغوښتل (نو داسي به وي) بلکه يوازي داسي واياست که خدای و غوښتل ، يعني که د خدای خوښه وه . شرح السنه.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\ ۳۸۴، وابوداود ۵\ ۲۵۹، رقم: ۴۹۸۰.

## منافق ته سيد مه واياست

﴿۴۵۷۱﴾ : وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُولُوا لِلْمُنَافِقِ سَيِّدًا فَإِنَّهُ إِنْ يَكُ سَيِّدًا فَقَدْ أَسْخَطْتُمْ رَبَّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ. رواه ابوداؤد.

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : منافق ته سيد مه واياست ځکه که هغه ته سيد وواياست نو خپل پروردګار مو خفه کړ . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۵۷، رقم: ۴۹۷۷.

**تشريح**: په عربي کي د سيد معنی د سردار او مشر ده ، څرګنده ده چي يو منافق ته دا مقام نسي تر لاسه کېدای چي هغه ته دي يو څوک سردار او مشر ووايي بلکه يو منافق که په حيقيقت کي سردار وي په دې توګه چي هغه د خپل قوم مشر وي يا د ځينو خلکو حاکم وي ، يا د غلام او مينزو مالک وي نو ددې سربېره هغه به ددې وړ نه وي چي يو مسلمان هغه ته په سردار ووايي، يا هغه ته سيد ووايي، او که چيري يو مسلمان هغه ته سيد ووايي نو د الله تعالی د غضب مستحق به سي ځکه چي دغه لفظ پر تعظيم او احترام باندي دلالت کوي او هغه منافق د مسلمانانو له خوا د هيڅ تعظيم او احترام مستحق نه دی نو هغه ته سيد ويل به نور هم بد وي ځکه چي ددې سربېره هغه ته سيد ويونکی نه يوازي دا چي د ذکر سوي حکم خلاف ورزي کوي بلکه د دروا غو مرتکب به هم وي .

څرګنده ده چي په دې اړه کافر ، ګمراه او ګناه کار هم د منافق په حکم کي داخل دی مګر په حديث کي يوازي د منافق ذکر ځکه سوی دی چي منافق په هر حال په ظاهري توګه مسلمان وي ځکه د عامو مسلمانانو د هغه په تعريف کي اخته کېدل زيات احتمال لري نو يوازي د منافق په ذکر کولو سره ددې خبري څخه منع وفرمايل سول چي هغه ته سيد مه واياست .

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

## د خراب نوم خراب اثر

﴿٤٥٧٢﴾: عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ شَيْبَةَ قَالَ جَلَسْتُ إِلَى سَعِيدِ بْنِ

د حضرت عبد الحميد بن جبير بن شيبه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د حضرت سعيد بن مسيب

الْمُسَيَّبِ فَحَدَّثَنِي أَنَّ جَدَّهُ حَزْنًا قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

رضي الله عنه سره ناست وم او هغه ما ته دا حديث بيان کړ چي زما نيکه چي د هغه نوم حزن وو د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، نبي کريم ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه چي

مَا اسْمُكَ قَالَ اسْمِي حَزْنٌ قَالَ بَلْ أَنْتَ سَهْلٌ قَالَ مَا أَنَا بِمُغَيِّرٍ اسْمًا سَمَّانِيهِ أَبِي قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ فَمَا زَالَتْ فِينَا الْحُزُونَةُ بَعْدُ. رواه البخاري.

ستا نوم څه شي دئ ؟ هغه وويل : حزن، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ما ستا نوم سهل کښېښودئ، هغه وويل زه خپل نوم بدلول نه غواړم کوم چي زما پلار را ته ايښى دئ، د ابن مسيب بيان دئ چي د دغه نوم په وجه همېشه زموږ کورنۍ په سختۍ کي اخته وه آن تر اوسه ، د حزن معنا ده سخته مځکه او د سهل معنا ده نرمه مځکه . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\ ٥٧٤، رقم: ٦١٩٠.

**تشريح**: حزن سختي مځکي ته وايي، سهل د حزن ضد دی يعني نرمه او هواره مځکه، د حضرت سعيد نيکه د رسول الله ﷺ ايښودل سوی نوم اختيار نه کړ ځکه الله تعالى د دغه انکار د نحوست څخه د هغوی پر کورنۍ حزن مسلط کړ چي د هغوی کورنۍ تل د سختيو ښکار سول ، پاته سوه دا خبره چي حزن ته د رسول الله ﷺ د خبري څخه د انکار کولو جرئت څرنګه وسو نو اول خو دې ته د شيطان وسوسه ويل کيږي چي په هغه کي اخته سو دوهم دا چي ذکر سوی پېښه د هجرت د پيل وه کله چي هغه په نوي هجرت کولو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوی وو او تر هغه وخته پوري د تعليم او تربيې د فقدان په وجه هغه په صدق ايمان ، سلامتۍ او اخلاقو سره مشرف سوی نه وو نو پر هغه د شيطان دا غشی وچلېدی او هغه د رسول الله ﷺ غوره کړی نوم اختيار نه کړ .

## ښه نومونه

﴿۴۵۷۳﴾: وَعَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسَمَّوْا بِأَسْمَاءِ الْأَنْبِيَاءِ وَأَحَبُّ الْأَسْمَاءِ إِلَى اللّٰهِ عَبْدُ اللّٰهِ وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَأَصْدَقُهَا حَارِثٌ وَهَمَّامٌ وَأَقْبَحُهَا حَرْبٌ وَمُرَّةُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو وهب جشمي ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د انبياؤ وپه نومو خپل نوم ايږدئ او د الله تعالى په نزد غوره نوم عبدالله او عبدالرحمن او زيات ريښتوني (د معنا په اعتبار) يا د واقع سره سم نوم حارث (كسب كونكى) او همام (قصد او اراده) دي او بد ترين نوم حرب (جګړه) او مروه (تلخي يعني تريخوالي) دئ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۳۷، رقم: ۴۹۵۰.

**تشريح**: د انبيا، په نومو ...الخ: ددې څخه څرګنديږي چي د ملائكو په نومو نوم اېښودل نه دي پكار همدارنګه هغه نومونه اېښودل هم نه دي پكار كوم چي د جاهليت په زمانه كي رواج وه لكه كلب، حمار، عبد شمس، او داسي نور نومونه.

د حارث معنى د كسب او ګټي د اراده كونكي ده، همدارنګه همام د هم څخه دى چي د هغه معنى د قصد او ارادې ده، څرګنده دي وي چي هيڅ سړى د كسب او ګټي د ارادې څخه خالي نه وي ځكه نو د معنى او مفهوم په اعتبار د غه نومو ته زيات رېښتوني ويل سوي دي.

حرب او مره ته تر ټولو خراب نومونه ځكه ويل سوي دي چي حرب جګړې ته وايي او جګړه خراب شى دى چي په هغه كي وينه توېول او بربادي وي همدارنګه مره تريخ ته وايي چي په طبيعت كي ناخوښه شى دى او ځيني حضرات وايي چي د ابليس كنيت ابو مره دى ځكه نو د مره نوم اېښودل بد دى.

==========

# بَابُ الْبَيَانِ وَالشِّعْرِ

## (د بيان او شعر بيان)

د بيان اصل معنى د خلاصولو په ډول د ښرګندولو او ښه واضح كولو ده، يا داسي وويل سي چي بيا هغه فصيح خبرو او تقرير ته وايي چي په ډېر وضاحت او ښكلا سره ظاهر كړل سي، په صراح كي دا هم ليكلي دي چي د خبري په ښرګندولو او وضاحت سره ويلو ته بيان ويل كيږي، ځكه نو ويل كيږي چي: فلان ابين من فلان ، يعني فلانى سړى تر فلاني سړي زيات بيانونكى دى، يعني هغه خپله خبره د فلاني سړي ښخه په زيات فصاحت او وضاحت سره بيانونكى دى.

د شعر معنى د پوهي او زيركتوب ده، او د شاعر معنى د پوه او زيرک سړي دي مګر په عامه اصطلاح كي شعر موزون او مقفى كلام ته وايي چي په قصد او اراده سره موزون او منظم كړل سوى وي په دې اعتبار سره په قرآن كريم او حديث كي چي مقفى (منظوم) عبارتونه دي پر هغو باندي د شعر اطلاق نسي كيداى ځكه چي ددغو عبارتونو مقفى كېدل په قصد او ارادې سره نه دي او نه مقصود بالذات دي.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### په ځيني بيان كي د سحر تاثير وي

﴿۴۵۷۴﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَدِمَ رَجُلَانِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا فَعَجِبَ النَّاسُ لِبَيَانِهِمَا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا. رواه البخاري

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ښخه روايت دئ چي دوه كسان د ختيځ د لوري راغلل او په (ښه وضاحت او فصاحت سره) يې خطبه وويل د هغوى تقرير ته خلک حيران پاته سول ، رسول الله ﷺ وفرمايل ځيني بيان د سحر ښخه وي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۳۷، رقم: ۵۷۶۷.

**تشريح**: دا د هغه وخت پېښنه ده كله چي د ختيځ سيمي ښخه د بنو تميم يو ډله د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضره سول ، په هغه ډله كي دوه داسي كسان هم وه چي په فصاحت او بلاغت كي

يې مهارت درلودی په هغوی کې د يوه نوم حصين ابن هدی او لقب يې زبرقان وو او د دوهم نوم عمرو ابن هتم وو، دغه دواړو کسانو د رسول الله ﷺ په وړاندې په خپلو کې خبرې وکړې، زبرقان خپل فضائل او اوصاف بيانول پيل کړل او د خپلو کارنامو تعارف کول يې پيل کړل چې اې د الله رسوله! ما فلانۍ فلانۍ کارنامې کړې دي او زه داسې او هاسې يم، تر دې چې عمرو هم په دې خبر سي، عمرو چې دا واورېدل نو هغه هم په دومره فصيح او بليغ اندازه د هغه د خبرو جواب ورکړ او په خپل بيان کې يې د هغه دومره خرابۍ څرګندې کړې چې د زبرقان بيان سوې ټول صفتونه او فضائل يې د نه يقين وړ سول، زبرقان بيا په فصاحت او بلاغت سره وويل چې اې د الله رسوله! عمرو زما په ټولو صفتو او فضائلو ښه خبر دی او څه چې وايې په هغه کې اواز نسته، په حقيقت کې هغه ته زما د کمالاتو اعتراف دی مګر حسد زما پر خلاف بيانولو باندې مجبور کړی دی، په دغه وخت کې رسول الله ﷺ وفرمايل: ځينې بيان د سحر تاثير لري لکه څرنګه چې سحر د انسان په حالت او کيفيت کې بدلون پيدا کوي همدارنګه ځينې بيان هم دا ډول وي چې د هغه په وجه د انسان په ذهن او دماغ کې بدلون پيدا کېږي او د هغه په تاثير سره زړه ګرځوي.

په دې اړه د علماوو اختلاف دی چې رسول الله ﷺ ذکر سوی ارشاد د بيان په تعريف کې وفرمايه او که په بدوالي کې؟ د دغه قولونو په مخته اېښودو سره صحيح خبره دا راوځي چې د دغه ارشاد څخه د بيان تعريف او بدي دواړې ظاهرېږي په دغه صورت کې به مطلب دا وي چې ځينې بيان زړونه مائل کوي او د خپل جواب ويلو څخه معذور کېږي، د سحر په ډول تاثير لري او دا ښه دی په شرط د دې چې د هغه بيان تعلق د رښتيا څرګندولو او رېښتيا ثابتولو سره وي او که د هغه تعلق د باطلو او فاسدو امورو سره وي نو بيا به هغه بد وي لکه څرنګه چې په يو حديث کې فرمايل سوي دي: الشعر هو کلام فحسنه حسن و قبيحه قبيح، يعني شعر کلام دی نو ښه شعر ته به ښه ويل کېږي او بد شعر ته به بد ويل کېږي.

## ځينې شعر حکمت وي

﴿۴۵۷۵﴾: وَعَنْ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حِكْمَةً. رواه البخاري

د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ځينې د شعرو څخه

حکمت وي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۳۷، رقم: ۶۱۴۵.

**تشريح**: مطلب دا دى چي ټول شعرونه خراب نه دي بلکه په هغو کي ځيني ښه او ګټور وي چي د هغو په ذريعه د حکمت او پوهي خبري معلوميږي.

## مبالغه مه کوئ

﴿۴۵۷۶﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلَكَ الْمُتَنَطِّعُوْنَ قَالَهَا ثَلَاثًا. رواه مسلم.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په کلام کي مبالغه کونکی هلاک سو، رسول الله ﷺ دا الفاظ دري واره وفرمايل. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۰۵۵، رقم: ۷-۲۶۷.

**د لغاتو حل**: المتنطعون: اى المتكلفون في الفصاحة. (په فصاحت کي تکليف کوونکي،)

**تشريح**: مطلب دا دى چي په تقرير او تحرير کي بې ځايه تکلف او پابندي کول ډېر بد دي کله چي د هغه مقصد د عظمت اظهار، ريا، او د هغه ځان ته مائل کول او راغب کول وي.

## يو ښه شعر

﴿۴۵۷۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصْدَقُ كَلِمَةٍ قَالَهَا الشَّاعِرُ كَلِمَةُ لَبِيدٍ أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللّٰهَ بَاطِلٌ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که يو شاعر رېښتوني خبره کړې وه نو هغه د لبيد قول دئ يعني دا چي (الا کل شئ ما خلا الله باطل) خبردار سئ د الله څخه پرته هر شی باطل او فاني دئ) بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۳۷، رقم: ۶۱۴۷، ومسلم ۴\۱۷۶۸، رقم: ۳-۲۲۵۶.

**تشريح**: لَبِيد، د عربو يو مشهور شاعر وو، په عربي ادب کي د هغه کلام او شاعرۍ ته د سند درجه تر لاسه ده، الله تعالى د اسلام هدايت ورته وکړ او د اسلام قبلولو څخه وروسته د صحابيت په درجه هم مشرف سو، لکه څرنګه چي د جاهليت په زمانه کي د خپل فن په وجه په قدر ورته کتل کېدل همدارنګه د اسلام په زمانه کي هم ډېر معزز او مکرم وو، ويل کيږي چي

هغه د ډېر عمر سړی وو او تقريبا د يو نيم سلو کالو په عمر له دنيا څخه رخصت سو .

رسول الله ﷺ چي د کوم کلام تعريف او توصيف کړی دی هغه شعر دادی :

الا كل شئ ما خلا الله باطل وكل نعيم لا محالة زائل

ژباړه: (مه هيروه چي) د الله ﷻ څخه پرته هر شی فنا کېدونکی دی او د دنيا هر لذت او راحت فناء کېدونکی دی .

دغه مشهور شعر هم د لبيد رضي الله عنه دی :

ولقد سامت من الحيوة وطولها وسوال هذا الناس كيف لبيد

ژباړه : زه د ژوند او د هغه د اوږدوالي څخه بېزاره سوی یم او د خلکو په وار وار پوښتنه کولو څخه چي لبيد څرنګه دی .

## د رسول ﷺ شعرونه اوريدل

﴿۴۵۷۸﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ رَدِفْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

حضرت عمرو بن شريد رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي يوه ورځ زه د رسول الله ﷺ سره پر

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا فَقَالَ هَلْ مَعَكَ مِنْ شِعْرِ أُمَيَّةَ بْنِ أَبِي الصَّلْتِ شَيْءٌ قُلْتُ

سپرلۍ شا ته سپور سوم ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا ستا د اميه بن ابي صلت يو څه اشعار په ياد دي ؟ ما وويل: هو ،

نَعَمْ قَالَ هِيهْ فَأَنْشَدْتُهُ بَيْتًا فَقَالَ هِيهْ ثُمَّ أَنْشَدْتُهُ بَيْتًا فَقَالَ هِيهْ حَتَّى أَنْشَدْتُهُ مِائَةَ بَيْتٍ. رواه مسلم.

رسول الله ﷺ وفرمايل : وه يې وايه، ما يو شعر ووايه ، رسول الله ﷺ بيا وفرمايل نور ووايه ، ما بيا يو شعر ووايه ، رسول الله ﷺ وفرمايل نور ووايه همداسي ما سل شعرونه وويل . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۷۶۷/۴، رقم: ۱- ۲۲۵۵.

**تشريح**: اميه ابن ابي الصلت هم د عربو يو مشهور او کمالداره شاعر وو ، د هغه تعلق د ثقيف د قبيلې څخه وو چي د جاهليت په زمانه کي يې د اهل کتابو څخه زده کړه کړې وه او د ديندارۍ خبري به يې کولې، پر حشر او نشر او د قيامت په ورځ يې هم عقيده درلودل او د هغه اشعار د علم او حکمت څخه ډک وه، رسول الله ﷺ د هغه په اړه فرمايلي وه : امن شعره وكفر قلبه، يعني

د هغه د اشعارو څخه ایمان ځلیږي که څه هم د هغه په زړه کي کفر دی، د هغه یو خاص بوختیا دا وه چي د آسماني کتابو علم لرونکو ته به تلی او راتلی او د هغوی څخه به یې د هغو زیرو او وړاند وینو په اړه پوښتني کولې چي په آسماني کتابو کي د نبي اخر الزمان ﷺ د پیغمبری په اړه وې، د هغه ګمان وو چي الله تعالی په خپلو کتابو کي د کوم نبي د راتلو خبر ورکړی دی هغه زه یم، او یوه ورځ به زه د نبوت په خلعت سره ونازول سم مګر کله چي د هغه آسماني کتابو عالمانو هغه ته وښودل چي هغه نبي به د قریشو څخه وي او هغه ته د رسول الله ﷺ د صفاتو تفصیل معلوم سو نو هغه د خپلو عقیدو او نظریاتو څخه وګرځېدی او د حسد او عناد پر لار روان سو چي زه باید پر هغه نبي هیڅکله ایمان نه راوړم چي د هغه تعلق د ثقیف د قبیلې څخه نه وي، ابن جوزي رحمه الله په کتاب وفاء کي لیکلي دي چي امیه ابن ابي الصلت په پېل کي د نبي کریم ﷺ د راتلو په ډېره سخته انتظار کوی او د رسول الله ﷺ د نبوت چي کومي نښي او صفتونه یې اورېدل د هغه په وجه یې دا غوښتنه درلودل چي ارمان زه هغه زمانه ووینم او د هغه خاص مرسته وکړم مګر کله چي د رسول الله ﷺ نبوت ښرګند سو نو د خپلو خبرو څخه وګرځېدی او د بغض او عناد لار یې اختیار کړل.

په هر حال د ذکر سوي حدیث څخه دا معلومه سوه چي کوم اشعار د علم او حکمت پر خبرو مشتمل وي د هغو اورېدل مسنون دي که څه هم د هغه اشعارو ویونکی کافر او فاسق وي.

## د رسول ﷺ خپلي ګوتي ته خطاب

﴿۴۵۷۹﴾: وَعَنْ جُنْدَبٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي بَعْضِ الْمَشَاهِدِ وَقَدْ دَمِيَتْ إِصْبَعُهُ فَقَالَ هَلْ أَنْتِ إِلَّا إِصْبَعٌ دَمِيتِ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ مَا لَقِيتِ.

متفق علیه.

د حضرت جندب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ په یوه غزا کي چي د رسول الله ﷺ ګوته مبارکه ویني سوه، رسول الله ﷺ ګوته مخاطب کړه او ورته وه یې فرمایل: ته یوه ګوته یې (یعني د بدن یو لوی اندام نه یې) او ویني سوې او په لاره د خدای ﷻ کي دي چي تا ولیدل (یعني دا تکلیف عبث نه دی خدای ﷻ ثواب راکوي). بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۶\۱۹، رقم: ۲۸۰۲، ومسلم ۳\۱۴۲۱، رقم: ۱۱۲- ۱۷۹۶.

**تشریح**: زخمي او په وینو لړلي ته چي رسول الله ﷺ کوم اشعار و فرمایل د هغه مطلب دا وو

چي ته د بدن يوه لويه برخه نه يې ، د بدن تر ټولو ارزښتناكه برخه نه يې بلكه يو معمولي ګوته يې ، او تا ته چي كوم تكليف در رسيدلى دى هغه سخت نه دى چي نه ته پرېكړل سوې يې او نه په هلاكت كي اخته سوې يې ته يوازي زخمي سوې يې او په وينو يې، تا چي دومره تكليف وړى دى په دې وجه د بې تابى څه وجه نسته حال دا چي دغه لږ تكليف هم ضائع كېدونكى نه دى بلكه د الله تعالى په لاره كي او د هغه په رضا كي چي تا تكليف وړ ى دى پر هغه به تاته اجر دركول كيږي، ځكه نو دغه تكليف هم ستا لپاره د خوشحالۍ او راحت ذريعه ده ، ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ د امت خلكو ته تلقين وفرمايه كه چيري يو مسلمان ته د الله تعالى په لاره كي يو تكليف او تاوان ورسيږي نو پر هغه بايد صبر وكړي بلكه په حقيقت كي هغه د شكر مقام دى چي د الله تعالى وركړى بدن د هغه په لاره كي د قربانولو توفيق په برخه سو چي يو ډېر لوى سعادت دى.

ددغه حديث په اړه دا سوال پيدا كيږي چي د رسول الله ﷺ ذكر سوى ارشاد يو شعر دى حال دا چي د رسول الله ﷺ ذات مبارك د شعر او شاعرۍ څخه پاك دى او د رسول الله ﷺ د ذات څخه د شعر صادرېدل ناممكن دي ځكه چي الله ﷻ دهغه په اړه فرمايلي دي : (و ما علمناه الشعر) او موږ هغه ته شعر نه دى ښودلى، ددغه سوال جواب دادى چي په شعر كي د شاعر مقصد او اراده هم شرط ده يعني دا ضروري ده چي كوم څوك يو موزون كلام ويلي دى هغه د موزونيت قصد او اراده هم كړې وي لكه څرنګه چي د باب په پېل كي بيان سوى دى حال دا چي د رسول الله ﷺ ارشاد بېله شكه موزون كلام دى مګر ددغه موزونيت رسول الله ﷺ قصد او اراده نوه كړې بلكه بېله قصده او ارادې د رسول الله ﷺ د ژبي مباركي څخه صادرېدونكي كلام شعر جوړ سو .

ځينو حضراتو دا جواب وركړى دى چي د رسول الله ﷺ ذكر سوى كلام په اصل كي د رجز څخه دى او پر رجز باندي د شعر اطلاق نه كيږي، ددې څخه پرته يحيى رحمه الله دا هم ويلي دي چي كوم څوك ناڅاپه يو شعر ووايي نو هغه ته شاعر نسي ويل كيداى او د الله تعالى د ارشاد : (وما علمناه الشعر) څخه مراد دادى چي رسول الله ﷺ شاعر نه دى .

## د حضرت حسان هجوه ويل

﴿۴۵۸۰﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ قُرَيْظَةَ لِحَسَّانَ

د حضرت براء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د قريظه په ورځ (يعني په كومه ورځ چي د

بني قريظه يهودو محاصره كړې وو) حسان بن ثابت رضي الله عنه (شاعر) ته وفرمايل:

بْنِ ثَابِتٍ اهْجُ الْمُشْرِكِينَ فَإِنَّ جِبْرِيلَ مَعَكَ وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

ته د مشركانو بد وايه جبرائيل عليه السلام ستا سره دئ، او رسول الله ﷺ چي به كله د كافرانو

وَسَلَّمَ يَقُولُ لِحَسَّانَ أَجِبْ عَنِّي اللَّهُمَّ أَيِّدْهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ. متفق عليه.

څخه خپله هجوه واوريدل نو حسان ته به يې وفرمايل: ته زما د لوري دوى ته جواب وركړه، بيا يې د حسان لپاره داسي دعاء وغوښتل اې الله: په روح القدس (جبرائيل عليه السلام) سره دحسان مرسته وكړې. بخاري او مسلم. (هجوه: په شعر او يا نظم كي يو چا ته بد ويل).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٠٤، رقم: ٣٢١٢، ومسلم٤\١٩٣٣، رقم: ٥١- ٢٤٨٥.

**تشريح**: د يهوديانو د يوې قبيلې نوم بنو قريظه وو چي د مدينې منورې د ښار پر يو غاړه اباد وه، كله چي هغه يهوديانو د معاهدې خلاف د مسلمانانو پر خلاف فلانونه جوړول پېل كړل او د كفارو مرسته يې كول نو رسول الله ﷺ او مسلمانانو ته يې سخت تكليف ورسوى، ځكه نو رسول الله ﷺ د خندق د غزا څخه وروسته د مسلمانانو په شتون كي د هغه قبيلې محاصره وكړه چي د هغه په نتيجه كي هغه كفار په خپله سزا ورسېدل، نو دغه پېښه د قريظه په ورځ سره تعبير كړل سوې ده.

حضرت حسان ابن ثابت ابن منذر د مدينې منورې او سيدونكى وو او يو جليل القدر انصاري صحابي وو، نوموړى ډېر لوى شاعر وو او د اسلام په شاعرانو كي شمېرل كيږي او د شاعر رسول په لقب سره يادېږي، د هغه عمر يوسل او شل كاله وو، شپېته كاله د كفر په حالت كي وو او شپېته كاله يې د اسلام په حالت كي تېر كړل.

## د قريشو هجوه

﴿۴۵۸۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اهْجُوا قُرَيْشًا فَإِنَّهُ أَشَدُّ عَلَيْهَا مِنْ رَشْقٍ بِالنَّبْلِ. رواه مسلم.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د جګړې په دوران كي (خپلو شاعرانو ته) وفرمايل: د قريشو بد وايا ست ځكه چي د قريشو بد ويل د قريشو لپاره د غشو تر زخم زيات سخته ده. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\ ۱۹۳۵، رقم: ۱۵۷- ۲۴۹۰.

**تشریح**: د هجو معنی د اشعارو په ذریعه د بدی بیانول دي ، ددغه حدیث څخه څرګنده سوه چي د کفارو او د دین د دښمنانو هجو کول جائز دي مګر ددې خبري لحاظ ساتل ضروري دي که چیري کفار د مسلمانانو هجو کوي نو بیا د هغوی هجو دي وکړل سي ددې څخه وړاندي هغوی ته هجو کول روا نه دي ځکه چي په دغه صورت کي به هغوی د مسلمانانو هجو کوي او همدارنګه د مسلمانانو پر خلاف د هغوی د هجو سبب به خپله مسلمان وګرځي ، ددغه مسئلې بنیاد دغه آیت کریمه دی چي :

وَلاَ تَسُبُّواْ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللّهِ فَيَسُبُّواْ اللّهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ،

ژباړه : اې مسلمانانو ! هغه خلکو ته ښکنځل مه کوئ کوم چي غیر الله یادوي یعني کفار او مشرکین کنه نو هغوی به بېله علمه الله ته ښکنځل کول پیل کړي .

﴿۴۵۸۲﴾ : وَعَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لِحَسَّانَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل چي حسان

إِنَّ رُوحَ الْقُدُسِ لَا يَزَالُ يُؤَيِّدُكَ مَا نَافَحْتَ عَنْ اللّٰهِ وَرَسُولِهِ وَقَالَتْ سَمِعْتُ

(شاعر) ته یې دا وویل تر څو پوري چي ته د الله د رسول د لوري مقابله کوې روح القدس (جبرائیل علیه السلام) به ستا مرسته کوي ، بي بي عائشه وایي ما د رسول الله ﷺ څخه

رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ هَجَاهُمْ حَسَّانُ فَشَفَى وَاشْتَفَى. رواه مسلم.

واوریدل چي حسان د کفارو بد وویل او په دې بد ویلو سره یې مسلمانانو ته شفاء ورکړه او خپله یې شفاء تر لاسه کړه یعني سکون او اطمینان یې تر لاسه کړ . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\ ۱۹۳۵، رقم: ۱۵۷- ۲۴۹۰.

**د لغاتو حل**: نافحت: ای دافعت و خاصمت (دفاع کول)

## د خندق په غزا کي د عبدالله بن رواحه اشعار ویل

﴿۴۵۸۳﴾ : وَعَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت براء رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به د خندق په غزا کي خاوري وړلې تر دې

يَنْقُلُ التُّرَابَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ حَتّٰى أَغْبَرَ بَطْنَهُ يَقُولُ وَاللّٰهِ لَوْلَا اللّٰهُ مَا اهْتَدَيْنَا،

چي د رسول الله ﷺ نس مبارک په خاورو ولړل سو او رسول الله ﷺ به دا فرمایل: قسم په خدای که د الله ﷻ هدایت نه وای نو موږ به هیڅکله هدایت نه وای تر لاسه کړی

وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا، فَأَنْزِلَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا، وَثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا،

نه به مو صدقه ورکولای نه به مو لمونځ کولای. اې الله! پر موږ آرام او سکینه نازل کړې او موږ چي د ښمنانو سره جنګیږو نو موږ ثابت قدمه ولرې، دغه کافرانو پر موږ زیاتی کړی دئ هغوی

إِنَّ الْأُلٰى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا، إِذَا أَرَادُوا فِتْنَةً أَبَيْنَا، يَرْفَعُ بِهَا صَوْتَهُ أَبَيْنَا أَبَيْنَا. متفق عليه.

زموږ په فتنه کي د اچولو اراده لري نو موږ ددې څخه انکار کوو . رسول الله ﷺ به دا رجز (یعني د عبدالله بن رواحه رضي الله عنه اشعار) په لوړ آواز سره ویل او اَبَینا اَبَینا الفاظ یې په ډیر لوړ آواز سره فرمایل رجز: دمیړاني شعرونه ویلو ته وایي .بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۳۹۹، رقم: ۴۱۰۴، ومسلم ۳\۱۴۳۰، رقم: ۱۲۵- ۱۸۰۳.

**تشریح**: په (یرفع بها صوته) کي د بها ضمیر ابینا ته راجع دی او د ابینا ابینا څخه مخکي د قائلا لفظ مقدر (پټ) دی، مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به دغه شعرونه ویل نو په پای کي به یې د ابینا لفظ په وار وار وایه او هغه وخت به یې اواز لوړوی، او ددې څخه مقصد ددغه لفظ مفهوم مؤکد کول دي او د مسلمانانو او کافرانو غوږو ته رسول دي.

طیبي رحمة الله عليه دا لیکلي دي چي د بها ضمیر هغه اشعارو ته راجع دی او د ابینا ابینا په دغه جمله کي حال واقع کیږي، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي رسول الله ﷺ به ټول اشعار په لوړ اواز ویل او د ابنیا لفظ ته په رسیدو سره به یې اواز په خاصه توګه لوړوی.

## د انصارو او مهاجرینو لپاره دعاء

﴿۴۵۸۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ جَعَلَ الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَارُ يَحْفِرُونَ الْخَنْدَقَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د احزابو په غزا کي به مهاجرینو او انصارو خندق

وَيَنْقُلُونَ التُّرَابَ وَهُمْ يَقُولُونَ نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدًا، عَلَى الْجِهَادِ مَا

كيندئ او خاوري به يې وړلې او ويل به يې موږ هغه خلک يو چې د محمد ﷺ پر لاس مو د جهاد بيعت کړى دئ

بَقِينَا أَبَدًا. يَقُولُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ يُجِيبُهُمْ اللّٰهُمَّ لَا عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الْآخِرَةْ فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةْ. متفق عليه.

تر څو پورې چې موږ ژوندي يو جهاد به کوو، او رسول الله ﷺ به ددې په جواب کې وويل: اې الله! ژوند نشته مګر د آخرت ژوند ته انصار او مهاجرين و بخښې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۴۶، رقم: ۲۸۳۵، ومسلم ۳\۱۴۳۲، رقم: ۱۳۰- ۱۸۰۵.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د دغه دعائيه الفاظو په ذريعه صحابه کرامو ته ډاډ ورکوى چې تاسو په دغه وخت کې تکليف زغمى او د کومو سختيو سره چې مخ ياست پر هغه صبر کوئ چې د الله تعالى انعام ستاسو لپاره مقدر دى او په دغه دنيا کې تاسو ته راحت او سکون تر لاسه سي يا تر لاسه نسي مګر د آخرت په ژوند کې به تاسو ته د خپل تکليف او زحمت په عوض کې بې شمېره انعامات تر لاسه کيږي او اصل انعامونه د آخرت دي، په دې تو ګه چې ژوند خو د آخرت ژوند دى چې تل پاته کېدونکى دى حال دا چې د دنيا به څه راحت او څه تکليف وي، ټول معدوم کېدونکي دي لکه څرنګه چې الله تعالى فرمايي: وَما الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلاَّ مَتَاعُ الْغُرُورِ.

## د خراب شعر بدوالى

﴿۴۵۸۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ رَجُلٍ قَيْحًا يَرِيهِ خَيْرٌ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا. متفق عليه.

د حضرت ابو هريرة ﷛ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: نس د نو څخه ډکول چې نس خراب کړي تر دې غوره دي چې هغه د شعر څخه ډکه کړي (يعني چې د قرآن کريم وظيفه او نور ديني علم پرېږدي يوازي شعر ته مخ کړي). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۴۸، رقم: ۶۱۵۵، ومسلم ۴\۱۷۶۹، رقم: ۷- ۲۲۵۷.

**تشريح**: د دغه حديث په ذريعه د داسي شاعرى بدي بيان سوې ده چې انسان د هر کار څخه

غافل کوي ، کوم شاعر چي هر وخت د شعر په مضامينو او جوړېدو کي مستغرق وي او د فرضو ، عبادت، تلاوت ، ذکر او شرعي علومو څخه غافل وي نو د هغه د شعرونو د خرابۍ او د نفرت ورکېدو په اعتبار هغه ته ترنو هم بد ويل سوي دي که څه هم هغه شعرونه پر ښه مضامينو باندي مشتمل وي .

او يا په دغه ارشاد کي د هغه شعرونو بدي مراد ده چي د فحش، بې حيايي، کفر او فسق پر مضامينو باندي د مشتمل کېدو په وجه خراب اشعار ورته ويل کيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په توره او ژبه سره جهاد

﴿۴۵۸۶﴾: عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ

د حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما نبي کريم ﷺ ته وويل: الله تعالی چي د

تَعَالَى قَدْ أَنْزَلَ فِي الشِّعْرِ مَا أَنْزَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

شعر په اړه کوم حکم نازل کړی دئ هغه څرګند دئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

الْمُؤْمِنَ يُجَاهِدُ بِسَيْفِهِ وَلِسَانِهِ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَكَأَنَّمَا تَرْمُوْنَهُمْ بِهِ

مؤمن په توره سره هم جهاد کوي او په ژبه سره هم، قسم دئ په هغه ذات چي د هغه په واک کي زما ساه ده ستاسو شعر کافران داسي ولي (يعني بد پر لګيږي)

نَضْحَ النَّبْلِ .رواه في شرح السنة. وفي الاستيعاب لابن عبد البر أنه قال يا رسول الله ماذا ترى في الشعر ؟ فقال : " إن المؤمن يجاهد بسيفه ولسانه

لکه ستاسي غشي . شرح السنه ، او په کتاب استيعاب کي د ابن عبد البر څخه نقل دي چي هغه (يعني کعب) وويل: تاسو څه حکم کوئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : مؤمن په توره سره هم جهاد کوي او په ژبه سره هم .

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۲\۳۷۸، رقم: ۳۴۰۹.

**تشريح**: علماؤ ليکلي دي چي درو شاعرانو په اسلام کي غوره حيثيت درلودی چي په هغوی

کي يو حضرت حسان ابن ثابت ﷜ وو، دوهم حضرت عبدالله ابن رواحه ﷜ او دريم حضرت کعب﷜ ابن مالک، علماؤ دا هم ليکلي دي چي دغه درو سره حضراتو شعرونه بېل بېل انداز لري، د حضرت کعب﷜اشعار پر داسي مضامينو باندي مشتمل وه چي کفار او مشرکين يې د جنګ او جهاد په بيره کي اخته کول او د هغوی پر زړونو د رعب او هيبت اثرات مرتب کېدل، حضرت حسان ﷜ د خپلو شعرو په ذريعه د دين دښمنان او د رسول الله ﷺ پر دښمنانو باندي د نسب او حسب د طعن او پيغور غشي چلوی، او د حضرت عبدالله ابن رواحه ﷜ د اشعارو اندازه د کفارو او مشرکينو توبيخ اوبدی ته وو.

د حديث خلاصه داده چي کله الله تعالی د قرآن کريم دغه آيت : (والشعراء يتبعهم الغاوون) نازل کړ او ددې په ذريعه د شعر او شاعری بدی څرګنده سول نو حضرت کعب ﷜ د شاعری د خرابی او د خپل حال يعني خپل شاعر کېدو د افسوس د څرګندېدو په توګه د رسول الله ﷺ په وړاندي ذکر سوې جمله ادا کړل مګر رسول الله ﷺ د خپل جواب په ذريعه هغه ته څرګنده کړه چي شعر او شاعری بذا ت خود بد شی نه دی مګر په دې کي خرابي هغه وخت پيدا کيږي کله چي هغه د غير شرعي خبرو او د نامناسب مضامينو د اظهار ذريعه سي او په عامه توګه شاعران د فکر او خيال ګمراهی او د ژبي د بداعتدالو ښکار کيږي ځکه نو الله تعالی د هغه په بدی کي ذکر سوی آيت نازل کړ، او کوم چي ددې خبري تعلق دی چي د حق او صداقت د اظهار او د باطل د ترديد ذريعه جوړوي نو هغه شعر به ددغه آيت محمول نه وي بلکه کوم شاعران چي د خپلو شعرونو په ذريعه د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ لپاره د کفارو د شعرو مقابله کوي او د هغوی د هجو د جواب په هجو ورکولو سره د اسلام د دين تائيد کوي، هغوی په اصل کي له جهاد کونکو څخه شمېر ل کيږي نو تاسو مطمئن اوسئ چي نه ستاسو اشعار ددغه آيت په رڼا کي د بدی وړ دي او نه تاسو په هغه شاعرانو کي ياست چي د هغوی د بدی ظاهرولو لپاره دغه آيت نازل سوی دی ځکه چي ستاسو په ډول شاعران الله ﷻ د خپل دغه قول په ذريعه د مذکوره آيت څخه ايستلي دي : (الا الذين آمنوا وعملو الصالحات وذکر الله کثيرا).

## لږ خبري د ايمان نښه ده

﴿۴۵۸۷﴾ : وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحَيَاءُ وَالْعِيُّ شُعْبَتَانِ مِنَ الْإِيمَانِ وَالْبَذَاءُ وَالْبَيَانُ شُعْبَتَانِ مِنَ النِّفَاقِ . رواه الترمذي.

د حضرت ابو مامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : حيا او ژبه په واک کي ساتل د ايمان دوه ښاخونه دي او فحش ويل او بې ګټې خبري د نفاق دوه ښاخونه دي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۲۹، رقم: ۲۰۲۷.

**د لغاتو حل**: البذاء: فحش الكلام (بدي خبري)

**تشريح**: شرم او حياء د ايمان ښاخ کېدل يوه څرګنده او معروفه خبره ده او ددې تفصيل په باب الايمان کي تېر سوی دی . ژبه په واک کي ساتل د ايمان ښاخ کېدل او فحش وينه د نفاق ښاخ کېدل په دې اعتبار دي چي مؤمن د خپل حقيقت په اعتبار د شرم او حياء په کومو صفتونو چي مزين کيږي هغه د خپل خدايي عبادت او د خپل خدای ﷻ د مخلوق په خدمت او د خپل باطن په اصلاح کي چي څرنګه بوخت وي د هغه په وجه هغه ته پر بې ګټې تقرير او بيان باندي قدرت تر لاسه نه وي ، هغه پردې قادر نه وي چي خپل مفهوم او مدعا د مبالغې او د ژبې د تيزۍ په ذريعه ثابت او ظاهر کړل سي بلکه هغه ددې بيري څخه لږ ويل اختيار وي او خپله ژبه په واک کي ساتي چي داسي نه د ژبې څخه يو خرابه خبره راووځي او هغه د فحش ويني مرتکب سي ، ددې پر خلاف د منافق شان دا وي چي هغه فحش ويني او پالتو خبرو کولو لار اختيار وي چي د هغه په نتيجه کي د بې ګټې تقرير او بيان کولو باندي قادر کيږي .

## بې فائدې خبري مکروه دي

﴿۴۵۸۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابو ثعلبة خشني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّ أَحَبَّكُمْ إِلَيَّ وَأَقْرَبَكُمْ مِنِّي يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَحَاسِنُكُمْ أَخْلَاقًا وَإِنَّ أَبْغَضَكُمْ

د قيامت په ورځ به ما ته تر ټولو عزيز، محبوب او نژدې هغه خلک وي کوم چي په تاسو کي زيات خوش اخلاقه وي ، او مبغوض ترين

إِلَيَّ وَأَبْعَدَكُمْ مِنِّي مَسَاوِيكُمْ اَخْلَاقًا الثَّرْثَارُونَ وَالْمُتَشَدِّقُونَ الْمُتَفَيْهِقُونَ

او زما څخه ډېر ليري به هغه خلک وي کوم چي ډېر بد اخلاقه وي ، زياتي خبري جوړونکي په بې احتياطۍ سره پالتو خبري او تکبر کونکي وي ،

رواه البيهقي في شعب الايمان وروى الترمذي نحوه عن جابر وفي رواية

بيهقي، ترمذي د حضرت جابر رضي الله عنه څخه دا ډول روايت نقل کړی دئ او په يوه روايت کي دي چي

قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ عَلِمْنَا الثَّرْثَارُونَ وَالْمُتَشَدِّقُونَ فَمَا الْمُتَفَيْهِقُونَ قَالَ الْمُتَكَبِّرُونَ.

صحابه کرامو وويل: (اې دالله رسوله!) ثرثارون او متشدقون خو موږ پيژنو مګر متفيقهون کوم خلک دي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل متکبر (غرور کونکي) . (ثرثاون: ډيري خبري جوړونکي، متشدقون: په بې پرواهي سره پالتو خبري کونکي، متفيهقون : کبرجن او متکبرته وايي) .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۴\ ۲۵۰، رقم: ۴۹۶۹.

**د لغاتو حل**: المتفيهقون: هم الذين يملؤون افواههم بالكلام تكبرا . (په غرور خبري کوونکی.)

**تشريح**: فيهق، د ضرورت څخه زياتي خبري کول او مخ په ګرځولو سره يو خبره کولو ته وايي، لکه څرنګه چي په تکبر او غرور کي د اخته کسانو عادت وي چي کله هغوی د يو چا سره خبري کوي نو د هغوی د رويې څخه داسي محسوس کيږي لکه چي هغوی خپل مخاطب ډېر حقير او ذليل ګڼي او دا هم نه خوښوي چي هغه ته په مخ کولو سره خبره وکړي بلکه د هغه څخه په مخ ګرځولو خبري کوي ، ددغه معنوي لزوم په وجه د متفيهقين وضاحت د متکبرينو په ذريعه سوی دی .

ددغه حديث څخه څرګنده سوه چي پالتو او بې ګټي خبري کول ، په جوړولو سره خبري کول او بيان کول مکروه او بد دی مګر د حق لپاره د خلکو ذهن او فکر متاثر کول ، زړونه نرمول او عبادت او طاعت ته متوجه کولو لپاره په وعظ او نصيحت کي چي کوم بيان او تقرير بيانيږي هغه بد او مکروه نه دی مګر په دغه صورت کي دا هم ضروري ده چي د بيان انداز او طرز داسي اختيار کړل سي چي په اسانۍ سره خلک مقصد ته ورسول سي ، ددې پر خلاف پېچيده او دقيق انداز ، مشکل لغاتونه او الفاظ چي د عام ذهن او فهم څخه لوړ وي او د هغه په وجه بې علمه خلک د هغه د وعظ او تقرير څخه ګټه تر لاسه نه کړلای سي مناسب او موزون نه دي.

## يوه پيشګويي

﴿۴۵۸۹﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَخْرُجَ قَوْمٌ يَأْكُلُونَ بِأَلْسِنَتِهِمْ كَمَا يَأْكُلُ الْبَقَرُ

بِأَلْسِنَتِهَا. رواه احمد

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قيامت به تر هغه وخته پوري نه قائميږي تر څو پوري چي يو داسي قوم پيدا نه سي چي په خپلو ژبو سره به داسي خوراک کوي لکه غواوي چي په خپلو ژبو سره خوراک کوي (يعني خپلي ژبي به د خوراک وسيله جوړه کړي او په دروغو خبرو يا فصاحت او بلاغت يا مدح او ذم سره به خپل خوراک پيدا کوي). احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱\۱۸۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي د قيامت د نژدې کېدو د علامو څخه يوه علامه دا هم ده چي داسي خلک به پيدا سي چي خپل ژبي به د خوراک او ښېښاک ذريعه جوړوي، په دې توګه چي هغوی به د ښه راغلاست په وجه د خلکو درواغ تعريفونه بيانوي يا د بغض او حسد په وجه د هغوی د دروغو بدي بيانوي او په خپل تقرير او تحرير کي د درواغ د فصاحت څرګندونه کوي چي خلک په خپل جال کي اخته کړي او د هغوی څخه د دنيا مال تر لاسه کړي او د خپلو خواهشاتو تکميل وکړي.

لکه څرنګه چي غواوي د خپل ژبي په ذريعه خوراک کوي، په دغه الفاظو کي دې ته اشاره سوې ده چي څرنګه غواوي په خپل ژبه سره خوراک کوي او د خوراک په وخت کي دا تميز نه کوي چي هغه وابنه وچ دي که لانده، خواږه دي که ترخه، جائز دي که ناجائز، همدارنګه هغه خلک چي خپلي ژبي د ناجائز مقصد او ناروا خواهشاتو د پوره کولو وسيله او ذريعه جوړوي، د حق او باطل، ريښتيا او دروغو په مينځ کي فرق نه کوي او نه د حلال او حرام په مينځ کي فرق کوي.

**اوږده ژبه**

﴿۴۵۹۰﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ يُبْغِضُ الْبَلِيغَ مِنَ الرِّجَالِ الَّذِي يَتَخَلَّلُ بِلِسَانِهِ كَمَا يَتَخَلَّلُ الْبَاقِرَةُ بِلِسَانِهَا. رواه الترمذي وابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث غريب.

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی هغه سړی بد ګڼي چي په خبرو کي مبالغه کوي هغه څوک چي خپله ژبه په خبرو سره تاووي لکه غوايان

چي وابنه په خوله کي ننباسي او په خپلو ژبو يې يوې خوا بلي خوا ته اړوي .ترمذي او ابوداؤد . داحديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۷۴، رقم: ۵۰۰۵، والترمذي ۵\ ۱۲۹، رقم: ۲۸۵۳.

**د لغاتو حل**: الباقرة: اى البقرة (غو)

**تشريح**: مطلب دادی چي د ژبي اوږدوالی او طاقت لساني ښه شی نه دی ، په خپل خبرو کي د حد څخه زيات فصاحت او بلاغت کول د ناپوهانو خلکو په نزد خو يو وصف ګڼل کيږي مګر کوم پوهان او هوښيار خلک چي په دغه صفت کي پټه خرابي ويني چي په عامه توګه داسي خبري جوړونکي خلک درواغجن او چمباز وي نو د هغوی په نزد ددغه وصف هيڅ اعتبار نسته، ځکه نو رسول الله ﷺ وفرمايل : داسي کس د الله ﷻ په نزد ناخوښه دی ، نو ښه کلام هغه دی چي د ضرورت په اندازه او ساده وي چي د هغه څخه دا څرګنديږي چي د متکلم ظاهري الفاظ د هغه د باطني کيفياتو عکس وي چي دا د شريعت تقاضا هم ده .

## د بې عمله نصيحت کونکو عذاب

﴿۴۵۹۱﴾ :وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَرْتُ لَيْلَةً

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د معراج په شپه زه پر داسي

[أُ]سْرِيَ بِيْ بِقَوْمٍ تُقْرَضُ شِفَاهُهُمْ بِمَقَارِيْضَ النَّارِ فَقُلْتُ يَا جِبْرِيْلُ مَنْ

خلکو تير سوم چي د هغوی ژبي د اور په غچيانو سره پريکېدلې ، ما د جبرائيل عليه السلام څخه پوښتنه وکړه دا څوک دي ؟

[ه]ؤُلَاءِ ؟ قَالَ هٰؤُلَاءِ خُطَبَاءُ أُمَّتِكَ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ مَا لَا يَفْعَلُوْنَ. رواه [ال]ترمذي وقال هذا حديث غريب.

هغه راته وويل دا ستا د امت خطيبان (نصيحت کونکي) دي چي داسي خبري به يې کولې په کومو چي به يې خپله عمل نه کوئ . ترمذي.دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: لم نجده عند الترمذي

**تشريح**: په دغه حديث کي د هغو واعظانو او خطيبانو د بې عملي بد څرګنديږي ، نه دا چي د دغه ارشاد مقصد ددې خبري خرابي بيانول دي چي هغوی د نېکيو لپاره ولي وايي که څه هم

هغوی خپله نیک کارونه نه کوي ، له دې کبله علماء وایي چي په امر بالمعروف کي فعل شرط نه دی یعني دا ضروري نه ده چي د نېک لپاره هغه سړی ویل وکړي چي هغه په خپله هم عمل کوي ځکه چي د کوم امر باالمعروف بنیاد محض پر قول باندي وي او پر هغه عمل نه وي نو د هغه اثر هم نه وي .

## د غوړ ژبي په باره کي وعید

﴿۴۵۹۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَعَلَّمَ صَرْفَ الْكَلَامِ لِيَسْبِيَ بِهِ قُلُوبَ الرِّجَالِ أَوِ النَّاسِ لَمْ يَقْبَلِ اللَّهُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَرْفًا وَلَا عَدْلًا. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي (د فصاحت او چم ) داسي خبري زده کړي چي په هغه سره د نارینوو یا د خلکو پر زړو واک تر لاسه کړي ، الله تعالی به د قیامت په ورځ د هغوی څخه نه فرض قبول کړي او نه نفل . ابوداؤد

**تخریج:** سنن ابي داود ۵\ ۲۷۴، رقم: ۵۰۰۶.

**د لغاتو حل:** صرفا : ای توبة.

**تشریح:** د ذکر سوي سزا تعلق د هغه سړي سره دی چي د ضرورت څخه زیاتي خبري وکړي ، خپل مقصد په داسي راچاپېره کولو سره بیان کړي چي حقیقت ظاهر نسي یا خپل کلام د ضرورت څخه زیات په فصاحت او بلاغت سره مزین او ښکلی کړي او د دغه شیانو مقصد داوي چي خلک هغه ته متوجه سي او د هغه د خبرو څخه په اثر قبلولو سره د هغه مقصد پوره کړي .

## لنډ تقریر ښه دی

﴿۴۵۹۳﴾: وَعَنْ عَمْرِو ابْنِ الْعَاصِ أَنَّهُ قَالَ يَوْمًا وَقَامَ رَجُلٌ فَأَكْثَرَ الْقَوْلَ

د حضرت عمرو ابن العاص رضی الله عنه څخه روایت دئ چي یوه ورځ یو سړی ولاړ سو په فصاحت او بلاغت سره یې یو اوږد تقریر وکړ ،

فَقَالَ عَمْرٌو لَوْ قَصَدَ فِي قَوْلِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

حضرت عمرو رضی الله عنه وویل که ده په خپل بیان کي د لنډوالي څخه کار اخیستی وای نو غوره به

وه، ځکه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي

وَسَلَّمَ يَقُولُ لَقَدْ رَأَيْتُ أَوْ أُمِرْتُ أَنْ أَتَجَوَّزَ فِي الْقَوْلِ فَإِنَّ الْجَوَازَ هُوَ خَيْرٌ .

رواه ابوداؤد.

چي زه پوه سوی یم یا حکم راکړل سوی دئ ددې خبري چي په تقریر او خبرو اترو کي د لنډوالي څخه کار واخلم ځکه چي لنډ تقریر غوره وي . ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۲۷۵، رقم: ۵۰۰۸.

**د لغاتو حل**: انجوز: ای اسرع.

**تشریح**: په روایت کي د (فقال عمرو) الفاظ د خبرو د اوږدوالي لپاره تکراري نقل سوي دي ځکه چي (ولو قصد...الخ) مقوله ده او (وقال یوم او قام رجل) حال دی، او ښکنده ده چي د حال په وجه د قول او مقولې په مینځ کي خاص فرق وسو ځکه د فقال عمرو دوهم وار ویلو سره یې د قول اعاده وکړه.

**ځیني علم جهالت وي**

﴿۴۵۹۴﴾: وَعَنْ صَخْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ سَمِعْتُ

حضرت صخر بن عبد الله بن بریدة رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د پلار څخه روایت کوي چي ما د

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا وَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ جَهْلًا وَإِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حُكْمًا وَإِنَّ مِنَ الْقَوْلِ عِيَالًا . رواه ابوداؤد.

رسول الله ﷺ څخه دا اوریدلي دي چي ځیني بیان د جادو په ډول او ځیني د علم څخه جهل دی او ځیني شعرونه پر حکمت مبني او ګټه رسونکي وي او ځیني قولونه هلاکت وي، ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود: ۵\۲۷۸، رقم: ۵۰۱۲.

**د لغاتو حل**: عِیالا: ای ثقلا علی سامعک.

**تشریح**: ځیني علم جهالت وي: ددغه جملې دوې معناوي دي، یو خو دا چي یو سړی داسي علم حاصل کړي چي ګټور نه وي او نه هغه ته اړتیا وي لکه علم جعفر، رمل یا علم نجوم، فلسلفه او داسي نور، او په دغه بې ګټي عِلم کي د بوختیا په وجه هغه د ضروري علومو څخه

محروم سي چي په هغه سره د خلکو احتیاج او ضرورت اړوند وي، لکه قرآن کریم، احادیث، د دین علوم، نو څرګنده ده چي په دغه صورت کي به دا ویل کیږي چي هغه څوک چي بې ګټې علم تر لاسه کړي هغه علم د نورو ضروري علومو څخه هغه محروم کړی دی، ددې خلاصه دا سوه چي ځیني علوم په حقیقت کي جهل لازموي او په دې اعتبار فرمایل سوي دي چي ځیني علوم جهالت وي.

دوهمه معنی داده چي علم تر لاسه کونکی پر خپل علم باندي عمل کونکی نه وي، په دې اعتبار سره هغه سړی د عالم کېدو سربېره جاهل ګرځول کیږي ځکه چي کوم څوک علم لري او عمل نه په کوي نو هغه ګویا جاهل دی.

ددې څخه پرته ددغه ارشاد څخه دا مراد هم اخیستل کیدای سي چي کوم څوک د علم دعوه کوي او د خپل ګمان مطابق ځان عالم ګڼي مګر په حقیقت کي هغه عالم نه وي نو د هغه دغه علم علم نه دی بلکه جهالت او ناپوهي ده.

او ځیني قولونه هلاکت وي: ددې مطلب دادی چي یو سړی یوه داسي خبره وکړي چي د هغه په وجه هغه خپل ځان په هلاکت کي اخته کړي یا کوم څوک چي هغه خبره واوري نو هغه په غم او تکلیف کي اخته سو، په دې توګه که چیري هغه اورېدونکی جاهل وي نو هغه خبره د هغه په پوهه کي نه راغله او که عالم وي نو د هغه لپاره بې ګټې ده یا هغه یو داسي خبره ده چي اورېدونکی یې نه خوښوي او د هغه خبري په وجه هغه ته تکلیف رسیږي نو په دغه صورتو کي به دا ویل کیږي چي د ویونکي هغه قول او کلام د هلاکت ذریعه وګرځېدل.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د حسان شاعر فضیلت

﴿۴۵۹۵﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ لِحَسَّانَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به د حسان (شاعر) لپاره په مسجد

مِنْبَرًا فِي الْمَسْجِدِ يَقُوْمُ عَلَيْهِ قَائِمًا يُفَاخِرُ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

کي منبر کښېښنودئ، حسان به پر هغه ودریدئ، د رسول الله ﷺ د لوري به یې د فخر څرګندونه کول یا د رسول الله ﷺ د لوري به یې د کفارو د مذمت (بدوالي)

وَسَلَّمَ أَوْيُنَافِحُ وَيَقُوْلُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ يُؤَيِّدُ حَسَّانَ

مقابله كول او رسول الله ﷺ به دا فرمايل : بېشكه الله تعالى د حسان تائيد كوي

بِرُوْحِ الْقُدُسِ مَا نَافَحَ أَوْ فَاخَرَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ. رواه البخاري.

په جبرائيل عليه السلام سره تر هغو پوري چي هغه د رسول الله ﷺ د لوري مقابله يا فخر كوي. بخاري.

**تخريج**: لم نجده عند البخاري، بل هو عند الترمذي ۵\۱۲۶، رقم: ۲۸۴۶.

## د اوښانو د حدي اثر

﴿۴۵۹۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَادٍ يُقَالُ لَهُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ يو حاد وو (حاد د اوښانو د شړلو غزل

أَنْجَشَةُ وَكَانَ حَسَنَ الصَّوْتِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُوَيْدَكَ يَا أَنْجَشَةُ لَا تَكْسِرُ الْقَوَارِيرَ قَالَ قَتَادَةُ يَعْنِي ضَعَفَةَ النِّسَاءِ. متفق عليه.

ويونكى)، چي د هغه نوم انجشه وو ډير ښه آوازي وو، يوه ورځ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: اې (نجشه) اوښان په كراره كراره شړه (يعني په خپل حدي سره اوښان مه ګرموه تيزي يې مه شړه) او شيشې مه ماتوه، قتاده رضي الله عنه وايي د شيشو څخه د رسول الله ﷺ مراد كمزوري ښځي وې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۹۴، رقم: ۶۲۱۱، ومسلم ۴\۱۸۱۲، رقم: ۷۳- ۲۳۲۳.

**تشريح** (حُدِي): د صراح مطابق هغه په زوره غزلي ته وايي چي د هغه په ذريعه اوښان شړل كيږي، د لغت په نورو كتابو كي دا ليكلي دي چي حُدي د عربو د چوپانانو نفحې (شپيلې) ته وايي، په عربو كي دا رواج دى چي د اوښان شړونكي كله دا ويني چي د هغه اوښ ستړى سوى دى يا هغه سست سوى دى نو هغه په لوړ او خوش آوازي سره غزل ويل پيل كړي د دغه غزلي آواز په اوښ كي بيداري او ګرمي پيدا كوي چي په هغه سره تېز سي، په كتابو كي ليكلي دي چي حُدي مباح دى او په دې اړه د هيڅ يو عالم اختلاف نسته.

قوارير د قاروره جمع ده چي معنى يې د شيشې ده، د ارشاد (ولا تكسر القوارير) يعني

شیشې مه ماتوه، د دغه جملې دوه مطلبه دي ، يو دا چې د ښځو په بدن کې کوم فطري نزاکت او کمزوري وي د هغه په وجه د اوښانو تېز تلل او جمپونه وهل هغوی ته د سخت تکليف سبب ګرځي نو رسول الله ﷺ خپل ساربان انجشه رضی الله عنه ته حکم ورکړ چې اوښان په دومره تيزي سره مه شړه چې پر هغه سپرې ښځې په تکليف سي .

دوهم مطلب دا دی چې د دغه ارشاد په ذريعه د ښځو د زړه کمزورۍ او نرمۍ ته اشاره کول مقصد وو ، يعني رسول الله ﷺ، انجشه رضی الله عنه ته هدايت وکړ چې داسي حُدي مه وايه چې په هغه سره د ښځو زړه کمزوري او متاثر سي او ستا د غزلو په وجه د هغوی په ذهن او جذباتو کي پارونه پيدا سي او هغوی په بل خيال کي اخته سي، ځکه چې د غزلي خاصيت دا دی چې هغه په طبيعت کي جوش پيدا کوي او جذبات راپاروي، که څه هم دا خبره ويل کيدای سي چې رسول الله ﷺ کوم وخت دغه ارشاد وفرمايه هغه وخت پر اوښ باندي په ازواجو مطهراتو کي يوه زوجه مطهره سپره وه او په دغه صورت کي دغه مطلب نامناسب معلوميدی ځکه چې مذکوره احتمال د ازواج مطهراتو په اړه ډېر کمزوری او ضعيف دی، مګر دا حقيقت هم دی چې د يو خراب خيال پيدا کېدل او د طبيعت او زړه په وسوسه کي اخته کېدل يو طبعي شی دی چې د يو انسان په اختيار کي نه دی نو رسول الله ﷺ دا مناسب وګڼل چې د لاري احتياط ظاهري کړي چې په هر صورت د احتياط لاره اختيارول غوره دي، دا خبره هم بايد په ذهن کي وي چې د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد تعلق په حقيقت کي د امت خلکو ته تعليم او تلقين دی يعني رسول الله ﷺ د ذکر سوي ارشاد په ذريعه ټول امت ته هدايت وفرمايه چې کله پر اوښ باندي ښځې سپرې وي نو د هغوی د شتون خيال دي وساتل سي او په حُدی ويلو کي دي احتياط وکړل سي .

پورته چې کوم مطلب بيان سوی دی په هغه کي دوهم مطلب ته زياتو شارحينو ترجيح ورکړې ده مګر د روايت د الفاظو تقاضا داده چې لومړی مطلب صحيح وګڼل سي .

## د ښه شعر او بد شعر تعلق

﴿۴۵۹۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ ذُكِرَ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشِّعْرَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ كَلَامٌ فَحَسَنُهُ حَسَنٌ وَقَبِيْحُهُ قَبِيْحٌ . رواه الدارقطني، وروى الشافعي عن عروة مرسلا .

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چې د رسول الله ﷺ په مخکي د شعر يادونه وسول ،

نو رسول الله ﷺ وفرمایل : شعر یو کلام دئ ښه شعر ښه کلام دئ او بد شعر بد کلام دئ . دار قطني . شافعي د عروه څخه مرسلا روایت کړی دئ .

**تخريج**: سنن الدار قطني ۴\۱۵۵، رقم: ۲.

**تشريح**: د شعر او شاعرۍ په اړه مخکې هم ښو دل سوي دي او دا حديث هم دا خبره څرګندوي چي شعر ويل يا اورېدل بذات خود بدي نه لري بلکه د شعر د ښه والي او بدوالي دار او مدار د شعر پر مضامينو باندي وي که د شعر مضمون داسي وي چي د شريعت د حکم او منشاء او ديني تقاضاوو خلاف نه وي نو په هغه شعر کي څه بدي نسته بلکه د داسي مضامينو حامل شعر که وويل سي يا واورېدل سي چي په هغه سره د دين خبره خپرېږي او ثابتيږي يا د هغه څخه د الله تعالى د وحدانيت د رسول د ميني او منقبت او د دين عظمت څرګنديږي نو يقينا داسي شعر به مستحسن او محمود وي ، ددې پر خلاف د کوم شعر مضمون چي د شريعت د حکم او منشاء خلاف وي نو هغه ته به بد ويل کيږي .

## د ګناه شعرونه

﴿۴۵۹۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ بَيْنَا نَحْنُ نَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعَرْجِ إِذْ عَرَضَ شَاعِرٌ يُنْشِدُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذُوا الشَّيْطَانَ أَوْ أَمْسِكُوا الشَّيْطَانَ لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ رَجُلٍ قَيْحًا خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا . رواه مسلم .

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره په عرج نامي ځای کي روان وو چي يو شاعر په شعر ويلو سره په مخه راغلئ ، د هغه د شعرونو په اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل : دا شيطان ونيسئ ، يا دا شيطان منع کړئ ، د انسان د نو څخه نس ډکول تر دې غوره دي چي هغه د شعر څخه ډکه کړي . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۷۶۹، رقم: ۲۲۵۹.

**د لغاتو حل**: العرج: بلد باليمن (د يمن يو ښار)

**تشريح**: عرج د مديني منورې او مکې مکرمې په مينځ کي د يو ځای نوم دی چي هلته يو لږ څه ابادي هم ده ، پر دغه لاره باندي تلونکي قافلې به دلته پړاو کوی ، رسول الله ﷺ به هم د حج په

سفر او په حجة الوداع كي پر دغه ځاى تېرېدى ، په ظاهره معلومېږي چي په حديث كي د كومي پېښي ذكر سوى دى هغه د حجة الوداع د سفر پېښه ده .

په هر حال كله چي رسول الله ﷺ هغه سړى ولېدى چي هغه په شعر ويلو كي ډېر بوخت دى تر دې چي هغه ته د موجودو مسلمانانو هيڅ توجه نسته بلكه يو ډول د رسول الله ﷺ او ټولو مسلمانانو په هېرولو سره بې پروا روان دى او د هغه شاعرۍ شوق هغه دومره بې باكه كړى دى چي هغه انساني او اخلاقي تقاضې او د ژوند ادبونه هير كړي دي، ددې مطلب دادى چي د هغه په رګو كي شعر او شاعرۍ دومره سرايت كړى دى چي هغه ډېر بې حياء او بې ادبه سوى دى نو رسول الله ﷺ هغه ته شيطان ووايه، ددې څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي دغه سړى د رحمت الهي او قرب الهي څخه لېري والى اختيار كړى دى او څرګنده ده چي ددې څخه د صورت حال صدور ځكه وسو چي هغه خپل شعر او شاعرۍ په غرور او تكبر كي اخته كړى وو ځكه رسول الله ﷺ د شعر بدي وكړه .

## سندري ويل نفاق پيدا كوي

﴿۴۵۹۹﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْغِنَاءُ يُنْبِتُ النِّفَاقَ فِي الْقَلْبِ كَمَا يُنْبِتُ الْمَاءُ الزَّرْعَ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : سندري په زړه كي داسي منافقت زرغون كوي لكه څرنګه چي اوبه فصل زرغون كوي . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\۲۷۹، رقم: ۵۱۰۰.

**تشريح**: مطلب دادى چي غزلي او سروز د انساني زړه او روح لپاره يو آزار دى چي د هغه ثمره نفاق دى يا داسي ويل كيږي چي غزلي او سروز په انسان كي د نفاق او د باطن فساد كېدو سبب جوړيږي . د ديلمي رحمه الله په روايت كي د حضرت انس رضي الله عنه څخه د رسول الله ﷺ ارشاد داسي نقل سوى دى : (ان الغنا واللهو ينبتان النفاق كما ينبت الماء العشب والذي نفس محمد بيده ان القرآن والذكر ينبتان الايمان في القلب كما ينبت الماء العشب)، ژباړه : بېله شكه سروز او غزلي او لوبي مسخرې نفاق داسي شين كوي لكه څرنګه چي اوبه شنګيا شنه كوي، او قسم دي په هغه ذات چي د هغه په واک كي د محمد ساه ده قرآن او ذكر الهي دواړه په زړه كي ايمان داسي زرغون كوي لكه څرنګه چي اوبه شنګيا زرغونه كوي .

خلاصه داده چي انسان بايد د هغه سروز ، غزلو او لوبو مسخرو څخه ځان وساتي بلكه خپل وختونه د قرآن كريم په تلاوت او ذكر الهي سره معمور وساتي ځكه چي دغه شيان زړه او روح ته ځلا وركوي او ايمان او اخلاق مضبوط كوي .

نووي رحمة الله عليه په كتاب روضه كي ليكلي دي چي محض په اواز سره غزلي ويل مكروه دي او اوربدل يې هم مكروه دي ، د پردۍ ښځي څخه اوربدل سخت مكروه دي او د ساز سره غزلي ويل ، اوربدل او خپل كسب جوړول حرام دي .

## د ساز اواز

﴿۴۶۰۰﴾: وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِي الطَّرِيْقِ فَسَمِعَ مِزْمَارًا

حضرت نافع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د ابن عمر رضي الله عنه سره روان وم چي هغه د شپيلۍ آواز

فَوَضَعَ إِصْبَعَيْهِ فِيْ أُذُنَيْهِ وَنَأَ عَنْ الطَّرِيقِ إِلَى الْجَانِبِ الْاٰخَرِ ثُمَّ قَالَ لِي يَا

واوريدئ نو په خپلو غوږونو كي يې ګوتي دننه كړې او دلاري څخه آخوا سو ليري ولاړې ، بيا

نَافِعُ هَلْ تَسْمَعُ شَيْئًا قُلْتُ لَا فَرَفَعَ إِصْبَعَيْهِ مِنْ أُذُنَيْهِ وَقَالَ كُنْتُ مَعَ

يې ما ته وويل اې نافع ! ته (د شپيلۍ) آواز اورې ، ما وويل :يا ، نو هغه د غوږو څخه ګوتي ايسته كړې او وه يې ويل زه

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعَ صَوْتَ يَرَاعٍ فَصَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُ قَالَ نَافِعٌ وَكُنْتُ إِذًا ذَاكَ صَغِيْرًا. رواه احمد وابوداؤد.

د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره روان وم چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د شپيلې آواز واوريدئ او رسول الله صلى الله عليه وسلم همداسي وكړل كوم چي ما وكړل ، نافع وايي زه هغه وخت ډير كوچنى وم ، احمد او ابوداؤد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۸، وابوداود ۵\۲۲۲، رقم: ۴۹۲۴.

**د لغاتو حل**: وناء: اى بعد ، اليراع : القصب.

**تشريح**: حضرت نافع رحمة الله عليه ددغه روايت په پاى كي دا څرګنده كړه چي ما د كومي پېښي ذكر كړى دى دا د هغه وخت پېښه ده كله چي زه كوچنى وم ، ددې څخه دا خبره څرګندول مقصد وو چي هغه وخت زه كوچنى وم او په شرعي توګه مكلف نه وم ځكه حضرت ابن عمر رضي الله عنه د هغه اواز

اوريدو څخه منع نه کړم که چيري زه په شرعي توګه مکلف واى نو هغه به يقينا ماته هدايت کړى واى چي د هغوى په ډول زه هم په خپلو غوږو کي ګوتي ونيسم ، نو بايد دا وهم پيدا نسي چي په هغه اواز کي کراهت تنزيهي وو ځکه نو زه يې د هغه اواز اوريدو څخه منع نه کړم بلکه حقيقت دادى چي هغه اواز اوريدل مکروه تحريمي وو او زما د نه منع کيدو تعلق زما د غير مکلف کيدو سره وو .

پاته سوه دا خبره چي کله حضرت ابن عمر رضي الله عنه په خپلو غوږو کي ګوتي اچولي وې نو بيا د لاري پريښودو څه اړتيا وه نو ددې تعلق د کمال تقواى سره وو يعني حضرت ابن عمر رضي الله عنه د احتياط او تقوا تقاضا دا وګڼل چي د هغه لاري څخه هم ليري سي که چيري د لارې پريښودل په شرعي توګه ضروري واى نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه به يقينا حضرت نافع رحمة الله عليه ته د هغه لاري پريښودو حکم ورکړى واى .

ځرګنده دي وي چي د غزلو او سروز مسئله ډېره تفصيلي مسئله ده ، د خلاصې په توګه دومره پوه سئ چي د محدثينو د تحقيق مطابق داسي هيڅ حديث منقول نه دى چي د هغه څخه د غزلي حرام کيدل ثابتيږي، د مشائخو وينا ده چي په دې اړه د اظهار ممانعت په توګه چي څه منقول دي ددې څخه مراد دادى چي په دغه مسئله کي يې ډېر شدت اختيار کړى دى چي د هغه تفصيل د فقهي په کتابو کي تر لاسه کيداى سي ، په فتاوى قاضي خان کي ليکلي دي چي د لهو و لعب شيان يعني سروز اوريدل حرام او سخته ګناه ده ، ځکه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي : استماع الملاهي معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها من الكفر، ژباړه : د سروز اوريدل ګناه ده ، هغه ته ناسته فسق دى او د هغه څخه خوند تر لاسه کول د کفر څخه دى .

که چيري د يو چا غوږ ته د سروز آواز ناڅاپه راسي نو په دغه صورت کي ګناه نسته مګر پر هغه واجب دي چي هغه ددې پوره هڅه وکړي چي هغه اواز نه واوري ځکه چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه نقل سوي دي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د سروز اوريدو څخه د ځان ساتني لپاره په خپلو غوږو کي ګوتي اچولي وې .

==========

# بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ وَالْغِيْبَةِ وَالشَّتْمِ

## (د ژبي ساتنه، غيبت او بد ويلو بيان)

د غيبت معنى ده د يو چا تر شا بد ويل يعني د يو سړي په غياب كي د هغه په اړه داسي خبري كول كه چيري هغه يې واوري نو ناخوښه به يې كړي. د شتم معنى د ښكنځلو كولو ده يعني يو چا ته داسي فحش خبره كول چي هغه د شريعت، اخلاق او تهذيب خلاف وي.

په هر حال په دغه باب كي هغه حديثونه نقل كيږي چي د هغو څخه دا څرګنديږي چي ژبه د داسي الفاظو او خبرو څخه ساتل پكار دي چي د هغه پر ژبه راوړل په شرعي، اخلاقي او معاشرتي توګه ناروا وي، په خاصه توګه غيبت، ښكنځل، بد ويل، او د دغه حديثو څخه دا هم معلوميږي چي په دغه شيانو كي په شرعي توګه خرابي ده او ددې كونكى د شريعت او اخلاقو په نظر كي څومره ناخوښه دى.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د ژبي او شرمګاه ساتونكي ته زيرى

﴿۴۶۰۱﴾: عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَضْمَنْ لِي مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ وَمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ أَضْمَنْ لَهُ الْجَنَّةَ. رواه البخاري.

د سهل بن سعد رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوك چي زما سره ددې خبري وعده وكړي چي هغه به ددواړو زامو په منځ كي د شي (يعني ژبي) او ددواړو پښو په منځ كي د شي (يعني شرمګاه) ساتنه وكړي نو زه د هغه لپاره د جنت ضمانت وركوم، بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۰۸، رقم: ۶۴۷۴،

**تشريح**: د ژبي د ساتني مطلب دادى چي هغه پر خپل ژبه باندي واك ولري په دې توګه چي هغه د بې ګټي خبرو او فحش ويني څخه وساتي او د غاښو د ساتني مطلب دادى چي هغه د حرامو شيانو د خوړلو او څښلو څخه منع كړي همدارنګه د شرمګاه د ساتني مطلب دادى چي د زنا په ډول خرابۍ څخه پرهيز وكړي.

د حديث خلاصه داده چي كوم څوك زما سره ددې عهد وكړي او د عمل په ذريعه هغه عهد

پوره کړي چي هغه خپل ژبه د فحش ويني او بد کلامۍ څخه وساتي ، خپل خوله د حرام او ناجائز خوراک او څښناک څخه وساتي او خپل شرمګاه د حرام کارۍ څخه وساتي نو زه د هغه ضامن يم چي هغه به پېل کي د خلاصون تر لاسه کونکو خلکو سره په جنت کي داخل کړل سي او د هغه درجات عاليه مستحق به وګرځول سي .

څرګنده دي وي چي د رسول الله ﷺ ضمانت په اصل کي د الله تعالى له لوري ضمانت دى لکه څرنګه چي هغه محض په خپل فضل سره د بندګانو د رزق ضامن سوى دى همدارنګه هغه د پاک ژوند اختيارونکو او پر اعمال صالحه باندي د جزا ورکولو او خپلو انعاماتو سره د نازولو هم قوي وعده کړې ده او رسول الله ﷺ د هغه نائب دى ځکه رسول الله ﷺ د هغه له لوري ذکر سوى ضمانت کړى دى .

## خپل ژبه وساته

﴿۴۶۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ رِضْوَانِ اللَّهِ لَا يُلْقِي لَهَا بَالًا يَرْفَعُهُ اللَّهُ بِهَا

د انسان کلام درجه پورته کوي يا په جنهم کي يې غورځوي، ځيني وخت بنده د ژبي څخه داسي خبره راوباسي چي په هغه سره الله تعالى خوشحاله سي مګر هغه بنده د دې حيثيت څخه خبر نه وي او الله تعالى د هغه خبري په بدله کي د هغه درجې پورته کوي

دَرَجَاتٍ وَإِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللَّهِ لَا يُلْقِي لَهَا بَالًا يَهْوِي بِهَا

او ځيني وخت بنده داسي خبره وکړي چي په هغه سره الله ناراضه سي او هغه د دې څه پروا نه لري نو هغه خبره به يې

فِي جَهَنَّمَ. رواه البخاري و في رواية تَهْوِيْ بِهَا فِي النَّارِ أَبْعَدَ مِمَّا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ.

په جنهم کي غورځوي. بخاري او په يوه روايت کي دي چي د هغه کلمې په سبب به په اور کي وغورځول سي کوم چي ډير ليري دئ د مشرق څخه تر مغرب پوري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۰۸، رقم: ۶۴۷۴، ومسلم ۱۴\۲۲۹۰، رقم: ۵۰– ۲۹۸۸.

**تشریح**: ددغه ارشاد مقصد ددې خبري خبرداری ورکول دي چي ژبه باید هر وخت په واک کي وي او دا معامله بې ارزښتنه ونه ګڼي، او دا حقیقت هم هیڅکله نظر انداز نه کړي که پر ژبه باندي د احتیاط واک سست کړل سي او دغه کوچنی شی ستا د واک څخه ووځي نو بیا ستا خیر نسته ، نو دا حقیقت څرګند کړل سو چي ډېر ځله بنده د خپل ژبي څخه داسي خبره باسي او هغه په خپل خیال کي ډېره معمولي ګڼي مګر په حقیقت کي د نتیجې په اعتبار د هغه خبره ارزښت وي دا داسي وګڼئ که هغه خبره حقه وي او د الله تعالی د رضا ذریعه جوړیږي نو هغه کوچنی خبره په جنت کي د هغه د درجو د لوړوالي سبب جوړیږي او که هغه خبره داسي وي چي د خرابېدو په وجه د الله تعالی د ناراضګی سبب جوړه سوې وي نو د بنده په نزد هغه معمولي خبره د هغه په دوږخ کي د لوېدو سبب جوړیږي .

## مسلمان ته بد ویل فسق دی

﴿۴۶۰۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ وَقِتَالُهُ كُفْرٌ. متفق عليه.

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مسلمان ته بد ویل فسق دئ او مسلمان وژل کفر دئ. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱ \ ۱۱۰، رقم: ۴۸، ومسلم ۱ \ ۸۱، رقم: ۱۱۶– ۶۴.

**تشریح**: د یو مسلمان وژني ته د کفر ویلو دا مطلب نه دی که چیري یو مسلمان بل مسلمان قتل کړي نو هغه کافر کیږي بلکه د ارشاد مطلب په ډېره سختي او شدت سره بیانول دي چي د مسلمان په ناحقه وژل ډېر لوی جرم دی او کوم مسلمان چي خپل مسلمان ورور وژني نو هغه د خپل اسلام د کامل کېدو نفي کوي ، یعني دلته د کفر څخه مراد د کمال اسلام نفي ده لکه څرنګه چي په یو حدیث کي فرمایل سوي دي : المسلم من سلم المسلمون ...الخ، یعني کامل مسلمان هغه دی چي د هغه څخه نور مسلمانان خوندي او مامون وي، او که چیري د کفر څخه حقیقي معنی مراد واخیستل سي نو په دغه صورت کي به ویل کیږي چي هغه مسلمان به یقینا کافر سي چي یو مسلمان ددې لپاره قتل کړي چي هغه مسلمان دی او د هغه د اسلام په سبب د هغه قتلول حلال او مباح وګڼي ځکه چي یو مسلمان محض د هغه د اسلام په وجه وژل او د هغه قتلول حلال او مباح ګڼل ښېله شکه کفر دی .

## مسلمان ته کافر مه وایه

﴿۴۶۰۴﴾: وَعَنِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا رَجُلٍ قَالَ لِأَخِيهِ كَافِرُ فَقَدْ بَاءَ بِهَا أَحَدُهُمَا. متفق علیه.

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم څوک چي خپل مسلمان ورور ته کافر ووایي نو په هغو دواړو کي یو کس د کفر ددې کلمې وړ ګرځیدلی دئ (یعني په دواړو کي یو کافر ګرځي هغه سړي چي هغه ته کافر ویل سوي دي که چیري واقعي کافر وي نو ددې کلمې وړ هغه دئ او که هغه داسي نه وي نو ددې کلمې ویونکی ته بیرته دا کلمه راګرځي یعني مسلمان ته چي څوک کافر ووایي نو ویونکي یې خپله ددغه لفظ وړ سي له دې کبله پر چا باندي د کفر فتوا لګولو کي ډیر احتیاط کول پکار دي داسي نه چي کوم تهمت پر بل لګوي هغه پر ده راسي ) .بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۵۱۴، رقم: ۶۱۰۴، ومسلم ۱\ ۷۹، رقم: ۱۱۱– ۶۰.

**تشریح**: مطلب دادی چي یو مسلمان بل مسلمان ته کافر ووایي نو ددې دوه صورتونه دي یو خو دا که چیري ویونکی ریښتیا ویلي وي نو څرګنده ده چي په دغه صورت کي د کلمه کفر مستحق به هغه سړی وي چا ته چي کافر ویل سوي دي او حقیقتا کافر دی ، دوهم دا که چیري ویونکی درواغ ویلي وي یعني هغه چي کوم سړي ته کافر ویلي دي هغه په حقیقت کي مسلمان دی او هغه ته د کفر نسبت درواغ دی نو په دغه صورت کي به ویل کیږي چي ویونکی خپله کافر سو ، ددې مطلب د دې څخه پرته بل څه کیدای سي چي هغه ایمان کفر وګڼی او دین اسلام یې باطل وګڼی .

ددغه حدیث په اړه امام نووي رحمۃ اللہ علیہ چي څه لیکلي دي د هغه خلاصه داده چي ذکر سوی حدیث ځینو علماوو په مشکلاتو کي شمېرلی دی ځکه چي ددغه ارشاد کوم ظاهري مفهوم دی هغه حقیقي مراد کیدای نسي په دې وجه د اهل حق مذهب دادی چي هیڅ مسلمان که څه هم لویه ګناه وکړي لکه قتل ، زنا او داسي نور او که څه هم خپل مسلمان ورور ته کافر ووایي په شرط ددې چي هغه د اسلام د دین د باطل کېدو عقیده نه لري نو هغه ته د کفر نسبت نسي کیدای، حال دا چي د مذکوره حدیث ظاهري مفهوم دا ثابتوي که چیري یو مسلمان بل مسلمان ته کافر ووایي او په حقیقت کي هغه کافر نه وي نو ویونکی خپله کافر کیږي، په دې وجه د

ارشاد مختلف تاويلونه کيږي يو خو دا چي ددغه حديث محمول هغه سړی دی چي هغه نه يوازي دا چي يو مسلمان ته کافر ووايي بلکه يو مسلمان ته د کفر نسبت کول حلال او جائز وګڼي، په دغه صورت کي به د (باء بها) معنی دا وي چي کفر خپله هغه سړي ته د تکفير معصيت واپس کوي، يعني کوم څوک چي يو مسلمان ته کافر ووايي نو د هغه دا ويل هغه مسلمان ته څه تاوان نه رسوي مګر مسلمان ته د کافر ويلو په ګناه کي خپله اخته کيږي، او دوهم دا چي ددغه ارشاد محمول خوارج دي چي مؤمنانو ته کافر وايي مګر دغه دوهم تاويل ډېر ضعيف دی ځکه چي ددغه تاويل مطلب به دا وي چي خوارج کافران وګرځول سي حال دا چي د اکثرو علماوو په نزد صحيح او د قبول وړ قول دا دی چي د خوارجو سره تعلق لرونکي خلک بېله شکه ګمراه دي لکه څرنګه چي بدعتيان دي مګر هغوی ته کافر ويل نه دي پکار ، که څه هم ملا علي قاري رحمة الله عليه وضاحت کړی دی چي دغه تاويل ته به د هغوی په اړه ضعيف نسي ويل کېدای چي نه يوازي د اهل سنت والجماعت بلکه د اکثرو صحابه کرامو په اړه هم نعوذ باالله د کفر عقيده لري.

﴿۴۶۰۵﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَرْمِي رَجُلٌ رَجُلًا بِالْفُسُوقِ وَلَا يَرْمِيهِ بِالْكُفْرِ إِلَّا ارْتَدَّتْ عَلَيْهِ إِنْ لَمْ يَكُنْ صَاحِبُهُ كَذَلِكَ. رواه البخاري.

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: څوک دي پر چا د فسق تهمت نه لګوي او نه د کفر ، که هغه سړی داسي نه وي نو دا کلمه ويونکی ته راګرځي ، يعني هغه د کفر مستحق ګرځي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۴۶۴، رقم: ۶۰۴۵.

**تشريح**: مطلب دا دی چي يو مسلمان ته مه فاسق وايا ست او مه هغه ته د کفر نسبت کوئ، ځکه که چيري يو سړی داسي سړي ته فاسق ووايي چي په حقيقت کي فاسق نه وي نو هغه ويونکی خپله فاسق کيږي همدارنګه که يو سړی داسي سړي ته کافر ووايي چي هغه په حقيقت کي کافر نه وي بلکه مؤمن وي نو هغه ويونکی خپله کافر کيږي لکه څرنګه چي د تېر حديث په تشريح کي بيان سوی دی.

## چا ته د خدای دښمن مه وایاست

﴿۴۶۰۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ دَعَا رَجُلًا بِالْكُفْرِ أَوْ قَالَ عَدُوَّ اللّٰهِ وَلَيْسَ كَذٰلِكَ إِلَّا حَارَ عَلَيْهِ. متفق عليه.

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي چا ته کافر یا د الله جل جلاله دښمن ووایي او هغه داسي نه وي نو دا پر کلمه ویونکي باندي راګرځي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۶۴، رقم: ۶۰۴۴، ومسلم ۱\۷۹، رقم: ۱۱۲- ۶۱.

**د لغاتو حل**: حار: ای رجع علیه ما نسب الیه. (بیرته دده ته راګرځي)

## ظالم او مظلوم

﴿۴۶۰۷﴾: وَعَنْ اَنَسٍ وَّ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُسْتَبَّانِ مَا قَالَا فَعَلَى الْبَادِئِ مَا لَمْ يَعْتَدِ الْمَظْلُومُ. رواه مسلم.

د حضرت انس او ابو هریرة (رضي الله عنهما) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که دوه کسان یو بل ته بد وایي ددې بد ویلو ګناه به پر هغه چا وي چي په بد ویلو یې شروع کړی وي) نو هغه ظالم دئ او دویم سړی مظلوم دئ تر څو پوري چي مظلوم د حد څخه تجاوز ونه کړي یعني د ظالم څخه زیات بد ونه وایي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۰۰۰، رقم: ۶۸- ۲۵۸۷.

**تشریح**: مطلب دادی که چیري دوه کسان په خپلو کي ښکنځل کول پیل کړي او یو بل ته بد وایي نو ددغه ټولو ښکنځلو او بد رد ویلو ګناه به پر هغه چا وي چا چي په ښکنځلو پیل کړی دی یعني پر هغه د خپلو ښکنځلو ګناه هم وي او د بل سړي د ښکنځلو ګناه به هم د هغه په عمل نامه کي لیکل کیږي ځکه چي هغه د ښکنځلو په پیل کولو سره پر دوهم سړي باندي ظلم کړی دی او په دې اعتبار هغه ته ظالم ویل کیږي او دوهم سړي ته مظلوم ویل کیږي مګر دا په هغه صورت کي دی کله چي هغه دوهم سړی یعني مظلوم په جواب کي زیاتوب ونه کړي که مظلوم د حد څخه تجاوز وکړي په دې توګه ي د هغه ښکنځل د پیل کونکي تر ښکنځلو هم زیات تکلیف ورکړي نو په دغه صورت کي به د پیل کونکي په نسبت پر هغه زیاته ګناه وي، ځینو حضراتو

لیکلي دي چي دوهم سړی به هم د دغه زیاتوب په وجه گناه کار وي.

## لعنت مه وایاست

﴿۴۶۰۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْبَغِي لِصِدِّيقٍ أَنْ يَكُونَ لَعَّانًا. رواه مسلم.

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :د صدیق (یعني مؤمن) لپاره دا مناسب نه ده چي هغه لعنت ویونکی وي.، مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\۵۰۰۵، رقم: ۸۴– ۲۵۹۸.

**تشریح** :صدیق د مبالغې صیغه ده چي معنی یې د زیات رښتوني ده، ځینو حضراتو ویلي دي چي صدیق هغه سړي ته وایي چي د هغه د قول او فعل په مینځ کي تضاد نه وي بلکه مطابقت وي، د صوفیانو په نزد صدیقیت یو مقام دی چي د هغه درجه د نبوت د مقام څخه وروسته تر ټولو لوړه ده لکه څرنگه چي د قرآن کریم د دغه آیت څخه څرگندیږي :

(فَأُوْلَئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاء وَالصَّالِحِينَ) .

د حدیث مطلب دادی چي کوم څوک د صدق او رښتنوالي په صفت سره مزین وي او داسي لوړ مقام ته رسیدلی وي چي د نبوت د مقام څخه وروسته تر ټولو اعلی دی او په دې اعتبار د هغه دغه مرتبې د نبوت د مرتبې سره تر ټولو نژدې نسبت حاصل وي نو د هغه شان باید داسي نه وي چي هغه پر نورو لعنت کوي او نه دا د مقام صدیقیت مقتضي کیدای سي ځکه چي پر چا باندي د لعنت کولو مطلب دادی چي هغه د رحمت الهي څخه محروم او لیري وگرځول سي حال دا چي د ټولو انبیاوو مقصد دا وو چي هغوی د الله تعالی مخلوق د رحمت الهي څخه ونه باسي او څوک چي د الله تعالی د دربار څخه لیري سوي دي هغوی نژدې راولي ، په دې وجه د اهل سنت والجماعت طریقه داده چي لعنت کول پرېښودل سي او پر هیچا لعنت ونه کړل سي که څه هم هغه د لعنت مستحق وي ځکه چي کوم څوک د خپل قول او فعل په ذریعه خپله د الله تعالی په نزد ملعون گرځول سوی دی پر هغه د لعنت کولو ضرورت نه پاته کیږي نو پر داسي سړي لعنت کول خپله ژبه چټلول دي او د هغه په لعنت کي خپل وخت ضائع کول دي او دا چي پر هغه لعنت کولو سره د خپل او خپل ډلي حقه طریقه او معمول پر خلاف عمل کول دي مگر پر هغه کافر باندي په لعنت کولو کي پروا نسته چي د هغه په اړه د مخبر صادق خبر یا خپل علم او یقین

داوي چي هغه د كفر په حالت كي مړ سوى دى .

څرګنده دي وي چي د لعنت دوه ډولونه دي ، يو دادى چي يو سړى د خير څخه بالكل محروم او د الله تعالى د رحمت څخه بالكليه ليري وګرځول سي او هغه د الله تعالى د فضل څخه مطلق نا اميده کړل سي داسي لعنت كول يوازي دكافرانو لپاره خاص دى ، دوهم ډول لعنت دادى چي يو داسي سړى د رضاء حق او قرب الهي څخه ليري او محروم کړل سي كوم چي د ترك اولى مرتكب وي ، د ځينو اعمالو او اورادو په پرېښودو كي چي كوم لعنت منقول دى او د ځينو صحابه كرامو او نورو څخه هم نقل سوى دى د هغه تعلق د دغه دوهم ډول سره دى .

د لعان لفظ د مبالغې صيغه ده چي معنى يې د ډېر زيات لعنت كونكي ده، په حديث كي دغه لفظ د مبالغې په توګه ځكه استعمال سوى دى چي په عامه توګه دا ممكن نه ده چي د لوړي درجې مؤمن هم د ډېر لعنت كولو څخه پرهيز كوي ، ابن ملك رحمه الله ليكلي دي : په دغه ارشاد كي دغه لفظ د مبالغې په صيغه ذكر كول دې ته اشاره كوي چي د لعنت كولو كومه بدي ددغه حديث څخه څرګنديږي دا د هغه چا په اړه نه ده چي د هغه څخه كله نا كله يعني يو وار يا دوه واره وسي .

﴿٤٦٠٩﴾ : وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللَّعَّانِينَ لَا يَكُونُونَ شُهَدَاءَ وَلَا شُفَعَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه مسلم.

د حضرت ابودرداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل چي لعنت ويونكي خلك به د قيامت په ورځ نه شهادت كونكي او نه شفاعت كونكي وي . مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم: ٢٠٠٦\٤، رقم: ٨٦- ٢٥٩٨.

**تشريح** : د قيامت په ورځ به د امت محمدي خلك پر مخكنيو امتو باندي د شاهدانو په حيثيت سره وړاندي سي ، هغوى به دا شاهدي ادا كوي چي د هغوي رسولانو او پيغمبرانو د الله تعالى احكام هغوى ته رسولي وه او هغوى يې الله تعالى ته رابللي وه مګر هغوى د خپلو رسولانو خبره ونه منل ، په دې اړه الله تعالى فرمايي :

وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُواْ شُهَدَاء عَلَى النَّاسِ

ژباړه : او همدارنګه موږ تاسو غوره امت وګرځولاست ددې لپاره چي تاسو پر نورو خلكو شاهدان ياست .

ددغه شاهدي په اړه رسول الله ﷺ فرمايي: د قيامت په ورځ به داسي کس شاهد ونه ګرځول سي کوم چي پر نورو زيات لعنت کوي او لعنت کول د هغوی عادت ګرځېدلی وي ، همدارنګه ډېر زيات لعنت کونکي خلک به د قيامت په ورځ د شفاعت څخه هم محروم کړل سي يعني که هغوی غواړي چي د نورو خلکو شفاعت وکړي نو دوی به يې نسي کولای .

## هلاکت مه وایاست

﴿۲۶۱۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ الرَّجُلُ هَلَكَ النَّاسُ فَهُوَ أَهْلَكُهُمْ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي څوک دا وايي چي خلک هلاک سول نو هغه ويونکي به تر ټولو زيات هلاکيدونکی وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\ ۲۰۲۴، رقم: ۱۳۹- ۲۶۲۳.

**تشريح**: که يو څوک خلک په داسي عقائدو او اعمالو کي اخته ويني کوم چي د دين او شريعت خلاف وي نو د هغوی پر دغه حالت افسوس کول او د غم خوارۍ جذبه پيدا کېدل يو فطري امر هم دی او د اخوت اسلامي تقاضا هم ده ، که يو څوک ددغه حسرت او افسوس د جذباتو سره سم د هغه خلکو په اړه دا ووايي چي هغه خلک خو هلاک سول يعني هغه خلکو داسي عقائد او اعمال اختيار کړي دي چي هغوی به د دوږخ اور ته واچوي نو په دې کي څه پروا نسته، ځکه چي د هغه سړي دغه ويل په اصل کي د هغه خلکو سره د همدردۍ او غم خوارۍ څرګندونه ده او ددې مطلب دا ګڼل کيږي چي هغه سړي ددغه خلکو په خرابو اعمالو خوابدی دی او د هغه د زړه جذبه داده چي ارمان هغه خلک په دغه حالت کي په اخته کېدو سره د اخرت د هلاکت او تباهۍ لار اختيار نه کړي او کله چي هغوی په دغه لاره کي اخته سوي دي نو افسوس چي اوس هم د هغوی هدايت په برخه سي او هغوی ددغه هلاکت او تباهۍ څخه په ساتني پر سيده لار روان سي .

مګر که چيري يو سړی ددغه جذباتو او غم خوارۍ برعکس محض د عيب ويني ، سپکاوي او هغه خلکو د رحمت الهي څخه د مايوس کولو لپاره داسي الفاظ د ژبي څخه باسي نو دا به ډېر بد وي او همدارنګه ويونکی به خپله د ټولو څخه زيات په هلاکت او تباهۍ کي وي ځکه چي د هغه ددغه الفاظو څخه دا ګڼل کيږي چي هغه د خپل نفس په خرابۍ او د خپلو اعمالو

په تباهۍ کي اخته سوی دی ، نور خلکو ته د سپکاوی په نظر ګوري او هغوی د الله تعالی د رحمت څخه نا امیده کوي، دا مطلب به په هغه صورت کي وي کله چي لفظ د اهلکم د کاف په پېښ سره یعني د تفضیل په صیغه وي او که چیري دغه لفظ د کاف په زېر سره یعني د ماضي په صیغه وي لکه څرنګه چي په ځینو روایتو کي نقل سوی دی نو په دغه صورت کي به معنی دا وي چي داسي ویونکی هغوی هلاکوي ، او مطلب به دا وي چي کله یو سړی د خپل مشاهدې سره سم په بدعملو کي د اخته خلکو لپاره د خپل ژبي څخه دغه لفظ وباسي چي هغه خلک خو هلاک او برباد سول نو ددې نتیجه به دا وي چي هغه د رحمت الهي څخه په مایوس کېدو سره ترک طاعت او عبادت او په ګناه کي نور زیات مصروف کیږي ځکه چي داسي الفاظ هغه ګناه کار کوي چي دخپلو عملو په وجه په دنیا کي د الله تعالی په قهر او جلال کي اخته سوی وي ځکه د شریعت تعلیم دادی چي کومو خلکو د بد عملۍ لار اختیار کړې ده او د معصیت تیارو راچاپېره کړي دي نو هغوی ته په ډېره نرمۍ او شفقت سره نصیحت کول پکار دي او د هغوی سره سختي او تشدد کول د هغوی په حق کي بد وینه او د مایوسي الفاظ د خپل ژبي څخه ایستل د هغوی په حق کي د سختي خرابۍ سبب کیږي او د هغوی په ضد کي د اخته کېدو په وجه پر سیده لار باندي د تلو پر ځای نور زیات په ګمراهي کي اخته کیږي ، نو کوم څوک چي د هغوی په اړه سخت الفاظ استعمالوي او هغوی ته د هلاکت او بربادۍ خبري کوي نو هغه ګویا د هغوی په هلاکت او بربادۍ کي د لوېدو سبب ګرځي ، په دې اعتبار سره ویل کیږي چي د رسول الله ﷺ مذکور ارشاد دې ته اشاره کوي چي ګناه کارو خلکو ته هم د بخښني زیری ورکوئ ، د هغوی زړه او ذهن پر دین او ایمان باندي پخېدل پکار دي او هغوی د الله تعالی د رحمت امیدوار جوړول پکار دي .

## دوه مخي

﴿۴۶۱۱﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَجِدُونَ شَرَّ النَّاسِ يوم القيامة ذَا الْوَجْهَيْنِ الَّذِي يَأْتِي هَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ وَيَأْتِي هَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ. متفق عليه

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د قیامت په ورځ به تاسو بدترین هغه ویني چي دوه مخي منافق وي چي هغه ته ورسي نو د هغه د طبیعت خبري کوي او چي ده ته ورسي نو دده د طبیعت خبري کوي یعني حقه خبره نه کوي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\ ٤٧٤، رقم: ٦٠٥٨، ومسلم ٤\ ٢٠١١، رقم: ١٠٠- ٢٥٢٦.

**تشريح**: په دغه ارشاد کې د هغه کسانو لپاره سخت وعيد او خبرداری دی چې د منافقانو په ډول دوه مخي وي چې د هرې ډلې د خوشحاله ساتلو لپاره هيڅکله صحيح او حق خبره نه کوي بلکه په مخ کې يو څه وايي او تر شا بل څه وايي يعني کومې ډلې ته چې ورځي نو د هغوی د خوشحاله کولو لپاره خپله ژبه خلاصوي، کله چې زيد ته ورسي نو د هغه د طبيعت خبرې کوي او کله چې بکر ته ورسي نو د هغه د خوښې خبرې کوي يعني د هغه سره هو هو کوي.

## چغل خور جنت ته نه ځي

﴿۴۶۱۲﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ. متفق عليه و في رواية مسلم نَمَّامٌ.

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دئ چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل چې چغل خور به جنت ته نه ځي. بخاري او مسلم او د مسلم په يوه روايت کې د قتات پر ځای د نمام لفظ راغلی دئ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\ ٤٧٢، رقم: ٦٠٥٦، ومسلم ١\ ١٠١، رقم: ١٦٩- ١٠٥.

**د لغاتو حل**: قتات: ای نمام (چغلخور).

**تشريح**: د قتات او نمام يوه معنی ده يعني چغل خور، چغل خور هغه سړي ته وايي چې لګول او مړ کول کوي او د يوه ځای خبره بل ځای او د بل ځای خبره بل ځای کولو سره د خلکو په مينځ کې د فتنې او فساد تخم کري.

## هميشه رښتيا وايه دروغ مه وايه

﴿۴۶۱۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

عَلَيْكُمْ بِالصِّدْقِ فَإِنَّ الصِّدْقَ يَهْدِي إِلَى الْبِرِّ وَإِنَّ الْبِرَّ يَهْدِي إِلَى الْجَنَّةِ وَمَا

رښتيا ويل اختيار کړئ ځکه چې رښتيا ويل د نيکۍ لار ښيي او نيکي سړی جنت ته بيايي او

يَزَالُ الرَّجُلُ يَصْدُقُ وَيَتَحَرَّى الصِّدْقَ حَتّٰى يُكْتَبَ عِنْدَ اللّٰهِ صِدِّيقًا وَإِيَّاكُمْ

څوک چي همیشه رښتیا وایي او د رښتیا ویلو کوښښ کوي هغه د الله تعالی سره صدیق (ریښتونی) لیکل کیږي او تاسو ځان وساتئ

وَالْكَذِبَ فَإِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِي إِلَى الْفُجُورِ وَإِنَّ الْفُجُورَ يَهْدِي إِلَى النَّارِ وَمَا

د دروا‌غو څخه ځکه چي درواغ (سړی) د فسق او فجور په لوري بیایي او فسق او فجور د دوږخ په لور لارښوونه کوي او څوک چي

يَزَالُ الرَّجُلُ يَكْذِبُ وَيَتَحَرَّى الْكَذِبَ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللهِ كَذَّابًا. متفق

همیشه درواغ وایي او د درواغو ویلو کوښښ کوي هغه د الله تعالی په نزد کذاب (ډیر درواغجن) ولیکل سي. بخاري او مسلم

عليه و في رواية المسلم قال إِنَّ الصِّدْقَ بِرٌّ وَإِنَّ الْبِرَّ يَهْدِي إِلَى الْجَنَّةِ وَإِنَّ الْكَذِبَ فُجُورٌ وَإِنَّ الْفُجُورَ يَهْدِي إِلَى النَّارِ.

او د مسلم په روایت کي دا الفاظ دي چي رښتیا ویل نیکي ده او نیکي سړی جنت ته بیایي او درواغ ویل فسق او فجور دي او فسق او فجور (سړی) دوږخ ته بیایي

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۰۷، رقم: ۶۰۹۴، ومسلم ۴\۲۰۱۳، رقم: ۱۰۵- ۲۶۰۷.

**تشريح**: هغه د الله تعالی په نزد صدیق لیکل کیږي: ددې مطلب دادی چي هغه د صدیقیت د وصف حامل او پر مقام صدیقیت باندي فائز ګرځول کیږي او ددغه لوړي درجې د وصف او مقام مستحق ګرځول کیږي. یا دا مطلب دی چي په ملاء اعلی سره په کوم کتاب کي چي د ټولو بندګانو اعمال لیکل کیږي په هغه کي د ذکر سوي سړي نوم صدیق لیکل کیږي، یا دا چي په دنیا کي خلک داسي سړی په خپلو کتابو او قلمو کي د صدیق په نامه سره لیکي او یادوي، په دغه صورت کي د ارشاد مطلب دا څرګندول دي چي داسي سړی د الله تعالی له خوا په خلکو کي ډېر معزز او مکرم ظاهریږي، د خلکو په زړو کي د هغه سړي لقب په صدیق سره القاء کیږي او دهغوی پر ژبو د هغه دغه لفظ او وصف جاري کیږي، چي د هغه نتیجه دا وي چي خلک هغه رښتونی او صدیق ګڼي او د هغه د ریښتیا او صداقت تعریفونه کوي، ددغه مفهوم بنیاد دغه ارشاد هم دی: (إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمَنُ وُدًّا)

يعني كومو كسانو چي ايمان قبول کړ او نېک اعمال يې وکړل نو الله تعالى به د هغوى مينه د خلکو په زړو کي واچوي.

همدارنګه د الله تعالى په نزد كذاب (درواغجن) ليکل کيږي، ددې مطلب دادی چي د دروا غ ويونکي سړي په اړه دا فيصله کيږي چي دغه سړی درواغجن دی او دده لپاره سزا تیاکل کيږي کوم چي د درواغجنانو لپاره خاص ده، يا دا چي د داسي سړي لپاره د خلکو په زړو کي دا خبره څرګنديږي چي داسي سړی ډېر بې باوره دی، همدارنګه هغه درواغجن مشهور کيږي چي د هغه نيتجه دا کيږي چي داسي سړی د خلکو په نظر کي لويږي او د هغه سړی بغض او نفرت کول پيل کړي.

## د صلح لپاره درواغ

﴿۴۶۱۴﴾: وَعَنْ أُمِّ كُلْثُوْمٍ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِيْ يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ وَيَقُوْلُ خَيْرًا وَّ يَنْمِيْ خَيْرًا. متفق عليه.

د ام كلثوم (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه سړی درواغجن نه دئ چي د خلکو په منځ کي صلح کوي، نيکي خبري کوي او ښه خبري خلکو ته رسوي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۹۹، رقم: ۲۶۹۲، ومسلم ۴\۲۰۱۱، رقم: ۱۰۱-۲۶۰۵.

**تشريح**: مطلب دادی چي د مسلمانانو په خپلو کي جګړې او فساد ختمولو لپاره که يو سړی داسي خبره وکړي چي د حقيقت په اعتبار صحيح نه وي بلکه درواغ وي نو هغه سړي ته به درواغجن نه ويل کيږي او پر هغه به د درواغو ګناه نه وي مګر دا ضروري ده چي هغه خبره داسي وي چي پر ښېګڼې باندي شامله وي نه دا چي د يو خرابۍ خبره لکه شرک، فسق وغيره حامله وي، د مثال په توګه دوه مسلمانان زيد او بکر په خپلو کي دښمني لري يا د هغوی دواړو په مينځ کي فتنه او فساد وي نو په دغه صورت کي که چيري يو دريم مسلمان دا وغواړي چي د دواړو په مينځ کي دښمني ختمه سي او د هغوی په مينځ کي صلح راسي او ددغه مقصد لپاره هغه دواړو ته ورسي او داسي ورته ووايي چي هغه دوهم تا ته سلام ويلی دی او هغه ستا تعريف کوی او ستا په اړه يې ويل چي زه هغه خپل دوست ګڼم او په حقيقت کي نه هغه سلام ويلی وي او نه يې د هغه تعريف کړی وي.

## مبالغه مه كوئ

﴿۴٦۱۵﴾: وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْاَسْوَدِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَيْتُمُ الْمَدَّاحِينَ فَاحْثُوا فِي وُجُوهِهِمُ التُّرَابَ. رواه مسلم.

د حضرت مقداد بن اسود ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي تاسو هغه خلک ووينئ چي په مبالغې سره تعريفونه كوي (يعني د دروغو تعريفونه كوي) نو د هغوی پر مخونو خاوري واچوئ. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۲۲۹۷، رقم: ٦۹- ۳۰۰۲.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري يو سړی ستا په مخکي ستا تعريف وکړي او هغه تعريف که په ژبه وي يا د قصيدې او نثر په صورت کي وي او د هغه تعريف کولو څخه مقصد ستا څخه مالي گټه تر لاسه کول يا د خپل يو مطلب پوره کول وي نو ته د هغه په خوله کي خاوري واچوه يعني هغه محروم کړه، مه هغه ته څه ورکوه او مه د هغه مطلب پوره كوه.

په خوله کي د خاورو اچولو څخه دا مراد دی چي هغه ته يو معمولي شی ورکړه چي هغه ډېر سپک او معمولی شی وی او د هغه په خوله کي د خاورو اچولو مشابه وي او دا معمولي ورکول هم د هغه حکمت سره سم وي چي داسي نه د څه نه ورکولو په صورت کي هغه بد ويل پيل کړي.

ځينو علماوو دغه ارشاد پر خپل ظاهري مفهوم باندي محمول کړی دی، ددغه حديث راوي حضرت مقداد ﷺ په اړه نقل سوي دي چي يو سړی د امير المؤمنين حضرت عثمان ﷺ په مخکي د هغه تعريف کول پېل کړل نو هغه يو موټ خاوري راواخيستلې او د هغه پر مخ يې وپاشلې، علماوو ليکلي دي چي د تعريف کونکو سره داسي چلن کول په اصل کي د هغه تعريف کونکي په سختۍ سره خبردار کول دي ځکه چي د چا په مخکي د هغه تعريف کونکی خپل ممدوح په غرور او تکبر کي اخته کوي.

خطابي ﷫ ليکلي دي چي مداحين يعني تعريف کونکو څخه مراد هغه خلک دي چي هغوی بې ځايه تعريف او مدح کول خپل عادت وګرځوي، داسي خلک په تعريف او مدح کولو کي نه د حق او باطل تميز کوي او نه د مستحق او غير مستحق خيال ساتي، او هغوی دغه کار د گټي تر لاسه کولو او معاش ذريعه جوړوي، د کوم چا څخه چي هغه څه تر لاسه کول غواړي يا د کوم سړي څخه چي د مطلب پوره کولو اميد وي نو هغه ته مخامخ په ډېري مبالغې سره د هغه

تعريف او مدح كوي نو كوم څوک چي د دنیاوي غرض څخه پرته د يو قابل تعريف سړي واقعي مدح او تعريف وکړي يا د يو سړي پر ښه کار باندي د هغه تعريف وکړي چي په هغه سره نور د ښکو کارو شوق پیدا سي او نورو خلکو ته هم د هغه په اتباع کي د نیکو اعمالو او د خیر د کارونو رغبت پیدا سي نو پر داسي سړي باندي د ذکر سوي حديث اطلاق نه کیږي يعني هغه ته به بد تعريف کونکی نه ویل کیږي.

﴿۴۶۱۶﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ أَثْنَى رَجُلٌ عَلَى رَجُلٍ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوبكره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي يو سړي د رسول الله ﷺ مخته (په مبالغې) سره د يو بل سړي تعريف وکړ،

وَسَلَّمَ فَقَالَ وَيْلَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ أَخِيكَ ثَلَاثًا مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَادِحًا لَا مَحَالَةَ

رسول الله ﷺ هغه مبالغه کونکي ته وفرمایل پر تادي افسوس وي تا دخپل ورور غاړه ووهل دا الفاظ ورته رسول الله ﷺ درې واره وویل،. او ددې وروسته يې وویل: که ته د چا تعريف کول ضروري گڼې

فَلْيَقُلْ أَحْسِبُ فُلَانًا وَاللَّهُ حَسِيبُهُ إِنْ كَانَ يُرٰى أَنَّهُ كَذَالِكَ وَلَا يُزَكِّي عَلَى اللَّهِ أَحَدًا. متفق عليه.

نو داسي وايه چي د فلاني سړي په اړه زما دا خيال دئ يا فلانی سړی زه داسي گڼم، او الله جل جلاله د حقيقت حال څخه ښه خبر دئ هغه حساب كونكی او خبر وركونكی دئ او دا دي هم په داسي صورت کي وايي چي د هغه سړي په اړه داسي خيال ولري او پر الله تعالى دي د يو سړي په نسبت يقين سره دا حکم نه لگوي چي هغه يقينا داسي دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۵۲، رقم: ۶۱۶۲ و مسلم ۴\۲۲۹۶، رقم: ۶۵ - ۳۰۰۰.

**تشريح**: د چا غاړه پرېکول: دغه الفاظ که څه هم د ذبح کولو او د هغه د بدني هلاکت په معنی دی مگر دلته د غاړي پرېکولو څخه مراد روحاني هلاکت دی، مطلب دادی چي کوم څوک د يو چا تعريف کوي نو هغه د خپل تعريف په اورېدو سره په غرور او تکبر کي اخته کيږي لکه څرنگه چي د چا غاړه پرېکول د هغه په دنيوي توگه د هلاکولو برابر دی همدارنگه د يو چا په مخکي د هغه تعريف كول د هغه د ديني او اخروي هلاکت سبب دی، او دغه تعريف ډېر واره په دنيوي

توګه هم د هلاکت سبب جوړیږي لکه څرنګه چي یو سړی د خپل تعریف په اوریدو سره دومره مغرور سي چي د یو چا ناحقه وینه توی کړي او بیا د عدالت له خوا د مرګ د سزا په ورکیدو سره د خپل ځان څخه لاس پرېولي.

که چیري په تاسو کي یو څوک د یو چا تعریف کول ضروري وګڼي: ددې مطلب دادی که چیري تاسو په یو سړي کي داسي صفت ووینئ چي د هغه په وجه هغه د تعریف وړ وي د مثال په توګه هغه ډېر نېک او صالح وي، یا یو سړی د ښو اخلاقو څښتن وي او تاسو د هغه تعریف کول وغواړئ نو په دغه صورت کي هم دا ضروري ده چي تاسو د خپل د ګمان تر حده د هغه تعریف وکړئ، د هغه په اړه په یقین سره فیصله مه کوئ بلکه داسي وایاست چي زه د فلاني سړي په اړه داسي ګمان کوم، ددغه جملې وجه دا ده چي د یو سړي حقیقي حال د الله تعالی څخه پرته هیچا ته معلوم نه دی، کوم څوک چي په ظاهره نیک او ښه ګڼل کیږي کیدای سي چي د هغه باطني حال د هغه درجي وي چي هغه د الله تعالی په نزد هم ښه وي نو کوم څوک چي د تعریف وړ وي د هغه په تعریف کي احتیاط کول پکار دي او د هغه په اړه بالکل آخري فیصله کول نه دي پکار چي دغه سړی یقینا ښه او نېک دی او د الله تعالی په نزد غوره دی مګر د هغو خلکو معامله بېله ده چي هغوی په حدیثو کي په صراحت سره د تعریف وړ ګرځول سوي دي او د هغوی په اړه ثابته سوې ده چي هغوی د الله تعالی په نزد یقینا غوره دي لکه عشره مبشره او داسي نور، ددغه کسانو څخه پرته د بل چا په اړه دي د یقین اظهار نه کیږي چي فلانی سړی د الله تعالی په نزد ښه دی.

**د تعریف ډولونه**: علماؤ د یو چا د تعریف کولو درې ډولونه بیان کړي دي: یو دا چي د چا په مخکي د هغه تعریف وکړل سي دا هغه ډول دی چي د هغه منع نقل سوې ده، دوهم دا چي د یو چا غائبانه تعریف وکړل سي مګر خواهش دا وي چي هغه په دغه تعریف خبر نسي دا ډول تعریف هم داسي دی چي منع ځیني سوې ده او دریم دا چي د یو چا غائبانه تعریف وکړل سي او ددې پروا نه وي چي هغه ته دغه تعریف ورسیږي یا ونه رسیږي او تعریف هم داسي وکړل سي چي هغه یې په حقیقت کي مستحق وي دا هغه ډول دی چي ددې اجازه ورکړل سوې ده او د یو چا په داسي تعریف کي څه پروا نسته.

## د غیبت معنی او تفصیل

﴿۴۶۱۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتَدْرُونَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د صحابه کرامو څخه پوښتنه وکړه چي ايا تاسو ته معلومه ده چي

مَا الْغِيبَةُ قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ ذِكْرُكَ أَخَاكَ بِمَا يَكْرَهُ قِيلَ أَفَرَأَيْتَ

غيبت څه شي دئ؟ هغوی وويل: الله جل جلاله او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل د خپل مسلمان ورور داسي خبرو سره يادونه کول چي هغه ته بدي ښکاريږي،

إِنْ كَانَ فِي أَخِي مَا أَقُولُ قَالَ إِنْ كَانَ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ

پوښتنه وسول که زما په ورور کي هغه خرابي وي د کومي چي زه يادونه کوم بيا هم دې ته غيبت ويل کيږي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل که په هغه کي دغه خرابي موجود وي نو تا د هغه غيبت وکړ او که هغه خرابي پکښي موجود نه وي

فِيهِ فَقَدْ بَهَتَّهُ. رواه مسلم، وفي رواية إِذَا قُلْتَ لِأَخِيكَ مَا فِيهِ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ وَإِذَا قُلْتَ مَا لَيْسَ فِيهِ فَقَدْ بَهَتَّهُ.

نو تا پر هغه بهتان (تهمت) ولګوئ، او په يوه روايت کي داسي الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل که تا د خپل ورور هغه بدي بيان کړه چي په هغه کي وي نو تا د هغه غيبت وکړ او که تا د هغه په اړه داسي خبره وکړه کومه چي په هغه کي نه وي نو تا پر هغه بهتان ولګوئ. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۰۰۱، رقم: ۷۰- ۲۵۸۹.

**تشريح**: غيبت يعني د يو چا عيب بيانول نه يوازي دا چي ګناه ده بلکه په ټولنيز توګه هم ډېر خراب کار دی، مګر د حيرانتيا خبره داده چي د نورو ګناهو په نسبت دغه ګناه په خلکو کي زياته خپره سوې ده، داسي خلک به ډېر کم وي چي د دغه خرابۍ څخه خوندي وي، کنه نو په عامه توګه هر سړی په يو صورت کي غيبت کونکی دی نو ضروري ده چي په دې اړه تفصيل بيان کړل سي.

لکه څرنګه چي مخکي بيان سوی دی چي غيبت دې ته وايي چي يو سړی د يو چا په اړه چي هغه موجود نه وي داسي ذکر وکړي چي په هغه سره د هغه يو عيب څرګند سي او هغه عيب ذکر کول هغه ناخوښه کړي او د هغه عيب تعلق که د هغه د بدن سره وي يا د عقل سره وي او که د دين سره وي يا د دنيا سره وي، که د اخلاقو او افعالو سره وي او که د نفس سره، که د مال سره وي

او كه د اولاد وغيره سره وي، كه د هغه د مور او پلار سره وي يا د ښځي او خادم سره وي، كه د هغه د جامې سره وي يا د هغه د چلن سره وي، كه د هغه د ذاتي هيئت سره وي او كه د هغه د حركاتو او سكناتو سره وي، كه د هغه د پراختيا سره وي او كه د هغه د ترش رويې سره وي او كه د دغه شيانو څخه پرته د بل شي سره وي ، او د دغه عيب ذكر كول كه په الفاظو سره وي او كه په كنايه او اشاره سره وي ، اشاره او كنايه كه د الفاظو په ذريعه وي يا د لاسو ، ستركو ، سر وغيره په ذريعه وي، په دې اړه دا كليه هم بايد په ذهن كي وي كه چيري د يو سړي يو عيب د هغه په عدم موجودتيا كي بيان كړل سي چي د نورو په نظر كي د خپل مسلمانان ورور حيثيت كموي نو دا سخت غيبت دى او حرام دى او كه د چا په مخ كي د هغه يو داسي عيب بيان كړل سي چي هغه ته ناخوښه وي نو دا يو ډول بې حيايي او تكليف رسول دي چي دا نوره هم سخته ګناه ده ، د غيبت كفاره داده چي د كوم چا غيبت سوى وي غيبت كونكى د هغه څخه معافي وغواړي په شرط د دې چي د هغه غيبت خبر هغه ته رسيدلى وي او كه د هغه د معافي غوښتني په وخت كي تفصيل بيانول ضروري نه وي بلكه په اجمالي توګه دومره ويل كافي دي چي ما ستا غيبت كړى دى ما معاف كړه او كه هغه ته غيبت رسيدلى وي په دې توګه چي هغه مړ سوى وي يا يو ليري ځاى تللى وي نو په دغه صورت كي استغفار كافي دي يعني هغه دي پر خپل دغه ګناه باندي د الله تعالى څخه بخښنه وغواړي ، په حديثو كي دا هم نقل سوي دي چي د كوم چا غيبت سوى وي د هغه په اړه استغفار كول د غيبت په كفاره كي داخل دى .

**غيبت په كوم صورت كي جائز دى** : علماؤ ليكلي دي چي د يو چا غيبت كول په ځينو صورتو كي جائز دي د مثال په توګه يو شرعي صورت لاحق وي لكه د ظالم ظلم بيانول ، د حديث د راويانو حال ځرګندول، د نكاح د مشورې په وخت كي د يو چا نسب بيانول يا يو مسلمان د يو چا سره د امانت او شراكت يوه معامله كول غواړي نو هغه مسلمان د تاوان څخه د ژغورني لپاره د هغه سړي رويه بيانول او داسي نور، همدارنګه يو سړى په ظاهري توګه ديندار وي يعني لمونځ هم كوي، روژه هم نيسي او نور فرضونه هم ادا كوي مګر په هغه كي دا عيب وي چي خلكو ته په خپل ژبه او لاس سره تاوان رسوي نو د خلكو په مخكي د هغه دغه عيب بيانول به غيبت نه وي او كه چيري د دغه سړي په اړه د حكومت چارواكو ته خبر وركړل سي چي هغه خبردار كړي او د هغه د تكليف څخه خلک خوندي سي نو په دې كي هم څه خبره نسته .

علماؤ دا هم ليكلي دي چي د اصلاح په توګه د يو سړي عيب بيانول څه پروا نه لري، منع په هغه صورت كي ده كله چي د هغه د عيب بيانولو مقصد د هغه سړي خرابي بيانول وي او هغه ته

تکلیف رسول وي همدارنګه د يو ښار يا کلیو د اوسیدونکو حال بیانول ته غیبت نه ویل کیږي تر څو چي هغوی په متعینه توګه د يو ډلي نوم نه واخلي.

## فحش ویونکی بد سړی دی

﴿۴۶۱۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَجُلًا اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي يو سړي د نبي کريم ﷺ څخه د حاضريدو اجازه وغوښتل، رسول الله ﷺ اصحابو ته وفرمايل:

ائْذَنُوا لَهُ فَبِئْسَ اَخُو الْعَشِيرَةِ فَلَمَّا جَلَسَ تَطَلَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ده ته د راتلو اجازه ورکړئ دی د خپل قوم خراب سړی دئ کله چي هغه سړی راغلئ د رسول الله ﷺ په خوا کي کښينستئ نو رسول الله ﷺ

فِي وَجْهِهِ وَانْبَسَطَ إِلَيْهِ فَلَمَّا انْطَلَقَ الرَّجُلُ قَالَتْ عَائِشَةُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قُلْتَ

لَهُ كَذَا وَكَذَا ثُمَّ تَطَلَّقْتَ فِي وَجْهِهِ وَانْبَسَطْتَ إِلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ

په ورين تندي ورته وکتل او په خندا خندا سره يې د هغه سره خبري وکړې بيا چي هغه ولاړی نو بي بي عائشې وويل: اې د الله رسوله! د هغه په اړه خو تاسو داسي ويلي وه بيا تاسو ورسره داسي په ورين تندي خبري وکړې؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

يَا عَائِشَةُ مَتَى عَهِدْتِنِي فَحَّاشًا إِنَّ شَرَّ النَّاسِ عِنْدَ اللّٰهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ تَرَكَهُ النَّاسُ اتِّقَاءَ شَرِّهِ، وفي رواية اِتِّقَاءَ فُحْشِهِ. متفق عليه.

تا کله زه فحش ویونکی لیدلی یم بد ترين سړی به د الله ﷻ په نزد د قيامت په ورځ هغه وي چي خلک يې په دې وجه پريږدي چي د بدی څخه يې بيريږي او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي د هغه د فحش ويلو د بيري څخه خلک د هغه څخه ليري ليري اوسي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۵۲، رقم: ۶۰۳۲، ومسلم ۴\۲۰۰۲، رقم: ۷۳- ۲۵۹۱.

**تشريح**: په حديث کي چي د کوم سړي په اړه يادونه سوې ده د هغه نوم عينيه ابن حصين وو، دغه سړی د خپل سخت زړه توب، بد اخلاقی او سخت مزاجی په اعتبار ډېر مشهور وو، که څه

هم د رسول الله ﷺ په زمانه کي د هغه په دين او ايمان کي تاوان پېل سوی وو مګر د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته د دين او ايمان څخه په پوره توګه اوښتلو مرتد سوی وو، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هغه ونيوی نو هغه دوهم وار ايمان قبول کړ او د اسلام په حالت کي له دنيا څخه رخصت سو، په هر حال بي بي عائشې رضي الله عنها د هغه سړي په اړه يادونه وکړه چي هغه په خپل لومړني زمانه کي يوه ورځ زموږ دروازې ته په را تلو سره د حاضرۍ اجازه وغوښتل نو رسول الله ﷺ هغه ته د راتلو اجازه ورکړه او د مجلس حاضرينو ته يې وويل دغه سړی د خپل قوم يو خراب سړی دی، هغه په دغه وخت کي د رسول الله ﷺ په وړاندي د خپل اسلام اظهار وکړ که څه هم د هغه ايمان او اسلام راسخ نه وو، ددې څخه څرګنده سوه چي رسول الله ﷺ د هغه په اړه څه وفرمايل هغه د نبوت د علاماتو څخه يوه علامه او د رسول الله ﷺ يوه معجزه وه، رسول الله ﷺ د ذکر سوي ارشاد په ذريعه د هغه په اړه د راتلونکو پېښو او د هغه د باطن حقيقي حال خلکو ته وښودی او په پای کي د هغه بدي او خرابي د ارتداد په صورت کي څرګند سول، ددې څخه دا خبره هم څرګنده سوه چي رسول الله ﷺ په هغه وخت کي کوم الفاظ وفرمايل يا د هغه کوم عيب يې څرګند کړ د هغه مقصد د هغه د حال منکشف کول وو چي خلک يې و پېژني او د هغه د حقيقت څخه خبر سي او د هغه څخه په فتنه او فساد کي اخته نسي نو دې ته به غيبت نه ويل کيږي.

امام نووي رحمة الله عليه ددغه حديث په تشريح کي ليکلي دي چي د رسول الله ﷺ د هغه سړي سره په ورين تندي يو ځای کېدل او په خندا خندا د هغه سره خبري کول د تاليف قلب په وجه وو، ددې څخه معلومه سوه چي د هغه سړي خاطر کول جائز دي چي د هغه د فُحش ويني، بد اخلاقۍ او تاوان څخه بېره وي، ددې څخه دا هم معلومه سوه چي د يو فاسق عيب څرګندول يعني د هغه غيبت کول جائز دي، دلته د مداراتو او مداهنت په مينځ کي په فرق کولو باندي پوهېدل ضروري دي، مدارات دې ته وايي چي د يو سړي د دنيا يا دين يا دواړو د اصلاح لپاره پر هغه د دنيا يو شی خرڅ کړل سي او دا مباح دي بلکه ډېر ځله دا يو ښه کار وي، ددې پر خلاف مداهنت دې ته وايي چي د يو چا د اصلاح او مرستي لپاره پر هغه دين قربان کړل سي، د مداراتو او مداهنت په مينځ کي دغه فرق بايد په ياد وي ځکه اکثر خلک ددې څخه غافل دي او ددغه فرق نه پوهېدو په وجه په ګمراهۍ کي اخته کيږي.

تازه کله فحش ويونکی لېدلی يم: د رسول الله ﷺ دغه ارشاد په اصل کي د بي بي عائشې رضي الله عنها د خيال صحيح کولو لپاره وو چي هغې د خپل قول په ذريعه د خپل حيرانتيا اظهار وکړ چي

رسول الله ﷺ د هغه په اړه مختلفه رويه اختيار کړل کوم وخت چي هغه د رسول الله ﷺ په مخکي نه وو نو رسول الله ﷺ د هغه بدي بيان کړل او کله چي هغه مخکي راغلی نو د هغه سره يې د مهرباني او نرمي چلن وکړ،، کله چي رسول الله ﷺ د هغه په عدم موجودتيا کي هغه ته بد وويل نو د هغه په موجودتيا کي به يې هم بد ورته ويلي وای او د هغه سره به يې داسي چلن کړی وای لکه څرنګه چي د يو خراب سړي سره کيږي، نو رسول الله ﷺ د بي بي عائشي ﷞ د خبري په جواب کي څرګنده کړه که چيري ما د هغه په مخکي هم دا خبره کړې وای کوم چي د هغه په نه موجودتيا کي کوم نو دا به يوه بده خبره وای حال دا چي تا زه هيڅکله په نامناسبه خبره کولو باندي نه يم ليدلې ، ددې څخه وروسته چي رسول الله ﷺ کوم ارشاد وفرمايه د هغه دوې معناوي دي يو خو دا چي رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه دا څرګنده کړه چي ما د هغه سړي په مخکي هغه ته بد ځکه ونه ويل چي زه سخت ويونکی ونه ګرځول سم او زما شمېر په هغه خلکو کي نسي چي د هغوی د سختو او ترخو خبرو په وجه خلک هغوی سره يو ځای کېدل پرېږدي، دوهمه معنی داده چي رسول الله ﷺ ددغه الفاظو په ذريعه دا څرګنده کړه چي هغه سړی ډېر شرير او بدباطنه وو نو د هغه د بد باطنۍ په وجه ما پرهيز ځيني وکړ او د هغه په مخکي مي هغه ته بد ونه ويل او په حقيقت کي خراب سړی هغه دی چي د هغه د بدۍ څخه د ساتني لپاره خلک د هغه څخه پرهيز وکړي او د هغه د عيبو څخه يې هم خبر کړي .

## خپل عيب مه ښکاره کوئ

﴿۴۶۱۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ أُمَّتِي

د حضرت ابو هريره ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما ټول امت په سلامتيا

مُعَافًى إِلَّا الْمُجَاهِرِينَ وَإِنَّ مِنَ الْمُجَانَةِ أَنْ يَعْمَلَ الرَّجُلُ بِاللَّيْلِ عَمَلًا ثُمَّ

کي دئ (يعني هيڅ يو سخت عذاب به نه ورکول کيږي) مګر هغه خلک په عافيت کي نه دي چي بدي ظاهرونکي وي او دا خبره څومره د بې پرواهۍ ده چي سړی د شپې يو (بد) کار وکړي او

يُصْبِحَ وَقَدْ سَتَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ فَيَقُولَ يَا فُلَانُ عَمِلْتُ الْبَارِحَةَ كَذَا وَكَذَا وَقَدْ

سبا ته چي الله تعالی د هغه عيب پټ کړی وي هغه ګرځي او خلکو ته وايي اې فلانيه ! د شپې ما

بَاتَ يَسْتُرُهُ رَبُّهُ وَيُصْبِحُ يَكْشِفُ سِتْرَ اللَّهِ عَنْهُ. متفق عليه و ذكر حديث

## ابي هريرة من كان يؤمن بالله في باب الضيافة

داسي کړی وه، الله تعالی د هغه عيب پټ کړ او هغه د سهار کېدو سره د الله تعالی پرده وشکول يعني کوم عيب چي الله تعالی پټ کړی وو پرده يې پر اچولې وه هغه يې خپله خلکو ته ځرګند کړ، بخاري او مسلم او د ابوهريره حديث من کان يؤمن بالله الخ د ضيافت په باب کي بيان سوی دئ.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۸۶، رقم: ۶۰۶۹، ومسلم ۴\۲۲۹۱، رقم: ۵۲-۲۹۹۰.

**د لغاتو حل**: المجانة: ان لايبالي الانسان بما صنع ولابما قيل له من غيبة و مذمة.

**تشريح**: شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه په خپل کتاب کي د معافا لفظ معنی د سلامتيا او خوندي کېدو ليکلې ده، يعني د هغه په نزد د : (كل امتي معافا الا المجاهرون) معنی داده چي زما د امت ټول خلک د غيبت څخه خوندي او مامون دي پرته د هغه خلکو څخه چي هغوی په ډاګه ګناه او معصيت کوي، طيبي رحمة الله عليه هم دا معنی ليکلې ده، مګر ملا علي قاري رحمة الله عليه دا ليکلي دي چي د حديث سياق او سباق او د هغه حقيقي مفهوم پر دې دلالت نه کوي، د هغه په نزد هغه معنی ده کوم چي په ژباړه کي ليکل سوې ده.

حضرت شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه د حديث په وضاحت کي ليکلي دي چي شريعت کوم غيبت حرام ګرځولی دی هغه د هغه سړي غيبت دی چي په پټه سره يو ګناه کوي او خپل عيب پټوي مګر کوم خلک چي په ځرګنده ګناه کوي او خپل عيب خپله ځرګندوي چي نه خو د الله جل جلاله څخه شرمېږي او نه د بندګانو څخه نو د هغه غيبت کول صحيح دي.

علماؤ ليکلي دي چي د فاسق معلن يعني په ډاګه د فسق کونکي غيبت کول جائز دی او د ظالم حاکم او پاچا او مبتدع داعي لپاره غيبت کول هم صحيح دی همدارنګه د عيبو د اصلاح لپاره او د نصيحت لپاره د يو چا بدي بيانول، د يو شاهد د حالاتو پلټنه کول او د هغه په اړه صحيح خبر معلومول د هغه عيب بيانول او د اخبار او حديثو د راويانو حيثيت او شخصيت ځرګندولو لپاره د هغوی عيبونه ځرګندول په غيبت کي داخل نه دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د درواغو پرېښودل

﴿۴۶۲۰﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَرَكَ الْكَذِبَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: څوک چي باطل درواغ ويل

وَهُوَ بَاطِلٌ بُنِيَ لَهُ فِي رَبَضِ الْجَنَّةِ وَمَنْ تَرَكَ الْمِرَاءَ وَهُوَ مُحِقٌّ بُنِيَ لَهُ فِي

پرېږدي نو د هغه لپاره د جنت پر غاړه يو ماڼۍ تيارېږي او څوک چي پر حق وي پر هغه سربېره جګړه پرېږدي د هغه لپاره

وَسَطِهَا وَمَنْ حَسَّنَ خُلُقَهُ بُنِيَ لَهُ فِي أَعْلَاهَا. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن وكذا في شرح السنة وفي المصابيح قال غريب.

د جنت په منځ كي ماڼۍ تيارېږي او چا چي خپل اخلاق ښه كړل د هغه لپاره د جنت په لوړو كي ماڼۍ جوړېږي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۱۵، رقم: ۱۹۹۳، والبغوي في شرح السنة ۱۳\۸۲، رقم: ۳۵۰۲،

**تشريح**: په حديث كي هغه درې ډوله خلک ذكر سوي دي چي هغوی ته به په جنت كي لوړ مقام وركول كيږي، يو ډول هغه خلک دي چي درواغ ويل بالكل پرېږدي ، دلته د ناحق قيد لګول سوی دی يعني داسي درواغ چي بالكل ناروا اوناجائز وي، ددغه قيد وجه داده چي په ځينو صورتو كي درواغ ويل جائز دي لكه د جنګ په حالت كي، په شرط ددې چي د هغه درواغو په وجه د عهد ماتول نه وي، يا د خلكو په مينځ كي د صلح لپاره او د يو مسلمان د مال ساتني لپاره يا د دوو ښځو ساتلو په صورت كي يعني كه د يوه سړي دوې ښځي وي نو د هغه لپاره دا جائز دي چي هغه د خپلي هري ښځي د خوشحاله كولو لپاره هري يوې ته داسي ووايي چي ته زما ډېره خوښه يې ، او ځينو حضراتو دا هم ليكلي دي چي د يوې ښځي كېدو په صورت كي هم هغه وخت درواغ ويل جائز دي كله چي د هغې د زړه خوشحاله كولو لپاره هغې ته داسي وويل سي چي زه به تا ته دا دركړم او هغه به دركړم ، دا به درته جوړ كړم او هغه به درته راوړم .

دوهم ډول هغه خلک دي چي د حق كېدو سربېره د تواضع، انكسارۍ او د نفس د شرارت په وجه د دښمنۍ او بحث څخه خپل لمن ساتي مګر دا په هغه صورت كي دي كله چي د هغه دښمنۍ او جګړې تعلق د يو دنيوي معاملې سره وي او په هغه كي په سكوت او پرهيز سره په دين كي څه تاوان نه لوېږي، مګر كه چيري د يو دښمنۍ او جګړې تعلق د ديني معاملې سره وي نو د هغه څخه تر هغه وخته پوري ځان ساتل مناسب نه دي تر څو چي هغه معامله صحيح نسي او حق څرګند نسي ، د امام شافعي رحمة الله عليه څخه نقل سوي دي چي هغه به فرمايل: ما په هيڅ يو

ديني معامله كي بحث او مناظره ددغه مقصد څخه پرته په بله وجه نه ده كړې چي ما غوښتل چي زه د ريښتيا ثابتولو ذمه واري څخه خلاص سم او حق زما د مقابل په لاس څرګند سي.

په دې اړه امام حجة الاسلام رحمة الله عليه ليكلي دي چي د مراء يعني د جګړې او بحث اختيارولو كم از كم درجه داده چي يو سړى د بل چا پر خبره اعتراض وكړي په دې توګه چي يا خو د هغه په الفاظو كي خلل او تاوان څرګند كړي يا د هغه په مضمون او معنى كي د غلطۍ را ايستلو يا د متكلم مقصد او مراد غلط وګرځوي ددې پر خلاف ترك مراء يعني د جګړې او بحث څخه د پرهيز كولو مطلب دادى چي د بل چا په كلام او قول داسي اعتراض ونه كړي ، نو انسان بايد كله چي د هغه كلام او خبره واوري كه هغه پر حق وي نو د هغه تصديق دي وكړي او كه هغه باطل وي او د هغه د يو ديني معاملې سره نه وي نو: هغه څخه دي سكوت اختيار كړي.

دريم ډول هغه خلك دي چي خپل اخلاق ښه جوړوي، څرګنده دي وي چي حسن اخلاق د ټولو ښه صفتو او كمالاتو اختيارولو نوم دى مګر په ټولنه كي په عامه توګه د حسن اخلاق اطلاق پر ورين تندي، نرمه وينا او ښه چلن باندي كيږي.

## جنت او دوږخ ته د تللو سبب

﴿۴۶۲۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَدْرُوْنَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو پوهيږئ چي په جنت

مَا اَكْثَرَ مَا يُدْخِلُ النَّاسَ الْجَنَّةَ تَقْوَى اللّٰهِ وَحُسْنُ الْخُلُقِ اَتَدْرُوْنَ مَا اَكْثَرَ مَا يُدْخِلُ النَّاسَ النَّارَ اَلْاَجْوَفَانِ الْفَمُ وَالْفَرْجُ. رواه الترمذي.

كي اكثر يو څوك كوم شى داخلوي (هغه شى) د الله تعالى څخه بيره او ښه اخلاق دي ايا تاسي نه پوهيږئ ډېر خلك د خولې (ژبي) او فرج (شرمګاه) څخه دوږخ ته داخليږي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۱۹، رقم: ۲۰۰۴، وابن ماجه ۲\۱۴۱۸، رقم: ۴۲۴۶.

**تشريح**: د تقوا تر ټولو ادنى درجه داده چي د شرك څخه پرهيز وكړل سي او تر ټولو لوړه درجه داده چي په زړه كي د الله جل جلاله څخه پرته د بلې خبري خيال هم نه راوستل سي ، د حسن خلك څخه مراد د الله تعالى د مخلوق سره ښه اخلاق اختيارول دي چي د هغه تر ټولو ادنى درجه داده چي يو مخلوق ته هيڅكله تكليف او تاوان ونه رسول سي او تر ټولو اعلى درجه داده چي انسان د هغه سره نيكي هم وكړي چا چي ورسره بد كړي وي، په دې اعتبار سره د حديث د لومړنۍ برخي

مطلب دادی چي په کوم چا کي تقوا او ښه اخلاق دواړه صفتونه پیدا سي نو پوه سئ چي د هغه د خلاصون دروازه خلاصه سوه ، چي په تقوا یعني پرهیزګاری سره د الله ﷻ رضا ترلاسه کیږي او په ښه اخلاقو سره د مخلوق خوشحالي ترلاسه کیږي ، څرګنده دي وي چي د کوم چا څخه الله ﷻ هم خوشحاله وي او مخلوق هم ، نو د هغه د کښتی په پوري وتلو کي څه شک دی .

شیخ عبدالحق رحمة الله علیه لیکلي دي: ښه اخلاق هم په تقوا کي داخل دی، په حدیث کي د تقوا څخه وروسته د ښه اخلاقو ذکر کول د تخصیص بعد تعمیم په توګه دي مګر دا ویل کیدای سي چي د تقوا څخه د ظاهري اعمالو حسن مراد دی او د ښه اخلاقو څخه د باطني احوالو حسن .

طیبي رحمة الله علیه وایي: د تقوا په ذریعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي د الله ﷻ سره ښه معامله وکړي، په دې توګه چي د هر هغه شي څخه ځان وساتي د کوم څخه چي منع سوې ده او په هر هغه شي عمل وکړي چي د هغه حکم سوی دی، او د ښه اخلاقو په ذریعه دې ته اشاره سوې ده چي د الله تعالی د مخلوق سره ښه چلن وکړل سي یعني ښه اخلاق اختیار کړل سي .

د حدیث په دوهمي برخي کي دې ته اشاره سوې ده چي خوله او شرمګاه د ګناه دوې لوي چینې دي چي د هغو څخه په پیدا کېدونکو خرابیو کي په لوېدو سره انسان په دوږخ کي لوېږي، نو خوله چي په هغه کي ژبه هم داخل ده د ګمراهۍ او بد عملۍ لویه ذریعه ده انسان چي کوم حرام شی خوري او څښي هغه د خولې په ذریعه تېروي او کوم منع او ناجائز خبري چي کوي ، خوله د هغه ذریعه جوړیږي، همدارنګه شرمګاه که د ښځي وي او که د نارینه وي د شیطان تر ټولو لوی جال دی چي په هغه کي هغه خلک په لوېدو سره په دوږخ کي اچوي ، انسان ددغه شرمګاه په سبب د جنسي جذباتو څخه مغلوب کیږي او په نفساني شهوت کي په اخته کېدو سره د خپل خالق نافرماني کوي .

## د ښه او بدي خبري پای

﴿۴۶۲۲﴾: وَعَنْ بِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت بلال بن حارث رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

إِنَّ الرَّجُلَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنَ الْخَيْرِ مَا يَعْلَمُ مَبْلَغُهَا يَكْتُبُ اللّٰهُ لَهُ بِهَا

کله انسان د خیر کلمه په خپل ژبه سره وایي مګر د هغه په قدر نه پوهیږي او خدای ﷻ په هغه خبره سره دده لپاره خپله

رِضْوَانَهُ إِلَى يَوْمٍ يَّلْقَاهُ وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنَ الشَّرِّ مَا يَعْلَمُ

رضا وليكي تر هغه ورځي پوري چي دی خدای ﷻ ته ورځي ، او يو سړی يو كلمه د ژبي څخه وباسي مګر د هغه حقيقت نه پيژني

مَبْلَغَهَا يَكْتُبُ اللهُ بِهَا عَلَيْهِ سَخَطَهُ إِلَى يَوْمٍ يَّلْقَاهُ . رواه في شرح السنة و روى مالك والترمذي وابن ماجه نحوه.

او الله تعالى د هغه په سبب پر هغه غيظ او غضب ليكي تر څو پوري چي هغه د الله تعالى سره ملاقات نه كوي ،. شرح السنه. مالک، ترمذي او ابن ماجه همدا ډول حديث نقل كړی دئ.

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\ ۹۸۵، رقم ۵، والترمذي ۴\ ۴۸۴، رقم: ۲۳۱۹، وابن ماجه ۲\ ۱۳۱۲.

**تشريح**: خپله رضا ثابتوي : مطلب دادی چي الله ﷻ هغه ته د داسي خبرو توفيق وركوي چي د الله تعالى در ضا سبب وي ، هغه په برزخ كي د قبر د عذاب څخه ساتي ، د هغه قبر پراخوي او هغه ته ويل كيږي چي داسي بېده سه لكه څرنګه چي ناوې بېده كيږي ، بيا به هغه د قيامت په ورځ په خوشبختۍ او سعادت سره راپورته كيږي چي پر هغه به د الله تعالى د حق سايه وي او په جنت كي به داخل كړل سي او د هغه ځای نعمتونه به يې په برخه سي ، همدارنګه چا چي د الله تعالى ناراضګۍ تر لاسه كړې وي د هغه معامله به ددې برعكس وي ، په حديث كي فرمايل سوي دي چي تر هغه ورځي پوري تر څو چي هغه د الله تعالى ملاقات وكړي، نو ددغه توقيت مطلب دا نه دی چي د الله تعالى رضا يا د هغه ناراضګۍ به تر هغه ورځي پوري محدود وي د هغه څخه وروسته به منقطع سي ، ددې تائيد د قرآن كريم د آيت څخه هم كيږي كوم چي د ابليس په اړه نازل سوی دی : (ان عليک لعنتي الى يوم الدين) ، څرګنده ده چي د آيت مطلب دا نه دی چي ابليس لعين به د الله تعالى د لعنت مورد يوازي د قيامت تر ورځي پوري وي بلكه تل به د الله تعالى په لعنت كي وي ، همدرانګه په حديث كي د ذكر سوو خلكو په اړه به د الله تعالى د رضا او ناراضګۍ تعلق د مرګ د ورځي څخه د تل لپاره وي .

سفيان ابن عينيه رحمه الله وايي : د خير د كار څخه مراد ظالم پاچا او حاكم په مخكي د حق خبره كول دي ، پر دې باندي په قياس كولو سره ويل كيږي چي د شر د كلمې څخه مراد د يو پاچا او حاكم په مخكي د باطل كلمه يعني خرابه خبره كول چي دين ته تاوان رسوي مګر د حديث ظاهري مفهوم پر عموميت باندي دلالت كوي .

## د خلكو خندولو لپاره درواغ

﴿۴۶۲۳﴾: وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْلٌ لِمن يُحَدِّثُ فَيَكْذِبُ لِيُضْحِكَ بِهِ الْقَوْمَ وَيْلٌ لَهُ وَيْلٌ لَهُ. رواه احمد والترمذي وابوداؤد والدارمي.

د حضرت بهز بن حكيم رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پر هغه چا افسوس دئ چي خبري كوي نو درواغ وايي يوازي ددې لپاره چي خلك وخندوي، پر داسي كس افسوس او افسوس دئ. احمد، ترمذي، ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\ ۳، ۵، ۷، سنن الترمذي ۴\ ۴۸۳، رقم: ۲۳۱۵، وابوداود ۵\ ۲۶۵، رقم: ۴۹۹۰، والدارمي ۲\ ۳۸۲، رقم: ۲۷۰۲.

**تشريح**: د (ويل) معنی د هلاكت ده او د دوږخ د يوې ژوري كندي نوم هم ويل دی، كه چيري په هغه كي غرونه واچول سي نو د ګرمۍ څخه به ويلي سي، د عربو په كلام كي دغه لفظ د هغه چا لپاره استعماليږي چي د يو خراب او ناخوښه كار كونكی وي او پر هغه افسوس كول مقصد وي، رسول الله ﷺ د خپل ارشاد په پای كي ذكر سوی لفظ بيا استعمالول او تكرارول د داسي سړي په اړه د زجر او وعيد په سختۍ سره بيانول مقصد دي چي د بې بنياده خبرو او دروغو لطيفو او قصو په ذريعه خلك خندوي.

ويل لمن يحدث فيكذب ....: د درواغ ويلو په قيد سره دا خبره څرګنديږي كه يو څوك د خپل ملګرو او دوستانو د خوشحاله كولو او خندولو لپاره داسي خبره وكړي يا داسي لطيفې او قصې ورته وكړي چي رښتوني وي نو په دې كي څه پروا نسته، كه څه هم دا ضروري ده چي هغه دي خپل عادت نه ګرځوي او نه دي د لطيفو او قصو ويل خپل كسب ګرځوي ځكه چي خوش طبعي چي پر دروغو مشتمل نه وي سره ددې چي مشروع او مسنون كار دی مګر كله كله اختيارول پكار دي چي تل دي خپل وخت په داسي كولو كي نه مصرفوي او نه دي دغه كار ته زياته توجه وركوي ځكه چي ددې انجام د تاوان او خسارې څخه پرته بل هيڅ نه دی لكه څرنګه چي په حديث كي فرمايل سوي دي.

﴿۴۶۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : انسان

لَيَقُوْلُ الْكَلِمَةَ لاَ يَقُوْلُهَا إِلاَّ لِيُضْحِكَ بِهِ النَّاسَ يَهْوِيْ بِهَا أَبْعَدَ مِمَّا بَيْنَ

يوه خبره كوي او ددې لپاره يې كوي چي خلک وخندوي او هغه ددې خپلي خبري په سبب په دوږخ كي اچول كيږي د دومره فاصلې څخه څومره چي

السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَإِنَّهُ لَيَزِلُّ عَنْ لِّسَانِهِ أَشَدُّ مِمَّا يَزِلُّ عَنْ قَدَمِهِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د آسمان او مځكي په منځ كي ده او انسان د خپلي ژبي په وجه د قدمونو تر ښوئيدو زيات سخت ښوئيږي . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\۲۴۶، رقم: ۴۹۵۵.

**تشريح**:د حديث د آخري برخي مطلب دادى كه چيري يو څوک د پښو په ښوئيدلو سره پوړموخى ولويږي او تاوان ور ورسيږي نو دا دومره سخت نه دى لكه څومره چي هغه تاوان دى چي د ژبي په ښوئيدو سره هغه د درواغو وغيره په ذريعه تر لاسه كړي ځكه د پښو ښوئيدل بدن ته تاوان رسوي او د ژبي ښوئيدل دين او آخرت ته تاوان رسوي او څرګنده ده چي بدني تاوان تر ديني تاوان سپک دى .

## چپه خوله خلاصون دئ

﴿۴۶۲۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَمَتَ نَجَا . رواه أحمد والترمذي والدارمي والبيهقي في شعب الإيمان

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي چپه خوله پاته سي نو هغه خلاصون تر لاسه كړ . احمد ، ترمذي ، دارمي او بيهقي په شعب الايمان كي

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۱۷۷، والترمذي ۴\۵۶۹، رقم: ۲۵۰۱، والبيهقي في شعب الايمان ۴\۲۵۴، رقم: ۴۹۸۳، والدارمي ۲\۳۸۷، رقم: ۲۷۱۳.

**تشریح**: مطلب دادی چي په پټه خوله کېدو سره او ژبه د خرابو خبرو څخه په خوندي کولو سره د دنیا د ډیرو آفتونو څخه خلاصون تر لاسه کیږي او په دیني توګه هم له ډېرو بلاوو او ستونزو څخه خلاصون په برخه کیږي ځکه چي انسان په عامه توګه په کومو بلاوو او آفتو کي اخته کیږي په هغو کي اکثر د ژبي په ذریعه وي.

**د خبرو ډولونه**: امام غزالي رحمه الله لیکلي دي: انسان چي د خپلي ژبي څخه کومه خبره راباسي او کوم کلام کوي د هغه څلور ډولونه دي، یو خو محض تاوان، دوهم محض ګټه، دریم هغه خبره چي په هغه کي ګټه هم وي او تاوان هم وي، څلورم هغه خبره چي په هغه کي ګټه نه وي او تاوان هم نه وي نو د هغه څخه سکوت اختیارول پکار دي ځکه چي د تاوان څخه ځان ساتل د ګټي تر لاسه کولو څخه زیات مهم دی او هغه کلام چي په هغه کي نه ګټه وي او نه تاوان نو څرګنده ده چي په هغه کي ژبه بوختول محض د وخت ضائع کول دي او دا شی هم خالص تاوان دی، پاته سو دوهم ډول یعني هغه کلام چي په هغه کي ګټه وي که څه هم په داسي خبرو کي ژبه بوختول خرابه خبره نه ده مګر دا حقیقت هم باید په ذهن کي وي چي په دې کي هم د ابتلایي آفت خطره وي په دې توګه چي په داسي کلام کي ډېر ځله ریا او تصنع او د نفس خوشحاله کولو اندېښنه وي او په دغه صورت کي دا تمیز کول هم مشکل وي چي کوم ځای ښوئیدلی دی، خلاصه دا چي په هر حالت او هر صورت کي پټه خوله اختیارول غوره او د خلاصون ذریعه ده ځکه چي د ژبي آفتونه بې شمېره دي او د هغو څخه ځان ساتل مشکل دي مګر دا چي ژبه بنده وساتل سي. یو چا څومره ښه ویلي دي: (اللسان جسمه صغير و جرمه كبير و كثير) یعني ژبي کوچنۍ ده مګر د هغه جرمونه لوی او ډېر دي.

﴿۴۶۲۶﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ لَقَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ مَا النَّجَاةُ قَالَ أَمْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ وَلْيَسَعْكَ بَيْتُكَ وَابْكِ عَلَى خَطِيئَتِكَ. رواه احمد والترمذي.

د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ سره ملاقات وکړ او پوښتنه مي وکړه چي د خلاصون ذریعه څه ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: خپله ژبه په واک کي ساته، په خپل کور کي پروت اوسه او پر خپلو ګناهونو ژاړه. احمد او ترمذي.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲۵۹\۵، والترمذي ۵۲۳\۴، رقم: ۲۴۰۶،

**تشریح**: (اَملک) د الف په زور او د لام په زبر سره دی مگر شیخ عبدالحق رحمة الله عليه د الف په زبر سره ترجیح ورکړې ده ، ددغه جملې معنی یو شارح داسي لیکلې ده چي خپله ژبه د داسي خبرو څخه وساتي چي په هغو کي خیر او نیکي نه وي ، مگر ددغه جملې زیاته صحیح معنی داده چي خپله ژبه بنده ساته گویا ته د خپلو کارو ساتنه کوې، یعني د خپل دین په اړه محتاط او پرهیزگار اوسې او پر خپلو حالاتو باندي متوجه کېدل ظاهر دي چي کله خپلو معاملو کي محتاط او پرهیزگار اوسیږي او پر خپلو حالاتو باندي په متوجه کېدو سره پر خپلو خرابیو او نیکیو باندي نظر لري نو د خلاصون لار به ستا مخته وي.

ستا کور دي ستا کفایت وکړي: مطلب دادی چي د خرابو مجلسو او خرابو خلکو د ملگرتیا څخه د ځان ساتني په وجه یوازیوالي اختیار کړه ، د خپل کور څخه هغه وخت دباندي وځه کله چي د وتلو اړتیا وي او ددغه یوازیوالي په وجه زړه مه خفه کوه بلکه دا غنیمت وگڼه ځکه چي داسي کول د ډېرو فتنو او فساد څخه د خلاصون ذریعه ده، ځکه ویل سوي دي : هذا زمان السکوت وملازمة البیوت والقناعة بالقوة الی ان تموت، طیبي رحمة الله عليه وایي چي په (ویسعک بیتک) کي د حکم ظاهر مورد کور دی مگر په حقیقت کي ددغه حکم مورد مخاطب دی یعني ددغه ارشاد په ذریعه مخاطب ته هدایت سوی دی چي په خپل کور کي د یوازیوالي په اختیارولو سره د الله تعالی په عبادت کي بوخت اوسه.

پر خپلو گناهو باندي ژاړه : مطلب دادی چي پر خپلو خطاوو او کوتاهیو باندي په پښېمانه کېدو سره د بخښني لپاره د الله تعالی په وړاندي ژړا او زاري اختیار کړه او که ژړا نه درځي نو د ژړا صورت جوړ کړه.

## دژبي عاجزي

﴿۴۶۲۷﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَفَعَهُ قَالَ إِذَا أَصْبَحَ ابْنُ آدَمَ فَإِنَّ الْأَعْضَاءَ كُلَّهَا تُكَفِّرُ اللِّسَانَ فَتَقُولُ اتَّقِ اللّٰهَ فِينَا فَاِنَّا نَحْنُ بِكَ فَإِنْ اسْتَقَمْتَ اسْتَقَمْنَا وَإِنْ اعْوَجَجْتَ اعْوَجَجْنَا . رواه الترمذي.

د حضرت ابو سعید رضي الله عنه څخه مرفوعا روایت دئ او وایي چي انسان کله سهار کوي نو د بدن ټول اندامونه ژبي ته عاجزي کوي او ورته وایي چي زموږ په اړه د الله جل جلاله څخه و بیرېږه ځکه چي موږ ستا سره تړلي یو که ته سمه یې نو موږ به هم سم یو (په امان یو) او که ته بې لاري غوره

کړې نو موږ به هم بې لارې سو . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۲۳، رقم: ۲۴۰۷.

**تشريح**: هسې خو د ټول بدن نظام ظاهري او باطني دار او مدار پر زړه دی که زړه صحيح او صالح وي نو ټول اندامونه به صحيح او صالح وي او که زړه فاسد او بېکاره سي نو ټول اندامونه به هم فاسد او بېکاره سي ، لکه چي په يو حديث کي فرمايل سوي دي : (ان في الجسد مضغة ان صلحت صلح الجسد کله واذا فسدت فسد الجسد کله) ژباړه : په تحقيق سره په بدن کي د غوښي يوه ټوټه ده که چيري هغه سمه وي نو ټول بدن به سم وي او که هغه خرابه وي نو ټول بدن به خراب وي .

د دغه حقيقت سربېره په دغه حديث کي دا څرګندول چي ژبه د بدن د ټولو اندامو سرداره ده ، دا په دې اعتبار دي چي په حقيقت کي زړه د بدن پاچا دی مګر د زړه ترجمان او خليفه ژبه ده چي زړه څه فکر کوي ژبه هغه بيانوي او د بدن نور اندامونه په هغه عمل کوي، نو کوم حکم چي د زړه وي هغه د ژبي دی لکه څرنګه چي د زړه د صالح او فاسد کېدو اثر د بدن پر ټولو اندامو لويږي همدارنګه د ژبي د ښه والي او بدوالي اثر هم د بدن پر ټولو اندامو لويږي .

**ښه اسلام**

﴿۴۶۲۸﴾: وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ تَرْكُهُ مَا لَا يَعْنِيهِ. رواه مالك واحمد ورواه ابن ماجة عن ابي هريرة والترمذي والبيهقي في شعب الايمان عنهما.

د حضرت علي بن حسين رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د انسان (يعني د مسلمان) اسلامي ښه والی دادئ چي هغه شی پرېږدي کوم چي بې ګټې وي . مالک، احمد او ابن ماجه د ابوهريره او ترمذي او بيهقي د دواړو څخه روايت کړی دئ .

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\۹۰۳، رقم: ۳، ومسند الامام احمد ۱\۲۰۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي د يو سړي د اسلام ښه والی او د ايمان د کامل کېدو علامه داده چي د هغه شي څخه پرهيز وکړي چي د هغه پابندي نسي کولای چي په هغه سره يو مقصد متعلق نه وي او که د يو شي دا شان نه وي چي د هغه پابندي وکړل سي او د هغه په تر لاسه کولو کي

بو ختیا اختیار کړل سي ، خلاصه دا چي هغه کار ضروري نه دی کوم ته چي لا یعني ویل کیږي او د هغه تعریف او وضاحت دادی ، ددې پر خلاف کوم کار چي ضروري وي او یو سړی د هغه پابندي کوي نو هغه شی داسي وي چي په هغه سره په دنیا کي د ژوند اړتیاوي او په آخرت کي سلامتیا او خلاصون اړوند وي د مثال په توګه د دنیا او ژوند په اړتیاوو کي خوراک دی چي لوږه دفع کوي ، دوهم اوبه دي چي تنده دفع کوي ، دریم جامه ده چي ستر پټوي ، څلورم ښځه ده چي عفت او پاک لمني قائموي، او همدارنګه هغه شیان چي د ژوند نوري اړتیاوي پوري کوي ، نه هغه شیان چي په هغو سره محض د نفس د لذت د حرص او هوس پوره کېدل او په دنیا کي د مینې تعلق وي او داسي کارونه او اقوال هم نه چي بې ګټي او بې فائدې وي، همدارنګه هغه شی چي په هغه سره د آخرت سلامتیا او خلاصون متعلق وي ، ایمان ، اسلام او احسان چي د هغو وضاحت د کتاب په پېل کي سوی دی ، خلاصه دا چي دغه شیان په دنیا او آخرت کي ضروري دي او پر هغو د انسان دیني او دنیوي ژوند دار او مدار دی او د الله تعالی د رضا سبب او ذریعه جوړیږي هغه خو لا یعني نه دي ، ددې څخه پرته نور ټول شیان لا یعني دي که څه هم د هغو تعلق د عمل سره وي یا د قول سره وي .

امام غزالي رحمة الله عليه ویلي دي: د لایعني (بې ګټو خبرو) آخري درجه داده چي ته داسي خبره د خپل ژبي څخه ونه باسې که هغه دي د خپلي ژبي څخه نه وایستل نو نه ګناه کار کیږې او د هغه په وجه به تا ته تاوان نه رسیدی، ددې مثال داسي دی د مثال په توګه ته د یو چا سره ناست یې اوس تا د هغوی په مخکي د خپل یو سفر احوال بیان کړل ، د هغه احوالو د بیان په دوران کي تا د هر هغه شي تفصیل بیان کړ کوم چي تا د خپل سفر په دوران کي لیدلي وه ، د مثال په توګه غر، دریاب او داسي نور، یا کومي پېښي او حادثات چي تا ته پېښ سوي وه د هغه په اړه دي وښودل ، بیا تا د ښه خوراکونو ، ښو جامو او نورو شیانو ذکر هم وکړ کوم چي تا ته تر لاسه سوي وه یا تا لیدلي وه ، څرګنده ده چي تا دغه ټول تفصیل بیان کړ او د کومو کارو چي تا ذکر وکړ هغه یقینا داسي شیان دي که تا هغه نه وای بیان کړي نو نه به ګناه کار کیدای او نه به تا ته تاوان رسیدلای ، حال دا چي د هغه اوږده تفصیل بیانولو په صورت کي ډېره ممکن ده چي پر یوه خبره باندي ستا ژبه ښوئیدلې وای او داسي خبره دي کړې وای چي په هغه سره ته ګناه سوی وای .

### په بې علمۍ سره خبره مه کوئ

﴿۴۶۲۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ تُوُفِّيَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ فَقَالَ رَجُلًا أَبْشِرْ بِالْجَنَّةِ

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَلَا تَدْرِي فَلَعَلَّهُ تَكَلَّمَ فِيمَا لَا يَعْنِيهِ أَوْ بَخِلَ بِمَا لَا يَنْقُصُهُ . رواه الترمذي.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي په صحابه کرامو کي یو کس وفات سو نو یو سړي وویل تا ته دي د جنت زیری وي ، ددې په اوریدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل : ته دا خبره کوې کیدای سي د حقیقت څخه ته خبر نه یې ممکن ده چي ده په بې ګټې کارونو کي په خبرو وخت ضائع کړی وي او په داسي شی کي یې بخل کړی وي چي په هغه کي دده کمي نه راځي . ترمذي .

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۴۸۳، رقم: ۲۳۱۶.

**تشریح**: په یو داسي معامله کي د خپلي ژبي څخه الفاظ ایستلي دي: مطلب دادی چي هغه په بې ګټو خبرو کي خپل وخت ضائع کړی وي او په داسي کارو کي د خپلي ژبي څخه الفاظ ایستلي وي چي د هغه لپاره د یو ډول تاوان رسولو سبب وي .

په یو داسي شي کي بخل کړی وي: مطلب دادی چي هغه په یو داسي ورکولو کي د بخل څخه کار اخیستی وي چي د ورکولو سربېره نه کمېدی لکه د علم، د زکوة مال چي د علم په ویشلو سره او د زکوة د مال په اداء کولو سره هیڅ کمي نه کیږي بلکه په هغه کي زیاتوب کیږي.

د رسول الله ﷺ د ارشاد خلاصه دا وه چي تا د هغه سړي جنت د تللو په اړه داسي یقین ولي کړی دی حال دا چي تا ته د هغه د ژوند د ټولو ظاهري او باطني اړخونو خبر نسته بېله شکه ددغه سړي ظاهري ژوند ډېر پاک وو او هغه ته د صحابیت سعادت هم تر لاسه دی مګر کیدای سي چي هغه د خپل ژبي څخه یو داسي خبره ایستلي وي یا بخل یې کړی وي او د هغه په نیوکه کي په اخته کېدو سره د جنت څخه منع سوی وي .

## د ژبي فتنه

﴿۴۶۳۰﴾: وَعَنْ سُفْيَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الثَّقَفِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا أَخْوَفُ مَا تَخَافُ عَلَيَّ فَأَخَذَ بِلِسَانِ نَفْسِهِ ثُمَّ قَالَ هٰذَا. رواه الترمذي وصححه.

د حضرت سفیان بن عبدالله ثقفي رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما وویل: اې د الله رسوله ! کوم شیان چي ته زما لپاره بیرونکي ګڼې په هغو کي زیات بیرونکی څه شی دئ ؟ د دې په اوریدو سره رسول الله ﷺ خپله ژبه مبارکه ونیول او وه یې فرمایل دا . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۲۴، رقم: ۲۴۱۰.

## درواغ ویل د ملائکو لیري کېدو سبب دی

﴿۴۶۳۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَذَبَ الْعَبْدُ تَبَاعَدَ عَنْهُ الْمَلَكُ مِيلًا مِنْ نَتْنِ مَا جَاءَ بِهِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چي بنده دروغ وایي نو (ساتونکي) ملائکي د دروغو د بوی په وجه تر یو میل پوري لیري تښتي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۳۰۴، رقم: ۱۹۷۲.

## تر ټولو لوی خیانت

﴿۴۶۳۲﴾: وَعَنْ سُفْيَانَ بْنِ أَسِيدٍ الْحَضْرَمِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ كَبُرَتْ خِيَانَةً أَنْ تُحَدِّثَ أَخَاكَ حَدِيثًا هُوَ لَكَ بِهِ مُصَدِّقٌ وَأَنْتَ لَهُ بِهِ كَاذِبٌ . رواه ابوداؤد.

د حضرت سفیان بن اسید حضرمي رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوریدل چي تر ټولو لوی خیانت دادئ چي ته خپل مسلمان ورور ته یوه خبره وکړې او هغه خبره رښتیا او صحیح وګڼي او په حقیقت کي تا هغه ته دروٰاغ ویلي وي . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود: ۵\ ۲۵۳، رقم: ۴۹۷۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي په هر حالت او هر وخت کي دروغ ویل بد دي مګر په هغه صورت کي ډېر زیات بد دي چي ته د خپل مسلمان ورور اعتماد ته تکلیف ورسوې په دې توګه چي هغه تا رینښتونی وګڼي مګر ته هغه ته دروغ ووایې .

## دوه ژبی

﴿۴۶۳۳﴾: وَعَنْ عَمَّارٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ ذَا وَجْهَيْنِ فِي الدُّنْيَا كَانَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِسَانَانِ مِنْ نَارٍ . رواه الدارمي.

د حضرت عمار ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په دنیا کي چي څوک دوه مخی وي (یعني یو چا ته یو څه وایي او بل چا ته بل څه وایي) نود قیامت په ورځ به د هغه په خوله کي د اور دوې ژبي وي . دارمي.

**تخریج**: سنن الدارمي ۲\۴۰۵، رقم: ۲۷۶۴.

**تشریح**: دوه مخي په اصل کي د منافق صفت دی یعني هغه سړی چي د چا په اړه مخلص نه وي په ژبه سره یو څه وایي او په زړه کي یې بل څه وي، کله چي د یو چا په مخکي خبره کوي نو داسي یې کوي چي مخاطب دا وګڼي چي دا زما دوست دی مګر د هغه تر شا چي کومه خبره کوي نو د ژبي څخه داسي الفاظ راباسي چي د هغه لپاره د تکلیف سبب وي .

ځیني حضرات وایي چي دوه مخی هغه سړي ته وایي چي په خپلو کي د ښمني لرونکو دوو کسانو کي هر یوه ته د هغه خبر ورکوي ، یوه ته ورسي نو د هغه د خوښۍ خبري ورته کوي او هغه دا وګڼي چي دا زما دوست دی همدارنګه دوهم ته ورسي نو هغه ته د هغه د خوښۍ خبري کوي او هغه دا ګڼي چي دا زما دوست دی ، خلاصه دا چي په دواړو کي هر یوه ته د خپل مینې اظهار کوي او د دوهم بدي ورته وایي همدارنګه دواړه د هغه په اړه د غلط فهمۍ ښکار سي او هر یو دا ګڼي چي دی زما دوست او ملګری دی او زما د مخالف دښمن بدخواه دی .

## کامل مؤمن نه دی

﴿۴۶۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالطَّعَّانِ وَلَا اللَّعَّانِ وَلَا الْفَاحِشِ وَلَا الْبَذِيْءِ . رواه الترمذي والبيهقي و في اخرى له ولا الفاحش البذي وقال الترمذي هذا حديث غريب

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مؤمن نه خو طعن ویونکی وي او نه لعنت ویونکی وي نه فحش ویونکی وي او نه بې حیا (اوږد ژبی) وي . ترمذي، بیهقي ، د بیهقي په یوه روایت کي د ولا الفاحش البذي (پوچ ګویه ، بې حیا) الفاظ دي . ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ .

**تخریج**: سنن الترمذي: ۴\۳۰۸، رقم: ۱۹۷۷، والبیهقي في شعب الایمان ۴\۲۹۳، رقم: ۵۱۵۰،

﴿۴۶۳۵﴾: وَعَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَكُونُ الْمُؤْمِنُ لَعَّانًا، وفي رواية لَا يَنْبَغِي لِلْمُؤْمِنِ أَنْ يَكُونَ لَعَّانًا. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: (پوره) مؤمن زیات لعنت ویونکی نه وي، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي مؤمن ته لعنت ویل مناسب نه دي. ترمذي،

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۰۸، رقم: ۱۹۷۷.

## ښېرا مه کوئ

﴿۴۶۳۶﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلَاعَنُوا بِلَعْنَةِ اللّٰهِ وَلَا بِغَضَبِ اللّٰهِ وَلَا بِجَهَنَّمَ وفي رواية وَلَا بِالنَّارِ. روه الترمذي وابوداؤد.

د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په خپل منځ کي داسي خبري مه کوئ چي پر تا دي د الله لعنت وي، او مه د غضب الهي د نازلیدو ښېرا کوئ او مه د دوږخ د داخلیدو ښېرا کوئ، په یوه روایت کي دي او نه په اور سره. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۱۱، رقم: ۴۹۰۶، والترمذي ۴\۳۰۸، رقم: ۱۹۷۶.

**تشريح**: مطلب دا دی چي په هيڅ صورت کي بايد يو مسلمان د بل مسلمان لپاره ښېرا ونه کړي مګر د الله تعالی د لعنت او نورو شيانو ښېرا کول خرابه او د ګناه خبره ده، يو چا ته بايد داسي ښېرا ونه کړل سي چي پر تا دي د الله تعالی لعنت وښي يا پر تا دي د خدای جل جلاله غضب وسي، يا خدای جل جلاله دي وکړي چي ته دوږخ ته ولاړ سې او داسي نور.

## د لعنت راګرځيدل

﴿۴۶۳۷﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ابودرداء رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي

إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا لَعَنَ شَيْئًا صَعِدَتِ اللَّعْنَةُ إِلَى السَّمَاءِ فَتُغْلَقُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ

هر كله يو بنده پر يو شي لعنت وايي نو هغه لعنت آسمان ته خيژي او د آسمان دروازې پر هغه

دُونَهَا ثُمَّ تَهْبِطُ إِلَى الْأَرْضِ فَتُغْلَقُ أَبْوَابُهَا دُونَهَا ثُمَّ تَأْخُذُ يَمِينًا وَشِمَالًا فَإِذَا

لعنت بندي سي بيا هغه لعنت مځكي ته راكښته سي او د مځكي دروازې هم پر دغه لعنت بندي سي بيا هغه راسته او چپه لوري ته ګرځي او ددې خوا څخه هم

لَمْ تَجِدْ مَسَاغًا رَجَعَتْ إِلَى الَّذِي لُعِنَ فَإِنْ كَانَ لِذَلِكَ أَهْلًا وَإِلَّا رَجَعَتْ إِلَى قَائِلِهَا. رواه ابو داؤد.

لار پيدا نه كړي آخر د هغه سړي يا شي په لور وګرځي چي پر هغه لعنت سوى دئ كه هغه د لعنت وړ وي نو پر هغه ودريږي او كه هغه د لعنت وړ نه وي نو پر لعنت ويونكي بيرته راسي. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۱۰، رقم: ۴۹۰۵.

**تشريح**: ددغه حديث په ذريعه د لعنت حقيقت بيان سوى دى چي خلك يې ډير معمولي ګڼي او پر چا باندي لعنت كوي او په پاى كي خپله د هغه لعنت ښكار سي، كله چي يو څوك پر يو چا باندي لعنت كوي نو هغه لعنت په پيل كي هغه ته نه متوجه كيږي او دا غواړي چي آخوا دېخوا وګرځي مګر كله چي يوې خوا ته لار پيدا نه كړي نو په پاى كي هغه متوجه كيږي، په شرط ددې چي د هغه لعنت وړ وي او د حقيقت په اعتبار كه چيري د هغه لعنت وړ نه وي نو بيا انجام دا وي چي هغه لعنت په بېرته راتلو سره پر هغه سړي واقع كيږي چا چي لعنت كړى وي، نو څرګنده سوه چي تر څو پوري په يقيني توګه دا معلومه نسي چي فلانى سړى په حقيقت كي د لعنت مستحق دى نو پر هغه دي لعنت نه ويل كيږي، څرګنده ده چي د يو سړي د لعنت وړ كېدل د شارع له خوا د ښوونې څخه پرته متعين كيداى نسي.

﴿۴۶۳۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَجُلًا نَازَعَتْهُ الرِّيحُ رِدَاءَهُ فَلَعَنَهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلْعَنْهَا فَإِنَّهَا مَأْمُورَةٌ وَإِنَّهُ مَنْ لَعَنَ شَيْئًا لَيْسَ لَهُ بِأَهْلٍ رَجَعَتِ اللَّعْنَةُ عَلَيْهِ. رواه الترمذي وابو داود.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي باد د يو سړي څادر په هوا كړ، هغه سړي پر هوا

لعنت ووايه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل پر هوا لعنت مه وايه ځکه چي هغه ماموره ده (يعني د الله ﷻ په حکم سره چليږي) او واقعه داده چي څوک پر يو شي لعنت ووايي که هغه شی د لعنت وړ نه وي نو هغه پر لعنت ويونکي بيرته راځي، ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابئ داود ۵\۲۱۲، رقم: ۴۹۰۸، والترمذي ۴\۳۰۹، رقم: ۱۹۷۸.

**تشريح**: هغه خو د حکم تابع دی: مطلب دا چي هواء د الله تعالی له خوا پر تلو ماموره سوې ده او الله تعالی د خپل حکمت سره سم هغه پيدا کړې ده او چلوي يې، په دغه صورت کي که د هغه په وجه چا ته تکليف ورسيږي نو هواء ته بد او رد ويل نه يوازي دا چي ډېره بده خبره ده بلکه د عبوديت او استقامت د تقاضا خلاف هم ده، د زمانې په پېښو، تغيراتو، ارادو او افعالو کي هم دغه حکم دی چي د غم او تکليف په وخت کي خپل ظاهر او باطن دواړه راضي او ساکت وساتي او که د تکليف يا پيښي په وخت کي د بشريت د تقاضا سره سم په ځان کي يو تغير ووينې نو لازم ده چي خپل ژبه په واک کي کړي چي د هغه څخه شکايت او د غم اظهار ونه سي چي د عبوديت د مرتبې او اسلامي تعليمات خلاف کار دی.

## د چا په اړه بد مه واياست

﴿۴۶۳۹﴾: وَعَنِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُبَلِّغُنِي أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِي عَنْ أَحَدٍ شَيْئًا فَإِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَخْرُجَ إِلَيْكُمْ وَأَنَا سَلِيمُ الصَّدْرِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما په صحابه کرامو کي دي هيڅوک ما ته د يو سړي په اړه بده خبري نه اوروي، ځکه چي زه دا خبره بښيم چي زه تاسو ته راځم نو زما سينه دي صافه وي (يعني د چا په اړه د بدي خبري اوريدو په وجه دي زما په زړه کي کينه نه وي) او نه زه د چا څخه ناراضه يم. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۸۳، رقم: ۴۸۶۰.

**تشريح**: په دغه ارشاد کي د امت لپاره دا تعليم دی چي هيڅوک دي د خپل يو مشر، بزرگ او شيخ په مخکي د يو چا بدي نه بيانوي چي د بغض، عداوت، ناراضګی او خفګان صورت پيدا نسي، د حديث د آخري برخي مطلب علماوو دا ليکلی دی چي د دغه ارشاد په ذريعه رسول الله

ﷺ د خپل هغه خواهش او غوښتني اظهار وفرمايه چي رسول الله ﷺ د خپل صحابه کرامو څخه خوشحاله او راضي له دنيا څخه رخصت سي.

﴿۴۶۴۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَسْبُكَ مِنْ صَفِيَّةَ كَذَا وَكَذَا تَعْنِي قَصِيرَةً فَقَالَ لَقَدْ قُلْتِ كَلِمَةً لَوْ مُزِجَ بِهَا الْبَحْرِ لَمَزَجَتْهُ. رواه احمد والترمذي وابوداؤد.

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي ما د بي بي صفيې (رض) په اړه رسول الله ﷺ ته وويل: (يعني د هغې د يو عيب په اړه) چي ستاسو لپاره دا کافي ده، چي هغه داسي او داسي ده، مطلب يې دا وو چي کوتاه قامت يې دی، رسول الله ﷺ ددې په جواب کي وفرمايل: تا يوه داسي کلمه ويلې ده که په درياب کي واچول سي نو پر درياب به هم غالبه سي. احمد، ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ٦\١٨٩، وابوداود ٥\١٩٢، رقم: ۴۸۷۵، والترمذي ۴\٥٧٠، رقم: ۲٥٠۲.

**تشريح**: بي بي صفيه بنت حيي هم د رسول الله ﷺ يوه بي بي مبارکه وه، د هغې قد کوچنی وو، يوه ورځ بي بي عائشې ﷺ وغوښتل چي د رسول الله ﷺ په مخکي د بي بي صفيې ﷺ هغه عيب ذکر کړي او همدارنګه هغې ذکر سوي الفاظ په خپله ژبه سره ادا کړل، څرګنده ده چي دا غيبت وو چي په هغه کي بي بي عائشه ﷺ اخته سوه ځکه رسول الله ﷺ د هغې پر دغه خبره د ناخوښۍ اظهار وکړ او د ذکر سوي ارشاد په ذريعه يې هغې ته څرګنده کړه چي تا کومه خبره کړې ده هغه يو معمولي خبره نه ده بلکه د نيتجې په اعتبار دومره هيبتناکه ده که چيري يو درياب ته واچول سي نو درياب به هم د هغه په وړاندي معمولي سي، او دغه يو څو الفاظ به د هغه درياب د وسعت او عظمت سربېره پر هغه غالب سي او هغه به متغير کړي، او کله چي ددغه الفاظو په مقابله کي د درياب دا حال دی نو فکر وکړئ چي ستاسو د اعمالو به څه حشر وي، ددې څخه معلومه سوه چي د يو چا دومره عيب هم په قصد بيانول چي فلانی سړی لنډی دی يا فلانۍ ښځه لنډۍ ده نو دا هم غيبت دی.

لکه څرنګه چي په ژباړه کي څرګند سول چي د کذا کذا لفظ په ذريعه د بي بي صفيې ﷺ عيبونه يعني د هغه د قد لنډېدل کنايتا بيانول مقصد وو، حال دا چي يو شارح ويلي دي چي بي بي عائشې ﷺ د خپل دغه الفاظو په ذريعه خپل بالنبت ته اشاره وکړه چي بي بي صفيه ﷺ ددغه بالنبت په اندازه ده، دا هم ويل کيدای سي چي د کذا لفظ تکراري کېدل دا څرګندوي چي

د بي بي عائشې رضي الله عنها مقصد د بي بي صفيې رضي الله عنها هغه عيب په ژبه او اشاره دواړو سره بيان كړي وي ، نو كيداى سي چي بي بي عائشې رضي الله عنها لومړى خو په خپله ژبه سره ويلي وي چي بي بي صفيه رضي الله عنها لنډۍ ده او بيا يې خپل بالښت ته په اشاره كولو سره دا خبره مؤكد كړې وي چي هغه ډېره لنډۍ ده ، ملا علي قاري رحمة الله عليه همدا رنګه خبره كړې ده .

## د بدويلو او حياء اثر

﴿۴۶۴۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا كَانَ الْفُحْشُ فِي شَيْءٍ إِلَّا شَانَهُ وَمَا كَانَ الْحَيَاءُ فِي شَيْءٍ إِلَّا زَانَهُ . رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : په كوم شي يا كار كي چي فحش يا سخته وينا وي هغه فحش هغه شی عيب داره كوي او په كوم شي يا كار كي چي حيا وي هغه حيا د هغه شي ښكلا جوړيږي ، ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۰۷، رقم: ۱۹۷۴.

**تشريح**: طيبي رحمة الله عليه وايي: په دغه ارشاد كي فحش يعني بد وينه او سخت كلامي او د هغه په مقابله كي د حياء يعني نرمۍ تاثير او شان د مبالغې په توګه بيان سوى دى ، كه چيري فحش يا حياء په يوه ډبره يا لرګي كي پيدا سي نو هغه عيب داره يا ښكلي جوړوي ، ددې څخه معلومه سوه چي بده وينا او سخت كلامي په شخصيت كي د نقص او تاوان پيدا كولو ذريعه ده حال دا چي نرمه وينا او خوش كلامي په شخصيت كي د وقار مظهر دى.

## مسلمان ته پيغور مه وركوئ

﴿۴۶۴۲﴾: وَعَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ

حضرت خالد بن معدان رضي الله عنه د معاذ رضي الله عنه څخه روايت كوي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ عَيَّرَ أَخَاهُ بِذَنْبٍ لَمْ يَمُتْ حَتَّى يَعْمَلَهُ يَعْنِي مِنْ

څوک چي يو مسلمان ورور ته شرم اړوي (يعني په هغه ګناه كي چي مخكي يې كړې وي ) يا هغه ملامتوي نو هغه كس به د مرګ څخه مخكي په هغه ګناه كي اخته سي ، د راوي بيان دئ چي

ذَنْبٍ قَدْ تَابَ مِنْهُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب وليس اسناده

بمتصل لان خالدا لم يدرك معاذبن جبل .

د هغه ګناه چي چا ته عار (پيغور) پر ورکول سي هغه ګناه مراد ده چي د هغه ځخه يې توبه کړې وي، ترمذي او ويلي يې دي چي دا حديث غريب دئ او ددې سند متصل نه دئ ځکه چې ددې راوې خالد حضرت معاذ بن جبل نه دی ليدلی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۷۱، رقم: ۲۵۰۶.

**تشريح**: د يو مسلمان د بشريت د غوښتني سره سم په يوه ګناه كي اخته کېدل او بيا پر هغه پښيمانه کېدل د هغه ګناه ځخه د توبې کولو او د هغه د طبيعت د سلامتی علامه ده ، په دغه صورت كي يو چا ته دا حق نه تر لاسه كيږي چي هغه مسلمان ته د هغه ګناه پېغور ورکړي او هغه ملامت کړي ، مګر كه چيږي هغه د ګناه ځخه توبه ونه کړي او په هغه ګناه كي اخته وي نو بيا هغه ته پېغور ورکول كيداى سي او ملامتيا هم ورباندي كيداى سي په شرط ددې چي هغه ته د شرم او غيرت ورکول د تكبر او سپكاوي په توګه نه وي بلكه د خبرداري او د نصيحت په توګه وي او د هغه ځخه د هغه د منع كولو قصد وي .

د رسول الله ﷺ د ذكر سوي ارشاد دغه وضاحت د امام احمد بن حنبل رحمه الله ځخه نقل سوی دی او دغه الفاظ د هغه روايت په پای كي نقل كيږي . امام ترمذي رحمه الله دغه روايت ته غريب ويلي دي او په دې كي يې كلام کړی دی مګر عراقي رحمه الله وايي چي دغه روايت احمد او طبراني په صحيح سند سره نقل کړی دی .

## د چا پر ستونزه مه خوشحاله كيږئ

﴿۴۶۴۳﴾: وَعَنْ وَاثِلَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُظْهِرُ الشَّمَاتَةَ لِأَخِيكَ فَيَرْحَمُهُ اللَّهُ وَيَبْتَلِيكَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب.

د حضرت واثله رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : پر خپل هغه مسلمان ورور باندي چي په مصيبت كي اخته وي مه خوشحاله كيږئ الله تعالی به پر هغه رحم وکړي او ته به په هغه مصيبت كي اخته كړل سې . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۷۱، رقم: ۲۵۰۵.

## د يو چا پيښې کول حرام دي

﴿۴۶۴۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أُحِبُّ أَنِّي حَكَيْتُ أَحَدًا وَأَنَّ لِي كَذَا وَكَذَا . رواه الترمذي و صححه.

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زه د چا نقل کول نه خوښوم که څه هم چي دنياوي مال ماته هر څومره راکړل سي د يو چا نقل کول په غيبت کي شامل دي. نقل کول دې ته وايي چي د بل چا په رکم تګ وکړي يا اواز (يعني فلانی داسي ګوډ ګوډ ځي يا داسي خبري کوي). ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴\۵۷۰، رقم: ۲۵۰۳.

**تشريح**: د يو چا نقل کول که په قول سره وي او که په فعل سره وي حرام او په غيبت کي داخل دی.

## د خدای ﷻ رحمت محدود نه دی

﴿۴۶۴۵﴾: وَعَنْ جُنْدُبٍ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ أَنَاخَ رَاحِلَتَهُ ثُمَّ عَقَلَهَا ثُمَّ دَخَلَ

د حضرت جندب ﷺ څخه روايت دئ چي يو صحرائي سړی راغلی هغه خپل اوښ کښېنوئ د هغه پښه يې وتړل او په مسجد کي داخل سو ،

الْمَسْجِدَ فَصَلَّى خَلْفَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا سَلَّمَ أَتَى رَاحِلَتَهُ

بيا يې د نبي کريم ﷺ سره لمونځ وکړ او د سلام ګرځولو څخه وروسته ولاړ سو د خپل اوښ پښه

فَأَطْلَقَهَا ثُمَّ رَكِبَ ثُمَّ نَادَى اللّٰهُمَّ ارْحَمْنِي وَمُحَمَّدًا وَلَا تُشْرِكْ فِي رَحْمَتِنَا

يې خلاصه کړه او پر هغه سپور سو او د دې ويلو سره روان سو چي اې الله ! پر ما او محمد ﷺ باندي رحم وکړې او زموږ په رحمت کي زموږ سره بل څوک شريک مه کړې

أَحَدًا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَقُولُونَ هُوَ أَضَلُّ أَمْ بَعِيرُهُ أَلَمْ

،(ددې په اوريدو سره) رسول الله ﷺ وفرمايل : ستاسو په خيال کي دا صحرائي زيات ګمراه دئ که دده اوښ ،

تَسْمَعُوا إِلَى مَا قَالَ قَالُوا بَلَى. رواه ابوداؤد و ذكر حديث ابي هريرة كفى بالمرء

كذبا في باب الاعتصام في الفصل الاول.

تاسو نه واوريدل چي ده څه وويل ؟ صحابه كرامو وويل: اې دالله رسوله مونږ واوريدل ، ابوداؤد، په لومړي فصل كي د ابو هريره حديث په (باب الاعتصام) كي بيان سوى دئ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۹۷، رقم: ۴۸۸۵.

**تشريح**: هغه صحرائي په خپله دعاء كي د الله تعالى رحمت خاص او محدود كړی وو ځكه رسول الله ﷺ د خپل ذكر سوو الفاظو په ذريعه پر هغه د ناخوښۍ اظهار وفرمايه، نو معلومه سوه چي په دعاء كي بايد خپل مطلوب محدود او خاص نه كړل سي يعني داسي دعاء ونه غوښتل سي چي فلانۍ خبره زمونږ لپاره بس ده او د نورو لپاره دي نه وي، بلكه په هغه كي دي ټول مؤمنان نارينه او ښځينه داخل كړل سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د فاسق تعريف مه كوئ

﴿۴۶۴۶﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مُدِحَ الْفَاسِقُ غَضِبَ الرَّبُّ تَعَالٰى وَاهْتَزَّ لَهُ الْعَرْشُ. رواه البيهقي في شعب الإيمان

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي د فاسق تعريف كيږي نو الله تعالى د تعريف كونكي څخه ناراضه كيږي په غضب كيږي او د هغه د تعريف څخه عرش الهي لړزيږي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\۲۳۰، رقم: ۴۸۸۶.

**تشريح**: د عرش ريږدل يا خو پر خپل ظاهري مفهوم محمول دی چي كله د يو فاسق او فاجر تعريف كيږئ نو عرش الهي په حقيقت كي ريږيږي يا ددغه الفاظو په ذريعه دغه خبره د كنايې په توگه بيان سوې ده چي د فاسق تعريف او صفت كول يوه ډېره هيبتناكه خبره ده او ددغه هيبتناكۍ وجه څرگنده ده ځكه چي كله يو سړی د يو فاسق تعريف كوي نو د هغه مطلب دا وي چي تعريف كونكی د هغه د كارو څخه راضي او خوشحاله دی كوم چي د هغه فاسق په ژوند كي وي بلكه عجيبه نه ده چي تعريف كونكی د كفر په حد كي داخل سي ځكه چي د فاسق تعريف هغه تر دې حده بېولای سي چي هغه حرام حلال گڼي ، ددې څخه معلومه سوه چي د بې عمله او

شتمنو عالمانو، ګمراهانو شاعرانو او رياكارو قاريانو مدح او تعريف كولو هم دغه حال دى نو د ظالم او كافر په تعريف كي خپله ژبه چلول به څومره بد وي نو په دې اړه احتياط لازم دى او د دغه لويو بلاوو څخه ځان ساتل ډېر ضروري دي او ددې څخه ځان ساتنه په هغه صورت كي ممكن ده كله چي د دغه خلكو د صحبت او ملګرتيا څخه ځان وساتل سي .

## د مؤمن زيږېدنه

﴿۴۶۴۷﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطْبَعُ الْمُؤْمِنُ عَلَى الْخِلَالِ كُلِّهَا إِلَّا الْخِيَانَةَ وَالْكَذِبَ. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان عن سعد بن ابي وقاص .

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مؤمن د دروا‌غو او خيانت څخه پرته پر ټولو خصلتونو پيدا سوى دئ . احمد او بيهقي په شعب الايمان كي سعد بن ابي وقاص څخه روايت كړى دئ .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۲۵۲.

**د لغاتو حل**: الخلال: اى الخصال (خويونه)

**تشريح**: د دغه ارشاد مقصد دا څرګندول دي چي په كامل مؤمن كي دغه دوه عادتونه نسي يو ځاى كيدلاى بلكه د هغه په اجزاء تركيبي كي د صدق او امانت اوصاف وي چي د تصديق او ايمان تقاضا ده، يا د دغه ارشاد مراد د مؤمن په ذات كي د دغه دوو عادتو نفي كول دي يعني دا بيانول مقصد دى چي مؤمن د امانت حامل دى ، هغه په دوو عادتو كي نسي اخته كيداى او صحيح خبره داده چي رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذريعه د دوو عادتو اختيارولو څخه منع وفرمايل چي هيڅ مسلمان بايد دغه دوو عادتو ته ځاى ور نه كړي يعني خيانت او درواغ، ځكه چي دغه دوه عادتونه په حقيقت كي د ايمان او اسلام ضد دي .

﴿۴۶۴۸﴾: وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ أَنَّهُ قَالَ قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت صفوان بن سليم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي ايا

وَسَلَّمَ أَيَكُونُ الْمُؤْمِنُ جَبَانًا قَالَ نَعَمْ فَقِيلَ له أَيَكُونُ الْمُؤْمِنُ بَخِيلًا قَالَ

مؤمن بزدل کيدلای سي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هو ، بيا پوښتنه وسول ايا مؤمن بخيل کيدلای سي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

**نَعَمْ فَقِيلَ لَهُ أَيَكُونُ الْمُؤْمِنُ كَذَّابًا قَالَ لَا. رواه مالك والبيهقي في شعب الايمان مرسلا.**

هو ، بيا پوښتنه وسول ايا مؤمن درواغجن کيدلای سي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل يا . مالک او بيهقي په شعب الايمان کي مرسلا روايت کړی دئ .

**تخريج**: مو طا الامام مالک ۲\ ۹۹۰، رقم: ۱۹، والبيهقي في شعب الايمان ۴\ ۲۰۷، رقم: ۴۸۱۲.

**تشريح**: مطلب دادی چي يو مؤمن په يو وخت کي بې زړه کېدای هم سي او په يوه صورت کي بخيل کيدای هم سي مګر هغه درواغجن کيدای نسي ځکه چي د ايمان ، صداقت او حقانيت د کذب خلاف دی چي د خپل اصل او نفس الامر په اعتبار ناحق او باطل دی ، علماؤ ليکلي دي چي دغه حديث هم د ذکر سوي حديث په تشريح کي پر ذکر سوي تاويل باندي محمول دی.

په حديث کي د کذاب لفظ د مبالغې په صيغه سره ذکر کول دې ته اشاره ده چي د بشريت د غوښتني سره سم که چيري يو وخت د مؤمن څخه درواغ وويل سي لکه څرنګه چي په ځينو صورتو کي د دنيا د يو ناجائز مقصد لپاره بلکه د مصالح او حکمت عملي سره سم درواغ ويل هم ضروري کيږئ نو داسي صورت مستثنی دی دې ته د ايمان خلاف نسي ويل کېدای .

## د حضرت صفوان رحمة الله عليه يادونه

دلته د دغه حديث د راوي حضرت صفوان رحمة الله عليه لنډه يادونه مناسب ده، د نوموړي نوم صفوان ابن سليم زهري دی او د حضرت حميد ابن عبدالرحمن ابن عوف رضي الله عنه ازاد سوی غلام دی، د نوموړي شمېر د مدينې منورې د مشهورو او جليل القدر تابعينو څخه دی ، د حضرت انس رضي الله عنه او نورو څخه حديثونه روايت کوي، د الله جل جلاله صالح او بزرګ بنده وو ، ويل کيږي چي هغه تر څلوېښتو (۴۰) کالو پوري خپل اړخ پر مځکه نه وو لګولی تر دې چي د مرګ په وخت کي هم ناست وو ، او په همدغه حالت کي په حق ورسيدی ، خلکو وويل چي د عبادت او زياتو سجدو په وجه د هغه په مخ کي سُوری (غار) سوی وو ، د قناعت يې دا حال وو چي د احتياجي سره يې د پاچاهانو تحفې نه قبلولې ، د نوموړي فضائل او مناقب ډېر زيات دی . په ۱۳۲ هجري کال کي وفات سوی دی .

## د شيطان فتنه

﴿۴۶۴۹﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ إِنَّ الشَّيْطَانَ لِيَتَمَثَّلُ فِي صُورَةِ الرَّجُلِ

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روايت دئ چي شيطان د يو سړي شكل غوره كړي يو قوم ته

فَيَأْتِي الْقَوْمَ فَيُحَدِّثُهُمْ بِالْحَدِيثِ مِنَ الْكَذِبِ فَيَتَفَرَّقُونَ فَيَقُولُ الرَّجُلُ

راسي او د دروا غو خبري ورته كوي بيا دا قوم خپور سي او په دوی كي يو سړی دا وايي ما د يو

مِنْهُمْ سَمِعْتُ رَجُلًا أَعْرِفُ وَجْهَهُ وَلَا أَدْرِي مَا اسْمُهُ يُحَدِّثُ. رواه مسلم.

سړي څخه چي زه د هغه صورت پيژنم نوم يې نه پيژنم دا خبره اوريدلې ده . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۱\۱۲، في المقدمة.

**تشريح**: د خبر څخه مراد يا خو د رسول الله ﷺ حديث دی يا مطلق يو درواغ خبر دی، د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه د قول مقصد دا خبرداری وركول دي چي د حديث د اوريدو په وخت كي پوره احتياط كول پكار دي چي كوم حديث اوريدل كيږي يا نقل كيږي ايا هغه صحيح دی كه يا، همدارنگه كه يوه خبره د يو چا څخه واوري نو تر هغه وخته پوري دي د نورو په وړاندي نه وايي تر څو چي دا تحقيق ونه كړي چي د هغه خبري بيانونكی د باور وړ او ريښتونی دی كه يا، او دا چي هغه خبره د حقيقت مطابق ده كه يا ، ذكر سوی روايت كه څه هم مرفوعا يعني د رسول الله ﷺ د ارشاد په توگه نقل سوی نه دی بلكه موقوف دی يعني حضرت ابن مسعود رضی الله عنه داسي هيڅ خبره د رسول الله ﷺ څخه د اوريدو پرته نه سوای بيانولای ځكه دغه روايت د مرفوع حديث په حكم كي دی .

## د خراب ملگري څخه ليري سه

﴿۴۶۵۰﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حَطَّانَ قَالَ أَتَيْتُ أَبَا ذَرٍ فَوَجَدْتُهُ فِي الْمَسْجِدِ

د حضرت عمران بن حطان رضی الله عنه څخه روايت دئ چي زه ابوذر رضی الله عنه ته ورغلم هغه په مسجد كي

مُحْتَبِيًا بِكِسَاءٍ أَسْوَدَ وَحْدَهُ فَقُلْتُ يَا أَبَا ذَرٍ مَاهٰذِهِ الْوَحْدَةُ فَقَالَ سَمِعْتُ

تور څادر اغوستی يوازي ناست وو ، ما ورته وويل: اې ابوذر! دا يوازيوالی څنگه ؟ ابوذر رضی الله عنه

رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَلْوَحْدَةُ خَيْرٌ مِّنْ جَلِيْسِ السَّوْءِ

وویل : ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي یوازیوالی د خراب ملګري څخه غوره دئ او

وَالْجَلِيْسُ الصَّالِحُ خَيْرٌ مِّنَ الْوَحْدَةِ وَإِمْلاَءُ الْخَيْرِ خَيْرٌ مِّنَ السُّكُوْتِ وَالسُّكُوْتُ خَيْرٌ مِّنْ إِمْلاَءِ الشَّرِّ. رواه البيهقي.

نیک ملګری د یوازیوالی څخه غوره دئ او د نیکی ښودل تر پټمي خولې غوره دئ او پټه خوله تر خراب تعلیم غوره ده. بیهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۴\۲۵۶، رقم: ۴۹۹۲.

**تشريح**: د حضرت ابوذر رضي الله عنه مطلب دا وو چي دا وخت هغه خاص ملګری دلته موجود نه دی چي د هغوی د نیکیو، سلامتیا او پاکی طلبګار کېدل پکار دي او پر هغوی زما باور کیدای سي ځکه نو ما دا غوره وګڼل چي دلته پټه خوله او یوازي کښېنم، مګر کله چي داسي خلک موجود وي نو د هغوی سره کښېنم.

## پټه خوله ښه عبادت

﴿۴۶۵۱﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَقَامُ الرَّجُلِ بِالصَّمْتِ أَفْضَلُ مِنْ عِبَادَةِ سِتِّيْنَ سَنَةً. رواه البيهقي.

د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د سړو پټه خوله اوسیدل د شپېتو کالو عبادت څخه غوره دي. بیهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۱۴\۲۴۵، رقم: ۴۹۵۳.

**تشريح**: لفظ د مقام د میم په زور سره او د میم په پېښ سره هم منقول دی مطلب دادی چي د سړي د خرابو خبرو څخه پټه خوله اختیارول او پر هغه سکوت باندي په همېشتوب سره عمل کول د هغه سړي د شپېتو کلو د عبادت څخه هم غوره او افضل دی کوم چي په ډېرو خبرو او د ژبي په بې احتیاطی کي اخته وي، او د هغه عبادت د استقامت دین د روح څخه خالي وي، طیبي رحمة الله عليه د مقام معنی د الله تعالی په نزد د هغه د مرتبې لیکلې ده او د افضل کېدو دلیل یې دا بیان کړی دی چي په عباداتو کي ډېر آفات هم پېښېږي او کوم څوک چي پټه خوله اوسېږي نو هغه ددغه آفاتو څخه خوندي او سلامت وي، لکه چي فرمایل سوي دي: من کان صمت نجا، یعني کوم څوک چي پټه خوله سي نو هغه خلاصون تر لاسه کړ.

شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه د دغه حديث په تشريح کي ليکلي دي چي د پټه خوله کېدو په وجه چي کومه درجه تر لاسه کيږي نو کله هغه د الله تعالى په نزد د شپېتو کالو د عبادت څخه غوره ګرځول کيږي ځکه چي هغه پټه خوله کېدل چي د هغه په دوران کي د الله تعالى ذات او صفات د هغه د قدرتونو او کائناتو په اړه د هغه په حکمت او کارسازۍ کي فکر کوي يا په ذکر خفي کي ښخته وي او روح او باطن ته د الله تعالى د ذات او صفاتو د نور څخه د رڼا تر لاسه کېدو موقع تر لاسه سي نو دغه فکر او استغراق که څه هم د يوه ګړي په اندازه وي مګر د اندامو د هغه عبادت او طاعت څخه ډېر غوره او افضل دى کوم چي د ذهن او فکر د انتشار، او د زړه د حاضرېدو څخه پرته په عمل کي راسي که څه هم هغه عبادت او طاعت د کلونو په اندازه وي.

**د نبي ﷺ نصيحتونه حضرت ابوذر رضي الله عنه ته**

﴿۴۶۵۲﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم، ددې

الْحَدِيْثَ بِطُوْلِهِ إِلٰى أَنْ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَوْصِنِيْ قَالَ أُوْصِيْكَ بِتَقْوَى

وروسته ابوذر رضي الله عنه يو اوږد حديث بيان کړ چي (دلته ذکر نه دئ)، (بيا يې وويل) ما وويل: اې دالله رسوله! ما ته نصيحت وکړه، رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل زه درته د الله جل جلاله څخه د بيري

اللهِ فَإِنَّهُ أَزْيَنُ لِأَمْرِكَ كُلِّهِ قُلْتُ زِدْنِيْ قَالَ عَلَيْكَ بِتِلَاوَةِ الْقُرْآنِ وَذِكْرِ اللهِ

نصيحت کوم ځکه چي د الله تعالى څخه بيره به ستا په ټولو کارونو کي د ښکلا او سمون باعث وي، ما وويل: څه نور نصيحت راته وکړه! رسول الله ﷺ راته وفرمايل: د قرآن کريم تلاوت او

عَزَّ وَجَلَّ فَإِنَّهُ ذِكْرٌ لَّكَ فِي السَّمَاءِ وَنُوْرٌ لَّكَ فِي الْأَرْضِ قُلْتُ زِدْنِيْ قَالَ عَلَيْكَ

ذکر الهي پر ځان لازم کړه ځکه چي د الله جل جلاله ذکر په آسمان کي (د ملائکو په منځ کي) ستا د ذکر سبب دئ، او په مځکه کي د نور سبب ګرځي، ما وويل: څه نور نصحيت راته وکړه! رسول الله ﷺ راته وفرمايل:

بِطُوْلِ الصَّمْتِ فَإِنَّهُ مَطْرَدَةٌ لِلشَّيْطَانِ وَعَوْنٌ لَّكَ عَلٰى أَمْرِ دِيْنِكَ قُلْتُ زِدْنِيْ

پټه خوله او اوږده خاموشي اختيار کړه ځکه چي خاموشي شيطان تښتوي او په ديني کارونو

كي به ستا مرستياله وي، ما وويل: يو څه نور نصيحت راته وکړه، رسول الله ﷺ راته وفرمايل

قَالَ إِيَّاكَ وَالضِّحْكِ فَإِنَّهُ يُمِيتُ الْقَلْبَ وَيُذْهِبُ بِنُوْرِ الْوَجْهِ قُلْتُ زِدْنِيْ قَالَ

د زياتي خندا څخه ځان وساته ځکه چي زياته خندا زړه مړ کوي او د مخ تازګي ليري کوي، ما وويل: څه نور نصيحت راته وکړئ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل:

قُلِ الْحَقَّ وَإِنْ كَانَ مُرًّا قُلْتُ زِدْنِيْ قَالَ لَا تَخَفْ فِي اللهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ قُلْتُ زِدْنِيْ قَالَ لِيَحْجُزْكَ عَنِ النَّاسِ مَا تَعْلَمُ مِنْ نَّفْسِكَ. رواه البيهقي.

رښتيا خبره کوه که څه هم چي ترخه وي، ما وويل: څه نور نصيحت راته وکړئ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل: د ديني کارونو په ځرګندولو کي د چا د ملامتيا څخه مه بيريږه، ما وويل: څه نور نصيحت راته وکړه، رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي د يو چا د عيب لټولو خيال ستا په زړه کي پيدا سي نو د هغه د اظهار څخه دي دا خيال تا منع کړي چي په ما کي هم عيبونه سته. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۴\۲۴۲، رقم: ۴۹۴۲.

**تشريح**: هر هغه کار او نېکه خبره چي محض د الله تعالی د رضا او خوشحالی په نيت سره وسي په ذکر الله کي داخله ده، که چيري په دغه جمله (وعليک بتلاوة القرآن وذکر الله) کي د ذکر الله لفظ پر دغه معنی محمول کړل سي نو ويل کيږي چي د ذکر الله څخه مراد هغه خاص ذکر دی چي په هغه کي د کلمه توحيد يعني لااله الاالله ورد کيږي او په دې اړه په يوه حديث کي فرمايل سوي دي چي افضل الذکر لااله الاالله، يعني په ټولو ذکرو کي غوره او افضل ذکر د لااله الاالله دی، نو ويل کيږي چي ذکر سوې جمله د اسلوب بيان مظهر دی چي په هغه کي يوه خبره مخکي په عامه توګه ذکر کيږي او بيا يو داسي جزاء په خاصه توګه ذکر کيږي چي د ټولو اجزاوو څخه زياته شرف او فضيلت لري.

د ملامتيا کونکي د ملامتيا څخه مه بېرېږه: ددغه جملې په ذريعه دا تلقين ورکول کيږي چي د الله تعالی د دين د لوړتيا کومه فريضه چي پر تا عائد کيږي که د هغه په سرته رسولو کي د ټولي نړۍ څخه مخ اړول کيږي نو په هغه کي هيڅ بېره مه کوه او دا خبره ضروري وګڼه چي تا ته د دنيا د خلکو د بدۍ او تعريف څخه په بې پروا کېدو سره په هر حالت کي پر حق او صداقت باندي او د الله تعالی پر طاعت باندي ثابت قدم کېدل دي لکه څرنګه چي الله تعالی فرمايلي

دي: (و تبتل اليه تبتيلا) او د نړيوالو څخه په مخ ګرځولو سره يوازي د الله تعالى رضا او خوشحالي ته رجوع وکړه.

چي ته يې د خپل ځان په اړه پېژني: ددې مطلب دادی چي کله ته پوهيږې چي په تا کي يو عيب دی او ستا نفس په کومو خرابيو کي اخته دی نو بيا ستا لپاره دا مناسب نه ده چي ته د نورو عيبو ته فهم وکړې او د نورو پر خرابيو ګوته پورته کړې، د امر بالمعروف او نهي عن المنكر ذمه داری پوره کولو سره بېله شکه يو څوک د هغه پر خرابۍ ترټل کيدای سي او هغه ته د سيده لاري اختيارولو نصيحت کيدای سي بلکه پر تا دا ضروري هم ده که څوک په خرابۍ کي اخته ووينې نو د هغه خرابۍ څخه د ليري کولو هڅه کوه مګر محض عيب ويل او د سپکاوی په خيال سره د يو چا خرابۍ ته ګوته مه نيسه او د هغه غيبت مه کوه بلکه پر خپلو عيبونو باندي فهم کوه او خپل ځان تر ټولو ناقص او کم ګڼه، يو چا څومره ښه ويلي دي:

غافل اند اين خلق از خود بې خبر     لا جرم ګويند عيب يکديګر

ديلمي رحمة الله عليه د حضرت انس رضي الله عنه څخه دا قول نقل کړی دی: (طوبى لمن شغله عليه عن عيوب الناس)، يعني مبارکي دي وي هغه چا لره چي د هغه خپل عيب د خلکو د عيبو څخه منع کړي.

## پټه خوله او ښه اخلاق

﴿۴۶۵۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا أَبَاذَرٍ أَلاَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ابوذر رضي الله عنه ته وفرمايل: اې ابوذر! زه تا ته

أَدُلُّكَ عَلٰى خَصْلَتَيْنِ هُمَا أَخَفُّ عَلَى الظَّهْرِ وَأَثْقَلُ فِي الْمِيْزَانِ ؟ قَالَ قُلْتُ بَلٰى

داسي دوې خبري ونښيم چي ډيري اساني او لنډي دي مګر د اعمالو په ترازو کي ډيري درنې دي، ابوذر رضي الله عنه وويل: هو ضروري يې راوښيه، رسول الله ﷺ وفرمايل:

قَالَ طُوْلُ الصَّمْتِ وَحُسْنُ الْخُلْقِ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ مَا عَمِلَ الْخَلاَئِقُ بِمِثْلِهِمَا. رواه البيهقي.

(۱): اوږده خاموشي (۲): ښه اخلاق، په هغه ذات دي مي قسم وي چي د چا په واک کي زما ساه ده د مخلوق لپاره تر دغه دوو خصلتونو بل غوره کار نسته. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۴\۲۴۲، رقم: ۴۹۴۱.

**تشريح**: پته خوله او سپدل او ښه اخلاق اختيارول، دغه دواړه عادتونه په دې اعتبار ډېر اسانه دي چي په پته خوله او سپدو كي تكليف نه وي بلكه يو ډول راحت تر لاسه كيږي ځكه چي د ژبي په ښوررولو او الفاظو ته په ترتيب وركولو سره د جملو په ادا كولو كي د ظاهر او باطن تكليف وي، پر دې باندي ښه اخلاق هم قياس كيداى سي، چي نرمه وينا او ښه اخلاق كولو كي راحت او سكون وي پر خلاف د سختۍ او ترش تندي چي په هغه كي تكليف او مشقت وي.

## د ابوبكر صديق ﷺ توبه

﴿۴۶۵۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَبِيْ بَكْرٍ وَّهُوَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي ابوبكر رضي الله عنه پر خپل يو غلام لعنت ووايه، په دغه

يَلْعَنُ بَعْضَ رَقِيْقِهِ فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ فَقَالَ لَعَّانِيْنَ وَصِدِّيْقِيْنَ ؟ كَلَّا وَرَبِّ الْكَعْبَةِ

وخت كي رسول الله ﷺ تشريف راوړ حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته يې وكتل او وه يې فرمايل: تا لعنت ويونكي او صديقان چيري يو ځاى ليدلي دي (يعني تا داسي مسلمان ليدلى دئ چي ډير رښتيا ويونكى هم وي او لعنت ويونكى هم وي) د كعبې په پروردګار دي مي قسم وي

فَأَعْتَقَ أَبُوْ بَكْرٍ يَوْمَئِذٍ بَعْضَ رَقِيْقِهِ ثُمَّ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا أَعُوْدُ. روى البيهقي الأحاديث الخمسة في شعب الإيمان.

دا دواړي خبري نه سي يو ځاى كيدلاى، ددې په اوريدو سره په هم هغه ورځ حضرت ابوبكر رضي الله عنه خپل ځيني غلامان آزاد كړل او بيا دنبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو او وه يې ويل: اې دالله رسوله! بيا به هيڅكله داسي نه كوم. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\ ۲۹۴، رقم: ۵۱۵۴.

## ژبي ته سزا

﴿۴۶۵۵﴾: وَعَنْ اَسْلَمَ قَالَ اَنَّ عُمَرَ دَخَلَ يَوْمًا عَلَى أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ وَهُوَ يَجْبِذُ لِسَانَهُ فَقَالَ عُمَرُ مَهْ غَفَرَ اللهُ لَكَ فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ إِنَّ هٰذَا أَوْرَدَنِي الْمَوَارِدَ. رواه مالك.

د حضرت اسلم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يوه ورځ حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ته راغلی، حضرت ابوبكر رضي الله عنه خپله ژبه په ګوتو سره نيولې وه را ايستل يې، (يعني په ژبه يې د غضب څرګندونه كول) حضرت عمر رضي الله عنه ورته وويل صبر وكړه الله جل جلاله دي ستا مغفرت نصيب كړي (يعني داسي مه كوه) حضرت ابوكر رضي الله عنه ورته وويل دغه ژبي زه د هلاكت په ځايونو كي غورځولی يم. مالك.

**تخريج**: موطا الامام مالک: ۲\۹۸۸، رقم: ۱۲.

**د لغاتو حل**: يجبذ: اى يجذب.

## شپږ خبري د جنت ضمانت

﴿۴۶۵۶﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اضْمَنُوا

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: تاسو ضمانت راكړئ

لِي سِتًّا مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَضْمَنْ لَكُمُ الْجَنَّةَ اصْدُقُوا إِذَا حَدَّثْتُمْ وَأَوْفُوا إِذَا

ما ته د شپږو خبرو نو زه به ستاسو لپاره د جنت ضامن سم: (۱) چي خبري كوئ نو رېښتيا وايا ست (۲) چي وعده وكړئ

وَعَدْتُمْ وَأَدُّوا إِذَا أُؤْتُمِنْتُمْ وَاحْفَظُوا فُرُوجَكُمْ وَغُضُّوا أَبْصَارَكُمْ وَكُفُّوا أَيْدِيَكُمْ. رواه احمد والبيهقي.

نو پوره كوئ يې، (۳) كله چي امانت درسره كېښښودل سي نو ادا كوئ يې، (۴) د خپل شرمګاه ساتنه كوئ. (۵) خپل نظر كښته ساتئ (۶) خپل لاسونه په واک كي ساتئ (يعني پرچا ظلم مه كوئ). احمد او بيهقي

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۳۲۳، والبيهقي في الشعب: ۱۴\۳۲۰، رقم: ۵۲۵۶.

## د الله جل جلاله خوښ څوک دی؟

﴿۴۶۵۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ وَاَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ

د حضرت عبدالرحمان بن غنم او بي بي اسماء بنت يزيد (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خِيَارُ عِبَادِ اللّٰهِ الَّذِينَ إِذَا رُءُوا ذُكِرَ اللّٰهُ وَشِرَارُ عِبَادِ اللّٰهِ

ﷺ وفرمايل: د الله تعالى غوره بندګان هغه دي چي د هغوى په ليدو سره سړي ته الله ﷻ ور ياد سي او د الله تعالى بد ترين بندګان هغه دي

الْمَشَّاءُونَ بِالنَّمِيمَةِ الْمُفَرِّقُونَ بَيْنَ الْأَحِبَّةِ الْبَاغُونَ الْبُرَآءَ الْعَنَتَ. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

چي په خلکو کي چغلي کوي د ملګرو په منځ کي بيلوالى راولي او د پاکو خلکو څخه د فساد، ګناه، هلاکت او زنا اميد ساتي. احمد او بيهقي په شعب الايمان کي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲۲۷\۴، رقم: ۱۱۱۰۸.

**د لغاتو حل**: الباغون: الطالبون (غوښتونکي)

**تشريح**: په دغه حديث کي د غوره خلکو تعريف دا سوى دى چي د الله تعالى هغه نېک او صالح بندګان چي د الله تعالى سره د خپل تعلق او اختصاص په وجه پر داسي درجې باندي فائز کيږي چي د هغوى پر حال، عاداتو، سکناتو او حرکاتو باندي انوار ظاهريږي او دهغوى پر څونو د عبادت او اتباع دين هغه نښي څرګنديږي چي کله د هغوى په جمال نظر لويږي نو بې ساخته سړي ته خداى ﷻ ور په ياد سي او زړه آواز کوي چي دا هغه نيک بندګان دي چي د کامل عبوديت حامل او د کائنات انساني خلاصه او د انوار الهي مظهر دي.

ځينو حضراتو د الله ﷻ د يادېدو دا معنى بيان کړې ده چي د خداى ﷻ داسي نيک او صالح بندګان لېدل ګويا په ذکر الله کي بوخت کېدل دي لکه څرنګه چي علماؤ ليکلي دي چي د عالم مخته کتل عبادت او سعادت دى، او په دې کي هيڅ شک نسته چي ډېره ځله د يو صالح او شيخ کامل مخ ته په کتلو سره په باطن کي داسي نورانيت محسوس کيږي چي په هغه سره زړه ځلانده سي، دا خبره د حديث څخه هم ثابته ده، د حضرت علي ﷜ په اړه فرمايل سوي دي چي: (النظر على وجه علي عبادة) يعني د علي ﷜ مخ ته کتل عبادت دي او نقل سوي دي چي کله به حضرت علي ﷜ د کور څخه ووتى او د خلکو نظر به د هغه د مخ پر نور باندي ولويدى نو دغه الفاظ به د هغوى پر ژبه راتلل: لااله الا الله ما اشرف هذا الفتى، لااله الااله ما اكرم هذا الفتى، لااله الا الله ما اعلم هذا الفتى، لااله الا الله ما اشجع هذا الفتى، يعني د حضرت علي ﷜ لېدل به د کلمه توحيد د ورد سبب جوړيدى.

## غيبت کول روژه ماتوي

﴿۴۶۵۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَجُلَيْنِ صَلَّيَا صَلاَةَ الظُّهْرِ أَوِ الْعَصْرِ وَكَانَا

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي دوو روژه نیونکو د ماپښین یا مازدیگر لمونځ

صَائِمَيْنِ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلاَةَ قَالَ أَعِيدَا وَضُوْءَ كُمَا

وکړ ، کله چي رسول الله ﷺ لمونځ وکړ نو هغوی ته یې وفرمایل : ولاړ سئ دویم وار اودس

وَصَلاَتَكُمَا وَامْضِيَا فِيْ صَوْمِكُمَا وَاقْضِيَا يَوْمًا آخَرَ قَالاَ لِمَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ قَالَ

اِغْتَبْتُمْ فُلاَنًا. رواه البيهقي.

وکړئ او لمونځ وکړئ او خپله روژه پوره کړئ او په دویمه ورځ قضا روژه ونیسئ ، هغوی وویل: اې د الله رسوله ! ولې ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : تاسو د فلاني سړي غیبت وکړ . بیهقي.

**تخریج**: البيهقي في الشعب ۵\۳۰۳، رقم: ۶۷۲۹.

**تشریح**: د دغه حدیث څخه په ښکاره دا معلومیږي چي غیبت اودس او روژه ماتوي مگر علماؤ لیکلي دي چي دغه حدیث په اصل کي د غیبت د بدوالي د سختۍ او د غیبت کونکي په اړه د سخت خبرداري په توگه ارشاد فرمایل سوی دی، کنه په حقیقت کي په غیبت سره روژه او اودس نه ماتیږي مگر د غیبت په وجه د اودس او روژې کمال او ثواب خامخا ضائع کیږي مگر د حضرت سفیان ثوري رحمة الله علیه په نزد غیبت روژه فاسدوي ، په هر حال د حدیث څخه دا خبره څرگندیږي چي د غیبت بدوالي او خرابي ډېره زیاته ده بلکه علماؤ دا هم لیکلي دي که یو سړی ډېر زیات وخاندي یا یو ځوک ډیري پالتو خبري وکړي نو د هغه لپاره مستحب دي چي هغه دوهم وار اودس وکړي چي هغه ظلمت زائل سي کوم چي په ډېره خندا او پالتو خبرو سره د هغه پر باطن خپور سوی دی او روژه دار باید د غیبت څخه په پوره توگه پرهېز وکړي.

## غیبت تر زنا سخت دئ

﴿۴۶۵۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ وَّجَابِرٍ قَالاَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعید او جابر (رضي الله عنهما) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

اَلْغِيْبَةُ أَشَدُّ مِنَ الزِّنَا قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللهِ وَكَيْفَ الْغِيْبَةُ أَشَدُّ مِنَ الزِّنَا ؟ قَالَ

غیبت تر زنا بد تر دئ ، صحابه کرامو وویل: اې دالله رسوله غیبت تر زنا څنګه زیات خراب کیدلای سي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :

إِنَّ الرَّجُلَ لَيَزْنِيْ فيتوب فَيَتُوْبُ اللّٰهُ عَلَيْهِ ، وَفِيْ رِوَايَةٍ فَيَتُوْبُ فَيَغْفِرُ اللّٰهُ لَهُ

سړی چي زنا وکړي بیا توبه وکاږي الله تعالی د هغه توبه قبلوي ، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي بیا زنا کار توبه وباسي او الله تعالی هغه وبخښي

وَإِنَّ صَاحِبَ الْغَيْبَةِ لاَ يُغْفَرُ لَهُ حَتّٰى يَغْفِرَهَا لَهُ صَاحِبُهُ. وَفِيْ رِوَايَةِ أَنَسٍ قَالَ

مګر الله تعالی غیبت کونکی نه بخښي تر څو پوري چي هغه سړی یې معاف نه کړي د چا چي یې غیبت کړی وي ، او د انس رضي الله عنه په روایت کي دا الفاظ دي چي

صَاحِبُ الزِّنَا يَتُوْبُ وَصَاحِبُ الْغَيْبَةِ لَيْسَ لَهُ تَوْبَةٌ. روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في شعب الإيمان.

زناکاره توبه کاږي او د غیبت کونکی لپاره توبه نسته . بیهقي دا درې سره حدیثونه په شعب الایمان کي روایت کړي دي .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳۰۶\۵، رقم: ۶۷۴۱.

**تشريح**: او د غیبت کونکي لپاره توبه نسته : دغه جمله په دې اعتبار فرمایل سوې ده چي کوم څوک په زنا کي اخته کیږي نو د هغه پر زړه باندي د الله جل جلاله خوف خپرېږي او په دې تصور سره ربړېږي که چیري الله تعالی مؤاخذه وکړل نو د خلاصون لار به تر لاسه نه کړي ځکه هغه پر خپل دغه خراب کار باندي په شرمنده کېدو سره توبه کوي ، او غیبت که څه هم د الله تعالی په نزد د لوی ګناه شی دی مګر غیبت کونکی هغه یو معمولي شی ګڼي ځکه چي کله یوه خرابي عامه سي نو د هغه قباحت د زړه څخه وځي او خلک په هغه کي د اخته کېدو خرابي نه محسوس کوي ، یا دا خبره د امکان څخه لیري نسي کیدای چي غیبت کونکی د غیبت کول خراب کار ونه ګڼي بلکه هغه جائز او حلال وګڼي او همدارنګه هغه د کفر په شېله کي ولویږي ، یا ددغه جملې دا معنی ده چي غیبت کونکی توبه کوي نو د هغه توبه بذات خود په کار نه ورځي بلکه د هغه توبې صحیح او مقبول کېدل د هغه سړي پر رضا مندۍ او د هغه له لوري پر معافۍ باندي موقوف دی د چا چي یې غیبت کړی دی نو د ذکر سوي حدیث څخه دا څرګندیږي .

## د غیبت کفاره

﴿۴۶۶۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ كَفَّارَةِ الْغِيْبَةِ أَنْ تَسْتَغْفِرَ لِمَنِ اغْتَبْتَهُ تَقُولُ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَنَا وَلَهُ. رواه البيهقي في الدعوات الكبير وقال في هذا الإسناد ضعف

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د غیبت کفاره داده چي د کوم سړي تا غیبت کړی وي د هغه څخه بخښنه وغواړې او داسي ووایې چي اې الله! موږ و بخښې او هغه و بخښې. بیهقي ویلي دي چي ددې حدیث په سند کي کمزوري ده.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳۰۶\۵، رقم: ۶۷۴۲.

**تشريح**: د دعاء او مغفرت د الفاظو څخه دا څرګندیږي چي غیبت کونکی دي لومړی په خپل اړه د مغفرت دعاء وکړي، په دې کي نکته داده چي د استغفار کونکي په اړه د الله تعالی وعده داده چي د هغه دعاء او مغفرت به قبلیږي نو غیبت کونکی چي لومړی د خپل ځان په اړه استغفار وکړي او د هغه په نتیجه کي هغه ددغه معصیت څخه پاک سي نو د بل چا په اړه به هم د هغه دعاء او مغفرت قبول سي.

په (اغفرلنا) کي د جمع متکلم صیغه د هغه صورت په اعتبار ده کله چي د غیبت صدور هم دخلکو څخه سوی وي یعني که چیري غیبت کونکي څو خلک وي نو ټول همدارنګه دعاء وغواړي او که غیبت کونکی یو سړی وي نو بیا به د اغفرلي الفاظ استعمالوي یا دا مراد دی چي استغفار کونکی دی په خپل دعاء او مغفرت کي ټول مسلمانان شامل کړي، په دغه صورت کي به د دعاء معنی دا وي چي اې الله! موږ ټول مسلمانان او دغه سړی (چي ما یې غیبت کړی دی) و بخښې، په ښکاره دا معلومیږي چي د مغفرت دعاء کول د هغه صورت سره متعلق ده کله چي د هغه غیبت خبر هغه سړي ته نه وي رسیدلی د چا چي غیبت سوی دی او که چیري دا صورت وي چي د کوم چا غیبت سوی دی هغه ته معلومه سوې وي چي فلاني سړي زما غیبت کړی دی نو د غیبت کونکي لپاره دا ضروري ده چي د هغه سړي څخه معافي وغواړي په دې توګه چي لومړی دی هغه ته ووایي چي ما ستا په غیبت کي داسي ویلي دي او بیا دي د هغه څخه معافي وغواړي او که غیبت کونکي د یو مجبورۍ او عذر په وجه داسي نسي کولای نو بیا دي دا اراده وکړي چي کله کیدای سي د هغه څخه معافي وغواړي، ددې څخه وروسته کله

چي د هغه څخه معافي تر لاسه کړي نو د دغه ذمه دارۍ څخه به خلاص سي او د هغه غيبت په اړه به پر هغه مؤاخذه پاته نسي مګر که چيري هغه د معافي ترلاسه کولو څخه بالکل عاجز سي په دې سبب چي د کوم چا غيبت يې کړی دی هغه مړ سوی وي يا دومره ليري تللی وي چي د هغه سره د ليدني امکان نه وي نو په دغه صورت کي د هغه لپاره دا ضروري ده چي د الله تعالی څخه مغفرت او بخښنه وغواړي او د هغه د فضل او کرم څخه دا اميد وساتي چي هغه سړی به د هغه له خوا راضي کړي.

فقيه ابو الليث رحمة الله عليه وايي: علماؤ د غيبت کونکی د توبې په اړه کلام کړی دی چي ايا د هغه لپاره دا جائز دي که يا چي هغه د چا غيبت کړی وي نو د هغه څخه د معافي تر لاسه کولو پرته توبه وکړي، ځينو علماؤ دې ته جائز ويلي دي حال دا چي زموږ په نزد ددې دوه صورتونه دي يو خو دا که چيري د هغه د غيبت خبر هغه ته رسيدلی وي د چا چي يې غيبت کړی دی نو د هغه توبه داده چي د هغه څخه معافي وغواړي او دوهم دا که چيري هغه سړي ته د هغه غيبت خبر نه وي رسيدلی نو په دغه صورت کي دي هغه د الله تعالی څخه مغفرت او بخښنه غواړي او په زړه کي دي دا عهد وکړي چي بيا به داسي کار نه کوم،

بيهقي رحمة الله عليه دغه روايت ضعيف ګرځولی دی مګر ددې ضعيف کېدل د حديث پر اصل مفهوم باندي اثر نه کوي ځکه چي په فضائلو او اعمالو کي د ضعيف حديث څخه استدلال کول هم کافي کيږي ددې څخه پرته په جامع صغير کي همدارنګه حديث د حضرت انس رضي الله عنه څخه منقول دی چي دغه روايت ته تقويت ورکوي د هغه حديث الفاظ دادي چي: کفارة من الغيبة ان تستغفر له، يعني د غيبت کفاره داده چي د هغه سړي لپاره د مغفرت دعاء وکړل سي د چا چي غيبت سوی وي.

========

## بَابُ الْوَعْدِ (دوعدې بيان)

د وَعدٌ معنی د قول او اقرار ده، وعده کول يعني يو چا ته د مثال په توګه داسي ويل چي ستا فلانی کار به وکړم، يا به تا ته راسم، يا ستا سره به خوراک وخورم او داسي نور، څرګنده دي وي چي لفظ د وعد د خير او شر دواړو سره متعلق جملو کي استعمالېدای سي په شرط ددې چي په هغه جمله کي د خير او شرط لفظ ذکر سوی وي لکه چي ويل کيږي: وعدته خيرا يا

وعدته شرا، او که چیري د خیر یا شر لفظ مذکور نه وي نو په خیر کي به د وعد لفظ استعمالیږي او په شر کي به د وعید او ایعاد لفظ استعمالیږي.

د عهد پوره کول د انسانیت مظهر او د اسلامي اخلاقو یو بنیادي تقاضا ده، ددې پر خلاف بدعهدي او وعده خلافي یو ډېر لوی عیب دی کوم څوک چي خپل عهد نه پوره کوي او د خپلي وعدې وفا نه کوي نو هغه د اسلام او ټولني دواړو په نظر کي ډېر سخت ناخوښه ګڼل کیږي، نو په دغه باب کي د دغه موضوع سره اړوند حدیثونه نقل کیږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول ﷺ وعده یې پوره کړه

﴿۴۶۶۱﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ لَمَّا مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ أَبَا بَكْرٍ مَالٌ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته کله چي حضرت

مِنْ قِبَلِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَضْرَمِيِّ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ مَنْ كَانَ لَهُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته د علاء بن حضرمي د طرفه مال راغلی نو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلکو ته وویل د چا چي پر رسول الله ﷺ څه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَيْنٌ أَوْ كَانَتْ لَهُ قِبَلَهُ عِدَةٌ فَلْيَأْتِنَا قَالَ جَابِرٌ فَقُلْتُ وَعَدَنِي

پور وي یا د چا سره رسول الله ﷺ څه وعده کړې وي هغه دي موږ ته راسي (چي موږ هغه پور یا وعده ور کړو) د جابر رضی الله عنه بیان دئ چي زه حاضر سوم او وه مي ویل

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُعْطِيَنِي هٰكَذَا وَهٰكَذَا فَبَسَطَ يَدَيْهِ ثَلَاثَ

چي رسول الله ﷺ زما سره وعده کړې وه چي ما ته دومره دومره او دومره راکړي یعني درې واره

مَرَّاتٍ قَالَ جَابِرٌ فَحَثَا لِي حَثْيَةً فَعَدَدْتُهَا فَإِذَا هِيَ خَمْسُ مِائَةٍ قَالَ خُذْ مِثْلَيْهَا. متفق علیه.

دواړه ډک لاسونه (د مال څخه) جابر رضی الله عنه وایي: حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ما ته یوه ډکه لپه نقد زر راکړل کله چي ما شمیر کړل نو هغه پنځه سوه وې بیا یې وفرمایل پنځه سوه پنځه سوه

دوه واره نور وشميره.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\ ۴۷۴، رقم: ۲۲۹٦، ومسلم ۴\۱۸۰٦، رقم: ٦۰ - ۲۳۱۴.

**د لغاتو حل**: عِدة: اى وعد (وعده)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۴٦٦۲﴾: عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبْيَضَ

د حضرت ابو جحيفه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ وليدئ چي سپين رنګ (سپين

قَدْ شَابَ وَكَانَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ يُشْبِهُهُ وَأَمَرَ لَنَا بِثَلَاثَةَ عَشَرَ قَلُوصًا

ږيرتوب) پر څرګند سوی وو او حسن بن علي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ زيات مشابه وو، رسول الله ﷺ موږ ته د ديارلسو ځوانو اوښانو راکولو حکم کړی وو،

فَذَهَبْنَا نَقْبِضُهَا فَأَتَانَا مَوْتُهُ فَلَمْ يُعْطُونَا شَيْئًا فَلَمَّا قَامَ أَبُو بَكْرٍ قَالَ مَنْ

موږ د اوښانو راوستلو لپاره ورتلو چي په دغه وخت کي د رسول الله ﷺ د وفات خبر راغلئ او موږ ته هيڅ هم را نه کړل سول،، بيا کله چي حضرت ابو بكر رضي الله عنه خليفه سو نو هغه اعلان وکړ

كَانَتْ لَهُ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِدَةٌ فَلْيَجِئْ فَقُمْتُ إِلَيْهِ فَأَخْبَرْتُهُ فَأَمَرَ لَنَا بِهَا. رواه الترمذي.

د چا سره چي رسول الله ﷺ د څه ورکولو وعده کړې وي هغه دي موږ ته راسي نو زه حاضر سوم او د پيښي څخه مي خبر کړ نو هغه د اوښانو راکولو حکم وکړ. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۱۸، رقم: ۲۸۲٦.

**د لغاتو حل**: قلوصا: اى ناقة شابة (ځوانه اوښه.).

﴿۴٦٦۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي الْحَمْسَاءِ قَالَ بَايَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الله بن ابي الحمساء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د نبي كريم ﷺ د نبي کېدو څخه

وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ يُبْعَثَ وَبَقِيَتْ لَهُ بَقِيَّةٌ فَوَعَدْتُهُ أَنْ آتِيَهُ بِهَا فِي مَكَانِهِ

مخکي ما يو شی ځيني رانيولی وو چي د هغه يو څه پيسې پر ما پاته سوې ما د رسول الله ﷺ سره وعده کړې وه چي زه به پاته قيمت تاسو ته پر دې ځای درکوم،

فَنَسِيتُ فَذَكَرْتُ بَعْدَ ثَلَاث فَإِذَا هُوَ فِي مَكَانِهِ فَقَالَ لَقَدْ شَقَقْتَ عَلَيَّ أَنَا هَاهُنَا مُنْذُ ثَلَاثٍ أَنْتَظِرُكَ . رواه ابوداؤد.

زما څخه هغه وعده هيره سوه په دريمه ورځ ما ته خبره را ياده سوه نو پاته قيمت مي هغه ځای ته ورسوئ د کوم ځای چي مي ورسره وعده کړې وه ، ما وليدل چي رسول الله ﷺ پر هغه ځای ناست دئ زما په ليدو سره رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل تا زه په لوی زحمت کي اخته کړم زه د درو ورځو څخه دلته انتظار کوم . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۶۸، رقم: ۴۹۹۶.

**تشريح**: علماؤ ليکلي دي چي د رسول الله ﷺ دومره اوږد انتظار کول او د تکليف زغمل د هغه شي د پاته بيي تر لاسه کولو لپاره نه وو بلکه د دې احساس لپاره وو چي کله عبدالله رضي الله عنه د پاته روپو په اخيستلو سره دلته د راتلو وعده کړې وه او د هغه وعدې په جواب کي زما له خوا هم دا وعده وه چي زه به همدلته يم نو تر څو چي هغه نه راسي د ايفاء عهد له کبله ما ته دلته په کښېنستو سره انتظار کول پکار دي، په دې اعتبار سره رسول الله ﷺ د خپل عمل په ذريعه امت ته دا تعليم ورکړ چي وعده په هر صورت کي پوره کول پکار دي که څه هم د هغه لپاره ډېر زحمت او تکليف زغمل وي ، څرګنده دي وي چي د اسلام د دين څخه مخکي هم په ټولو اديانو کي د وعدې پوره کولو محافظت کړل سی دی ، الله جل جلاله د حضرت ابراهيم عليه السلام په مدح او تعريف کي داسي فرمايلي دي : (وابراهيم الذي وفى) .

﴿۴۶۶۴﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا وَعَدَ الرَّجُلُ أَخَاهُ وَمِنْ نِيَّتِهِ أَنْ يَفِيَ لَهُ فَلَمْ يَفِ وَلَمْ يَجِئْ لِلْمِيعَادِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ.

رواه ابوداؤد والترمذي.

د حضرت زید بن ارقم رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي یو سړی د خپل ورور سره وعده وکړي او د هغه دا نیت وي چي هغه پوره کړي مګر په یو وجه هغه پوره نه سي نو پر هغه څه ګناه نه سته . ابو داؤد او ترمذي.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۶۸، رقم: ۴۹۹۵، والترمذي ۵\ ۲۱، رقم: ۲۶۳۳.

**تشریح**: ددې څخه څرګنده سوه چي یو سړی د وعدې پوره کولو د نیت درلودو سربېره هغه وعده پوره نه کړای سي نو هغه ګناه کار نه دی ، دلته دا خبره هم څرګندیږي که چیري یو سړی یو وعده وکړي او نیت یې دا وي چي وعده به نه پوره کوم نو هغه ګناه کار دی که څه هم هغه وعده پوره کړي یا نه، ځکه چي په ژبه سره وعده کول او په زړه کي د هغه د خلاف کولو اراده کول د منافقانو عادت دی .

ځینو علماؤ لیکلي دي چي پرته د امر مانع وعده خلافي کول حرام دي او د ذکر سوي ارشاد مراد همدغه دی ، په مجمع البحار کي لیکلي دي چي د علماؤ پر دې اتفاق دی که چیري یو سړی د یو منع کار وعده وکړي نو د هغه وعدې پوره کول نه دي پکار .

## د وعدې پوره کول واجب دي که مستحب ؟

د فقهي د امامانو په دې خبره کي اختلاف دی چي ایا د وعدې پوره کول واجب دي که مستحب؟ جمهور علماء سره د امام اعظم ابو حنیفة او امام شافعي رحمة الله علیهم وایي چي د وعدې پوره کول مستحب دي او نه پوره کول یې سخت مکروه دي ، مګر ګناه نه ده ، ددې پر خلاف د یو ډلي قول دا دی چي د وعدې پوره کول واجب دي، حضرت عمر بن عبد العزیز رحمة الله علیه هم په دغه ډله کي شامل دی . نقل سوي دي چي د حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه دا معمول وو چي کله به یې د یو چا سره وعده کول نو انشاء الله به یې ویل، او د رسول الله ﷺ په اړه هم نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به د عسی لفظ وایه .

## د کوچني سره هم وعده پوره کړئ

﴿۴۶۶۵﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَامِرٍ قَالَ دَعَتْنِي أُمِّي يَوْمًا وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبد الله بن عامر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي یوه ورځ زما مور زه راوغوښتلم او په دغه وخت کي رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدٌ فِي بَيْتِنَا فَقَالَتْ هَا تَعَالَ أُعْطِيكَ فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

زموږ په کور کي ناست وو او وه يې ويل (زما مور) دلته راسه زه يو شی درکوم ، رسول الله ﷺ

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا أَرَدْتِ أَنْ تُعْطِيهِ قَالَتْ اردت ان أُعْطِيهِ تَمْرًا فَقَالَ لَهَا

زما د مور څخه پوښتنه وکړه تا ده ته د څه ورکولو اراده کړې ده ، هغې وويل ما ديوې خرما ورکولو خيال کړی وو ، رسول الله ﷺ هغې ته وفرمايل

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا إِنَّكِ لَوْ لَمْ تُعْطِهِ شَيْئًا كُتِبَتْ عَلَيْكِ كِذْبَةٌ . رواه ابوداؤد والبيهقي في شعب الايمان.

که تا ده ته څه نه وای ورکړي نو ستا په عمل نامه کي به پر تا باندي دروغ ليکل سوی وای (يعني په درواغجنو کي به داخله سوې وای). ابوداؤد او بيهقي.

**تخريج**: سنن ابي داود ١٦\ ٢٦٥، رقم: ۴۹۹۱، والبيهقي في شعب الايمان ۱۴\ ۲۱۰، رقم: ۴۸۲۲.

**تشريح**: دغه پېښه د حضرت عبدالله ابن عامر رضي الله عنه د وړکتوب ده چي د هغه مور هغه ته آواز وکړ او د يو شي د ورکولو وعده يې ورسره وکړه نو رسول الله ﷺ پوه سو چي خپل کوچني ته محض د غولولو لپاره خبري کيږي او د هغه سره د درواغو وعده کيږي يا د هغه د بېرولو لپاره د خوفناکه شيانو ذکر ورته کيږي او دلته د هغه خبرو حقيقي مفهوم مراد نه دی نو رسول الله ﷺ د حضرت عبدالله رضي الله عنه د مور څخه په دې اړه د خبرداره کولو لپاره ذکر سوی سوال وکړ.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### دلمانځه په وجه بې قولي

﴿۴۶۶۶﴾: عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ وَعَدَ رَجُلاً فَلَمْ يَأْتِ أَحَدُهُمَا إِلَى وَقْتِ الصَّلَاةِ وَذَهَبَ الَّذِيْ جَاءَ لِيُصَلِّيْ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ . رواه رزين.

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم سړی چي د يو چا سره يو وعده وکړي او په دواړو کي يو د لمانځه تر وخته رانغلی او دغه بل سړی د لمانځه لپاره ځيني ولاړی نو پر دغه (نفر چي لمانځه ته ولاړی) ګناه نه سته . رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د دغه ارشاد وضاحت دادی چي د مثال په توګه دوه کسان د يو بل سره يو ځای کيږي، ددې وعدې مطابق په هغوی دواړو کي يو سړی پر ټاکلی وخت رسيدو سره د بل سړي په انتظار کي ناست وو اوس نور انتظار يې ونه کړ او د لمانځه لپاره ولاړ سي نو هغه ته به وعده خلافه نه ويل کيږي او پر هغه به هيڅ ګناه نه وي ځکه چي لمانځه ته تلل د دين د ضرورت څخه دی مګر که چيري هغه د لمانځه د وخت کېدو څخه مخکي د هغه ځای څخه ولاړ سي نو بېله شکه هغه ته به وعده خلاف ويل کيږي او د وعده خلافۍ بدي به د هغه پر ذمه وي همدارنګه که چيري يو ضروري کار پېښ سي لکه د خوراک او څښاک وخت سي يا د تشو او ډکو بولو حاجت سي يا دا ډول بل حقيقي عذر پېښ سوی وي نو په دغه صورت کي هم د نور انتظار کولو څخه پرته د وخت څخه مخکي تلل جائز دي.

==========

# بَابُ الْمِزَاحِ

## (د خوش طبعي (مسخرو) بيان)

مِزاح د ميم په زېر سره مصدر دی او معنی يې د خوش طبعي، خندا او مسخرو ده، او د ميم په پېښ سره يعني مُزاح اسم مصدر دی چي د هغه معنی د خوش طبعۍ او ظرافت ده.

په عربي کي د مزاح اطلاق پر هغه خوش طبعۍ او خندا باندي کيږي چي په هغه کي د يو چا د زړه ماتېدو او تکليف رسوني اړخ نه وي، ددې پر خلاف د کومي خوش طبعۍ او خندا و مسخرو تعلق چي د زړه ماتېدو او تکليف رسوني سره وي هغه ته سخريه وا ي.

په يوه حديث کي دا فرمايل سوي دي چي: لا تمار اخاک ولاتمازحه، يعني د خپل مسلمان ورور سره جګړه او فساد مه کوه، او مه د هغه سره خندا او مسخرې کوه. نو علماؤ ليکلي دي چي هغه مسخرې منع دي چي په هغه کي د حد څخه تجاوز وکړل سي او هغه عادت جوړ کړل سي ځکه چي هر وخت په مسخرو کي اخته کېدل او په هغه کي د حد څخه تجاوز کول د ډېري خندا او قهقهه کولو باعث کيږي، قلب او ذهن په سختۍ او بې حسۍ کي اخته کوي، د ذکر الله څخه غفلت راولي، ددين په مهماتو کي د غور او فکر څخه منع کوي او زيات وختونه ددې انجام تکليف رسول او په خپلو کي د بغض او عناد صورت جوړوي ددې څخه پرته دا هم حقيقت دی چي کوم څوک هر وخت خندا او مسخرې کوي نو د هغه شخصيت متاثر او مجروح کيږي

چي نه د هغه د بد به قائمه پاته کیږئ او نه د هغه عظمت او وقار پاته کیږي ، ددې برعکس کومي مسخرې چي په حد کي دننه او کله نا کله وي نو هغه نه یوازي دا چي مباح دي بلکه د صحت مزاج او خوش طبعی علامه هم ده ، رسول الله ﷺ به مزاح او ظرافت اختیاروی چي د هغه څخه به د رسول الله ﷺ مقصد د زړه خوشحاله کېدل او په خپلو کي د میني او موانست د جذباتو مستحکم کول وو ، او داسي کول سنت مستحبه دي او که چیري دلته دا سوال واقع سي چي دغه خبره د هغه روایت مخالف ده چي په هغه کي حضرت عبدالله ابن حارث رضی الله عنه بیان کړی دی چي : ما رایت احدا اکثر مزاحا من رسول الله ﷺ ، یعني ما د رسول الله ﷺ څخه زیات مسخرې کونکی هیڅوک نه دی لیدلی ، نو د هغه جواب به په لنډه توګه دا وي چي د زیات مزاح او ظرافت منع په دې وجه ده چي په دې سره پر نفس باندي واک نه پاته کیږي او ښکاره ده چي د رسول الله ﷺ برابر هیڅوک پر نفس باندي زیات واک نسي درلودلای نو دغه شی (یعني زیات مزح کول) د هغه امورو څخه دی چي یوازي د رسول الله ﷺ د ذات مبارک سره خاص دی او نورو ته د هغه څخه ځان ساتل غوره دي ، ددې تائید د ترمذي د هغه روایت څخه هم کیږي چي مخکي به راسي ، چي صحابه کرامو وویل : اې د الله رسوله ! تاسو زموږ سره مزاح کوئ ، رسول الله ﷺ وفرمایل : زه په مزاح کي ریښتیا وایم ، خلاصه دا چي د زیات مزاح کولو د منع تعلق د رسول الله ﷺ څخه پرته د نورو خلکو سره دی مګر که چیري یو سړی پر حد باندي قائم وي او پر خپل نفس واک ولري او د اعتدال د لاري څخه په منحرف کېدو باندي قادر وي نو هغه به هم د دغه منع څخه مستثنی وي ۔

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نبي ﷺ خوش طبعي

﴿۴۶۶۷﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ إِنْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُخَالِطُنَا حَتّٰى يَقُولَ لِأَخٍ لِي صَغِيرٍ يَا أَبَا عُمَيْرٍ مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ يَلْعَبُ بِهِ فَمَاتَ. متفق عليه.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به زموږ سره خوش طبعي هم کول تر دې چي زما کشر ورور ته به یې دا ویل : عمیر ستا نغیر څه سو (نغیر د یو مرغه نوم دئ لکه بلبله) د انس ورور عمیر به په هغه بازی کولې او هغه مړه سوې وه ۔ بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۲٦، رقم: ٦۱۲۹، ومسلم ۳\۱٦۹۲، رقم: ۳۰- ۲۱۵۰.

**د لغاتو حل**: النغير: طائر يشبه العصفور، احمر المنقار (د چوغكي غوندي يو مرغه.)

**تشريح**. حضرت انس رضي الله عنه د خپل كشر ورور ذكر كړى دى چي د هغه نوم كبشه وو او هغه دده اخيافي (په مور كډ) ورور وو، د هغه د پلار نوم ابوطلحه ابن زيد ابن سهيل انصاري وو.

نُغَير، تصغير دى د نَغَرٌ چي د يوه كوچني مرغه نوم دى چي د هغه مښوكه سره وي، ځينو حضراتو ويلي دي چي د هغه مرغه سور سر وي او ځينو ويلي دي چي د مدينې خلكو به هغه ته بلبله ويل، كيداى سي چي دا هغه مرغه وي چي موږ لال ورته وايو.

د حضرت انس رضي الله عنه كوچني ورور كبشه به هغه مرغه رسول الله ﷺ ته راوړى لكه څرنګه چي كوچنيانو په مرغانو او نورو شيانو سره لوبي كوي او هغه د ځان سره ساتي، يوه ورځ ناڅاپه هغه مرغه مړ سو او ددې څخه وروسته چي كله به د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو نو رسول الله ﷺ به د مسخرو په توګه هغه ته ويل اې ابوعمير! ستا هغه نغير څه سو، يعني رسول الله ﷺ به د هغه د مخاطب كولو په وخت كي په خوش طبعۍ سره د تفنن كلام اسلوب هم اختيار وى يعني د نغير په مناسبت سره او ددغه لفظ د قافيې په توګه د ابوعمير د كنيت په ذريعه يې هم مخاطب كوى.

ددغه حديث څخه معلومه سوه چي كوچنيانو ته په مرغانو او نورو شيانو سره لوبي كول جائز دي په شرط ددې چي هغو ته تكليف ونه رسوي او ددې څخه معلومه سوه چي د يو كوچني كنيت تړاكل جائز دي او دا په دروغو كي داخل نه دي بلكه نېك فالي ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۳٦٦۸﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّكَ تُدَاعِبُنَا قَالَ إِنِّي لَا أَقُولُ إِلَّا حَقًّا. رواه الترمذي.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي صحابه كرامو وويل: اې دالله رسوله! تاسو زموږ سره خوش طبعي كوئ، رسول الله ﷺ وفرمايل هو مګر (په دې خوش طبعي كي) زه رښتيا خبره كوم. ترمذي،

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۱۴، رقم: ۱۹۹۰.

**تشريح**: په ښکاره دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ، صحابه کرام د زیاتي خندا او مسخرو ځخه منع کړل مګر ددې ځخه وروسته هم هغوی ذکر سوی سوال وکړ، نو رسول الله ﷺ هغوی ته جواب ورکړ چي د خندا او مسخرو منع په دې وجه ده چي په هغه کي په عامه توګه درواغ او غیر شرعي خبري واقع کیږي او ځرګنده ده چي په تاسو کي هیڅوک پر دې قادر نه دی چي د هغه خندا او مسخرې درواغ او لا یعني خبرو ځخه پاک وي ځکه چي تاسو معلوم نه یاست مګر الله تعالی زه معصوم (د ګناهو ځخه پاک) ګرځولی یم او زه یې پر دې قادر کړی یم چي کله کله زما په خندا او مسخرو کي د درواغو آمیزش وي نو هغه ناجائز ده همدا وجه ده چي رسول الله ﷺ به هیڅکله داسي مسخرې نه کولې چي په هغو کي به د درواغو او نامناسب خبره وه او د خندا او مسخرو خبره که چیري د حقیقت په اعتبارپر درواغو مبني نه وي نو هغه جائز ده مګر ددې سربېره خندا او مسخرې عادت جوړول نه دي پکار ځکه چي په دې وجه دبدبه او وقار ختمیږي.

﴿۴۶۶۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا اسْتَحْمَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّي حَامِلُكَ عَلَى وَلَدِ النَّاقَةِ فَقَالَ مَا أَصْنَعُ بِوَلَدِ النَّاقَةِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ وَهَلْ تَلِدُ الْإِبِلَ إِلَّا النُّوقُ. رواه الترمذي وابوداؤد.

د حضرت انس رضي الله عنه ځخه روایت دئ چي یو سړي د رسول الله ﷺ ځخه سپرلۍ وغوښتل، رسول الله ﷺ وفرمایل زه به د سپرلۍ لپاره د اوښي بچی درکړم، هغه سړي وویل زه به د اوښي په بچی څه وکړم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل اوښ خو د اوښي ځخه زیږي. (یعني اوښ خو هم د اوښي بچی وي که یا). ابوداؤد او ترمذي.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۷۰، رقم: ۴۹۹۸، والترمذي ۴\ ۳۱۴، رقم: ۱۹۹۱.

**تشريح**: هغه سړي دا ګڼلي وه چي د اوښي د بچي ځخه مراد هغه کوچنی بچی مراد دی چي د سپرلۍ وړ نه وي مګر د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي د سپرلۍ وړ کوم اوښ وي هغه خو هم د اوښي بچی وي نو رسول الله ﷺ د هغه سړي په طلب ذکر سوی ارشاد د خوش طبعۍ په توګه وفرمایه او بیا یې د هغه پر حیرانتیا جواب ورکړ چي د هغه په ذریعه نه یوازي د مفهوم حقیقت ادا کړي بلکه دې ته یې هم اشاره وفرمایل که تا دلږ عقل ځخه کار اخیستی وای نو زما د خبري ژوروالي ته به دي د رسېدو هڅه کړې وای نو په دغه حیرانتیا کي به نه لوېدی او پر حقیقي

مفهوم باندي به په خپله پوه سوی وای نو په دغه ارشاد کي یوازي خوش طبعي نه وه بلکه دې ته متوجه کول هم مقصد وو چي اورېدونکی باید په هغه خبره کي غور او فکر وکړي کوم چي هغه ته ویل سوې ده او بې فکر سوال او جواب دي نه کوي بلکه مخکي دي په هغه خبره د پوهېدو هڅه وکړي او د فکر څخه وروسته دي مخته ځي.

## خوش طبعي

﴿۴۶۷۰﴾: وَعَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ يَا ذَا الْأُذُنَيْنِ. رواه ابوداؤد والترمذي.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم ده ته وویل: اې د دوو غوږو خاونده. ابوداؤد او ترمذي.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۲۷۲، رقم: ۵۰۰۲، والترمذي ۴\۳۱۵، رقم: ۱۹۹۲.

**تشریح**: رسول الله صلی الله علیه وسلم چي حضرت انس رضی الله عنه د دوو غوږو والا په ذریعه مخاطب کړی نو په دې کي خوش طبعي او ظرافت وو او په هغه کي ددغه تعریف او توصیف اظهار هم مقصد وو چي ته ډېر فهیم او ذکي یې او تا ته چي کومه خبره ویل کیږئ هغه ته په ښه ډول اورې.

## سپین سري جنت ته نه ځي

﴿۴۶۷۱﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِامْرَأَةٍ عَجُوْزٍ إِنَّهُ لَا

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم یوې سپین سرې ته وفرمایل: سپین سري

تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَجُوْزٌ فَقَالَتْ وَمَا لَهُنَّ وَكَانَتْ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ فَقَالَ لَهَا أَمَا

به جنت ته نه ځي، سپین سري وویل: اې دالله رسوله څه سبب دئ چي هغوی به جنت ته نه ځي او دغه سپین سرو به قرآن وایه، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: ایا تا په قرآن کریم کي دا آیت نه دي

تَقْرَئِيْنَ الْقُرْآنَ إِنَّا أَنْشَأْنَاهُنَّ إِنْشَاءً فَجَعَلْنَاهُنَّ أَبْكَارًا. رواه رزين. وفي شرح السنة بلفظ المصابيح

لوستی (انا انشانهن......) موږ به په جنت کي ښځي دویم وار پیدا کړو موږ به هغوی پیغلي

انجوني جوړي کړو۰ رزين۰

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ١٣\ ١٨٣، رقم: ٣٦٠٦، والبغوي في المصابيح ٣\ ٣٣٥، رقم: ٣٧٩٦.

**تشريح**: په مصابيح کي چي دغه روايت په کومو الفاظو نقل سوی دی هغه دادی چي رسول الله ﷺ هغه ښځي ته وفرمايل چي سپين سري ښځي به په جنت کي نه داخليږي (د دې په اورېدو سره) هغه سپين سرې ښځه په ژړا ولاړه نو رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه ښځي ته ورسئ او ورته ووايا ست چي ښځي به خپل سپين سري جنت ته نه ځي ځکه چي الله تعالى فرمايلي دي (انا انشاناهن انشاء فجعلناهن ابكارا) يعني ښځي به په پيغلي کېدو سره په جنت کي داخليږي.

**د خوش طبعۍ يوه واقعه**

﴿٤٦٧٢﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَجُلاً مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ كَانَ اِسْمُهُ زَاهِرَ بْنِ حِرَامٍ وَّكَانَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو صحرايي سړی چي د هغه نوم زاهر بن حرام وو د

يُهْدِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْبَادِيَةِ فَيُجَهِّزُهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

رسول الله ﷺ لپاره به يې د صحراء څخه د تحفې لپاره يو څه راوړل (مثلا سبزي وغيره) او کله چي به هغه ستنېدئ نو رسول الله ﷺ به د هغه د سفر سامان سموئ،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَّخْرُجَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ زَاهِرًا

يوه ورځ نبي کريم ﷺ د هغه په اړه وفرمايل: زاهر

بَادِيَتُنَا وَنَحْنُ حَاضِرُوْهُ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّهُ وَكَانَ دَمِيْمًا

زموږ د باندي بندوبست کونکی دئ او موږ د هغه د ښار بندوبست کونکي او رسول الله ﷺ د زاهر سره ډېره مينه کول هغه د رنګه تور وو،

فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا وَهُوَ يَبِيْعُ مَتَاعَهُ فَاحْتَضَنَهُ مِنْ خَلْفِهِ

يوه ورځ رسول الله ﷺ د شا د خوا ورغلئ د شا د لوري يې د هغه ستر کي بندي کړې (يعني لاسونه مبارک يې پر کښېښودل)

وَهُوَ لاَ يُبْصِرُهُ فَقَالَ أَرْسِلْنِيْ مَنْ هٰذَا فَالْتَفَتَ فَعَرَفَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

هغه شی نه سو لیدلای او وه یې ویل څوک یې ما پرېږده، بیا زاهر د سترګو په کونجو کي وکتل او رسول الله ﷺ یې و پېژندئ

وَسَلَّمَ فَجَعَلَ لَا يَأْلُوْا مَا أَلْزَقَ ظَهْرَهُ بِصَدْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ

او خپله شا یې د رسول الله ﷺ د سینې مبارکي سره په مښلولو کي پوره کوښښ وکړ (یعني د برکت تر لاسه کولو لپاره)

عَرَفَهُ وَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ يَّشْتَرِيْ الْعَبْدَ فَقَالَ يَا

او رسول الله ﷺ دا ویل څوک غلام رانیسي، ددې اورېدو سره زاهر وویل: اې د الله رسوله!

رَسُوْلَ اللهِ إِذًا وَاللهِ تَجِدُنِيْ كَاسِدًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لٰكِنْ

عِنْدَ اللهِ لَسْتَ بِكَاسِدٍ. رواه في شرح السنة.

په الله ﷻ دي مي قسم وي تاسو به ما د خرڅولو په وخت کي کوټه تر لاسه کړئ (یعني څوک به مي نه رانیسي) رسول الله ﷺ ورته وفرمایل مګر د الله ﷻ په نزد ته کوټه نه یې (یعني د کار سړی یې). شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\۱۸۱، رقم: ۳۶۰۴

**تشريح**: رسول الله ﷺ، زاهر رضي الله عنه د مسخرو په توګه په غلام سره تعبیر کړ او د حقیقت په اعتبار د دروغو خبره نه وه ځکه چي هغه د الله تعالی غلام په هر حال وو، د یو شي د پلورلو په توګه استفهام په ډول دا ویل چي کوم څوک دی چي دی رانیسي، د مفهوم په اعتبار کله خو د هغه د قیمتي کېدو لپاره پر مقابلې باندي اطلاق کیږي او کله د هغه اطلاق پر استبدال باندي نو د رسول الله ﷺ دغه ارشاد کوم څوک دی چي ددغه غلام رانیونکی دی مطلب دا وو په دغه بازار کي داسي څوک سته چي ددغه غلام د قدر او قیمت مقابله وکړي یعني دلته یو دغه د حیثیت مقابله نسي کولای یا دا چي داسي څوک سته چي ددغه غلام قیمت ولګوي اسي شی ماته راکړي چي د هغه په بدله کي زه دغه غلام ورکړم یعني دلته هیڅ مال دده بدل ي کیدای او هیڅ شی دده قیمت نسيَ جوړېدای او دا هم ممکن ده چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد چي دغه غلام حاصل کړي یعني داسي هیڅوک نسته چي ددغه غلام د تر لاسه کولو او د ځان سره د ساتلو اهل وي.

## د نبي کريم ﷺ سره د صحابه کرامو خوش طبعي

﴿۴۶۷۳﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ قَالَ أَتَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د عوف بن مالک اشجعي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ فَسَلَّمْتُ فَرَدَّ وَقَالَ ادْخُلْ

د تبوک په غزا کي، دغه وخت رسول الله ﷺ د پوست په يوه خيمه کي وو، ما رسول الله ﷺ ته سلام ادا کړ نو د سلام جواب يې راکړ او وه يې فرمايل دننه راځه

فَقُلْتُ أَكُلِّي يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ كُلُّكَ فَدَخَلْتُ قَالَ عُثْمَانُ بْنُ أَبِي الْعَاتِكَةِ قَالَ إِنَّمَا قَالَ أَدْخُلُ كُلِّي مِنْ صِغَرِ الْقُبَّةِ. رواه ابوداؤد.

ما د مسخرو په توګه وويل: اې د الله رسوله! ټوله راسم (يعني ټول بدن را دننه کړم) رسول الله ﷺ و فرمايل: ټول بدن را دننه کړه، نو زه خيمې ته را دننه سوم، ددې حديث يو راوي عثمان بن ابو العاتله رضي الله عنه وايي عوف بن مالک رضي الله عنه دا جمله ځکه ويلې وه چي خيمه کوچنۍ وه. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۲۷۱، رقم: ۵۰۰۰.

**د لغاتو حل**: قبة: اى خيمة صغيرة (کوچنۍ خېمه)

**تشريح**: ددغه حديث څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د خپلو صحابه کرامو سره د داسي ميني او شفقت تعلق درلودی چي صحابه کرام د رسول الله ﷺ سره بې تکلفه وه. او ددغه بې تکلفۍ په وخت کي به يې د رسول الله ﷺ ظريفانه خبري هم کولې.

﴿۴۶۷۴﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ اسْتَأْذَنَ أَبُو بَكْرٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت ابوبکر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه کور ته د ورتلو اجازه وغوښتل،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعَ صَوْتَ عَائِشَةَ عَالِيًا فَلَمَّا دَخَلَ تَنَاوَلَهَا لِيَلْطِمَهَا وَقَالَ أَلَا

سمدستي هغه د بي بي عائشې رضي الله عنها آواز واوريدئ چي په زوره ګډه وه، د ننه په ورتلو سره حضرت ابوبکر رضي الله عنه د بي بي عائشې رضي الله عنها لاس ونيوئ او د چپلاخي ورکولو اراده يې وکړه او وه

يې فرمايل خبردار!

أَرَاكِ تَرْفَعِينَ صَوْتَكِ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى

چي بيا دي د رسول الله ﷺ د آواز څخه په لوړ آواز وانه ورم، رسول الله ﷺ ابوبكر صديق رضي الله عنه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْجِزُهُ وَخَرَجَ أَبُو بَكْرٍ مُغْضَبًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

منع كړى د وهلو څخه ددې څخه وروسته ابوبكر رضي الله عنه د غضب په حالت كي ولاړى د هغه د تلو

وَسَلَّمَ حِينَ خَرَجَ أَبُو بَكْرٍ كَيْفَ رَأَيْتِنِي أَنْقَذْتُكِ مِنَ الرَّجُلِ قَالَ فَمَكَثَ أَبُو

څخه وروسته رسول الله ﷺ بي بي عائشې رضي الله عنها ته وفرمايل تا وليدل ما څرنګه ددغه سړي (ابوبكر صديق رضي الله عنه) د لاسه خلاصه كړې، د بي بي عائشې بيان دئ ددې څخه وروسته حضرت

بَكْرٍ أَيَّامًا ثُمَّ اسْتَأْذَنَ فَوَجَدَهُمَا قَدِ اصْطَلَحَا فَقَالَ لَهُمَا أَدْخِلَانِي فِي سِلْمِكُمَا

ابوبكر رضي الله عنه تر څو ورځو پوري زموږ كره نه راغلئ، بيا يوه ورځ هغه حاضر سو اجازه يې وغوښتل په كور كي يې وليدل چي رسول الله ﷺ او عائشه رضي الله عنها د صلح په حالت كي ناست دي نو ابوبكر صديق رضي الله عنه دواړه مخاطب كړل او ورته وه يې ويل ما په خپل صلح كي ګډ كړئ

كَمَا أَدْخَلْتُمَانِي فِي حَرْبِكُمَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ فَعَلْنَا قَدْ

فَعَلْنَا. رواه ابوداؤد.

لكه څرنګه چي مو په جګړه كي ګډ كړى وم، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: موږ همداسي وكړل موږ همداسي وكړل (يعني ته هم په صلحه كي راسره داخل يې). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۷۱، رقم: ۴۹۹۹.

**لغاتو حل**: يحجزه: اى يمنعه (منعه كوي يې)

**تشريح**: په څرګنده دا معلوميږي چي په دغه حديث كي د رسول الله ﷺ هغه جمله د مزاح په توګه وه چي رسول الله ﷺ بي بي عائشې رضي الله عنها ته فرمايلې وه چي تا وليدل چي ما ته د هغه سړي (يعني د ابوبكر صديق رضي الله عنه) د لاس څخه څرنګه خلاصون وركړ، يعني رسول الله ﷺ ستا د پلار ويلو پر ځاى د هغه سړي ويل د مسخرو په توګه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د بي بي عائشې رضي الله عنها